يَهْدِيْ إِلَى الرُّشْدِ فَآمَنَّا بِهٖ

په پښتو ژبه کښې آسان، عام فهم او تحقيقي انداز کښې علمي او الهامي نکاتو باندې مشتمل، لاجوابه علمي تحفه

# رُشْدُ الْقُرْآنِ

## فِي تَفْسِيْرِ آيَاتِ الْقُرْآنِ

اوّل جلد

له ابتداء نه تر آخره د سورة آلِ عمران پورې

تاليف

شيخ القرآن والحديث حضرت مولانا أسيد الله صاحب رحمه الله

جديد مكتبه رشيديه

محله جنگي قصه خواني پشاور

091-2580074

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

يَهۡدِيۤ إِلَى ٱلرُّشۡدِ فَـَٔامَنَّا بِهِۦۖ وَلَن نُّشۡرِكَ بِرَبِّنَآ أَحَدٗا

په پښتو ژبه کښې آسان، عام فهم او تحقیقی
انداز کښې، علمی او الهامی نکاتو باندې مشتمل ، لاجوابه علمی تحفه




# رشد القران

# فی تفسیر آیات القرآن

اول جلد

**له ابتداء نه تر د سورة النساء پورې**

تالیف
شیخ القرآن والحدیث
حضرت مولانا اُسید الله صاحب رحمه الله

جدید مکتبه رشیدیه
محله جنگی قصه خوانی پشاور 091-2580074

بسم الله الرحمن الرحيم



د کتاب نوم : رشد القران فی تفسیر آیات القرآن

تالیف : شیخ القرآن والحدیث حضرت مولانا أسید الله صاحب رحمه الله

تصحیح ونظر ثانی : مولانا تقی الله صاحب

جلد : اول

صفحات : ۶۵۲

تاریخ : ۲۰۱۶ء

جدید مکتبه رشیدیه
محله جنگی قصه خوانی پشاور 091-2580074

د کتاب تر لاسه کولو ځایونه

| | | |
|---|---|---|
| ◦ پشاور | ◦ کندوز | ◦ بغلان |
| ◦ اکوړه خټک | ◦ غزني | ◦ لوګر |
| ◦ کوټه | ◦ جلال اباد | ◦ خوست |
| ◦ پروان | ◦ قندهار | |

# تقریظونه

## (۱) تقریظ

**جامع المعقول والمنقول شیخ القرآن والحدیث فضیلة الشیخ حضرت مولانا سمیع الحق صاحب دامت برکاته وفیوضاته**

الحمد لحضرة الجلالة والصلوة والسلام علی خاتم الرسالة . **اما بعد**

قرآن کریم د الله تعالی جل جلاله د طرف نه نازل شوې آخری کتاب دې. په دې وجه باندې دا کتاب د تمامو سابقه آسمانی کتابونو او صحیفو دپاره ناسخ دې او د نزول قرآن د زمانې نه را واخلې تر دې وخته چې د دې کتاب په هره حواله څومره خدمت شوې دې. دومره خدمت دیو کتاب په حصه کښې هم نه دې راغلې. او دا اعزاز او افتخار به ولې دې ته نه وی حاصل څکه چه دا په کوم ذات باندې نازل شوې دې. هغه فخر موجودات. سرور کائنات. سید الاولین والاخرین. ختم المرسلین. شفیع المذنبین. خاتم الانبیاء. حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم دې. چه هغه آخری پیغمبر دې. نو په هغه باندې نازل شوې کتاب آخری کتاب دې

د حضور صلی الله علیه وسلم نه پس تر قیامته پورې بل پیغمبر نشی راتلې. په دې وجه په دې کتاب مجید کښې ترقیامته پورې د راتلونکو تمامو مسائلو حل موجود دې یا د عبارة النص او د اشارة النص په شکل او یا د دلالة النص او د اقتضاء النص په رنګ کښې. او مجتهدینو کرامو د خپل اجتهاد او د استنباط په قوت د دې نه د کروړونو مسائلو استنباط او تخریج کړې دې

د دې کتاب عظیم د تفسیر په حواله دا خبره به مبالغه نه وی چه د کروړونو په تعداد کښې د دې تفسیرونه مطبوعه او غیر مطبوعه موجود دی. چه د هغې د صفحاتو حساب او شمار تقریبا نا ممکن دې. په هر دور کښې علماء محققینو او مفسرینو د دې تراجمو او د تفسیر اقدام کړې دې. په دغه خوش بخته افرادو کښې زمونږ د جامعه دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک سابق استاد **شیخ القرآن والحدیث حضرت مولانا أسید الله صاحب قدس سره** هم دی. چه هغوی د دارالعلوم حقانیه شیخ الحدیث **دجامع المعقول والمنقول مولانا مغفور الله صاحب**

**مدظله** برادر گرامی دي، هغوئ د درس او تدریس سره د دعوت او د تبلیغ په کار کښ با قاعده حصه په پابندئ سره اخستله او دغه شان په مدرسه کښ به يې قبل از وقت ترجمه او تفسیر درس کولو. دا دهغوئ معمول وؤ، او بیا په تعطیلات رمضان کښ به ئی هم دورهٔ تفسیر کوله.

هغوئ د خپل د مسلمو شیوخو د قرآن نه چه هغه **العارف بالله شیخ التفسیر والحدیث حضرت مولانا عبدالهادی شاه منصوری** وو او **شیخ القرآن مولانا غلام الله خان** وؤ ، د دوئ سره دوه . دوه ځله دوره تفسیر کړې وؤ.

هغوئ د ډیر وخت نه د خپلو دواړو شیخینو افادات جمعه کول او ورسره ورسره ئی د نورو متعددو تفاسیرو نه هم استفاده کوله، او په پښتو ژبه کښ ئی د یوبهترین تفسیر ابتداء کړی ده، او هم په تفسیر لیکلو کښ مشغول وؤ چه دې مقام ته را ورسیدلو ﴿ذَٰلِكَ لِمَنْ خَافَ مَقَامِي وَخَافَ وَعِيدِ﴾ نو د بیمارئ دوره ورباندې راغله او دهم دغه بیماری په حالت کښ روح ترینه د قفص عنصری نه پرواز وکړو.

دا د ډیرې خوش قسمتی خبره ده چه دهغوئ تمام صاحبزادگان بحمد الله علماء او فضلاء دی، هغوئ د خپل والد محترم تفسیر ته توجه ورکړه او دهغوئ د کیستونو هغه تفسیر په مخه باندې بیائی، ما دهغوئ د تفسیر څه حصه ځائ په ځائ اوکتله، ما شاء الله ډیر زیات علمی او تحقیقی او په نایابو نکاتو باندې مشتمل تفسیر دې، او په ډیر محنت او عرقریزی سره ئی مرتب کړې دې.

الله تعالی دې دا تفسیر زرترزره سرته اورسوی او د چاپ اسباب دې ورله پیدا کړی چه عام مسلمانان د دې ملغلرونه فائده واخلی . ((آمین، ثم آمین)).

زه دمولانامرحوم صاحبزادگانوته مبارکباد ورکوم اوهغوئ دخپل عظیم والد مسند خالی پرې نښودو ،اودهغوئ په نقش قدم باندې روان دی،اودا ددرس اوتدریس اود تبلیغ اودعوت سلسله ئی جاری ساتلې ده، زما دعا ده چه الله تعالی دې دوئ ته مزید توفیق ورکړی چه د خپل والد صاحب رحمه الله علوم او معارف علمی دنیا او تشنگانو دعلم ته مخکښ کړی.

**سمیع الحق**

**خادم دارالعلوم حقانیه**

**۲۸ رجب المرجب ، سنه : ۱۴۳۱ هـ**

## (۲) تقریظ

**جامع المعقول والمنقول شیخ القرآن والحدیث فصیح اللسان استاذ الکل فی الکل فضیلة الشیخ الدکتور شیرعلی شاه المدنی صاحب دامت برکاته العالیه**

بسم الله الرحمٰن الرحیم

الحمد لله وکفٰی وسلامٌ علٰی عباده الذین اصطفٰی :

**امابعد** : دَ محترم فخرالأماثل **شیخ الحدیث والتفسیر مولانا أسید الله ((نوّرالله مرقده))** زرّین تفسیر **((رشد القرآن))** دَ جلد اوّل دَ ابتدائی صفحاتو په لیدو م سترږې روښانه. او زړه م بیحده خوشحاله شو. دَ مشت نمونهٔ خروار پیش نظر دا وئیلې شم چه په پښتو ژبه کښ رشد القرآن یو روح پرور. ایمان افروز تفسیر دې. باید – چه عوام او خواص دَ دې خونده ور. بیش بها تفسیر په رڼا کښ دَ قرآن پاك دَ ایمانی ملغلرو نه خپلې سینې منوره کړی، دَ ښاغلی مفسّر رحمة الله علیه دَ قرآن پاك سره والهانه عقیدت او محبت وؤ. چه هغه دَ **شیخ القرآن حضرت مولانا غلام الله خان رحمة الله علیه** نه دوه ځله دورهٔ تفسیر کښ شرکت کړې دې او یوځل ئی د **شیخ المفسرین، شیخ القرآن حضرت مولانا عبدالهادی رحمة الله علیه** نه دورهٔ تفسیر کړې وه- او بیا ئی مسلسل څو څو ځله طالبانوته په شعبان او رمضان کښ دَ قرآن پاك تفسیر او ترجمې کړی دی او په خپلو لاسو ئی دَ رشد القرآن مسوده لیکلې وه چه پښتنو رونړو او خویندو ته دَ تفسیر دا ښکلې وقیعه تحفه په خپل ژوند کښ وړاندې کړی. مگر. ((كَمْ حَسَرَاتٍ فِي صُدُوْرِ الْمَقَابِرِ)).

الحمد لله دَ حضرت مولانا أسید الله رحمة الله علیه خلف الرشید **مولانا تقی الله صاحب ((حفظه الله تعالی ورعاه))** دَ خپل والد بزرگوار دا عظیم الشانه صدقه جاریه په ډیر ښکلی طباعت سره دَ تفسیر شائقینو ته وړاندې کوی.

محترم مفسّر رحمة الله علیه دَ دې تفسیر په مقدمه کښ دَ علم تفسیر اکثر اصول او ضوابط په جامع . مانع انداز کښ بیان کړی دی او دَ عقایدو مسئلې ئی هم دَ سلفو صالحینو په ډول ذکر کړیدی - رب العالمین جلّ جلاله دې دا عظیمه صدقه جاریه دَ محترم مفسّر رحمة الله علیه دَ رفع درجات باعثه اوگرزوی اومحترم **مولانا تقی الله صاحب** او نورو تولو همکارانو ته دې ددې جلیل القدر شاهکار اجرونه، ثوابونه نصیبه کړی، **والله من وراء القصد وهو یجزئ عباده المحسنین**

**کتبه : شیرعلی شاه کان الله له**

**خادم اهل العلم، بجامعة دارالعلوم الحقانیه اکوره ختک.** ۱۵/ ۷/ ۱۴۳۲ هـ

## (۳) کلمات مبارکه

**د شیخ الحدیث حضرت العلامه مولانا مغفور الله مد ظله دارالعلوم حقانیه اکوړه ختک ، برادر کبیر دَ مؤلف رحمه الله .**

الحمد لله رب العالمین والصّلوة والسلام علی سید المرسلین - امّا بعد :

په مشاغلو کښې بهترینَ مشغله د قرآن او د احادیثو مشغله ده، او په ټولو خدمتونو کښې نافع ترین خدمت دَ قرآن او دَ حدیث دې، متقدّمینو او متأخّرین علماء کرامو د قرآن کریم په مختلف انداز کښې مختلف خدمتونه کړي دی، **محترم برادر صغیر حضرت العلاّمه شیخ التفسیر والحدیث مولانا أسید الله رحمه الله رحمةً واسعةً، وجعل الجنّة مثواه**، د طالب العلمئ دَ دور نه دَ قرآن او حدیث سره بی انتها شوق لرلو ، دَ دې وجه نه مولانا رحمه الله دَ خپل وخت په مشهورو مشهورو دوره تفسیرونو کښې شرکت کړې وؤ، دَ فراغت نه وروستو دَ دغې شوق په بنا باندې مولانا رحمه الله چه په کومه مدرسه کښې به ئې درس کولو ، با قاعده به ئې په پوره کال کښې یو ختم دَ تفسیر قرآن هم مکمل کوؤ، مثلاً دَ تدریس په اوّلنی کلونو کښې په ماری تونګ ((سوات)) کلی کښې ئې تفسیر قرآن لوستلې وؤ، بیا په دار العلوم حقانیه اکوړه ختك کښې هم شائقین دَ قرآن پاك د مولانا رحمه الله نه پوره پوره استفاده کړې وه، دغه رنګه په دارالعلوم وانا وزیرستان او تعلیم القرآن کوهاټ او په تعلیم القرآن راولپنډی کښې بار بار دَ الله تعالی دَ آخری کتاب دَ خدمت موقعه حاصله کړې وه. تقریبًا پنځه دیرش کاله دقرآن خدمت الله تعالی دَ مولانا رحمه الله نه اخستې وؤ ((**ذلک فضل الله یؤتیه من یشاء**)) .

دَ ښائخو علمی نکات او ملغلرې او دَ خپلې تجربې او مهارت دقائق او دَ نورو معتبرو تفاسیرو علمی او تفسیری نکتې مولانا رحمه الله په خپل تفسیر کښې ډیر په محنت سره جمع کړې دی، دَ مولانا رحمه الله دا تمنّا وه چه دا تفسیری ملغلرې او پوهه دَ قرآن دې په مسلمانانو کښې عامه کړې شی، دَ دې دپاره هغه په خپله پښتو ژبه کښې دَ قرآن تفسیر لیکل شروع کړل. کله چه مولانا رحمه الله دَ سورة ابراهیم دغې آیت ﴿ذَٰلِكَ لِمَنْ خَافَ مَقَامِي وَخَافَ وَعِيدِ﴾ تفسیر لیکلو ته اُرسیدو ، نو دَ مولانا بیماری سخته او زیاته شوه او څو ګهنټو کښې ئې دَ الله تعالی په دربار کښې د قیام عملی مظاهر وفرمائیله، الله تعالی دې دَ هغه قبر دجنت دَ

باغیچو نه یوه باغیچه اوګرځوی او دَ هغه تقصیرات دې معاف کړی.

لیکن دا ډیره دَ خوشحالی خبره ده چه مولانا رحمه الله وروستو صالح او قابل اولاد پریښودو چه دهغوئ دا علمی خدمت ئی دَ توقف په ځائ برابر جاری اوساتلو. دهغوئ په ځامنو کښ **مولوی ثناء الله** بقیه تفسیر دَ خپل والد محترم رحمه الله په انداز کښ دَ مختلفو تفاسیرو او دهغوئ د ترجمې د کیسټونه صفحه د قرطاس ته راړول شروع کړل. **مولوی ثناء الله** ته الله تعالی خه علمی استعداد ورکړې دې، دَ ده سره دده کشر ورور **مولوی تقی الله** هم په دې عظیم الشان خدمت کښ حصّه واخسته، دَ الله په فضل او کرم اودَ دوئ په محنت سره شائقینو ته دَ دې قیمتی تفسیر اوله برخه ترلاسه شوه.

الله تعالی نه دعا ګویم چه دا بقیه کار د هم په بهترین طریقې سره ترسره کړی، او الله تعالی دې دا تفسیر ځما دَ محترم ورور رحمه الله دپاره ذریعه دَ مغفرت او سبب د رفع درجاتو او صدقه جاریه وګرځوی اودهغوئ اولاد او نورو معاونینو ته دې د تکمیل توفیق نصب کړی «آمین. ثم آمین».

**وصلی الله تعالی تعالی علی خیر خلقه محمد وعلی اله واصحابه وسلم اجمعین**

**مولانا مغفور الله کان الله له**

**شیخ الحدیث جامع دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک**



اللهم

صل على محمد وعلى آل محمد

كما صليت على ابراهيم وعلى آل ابراهيم

انك حميد مجيد

اللهم

بارك على محمد وعلى آل محمد

كما باركت على ابراهيم وعلى آل ابراهيم

انك حميد مجيد

كتبه الفقير نفيس الحسيني اللاهوري غفر الله له ولوالديه في رمضان المبارك سنة ١٤١٣

# پيش گفتار

## د مؤلف رحمه الله تعارف او مختصر حالات

«ازفرزند ارجمند مؤلف رحمه الله»

**نوم او نسب**: والد محترم «شيخ القرآن والحديث حضرت مولانا أُسيدالله رحمه الله» بن الحاج مختارالله «مرحوم» ضلع کالا ډهاکه «تورغر» بلکوټ کلی کښې ئ ولادت شوي وؤ.

زمونږ جدِّ اعلی د «نصرت بابا» په نوم باندې مشهور وؤ چه دې دَ يوسف زئ قبيلې يو معروف اومشهور فرد وؤ، دَ ده اولاد ته نصرت خيل وئيلې کيږي چه دا هم په يو څو قبيلو باندې مشتمل دی چه په هغې کښې زمونږ قوم ته بيئ خيل وئيلې کيږي

**پيدائش**: چونکه په دغه زمانه کښې زمونږ په علاقې کښې دَ تاريخ پيدائش اهتمام نه وؤ نو د دې وجې نه دَ والد محترم تاريخ پيدائش اگرچه يقينی طور باندې معلوم ندې، البته دَ والد محترم رحمه الله دقول مطابق د دوئ تاريخ پيدائش تقريباً نومبر سنه (۱۹۴۵ع) دې.

**ابتدائی تعليم**: حضرت والد مرحوم رحمه الله ابتدائی تعليم دَ خپلې علاقې مشهور عالم او بزرگ مولانا عمر ولی رحمه الله نه چه معروف وو په «بلکوټ باباجی» سره. حاصل کړې وؤ، چه موصوف مذکور د علومِ نقليه او عقليه يو لوئ بحر وؤ او په دغه زمانه کښې به دَ افغانستان، بلوچستان. کوهستان وغيره علاقونه طلباء راتلل او د دوئ نه به ئ علوم حاصلول.

دَ بلکوټ باباجی رحمه الله د وفات کيدونه بعد په سنه (۱۹۵۱ع) کښې دَ خپل مشر ورور شيخ الحديث حضرت مولانا مغفور الله صاحب «دامت برکاتهم العاليه» شيخ الحديث «دارالعلوم حقانيه» سره دَ علم دَ حاصلولو دپاره سوات منگورې ته سفر وکړو، حالانکه چه په دغه زمانه کښې صرف دَ علم حاصلولو دپاره سفر کول يو نا آشنا او عجيبه کار وؤ، په مينگوره کښې د مارتونگ بابا رحمه الله او دَ هغوئ فرزند مولانا رشيد احمد مارتونگی رحمه الله په نگرانئ کښې دَ برادر محترم نه دَ فارسئ کتابونه، لکه: گلستان، بوستان، زليخا وغيره ووئيل، اودغه شان د علم نحو کتابونه لکه کافيه وغيره ئ هم د دوئ نه اووئيل.

والد مرحوم رحمه الله به فرمائيل چه په دغه څلورو کالو عرصه کښې دَ مذکوره استاذانو په تربيت او دَ برادر محترم په محنت او شفقت سره راته ډير ثمرات او فوائد حاصل شو، «**فجزاهم الله خيراً ويجعل الله آخرتهم خيراً من الدنيا**».

دې نه بعد بيا چه کله مارتونګ باباجی رحمه الله او مولانا رشيد احمد صاحب رحمه الله مارتونګ ته تشريف راوړو نو والد محترم ورسره تقريبًا دَ اته (٨) کالو په عرصه کښې دَ منطق کتابونه دَ مولانا رشيد احمد رحمه الله نه، او دَ فلسفې کتابونه دَ حضرت مولانا امان الله صاحب نه، او دَ علم نحو ، علم بيان، علم ميراث او دَ علم اصول کتابونه دَ حضرت مولانا لطف الله صاحب نه اوونيل.

**اعلی تعليم او فراغت** : والد محترم په سنه (١٩٦٧ع) کښې په رياست سوات مدرسه «دارالعلوم سيدو» کښې موقوف عليه او بعضې نور متفرق کتابونه اوونيل او په سنه (١٩٦٩ع) کښې دَ حضرت مولانا خان بهادر چه په «مارتونګ بابا» سره معروف دې دورهٔ حديث مکمل کړه.

**اجازت حديث او بيعت** : والد محترم ته په سنه (١٩٦٩ع) کښې با قاعده دَ احاديثو اجازت دَ حضرت مارتونګ بابا نه ملاؤ شو، او حضرت مارتونګ بابا رحمه الله په احاديثو کښې د عبدالرحمن الامروهی رحمه الله شاګرد وؤ ، دَ هغه نه ورته د احاديثو اجازت ملاؤ شوې وؤ ، او هغه ته د حضرت مولانا رشيد احمد ګنګوهی رحمه الله نه اوهغه ته د شاه عبدالعزيز رحمه الله نه د احاديثو اجازت ملاؤ شوې وؤ او په سنه (١٩٧١ع) کښې ئې دَ موصوف محترم رحمه الله نه دَ سلسله «قادريه او چشتيه» تصوف سلوك او منازل طې کړل.

**درس او تدريس** : والد مرحوم نوّرالله قبره دَ طالب علمئ په زمانه کښې دَ بعضو کتابونو درس کړې وؤ . مثلاً : کافيه، شرح تهذيب، قطبی، سلم العلوم وغيره، ليکن دَ فراغت نه بعد ئې با قاعده د مارتونګ باباجی په اصرار اوحکم سره دَ هغوئ په مصاحبت کښې په مارتونګ کښې درس شروع کړو، او تقريبًا اته (٨) کالو پورې په مارتونګ کښې ئې دَ منطق، حکمت او دعلم اصول خدمت اوکړو ، په سنه (١٩٧٨ع) کښې د حضرت مارتونګ باباجی دَ وفات نه بعد دَ خپل مشفق ورور په خواهش دَ شوال په مياشت . سنه (١٣٩٨هـ) کښې په دارالعلوم حقانيه اکوړه ختك کښې ئې تقرری وشوه، او تر دولس (١٢) کاله پورې ئې دَ شيخ الحديث حضرت مولانا عبدالحق رحمه الله په لاس جوړه شوې دَ علم باغيچه سيرابه کوله.

د والد محترم رحمه الله سره دَ حضرت شیخ رحمه الله ډیر لوئ محبت او عقیدت وؤ. حتی چه حضرت شیخ رحمه الله دَ ژوند په آخری کالونو کښې د ضعف پیرئ او د علالت نه وجه د خپل مسجد دَ جمعې وعظ او تقریرئ والد محترم ته حواله کړې وؤ. په دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک کښې ئ دوران درس دَ مختلفو فنونو کتابونه لکه : شرح جامی، کافیه، شرح عقائد، حمدالله، قاضی، سلم العلوم، میبذی، صدرا ، هدایه رابع، نورالانوار. او په احادیثو کښې موطائین. درس کړل. او دَ مازدیگر د مونځ نه بعد به ئ هر کال طالبانو ته د قرآن تفسیر کولو چه د درس حلقې ته به په ډیر لوئ تعداد سره طالبان او دعلوم قرآن شائقین حاضریدل . اود سنه (۱۴۰۹هـ) پورې ئ دلته کښې د علم دین خدمات اوکړل «فجزاهم الله احسن الجزاء».

حضرت والد محترم نَوَّر الله قبره سره دَ محبوب مدنی صلی الله علیه وسلم دَ احادیثو درس او دَ انواراتو د حدیث حاصلولو ډیره تمنا او خواهش وؤ او چونکه په دارالعلوم حقانیه کښې د اکابرو علماؤ دَ موجودګئ په وجه دې مقام ته رسیدل په زمانه قریبه کښې مشکل وؤ. نو په دې غرض او تمنا دَ حضرت شیخ رحمه الله د وفات نه بعد په سنه (۱۹۸۶ ع) کښې دارالعلوم اسلامیه زرګری ضلع هنګو ته ئ تشریف یوړو او هلته ئ دَ علوم عقلیه سره سره د احادیثو دَ درس خواهش هم پوره کړو، اوبیا دَ مکمل صحاح سته ؤ درس دپاره ئ دارالعلوم وزیرستان وانا ته تشریف یوړو. او بیا دَ مختلفو وجوهاتو په بناء باندې دَ هغې ځائ نه ئ تشریف راوړو ، او په دار العلوم تعلیم القرآن ولیسه اټك او انجمن تعلیم القرآن کوهاټ او تعلیم القرآن راجه بازار پنډئ کښې ئ دَ حضور صلی الله علیه وسلم دَ احادیثو خدمت وکړو. نو دَ محبوب حقیقی جل جلاله سره تر وصاله پورې ئ دَ **قال الله او قال الرسول** خدمت وکړو «ذلك فضل الله یؤتیه من یشاء»

**تفسیر** د حضرت والد مرحوم «برّدالله مضجعه» سره د طالب علمئ په دوران کښې د قرآن مجید د تلاوت. ذکر. اذکار او د قرآنی معلوماتو حاصلولو ډیر شوق وؤ. د دې دپاره دوئ دَ مختلفو علماؤ نه افادات حاصل کړل. د درس نظامی مشهور کتاب «تفسیر بیضاوی» ئ دَ مارتونګ بابا رحمه الله نه وئیلې وؤ چه د هغه نه ئ دَ قرآنی علومو ډیره ذخیره جمع کړه او د بعضې مشکلو مقاماتو حل ئ ورنه زده کړو ، څه حصه دَ قرآن مجید دَ تفسیر ئ د مولانا رشید احمد رحمه الله مارتونګی نه وئیلې وه، اوڅه حصه ئ دَ مولانا زرداد صاحب کوهستانی رحمه الله نه وئیلې وه.

بیا دَ قرآن مجید باقاعده تفسیر ئ دَ ملك دوه (۲) مشهورو علماؤ نه اوکړو (۱) مولانا

عبدالهادي المعروف به شاه منصور بابا رحمه الله ، چه د دوئ نه ئ دوه ځله دوره تفسیر کړې وه، او بل مشهور مفسر شیخ القرآن حضرت مولانا غلام الله خان صاحب وؤ، د دوي سره ئ هم دوه ځله دوره تفسیر کړې وه او دَ دوئ په صحبت کښې ئ ډیر فوائد حاصل کړل.

والد مرحوم رحمه الله په یو خود نوشته تحریر کښې لیکلی دی چه : مونږ دَ مولانا غلام الله خان صاحب رحمه الله نه جرأت او کلمهٔ حق وئیل ازده کړیدی او دَ شاه منصور بابا رحمه الله نه مونږ تواضع او عاجزی ازده کړې ده «فالحمد لله علی ذلك» .

## اخلاق حسنه او صفات عالیه

دَ حضرت والد مرحوم «اعلی الله درجاته» ښه اخلاق او لوئ صفات بیانول مصداق دې د «**لیس الخبر کالمعاینه**» . الله جل جلاله دوئ ته د زهد او تقوٰی او په علم باندې د عمل کولو نه ډیره لویه حصه ورکړې وه، دَ صفات باطنیؤ مرضیؤ عند الله مخزن وؤ، بنده ته باوجود دَ نا اهلئ اوعدم تفتیش نه د دوئ بعضې صفات په مختلفو اوقاتو کښې معلوم شول، مثلاً : صفت د تواضع اوتوکل، استغنا عن الخلق، خشیة الٰهی وغیره صفات په حضرت والد محترم کښې په ډیر اعلی معیار کښې موجود وؤ، شکل او صورت ئ مصداق وؤ دَ دې قول دَ حضور صلی الله علیه وسلم : «نضّر الله امرأً سمع مقالتي ......... الحدیث» .

چال چلن او رفتار ئ مصداق وؤ د ﴿ وَعِبَادُ الرَّحْمَٰنِ الَّذِينَ يَمْشُونَ عَلَى الْأَرْضِ هَوْنًا ـ الایه ﴾ او عقل او فراست ئ مصداق وؤ دَ «اتَّقُوا فِرَاسَةَ الْمُؤْمِنِ فَاِنَّهُ يَنْظُرُ بِنُوْرِ الله ـ الحدیث» ، عمل او کردار ئ مصداق وؤ دَ ﴿ إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ ـ الایه ﴾ دَ تکلف، تصنّع او دَ ریاء، نمود، اودَ شهرت دَ خواهش نه مبرأ وؤ، «التجافی عن دار الغرور» او «التهیؤ إلی دار الخلود» ، فکر آخرت همیشه ورسره ملګرې وؤ، دَ قرآنِ مجید سره تعلق او قلبی محبت دَ دوئ د ژوند حصه وه ، دَ دې اندازه د دې نه لګیدلې شی چه والد مرحوم به هرکال دَ مازدیګر مونځ نه بعد بالالتزام دَ قرآن مجید تفسیر کولو ، دَ شوال په میاشتې کښې به ئ شروع کړو او رجب کښې به ئ ختمولو، ددې تعلق او د محبت په وجه باندې ورته الله جل جلاله د ژوند آخری عمل هم دَ قرآن تفسیر کول او په قرآن کښې مشغولیدل ورکړی وؤ چه ددې ذکر ورستو راځی.

# تصنیف او تالیف او دینی خدمات

والد مرحوم «غفر له الله» دَ حضرت مارتونګ بابا رحمه الله په قابل قدر او معتمد شاګردانو کښې وؤ، دَ دوئ په افاداتو باندې مشتمله شرح، «**رُشدالعلوم ــ تصورات ــ** (عربی) **ـ شرح سلم العلوم**» ، او «**رُشد العلوم ، تصدیقات**» (عربی) او «**هدیة الملکوت شرح مسلم الثبوت**» (پښتو) او دا تفسیر «رشد القرآن» تر (۱۳) پارې پورې دَ والد محترم په تصنیفاتو کښې شامل دی.

دَ درس او تدریس مشغلې او تصنیف سره سره دَ والد محترم دَ دعوت او تبلیغ سره هم تعلق وؤ، چه هرکال به ئ د رجب په چهټیانو کښې د چِلی اهتمام کولو، دَ عوامو تعلق دَ الله سره جوړول . دین او دینی علومو طرف ته راغب کول، د الله جل جلاله یقین زړونو ته راتلل او د دنیا یقین له زړه نه لرې کیدل، دَ والد مرحوم دَ دینی خدماتو یوه لویه حصه وه، دَ طلباؤ دَ تربیت او دَ اصلاح په سلسله کښې په هفته کښې دَ اجتماعی بیان اهتمام وؤ.

چونکه حضرت والد رحمه الله په سلاسلو اربعهٔ کښې ماذون وؤ نو ورسره ورسره ئ د طلباؤ او عوامو دَ اصلاح باطن تربیت او تزکیه نفس اهتمام هم کولو، او طلباؤ او خپلو شاګردانو او علماء کرامو ته به ئ په کثرت سره د ذکر الله هدایت کولو.

**هغه په خپل یوه نوشته تحریر کښې لیکلی** : زه خپلو دوستانو او ملګرو ته عرض کوم چه اصل موجب دَ تقرب الی الله هغه صفات باطنیه او کیفیات دی چه مرضیه عند الله دی، او صرف په معلوماتو حاصلیدو سره وصول الی الله او تقرب الی الله نه راځی، نو لهذا د علوم ظاهریو د حصول سره دَ صفاتِ باطنیؤ د حصول اهتمام ضروری دې، او ذریعه ئ کثرت دَ ذکر الله او دَ صلحاؤ صحبت اختیارول دی او خروج دې لپاره دَ دعوت او تبلیغ.

**او په یو بل ځای کښې فرمائی** : «**وینبغی للمشتغل فیه ایضًا کثرة ذکر الله والخروج فی الدعوة الی الله والمشارکة فی مجالس الصلحاء والاتقیاء کَی لایحدث فیه العجبُ والکبر، اعاذنا الله بفضله وکرمه**» .

# اللّقاء الی الرفیق الاعلی

والد مرحوم په ، (۲۷) ربیع الاول سنه (۱۴۳۰هـ) مطابق (۲۴) مارچ (۲۰۰۹ع) کښې دَ

مازدیگر مونځ نه مخکښې دَ قرآن مجید دَ تفسیر په خدمت کښې مشغول وؤ او دَ سورة ابراهیم آیت (۱۴) ﴿ وَلَنُسْكِنَنَّكُمُ الْأَرْضَ مِنْ بَعْدِهِمْ ۚ ذَٰلِكَ لِمَنْ خَافَ مَقَامِي وَخَافَ وَعِيدِ ﴿١٤﴾ ﴾ تفسیر ئې کولو او دهغې یوه توجیه ئې دا اولیکله چه: «یا د مقام نه مراد قیام دې په حضور دَ الله تعالی کښې» . او ددې لیکلو نه بعد ئې دَ عملی تفسیر نمونه پیش کولو دپاره ډیر تاخیر ونکړو او دَ الله جل جلاله په حضور کښې ئې قیام وکړو

((اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَیْهِ رَاجِعُوْنَ)).((اِنَّ لِلّٰهِ مَا اَخَذَ وَلَهُ مَا اَعْطٰی وَکُلُّ شَیْئٍ عِنْدَهٗ بِاَجَلٍ مُّسَمًّی)).

((فلنصبر ولنحتسب ، اللّهم لاتحرمنا اجره ولاتفتنا بعده، اللّهم ارزقنا رفاقة النبیین والشهداء والصالحین وحسُن اولئكَ رَفِیْقا)).

د والد مرحوم «نورالله قبره» سره دخلقو عقیدت او دَ محبت اندازه دَ جنازې په موقع باندې وشوه چه دَ پوره صوبې د جنوبی. وسطی او شمالی اضلاعو نه بلا مبالغه په زرګونو علماء. محدثین. مفسرین. مبلغین. مشائخو او عوامو او خواصو شرکت وکړو

## دَ دې تفسیر (رُشْدُ الْقُرْآن) دَ تالیف سبب او تعارف

حضرت والد مرحوم «برّدالله مضجعه» ته د وفات نه یوڅوکاله وړاندې بعضې علماؤ او متعلّقینو په پښتو ژبه کښې دَ یو معتمد او محققانه طرز باندې دَ تفسیر لیکلو مشوره ورکړې وه. ځکه چه په پښتو ژبه کښې داسې یو تفسیر چه طرز ئې هم محققانه وی او دَ هغې مطالب عام فهم وی، نه وؤ موجود. اګرچه په نزدې زمانه کښې یو محقق عالم په پښتو ژبه کښې یو تفسیر لیکلې دې لیکن یو خو دهغه انداز محققانه ندې. او بل دَ موصوف معهود په ډیرو ځایونو کښې قدمونه خوئیدلی دی ځکه دده تفسیر د صفاتو او متشابهاتو په باره کښې. او ځینې فروعی مسائلو کښې دَ جمهورو او دَ سلفو صالحینو نه مخالف دې، نو ددې وجې نه په اهلِ حق علماؤ باندې دا یو قرض پاتې وؤ چه داسې یو تفسیر ولیکلې شی چه په هغې کښې دعقایدو په باره کښې دَ صحیح عقایدو وضاحت عوامو ته وشی او د صفات الهیه ؤ او متشابهاتو په باره کښې چه د سلفو صالحینو کوم صحیح مسلك دې دَ هغې بیان خلقوته واضح شی

اوبل په هغې کښې دَ قرآن کریم لفظی ترجمه «چه دا دَ تفسیر اهمه حصه وی» دَ ترکیبی ترجمې ... [illegible] وشی. مثلاً والد محترم رحمه الله د ((اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّیْطٰنِ الرَّجِیْمِ)) ترجمه داسې

کوی ‹پناه نیسم په الله سره د شیطان رټلی شوی نه›، او فرمائ چه داسې ترجمه غلطه ده چه: «پناه غوارم د خدائ نه».

او دغه شان دَ ((غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ)) ترجمه داسې کوی چه: ‹په هغوئ نه ستا غضب شوې دې او نه هغوئ گمراه دی›، او داسې ترجمه کول چه: ‹نه لار دَ هغې خلکو چه غضب پرې کړې شوې دې۔ الخ› د ترکیب په اعتبار سره غلطه ده.، دغه شان نور هم ډیر مثالونه شته

چنانچه والد مرحوم «غفرله الله» دَ صحاح ستهؤ د تدریس دَ مصروفیت با وجود دا «بار گران» په سر اوچت کړو او تقریبًا په سنه (۲۰۰۱ ع) کښې ئ د دې ابتداء وکړه، او دَ سلفو صالحینو دَ تفاسیرو خلاصه اودَ خپل (۴۰) کلونو درس قرآن نچوړ ئ په دې کښې پیش کړو «چونکه والد محترم رحمه الله دَ قرآن ابتدائی علوم او اهم او مشکل مقامات دَ مارتونګ استاذانونه حاصل کړی وؤ ‹کما مرّ› نو په دې وجه ئ دَ خپل تفسیر په نوم کښې هغوئ ته دَ نسبت کولو لحاظ وکړو.

لیکن «یا اسفی» چه دَ حضرت والد محترم رحمه الله دَ قلم نه دا تفسیر مکمل نه شو، اګرچه د دوئ دَ مقصد اصلی اکثره حصه حاصله شوه او دَ قرآن مجید نیمه حصه تقریبًا دَ دوئ د قلم نه اولیکلې شوه.

زمونږ خوش قسمتی داده چه دَوالد محترم «غفرله الله» درسِ قرآن چه کوم به دوئ هر کال بعد العصر طلباؤ ته کولو دَ کیسټو په شکل کښې او دَبعضې معتمد علماؤ سره کتابةً محفوظ وؤ نو دَ هغې په ملاویدو سره دَ تفسیر باقی حصې باندې «وروسته د سورة ابراهیم ددې آیت نه ﴿ وَلَنُسْكِنَنَّكُمُ الْأَرْضَ مِنْ بَعْدِهِمْ ذَٰلِكَ لِمَنْ خَافَ مَقَامِي وَخَافَ وَعِيدِ ﴿١٤﴾ ﴾ دَ هغه دَ فرزند ارجمند محترم مولانا ثناء الله صاحب په لاس او دَ برادر محترم شیخ الحدیث حضرت مولانا مغفور الله صاحب دَ نظر لاندې کار شروع دې او ډیر زر به دا کار ان شاء الله تعالی پایهٔ تکمیل ته ورسیږی

## ددې تفسیر یو څو خصوصیات

دَ دې تفسیر مکمل خوبیانې خو به په دوران دَ مطالعې کښې منکشف شی، البته دلته یو څو اهمو امورو طرفته اشاره کوؤ:

(۱) مخکښې تحریر کښې د دې خبرې وضاحت وشو چه حضرت والد محترم دَ تفسیر علم با قاعده طور باندې دَ مولانا غلام الله خان رحمه الله او دَ مولانا عبدالهادی شاه منصور بابا رحمه الله

نه حاصل کړیدې او دا دواړه حضرات دَ حضرت مولانا حسین علی رحمه الله شاگردان دی ، لهذا په تفسیر کښې دَ مولانا حسین علی رحمه الله انداز ښکاره په نظر راځی.

(۲) دَ هر سورة په ابتداء کښې د مخکښې سورة سره په دوو طریقو سره ((ربط اسمی ، ربط معنوی)) په جامع انداز کښې بیانیږی

(۳) دَ هر سورة په ابتداء کښې دَ سورة خلاصه اجمالاً او تفصیلاً او دَ هر سورة دَ مضامینو ذکر وضاحةً

(۴) دَ هر آیت دَ بل آیت سره ربط یا صراحتًا یا اشارةً ذکر شوې دې

(۵) فقهی مسائلو کښې دَ احنافو مسلك او په نورو اختلافی مسائلو کښې د علماء دیوبند معتدل طرز اختیار شوې دې.

(۶) دَ معاشرې دخوبیانو ذکر او ځائ په ځائ په هغې باندې ناصحانه کلام.

(۷) دَ تفسیر بالماثور سره سره دَ څلوېښتو (۴۰) کالودرس او تدریس نچوړ.

(۸) علمی او الهامی نکاتو باندې مشتمل لا جواب اوعلمی عبارتونه.

(۹) دَ سلفو صالحینو تفاسیرو لکه روح المعانی، تفسیر قرطبی، تفسیر الخطیب، حاشیه شیخ الهند، جواهر القرآن، بیان القرآن وغیره ، خلاصه په یومؤثر انداز کښې.

(۱۰) متداول پښتو تفسیرونو کښې دَ بعضو غلطیانو او کوتاهیانو نشاندهی، او دَ خپل مسلك دحقانیت بیان اوپه دلائلوسره دهغې تائید او د توحید او سنت طرف ته دعوت اودَ شرك او دَ بدعاتو رد په ((وَجَادِلْهُم بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ)) طریقې سره ((تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ)).

په آخر کښې د تمامو معززو لوستونکو په خدمت کښې درخواست کوؤ چه حضرت والد محترم شیخ القرآن والحدیث مولانا اُسید الله صاحب اودهغه ذریه او خاندان په خپلو دعاء گانو او ایصال ثواب کښې هیر نکړی ، او الله جل جلاله دې په خپل دربار عالیه کښې د دوئ دا سعې قبوله او مشکوره وگرځوی او د دوئ دپاره دې صدقه جاریه وگرځوی، او مونږ ته دې الله جل جلاله دخپلې مرضئ توفیق اودَ والد محترم په نقش قدم باندې دَ تلو توفیق نصیب کړی.

((آمین ، ثم آمین ، یا رب العالمین)).

**وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد وعلی آله وصحبه وسلم اجمعین برحمتك یا ارحم الراحمین**

**((ستاسو دعاگو : خادم العلماء والطلباء والمشائخ مولانا تقی الله، حفظه الله))**

# مقدمه

## «اُصول القرآن»

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۙ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ۙ مٰلِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ ۗ اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَاِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ ۗ اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ ۙ صِرَاطَ الَّذِيْنَ اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ ۙ غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ ۞

اللهم صل علی محمد و علی آل محمد کما صلیت علی ابراهیم و علی آل ابراهیم انک حمید مجید. اللهم بارک علی محمد و علی آل محمد کما بارکت علی ابراهیم و علی آل ابراهیم انک حمید مجید. اللهم صل علی سیدنا محمد و آله صلوة دائمة مقبولة تؤدی بها عنا حقه العظیم. جزی الله عنا نبینا محمداً ماهواهله. اللهم اجزعنا نبینا محمداً صلی الله علیه وسلم افضل ما جازیت به نبیاً عن قومه و رسولاً عن امته و اجزعنا اهل بیت نبینا افضل ماجازیت به احدا من اهل بیوت المرسلین واجزعنا اصحاب نبینا محمد صلی الله علیه وسلم افضل ماجازیت به احدا من اصحاب المرسلین.

ربنا اغفرلنا ولاخواننا الذین سبقونا بالایمان ولاتجعل فی قلوبنا غِلا للذین آمنوا ربنا انک رؤف رحیم.

اللهم اجز عنا مشائخنا و من خدم القرآن کتابک الکریم ، قال رسول الله صلی الله علیه وسلم : ((انما الاعمال بالنیات وانما لامرئ ما نوی))، و قال علیه الصلوة والسلام : ((خیرکم من تعلم القرآن وعلمه)) .

اللهم انفعنا بما علمتنا و علمنا ما ینفعنا وزدنا علما– وصلی الله علی النبی الکریم.

**اما بعد** : پس وائی بنده عاجز دا یو څو مباحث دی لپاره د فهم د مطالبو د قرآن چه مائی استفاده کړیده د اساتذه کرامو او د بعض کتب د مشائخ عظام نه– والله المسؤل ان یجعله نافعا بفضله و کرمه

# مبحث اول

## په بيان دَ علم تفسير کښې

## دَ تفسير لغوی او اصطلاحی تعريف

**لغوی تعريف**:

تفسير دَ فسّر، يُفسِّر، باب تفعيل مصدر دې، مشتق دې د «فسر» نه، چه دهغې معنی «کشف» ده، اوبعضو حضراتو ئ معنی «التعريه» کړيده، يعنی دَ اسپې ملا بربنډول. لکه وئيلې کيږی (فسرتُ الفرَس ای عريته لينطلق)، ليکن مرجع ددې دواړو يوه ده چه کشف دې.

بعضې علماؤ وئيلی دی چه تفسير ماٌخوذ دې دَ «التفسرة» نه، يعنې د مرضونو د معلومولو آلې ته وائ نو چونکه په علم تفسير سره هم انسان تـه دَ قرآنی آياتونو مراد معلوميږی نو د دې وجې نه ورته تفسير وئيلې کيږی.

بعضې علماء وائ چه تفسير مقلوب دې دَ «سفر» نه او سفر وضاحت او روښانه کيدو ته وائ. لکه «اسفرالصبح».

البته په «فسر» او «سفر» کښې لږ شان فرق دې چه «فسر» دَ معقولاتو دَ کشف او اظهار باندې دلالت کوی او «سفر» دَ اعيانو او ذواتو په وضاحت باندې دلالت کوی.

**دَ علم تفسير اصطلاحی تعريف**:

دَ علم تفسير متعدد تعريفونه شويدی، دلته کښې صرف ديو په ذکر کولو باندې اکتفاء کوو «علم يُبحث فيه عن كيفية النطق بالفاظ القرآن ومدلولاتها واحكامها الافرادية والتركيبية ومعانيها التى تَحمِل عليها حالة التركيب وتتماة لذلك».

**د تعريف د الفاظو مختصره تشريح**: لفظ دَ «علم» په درجه دَ جنس کښې دې، تمامو علومو ته شامل دې. او په «كيفية النطق بالفاظ القرآن» کښې علم قرائت طرفته اشاره ده، يعنې چه په هغې کښې دَ الفاظ قرآنيهؤ تلفظ او دَ اداء کولو متعلق بحث وی، او په «ومدلولاتها» کښې علم لغت طرف ته اشاره ده. او په «احكامها الافرادية والتركيبية» کښې علم صرف. نحو. علم بيان او علم بديع طرفته اشاره ده. «ومعانيها التى ......» يعنې د لفظ ظاهری او غير ظاهری دواړو معنو نه پکښې بحث کيږی او دا متعين کړې شی چه دلته ظاهر معنی مراد ده يا غير ظاهری معنی. نو پدې سره حقيقت اومجاز طرفته اشاره ده. «تتماة» د دې نه مراد علم ناسخ. منسوخ. اسباب نزول وغيره دی

**موضوع د علم تفسير** دَ علم تفسير موضوع قرآن حكيم دې . علامه الوسى رحمه الله وائ موضوعه كلام الله .

**غرض دَ علم تفسير** والغرض من معرفة معاني النظم ، يعنى غرض ئ معرفة دَ معانيؤ او مطالبو دَ قرآن دې

## په تفسير او تاويل كښې فرق

تاويل دَ اوّل يُؤَوِّلُ باب تفعيل مصدر دې، مشتق دې دَ «اوّل» نه په معنى دَ رجوع او گرځولو سره او تاويل ته هم تاويل ځكه وئيلې كيږى چه په دې كښې آيت متعددو احتمالى معنو طرف ته گرځولې كيږى، او د علامه زمخشرى رحمه الله قول دې چه تاويل دَ «اِيالةٌ» نه مشتق دې په معنى دَ سياست سره.

د تاويل او تفسير په مينځ كښې د فرق په باره كښې ډير اقوال دى : «۱» بعض وائ چه دا مترادف دى . علامه سيوطى رحمه الله په الاتقان، ص : «۳۴۶» ، ج «۲» كښې ليكى . «لو سئلوا عن الفرق بين التفسير والتاويل ما اهتدوا اليه» .

«۲» امام ترمذى رحمه الله فرمائى چه په دواړو كښې فرق شته دې اوهغه دا چه تفسير قطعى وى او تاويل قطعى نه وى بلكه محتمل وى .

«۳» دَ امام راغب رحمه الله په نزد تفسير عام دې، كتب سماويه او غير سماويه دواړو د پاره استعماليږى او تاويل خاص دې صرف كتب سماويه دَ مراد او دَ وضاحت لپاره استعماليږى.

«۴» تفسير دَ مفرد الفاظو د تشريح لپاره وى او تاويل دَ پوره آيت او دَ جملې دَ وضاحت لپاره وى

«۵» تفسير دَ كلام وضاحت او بيان ته وائى او د دينه چه كوم مراد حاصل شي هغې ته تاويل وائ.

«۶» تفسير دَ كلام ظاهرى معنى لپاره راځى او تاويل د باطنى مراد او معنى لپاره راځى

## دعلم تفسير تاريخ او تدوين

**په علم تفسير باندې درې دورونه تير شويدى :**

**اول دور: تفسير فى عهد النبى صلى الله عليه وسلم والصحابة :** حضرت جبرئيل عليه السلام به چه كله وحى راوړله نو حضور صلى الله عليه وسلم به د ځان سره په جلدئ جلدئ تكراره وله چه هيره نشى، نو الله جل جلاله دَ قرآن دَ حفظ ذمه وارى هم واخسته : ﴿إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ، وَقُرْءَانَهُ﴾ «سورة القيامة، آية : ۱۷» او ددې سره ئ دَ قرآن د فهم ذمه وارى هم واخسته : ﴿ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُ﴾ «سورة القيامة، آية : ۱۹» .

او هرچه وؤ صحابه کرام رضی الله تعالی عنهم اجمعین نو هغوئ دَ مخاطبینو اولینو په وجه دَ معاشرې د حالاتو نه او دَ اسباب دَ نزول دَ قرآن نه واقف وؤ. نو پدې وجه هغوئ به د قرآن په ظاهری احکامو او مطالبو باندې په اسانئ سره پوهیدل، لیکن چونکه بعضې دقائقو او مشکلو آیاتونو باندې پوهیدل هرچا ته آسان نه وؤ نو ددې وجې نه به هغوئ ته دَ تفسیر ضرورت راتلو چنانچه دَ صحابؤ لپاره یو څو مصادر وؤ :

(۱) قرآن یعنې د قرآن په ذریعه به ئ دَ قرآن تشریح کوله

(۲) ذات د نبی کریم صلی الله علیه وسلم : یعنې د حضور صلی الله علیه وسلم نه به ئ د آیت تفسیر او تشریح معلوموله چه د دې مثالونه په کثرت سره موجود دی.

(۳) قوت اجتهاد او استنباط : یعنې چه کله به دَ قرآن او حدیث نه دوئ ته معلومات ونشو نو بیا به ئ دَ اجتهاد او استنباط نه کار اخستلو

(۴) اهل کتاب یهود اونصارٰی ـ یعنې کله به ئ دَ بعضو واقعاتو تفصیلی معلوماتو لپاره دَ اهلِ کتابو علماؤ لکه عبدالله بن سلام، کعب احبار وغیره طرف ته رجوع کوله.

**دویم دور : تفسیر فی عهد التابعین** : تابعینو دَ قرآن پاك د فهم او تشریح لپاره دې مذکوره څلورو مصادرو ته هم رجوع کوله او (۵) اقوالِ صحابه رضی الله تعالی عنهم دهغوئ لپاره دَ قرآن د تشریح ذریعه وه

حضراتُ تابعینو دَ قرآن ډیر خدمت وکړو او دَ خلقو دَ تعلیم او تربیت سلسله ئ جاری وساتله، تاریخ دَ تابعینو تقریبًا درې طبقات بیان کړی دی :

(۱) اوله طبقه اهل مکه : چه د دوئ استاذ عبدالله بن عباس رضی الله تعالی عنه دې، چه ده په تابعینو کښې د مفسرینو لوئ جماعت تیار کړو او ددوئ متعلق ابن تیمیه رحمه الله فرمائی : «اعلم الناس بالتفسیر اهل مکة لانهم اصحاب عبدالله بن عباس رضی الله تعالی عنه».

(۲) اهل مدینه : په دې کښې مختلفو صحابهؤ رضی الله عنهم د قرآن پاك دَ تعلیم او تفسیر خدمت وکړو، مثلاً أبی بن کعب، زیدبن اسلم، ابوالعالیه رضی الله عنهم وغیره.

(۳) اهل عراق د دوئ استاد حضرت ابن مسعود رضی الله تعالی عنه وؤ، د ده په شاگردانو کښې مشهور حضرات : علقمه، مسروق، حسن بصری، قتاده رحمهم الله وغیره وؤ.

په دې دواړو دورونو کښې دَ «تناقل روایت» طریقه وه، یعنی صحابه کرامو به دَ حضور صلی الله علیه وسلم نه روایت کولو او تابعینو به دصحابه کرامو نه روایت کولو.

**دریم دور التفسیر فی عصور التدوین** یعنې دَ تفسیر با قاعده یو مستقل شکل اختیارول.
دَ تفسیر ابتداء دَ خلافت دَ عباسیو په ابتدائی زمانه کښې شویده، په دې دور کښې دَ تفسیر بالماثور او تفسیر عقلی طریقه رائجه شوه لیکن بیا چه کله نور علوم مدوّن شو او دَ علم دائره فراخه شوه نو بیا به هر مفسّر دَ خپل فن مطابق تفسیر کولو، منطقی به د قواعدو دَ منطق مطابق، فقیه به د فقهې مطابق اونحوی به د نحوې مطابق تفسیر کولو، او دې ته د تفسیر مناهج ویلې کیږی. نو بعضې مفسرین «تفسیر علی منهج الاحادیث» کوی چه دیته تفسیر بالماثور هم وئیلې کیږی چه په هغې کښې دوئ احادیث او اقوال د صحابه کرامو جمع کوی، لکه طبری، در منثور وغیره شو. او بعضې منهج دَ متکلمینو اختیاره وی چه په هغې کښې توجه هغه آیتونو طرف ته وی چه په کومو کښې صفات خداوندی او اسماء الهیه دی، نو دوئ دَ هغې توجیه کوی او دَ خپل مسلك تائید کوی لکه دَ امام رازی رحمه الله تفسیر «مفاتیح الغیب» وغیره شو.

او بعضې مفسرین د فقهاؤ منهج اختیاروی، دې ته منهج الفقهاء وائ چه پدې کښې زیاده تر توجه هغه آیاتونو ته وی چه دَ هغې نه احکام مستنبط کیږی، لکه احکام القرآن، الجامع لاحکام القرآن وغیره شو، او بعضو په خپل تفسیر کښې دَ نحو، لغت وغیره نه بحثونه کړی وی لکه البحر المحیط، اعراب القرآن، معانی القرآن للزجاج وغیره، او بعضو پکښې دا نهج اختیار کړې وی چه هغوئ په خپل تفسیر کښې دا مذکوره تمام امور ذکر کړی وی لکه دَ شهاب الدین سید محمود آلوسی رحمه الله تفسیر «روح المعانی»

## دویم مبحث

## حقیقت د وحی او دُ دې ضرورت

الله جل جلاله انسان ته د علم د حاصلولو لپاره دړې ذرائع ورکړی دی: (۱) حواس. تولو نه اول انسان د دې په ذریعې سره دَ علم حاصلولو کوشش کوی که چرته هغه علوم دَ محسوساتو. مبصراتو. مسموعاتو دَ قبیلې نه وی، لیکن چه د دې سره ئ تعلق نه وی نو بیا
(۲) عقل دې لیکن عقل لره هم یوه انتهاء وی چه دَ هغې نه بعد بیا عقل کار نه کوی نو بیا دَ عقل نه کار اخستل لویه خطره وی نو بیا (۳) وحی: ده، او د وحی ابتداء دَ هغه ځائ نه کیږی چه په کوم ځائ کښې دَ عقل انتهاء وی نو دَ عقل په ځائ بیا د وحی اتباع کول ضروری وی چه دَ انسان صحیح لارې ته رهنمائی وکړی. **مکمل تفصیل ملاحظه کړئ په «علوم القران» د مولانا شمس الحق افغانی**

رحمه الله کښې

## د وحی لغوی او شرعی تحقیق

**وحی لغوی**: «و، ح، ی» پدې ماده کښې دَ پټوالی او دَ سرعت معنی موجوده ده نو چه کوم ځائ کښې دا ماده راشی نو هلته به دغه معنی ملحوظه وی ﴿فَأَوْحَىٰٓ إِلَيْهِمْ أَن سَبِّحُوا۟ بُكْرَةً وَعَشِيًّا﴾ «سورة مریم، آیة: ۱۱»، دلته وحی په معنی دَ اشارې سره ده. ﴿وَأَوْحَيْنَآ إِلَىٰٓ أُمِّ مُوسَىٰٓ﴾ «القصص، آیة ۷» نو دلته د غوره قول مطابق وحی په معنی دَ «زړه کښې خبره اچول» سره ده. ځکه چه وحی اصطلاحی ښځې طرفته نده شوې، ﴿وَمَآ أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ إِلَّا رِجَالًا - الایه﴾ او بعضې ځایونو کښې د وحی اطلاق په فطری هدایت او په علم باندې شوې دې لکه: ﴿وَأَوْحَىٰ رَبُّكَ إِلَى ٱلنَّحْلِ﴾ «سورة النحل، آیة: ۶۸» او شیطانی وسوسې ته هم وحی ویلې شویدی لکه: ﴿وَإِنَّ ٱلشَّيَٰطِينَ لَيُوحُونَ إِلَىٰٓ أَوْلِيَآئِهِمْ﴾ «سورة انعام، آیة: ۱۲۱».

دَ وحی نسبت چه کله ذی روح څیزونو ته اوشی نو په صله کښې «الی» راځی، کما رأیت فی الامثلة المذکورة، او کله چه ئ نسبت غیر ذی روح څیزونو ته وشی نو په صله کښې «فی» راځی لکه: ((وَاَوْحٰی فِی کُلِّ سَمَآءٍ اَمْرَهَا ــــــ الایه))، او کله ئ په صله کښې «لام» راځی لکه: ((بِاَنَّ رَبَّكَ اَوْحٰی لَهَا))، «سورة زلزال، آیة: ۵»

**د وحی شرعی تعریف**: علماء کرامو د وحی شرعی تعریف داسې بیان کړې دې: ((اعلامُ الله تعالی لنبیّ من انبیائه بحکمٍ شرعیّ ونحوه))، یعنی الله تعالی خپل نبی لره د څه حکم شرعی وغیره احکاماتو نه آگاه کولو ته وحی وئیلې کیږی.

## په وحی او الهام کښې فرق

د دواړو په مینځ کښې فرق دادې چه دَ وحی مُصدر معلوم او متیقن وی چه دا دَ الله دَ طرف نه ده. لیکن الهام کښې دا یقینی نه وی بلکه د الله د طرفه هم کیدې شی او دَ شیطان دَ طرفه وسوسه هم کیدې شی.

## د وحی اقسام

د وحی دَ اقسامو لپاره بنیاد دا آیت کریمه دې: ﴿ وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ أَن يُكَلِّمَهُ ٱللَّهُ إِلَّا وَحْيًا أَوْ مِن وَرَآيِ حِجَابٍ أَوْ يُرْسِلَ رَسُولًا فَيُوحِىَ بِإِذْنِهِۦ مَا يَشَآءُ ﴾. ((سورة شوری. آیة ۵۱))

تفصیل ئی دادې چه وحی په دوه قسمه ده:

(۱) **وحی بلا واسطه**: دا هغه وحی ده چه په هغې کښې دَ فرشتې واسطه نه وی. بلکه براه راست الله تعالی نبی ته پیغام ورسوی. د دې دوه صورتونه دی. **اول مدرک بالحواس** لکه ﴿ وَكَلَّمَ ٱللَّهُ مُوسَىٰ تَكْلِيمًا ﴾ او دې ته اشاره ده په آیت کښې چه ((او من وراء حجاب)) دې. لیکن دا آواز د مخلوقاتو د آواز نه جدا او په عجیبه کیفیت سره وی. او چه دا ثابته شی چه د معراج په موقع دَ حضور صلی الله علیه وسلم دَ الله پاك سره كلام بالمشافهه شوې دې نو دا به دَ مدرك بالحواس بلا واسطه، دویم قسم وی، اول قسم هغه چه ((من وراء حجاب)) وی او دویم دا چه بغیر حجاب وی. او **دویم**: **غیرمدرک بالحواس** وی. دې ته ((وحی قلبی)) وئیلې کیږی. دا که چرته په حالت دَ بیداری کښې وی نو دیته ((الهام)) وئیلې کیږی او که چرته په خوب کښې وی نو دیته ((رؤیا صادقه)) وئیلې کیږی. کما فی الحدیث: ((**اوّل ما بدئ به رسول الله صلی الله علیه وسلم من الوحی الرؤیا الصالحة فی النوم**)). (بخاری). او دې قسم ته په ((الاّ وحیًا)) کښې اشاره ده.

(۲) **وحی بالواسطه**: لکه: ﴿ نَزَلَ بِهِ ٱلرُّوحُ ٱلْأَمِينُ ﴾. ((شعراء، آیة: ۱۹۳)) او دې ته، وحی ملکی وئیلې کیږی. او دې قسم ته اشاره په: ﴿ أَوْ يُرْسِلَ رَسُولًا فَيُوحِىَ بِإِذْنِهِۦ مَا يَشَآءُ ﴾ کښې شویده، او دا هم په دوه قسمه ده: (۱) یو مدرك بالحواس چه د دې یو څو صورتونه دی:

(**الف**): **وحی تصلصلی**: چه د دې آواز دَ جرس ((گهنتی)) په شان وی لکه حدیث کښې دی ((**احیانًا یأتینی مثل صلصلة الجرس**)) (بخاری))

(**ب**): **وحی تمثلی**: چه په هغې کښې فرشته دَ یو انسان په شکل کښې راشی لکه حدیث کښې دی: ((**واحیانًا یتمثل لی الملک رجلاً**)). (بخاری)) او یا لکه په حدیث دعمر رضی الله تعالی عنه کښې چه نقل کړیدی امام مسلم رحمه الله تعالی.

(**ج**): کله فرشته په خپل اصلی شکل کښې راشی او دا څلور ځلې شوی دی **اول ځل** په غار حرا کښې. **دویم ځل**: بعد الفترة. لکه په روایت دَ بخاری کښې دی ((ان جابر بن عبدالله الانصاری

قال : وهو يحدّث عن فترة الوحی فقال فی حدیثه : وبینا انا امشی اِذ سمعتُ صوتًا من السمآء فرفعتُ بصری فاذا الملك الذی جاء ............ الحدیث» . **دریم ځل** : دَ حضور صلی الله علیه وسلم په فرمائش «ورُوِیَ انه علیه الصلاة والسلام سأل جبرئیل ان یُترأی فی صورته فقال .......... الحدیث» . **څلورم ځل** : دَ معراج په موقع باندې.

(۲) **غیر مدرک بالحواس** : دیته وحی روعی وئیلی کیږی لکه حدیث کښې دی : «اِنّ رُوحَ القدس نفثَ فی روعی».

دَ قرآن تعلق دَ وحی ملکی سره دې. ﴿وَإِنَّهُۥ لَتَنزِيلُ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿١٩٢﴾ نَزَلَ بِهِ ٱلرُّوحُ ٱلْأَمِينُ ﴿١٩٣﴾﴾ «سورة شعراء» ﴿فَإِنَّهُۥ نَزَّلَهُۥ عَلَىٰ قَلْبِكَ بِإِذْنِ ٱللَّهِ﴾ «سورة البقره».

# دریم مبحث

## تنزلات قرآن

علامه زرقانی رحمه الله په مناهل العرفان ، ص : (۳) کښې دَ قرآن مجید نزول په درې طریقو سره ذکر کړیدې :

(۱) لوح محفوظ ته نزول : ﴿بَلْ هُوَ قُرْءَانٌ مَّجِيدٌ ﴿٢١﴾ فِى لَوْحٍ مَّحْفُوظٍ ﴿٢٢﴾﴾ «سورة البروج» . د دې د نزول کیفیت او دَ وخت علم هیڅ چا ته نشته دې، البته دا نزول نجمًا نجمًا نه وو شوې، بلکه جملة واحدةً شوې وو.

(۲) آسمان د دنیا طرفته نزول : او دا نزول هم جملة واحدةً وو په میاشت دَ رمضان المبارك او په لیلة القدر کښې : ﴿شَهْرُ رَمَضَانَ ٱلَّذِىٓ أُنزِلَ فِيهِ ٱلْقُرْءَانُ﴾ «سورة البقره» . ﴿إِنَّآ أَنزَلْنَٰهُ فِى لَيْلَةِ ٱلْقَدْرِ ﴿١﴾﴾ . «سورة القدر» . او دَ بیت العزة تذکره هم په احادیثو کښې راځی. حاکم د حضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنه حدیث ذکر کړې دې «...... فوضع فی بیت العزة من السماء الدنیا ______ الحدیث»

(۳) دنیا طرف ته نزول دا نزول په واسطې د جبرئیل علیه السلاه سره په (۲۳) کاله کښې وشو نجمًا . نجمًا . حسب ضرورت او مصلحت، ابتداء د ﴿ٱقْرَأْ بِٱسْمِ رَبِّكَ ٱلَّذِى خَلَقَ ﴿١﴾﴾ نه وشوه او انتهاء ئ په ﴿وَٱتَّقُوا۟ يَوْمًا تُرْجَعُونَ فِيهِ إِلَى ٱللَّهِ﴾ باندې وشوه

بعضې علماؤ دا درې تنزلات په بلې طریقې سره کړیدی (۱) اول ځل نزول په لیلة مبارکة.

کښې «دشعبان پنځلسم شپه» ﴿ إِنَّآ أَنزَلْنَٰهُ فِى لَيْلَةٍ مُّبَٰرَكَةٍ ـ الايه ﴾ دې ته نزول تقديري وائي (۲) آسمان د دنيا ته (۳) دنيا طرف ته نزول.

**بيا زده کړه دا خبره چه دلته يو څو امور قابل د بحث دي.**

**(۱) د حضرت جبرئيل عليه السلام دَ وحی اخذ کولو کيفيت څنګه وو ؟**

نو ددې متعلق د علماء کرامو يو څو اقوال دی. (۱) بعضې حضرات وائي چه حضرت جبرئيل عليه السلام ته به الهام کيدو او دَ الهام په ذريعې سره حاصلولو نه بعد به ئې حضور صلى الله عليه وسلم ته وحی راوړله. (۲) بعضې وائې چه ايحاء د نقوشو به اوکړې شوه په لوحِ محفوظ کښې او جبرئيل عليه السلام به دَ هغې نه قرآن اخذ کولو او دَ يادولو نه بعد به ئې وحی راوړله.

(۳) بعضې فرمائي چه دَ جبرئيل عليه السلام په ژبه باندې به الفاظ دَ قرآن غير اختياری جاري کيدل.

(۴) صحيح او غوره قول دَ شيخ اشعری رحمه الله دې چه حضرت جبرئيل عليه السلام به دَ الله آواز اوريدلو په سماع غير صوتی سره چه ندې متکيف په کيفياتو دَ اصواتو سره. بيا به جبرئيل عليه السلام حضور صلى الله عليه وسلم ته وحی راوړله او د دې تائيد په حديث کښې هم راځي، په روايت دَ طبرانی کښې دی: «اذا تكلم الله بالوحی اخذتِ السمآء رجفةً شديدةً مِن خوفِ الله، فـإذا سَـمِعَ اهل السمآءِ صَعِقوا وخرّوا سجّدًا ، فيكون اولهم يرفع رأسه جبرئيل ، فيكلمه الله بوجهه بما اراد .......»

**(۲) آيا د قرآن الفاظ او معنی دواړه منزل من الله دی او که صرف معنی ؟**

د دې متعلق يو څو اقوال دی: (۱) صرف معنی منزل من الله ده او الفاظ دَ جانبه دَ جبرئيل عليه السلام نه دی، (۲) معنی منزل من الله ده او الفاظ د جانبه دَ حضور صلى الله عليه وسلم نه دی، (۳) ليکن صحيح قول دا دې چه الفاظ او معنی دواړه دَ الله جل جلاله دَ طرفه دی ځکه چه ﴿ إِنَّآ أَنزَلْنَٰهُ قُرْءَٰنًا عَرَبِيًّا ﴾ . ﴿ لَا تُحَرِّكْ بِهِۦ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِۦٓ ﴾ په دې باندې واضح دلائل دی

**(۳) په قرآن ، حديث قدسی او حديثی نبوی کښې فرق:**

قرآن، حديث قدسی او حديث نبوی په دې درې واړو کښې قدر مشترک دا دې چه دا درې واړه وحی من جانب الله دی، ليکن فرق په مينځ د دوئ کښې دا دې چه: (۱) دَ قرآن الفاظ او معانی دواړه په حالت دَ بيدارئ کښې په مخصوص طريقې سره نازل شوی دی او دا الفاظ متواتر. متعبد بتلاوة او معجز دی، او په حديث قدسی کښې دَ يو معين مضمون القاء بالذات من جانب الله يا په واسطه د فرشتې سره وی چه نسبت ئې حضور صلى الله عليه وسلم الله پاك ته کړې وی. الفاظ ئې

متواتر نه وي او نه متعبد بتلاوة وي او نه معجز وي، او كه نسبت ئې الله پاك ته ونشي نو بيا ورته حديث نبوي صلى الله عليه وسلم وئيلې كيږي «التعليق الفسيح».

او بعضو پدې درې واړو كښې فرق داسې بيان كړې دې چه: قرآن او دَ حديث قدسي الفاظ من جانب الله دي او حديث نبوي كښې صرف معنى من جانب الله ده او بيا په قرآن او حديث قدسي كښې فرق دادې چه: (۱) دَ الفاظ د قرآن تحدي «چيلنج» شوې ده ﴿فَأْتُوا بِسُورَةٍ مِّن مِّثْلِهِ وَادْعُوا﴾ او د حديث قدسي دَ الفاظو تحدي نه ده شوې.

(۲) الفاظ د قرآن متعبد بتلاوة (يعني تلاوت ئې عبادت دې) دي، او حديث قدسي متعبد بتلاوة ندې.

(۳) قرآن پوره پوره متواتر دې او دَ احاديثو قدسيه ؤ اكثر حصه غير متواتر ده «مناهل العرفان، ص: ۳۴».

# خلورم بحث
## د قرآن كريم تفسير

د قرآن پاک د صحيح فهم لپاره او د قرآن پاک د نور زړونو ته راتللو لپاره دوه امره ډير ضروري دي: اول امر: د هغه علومو تحصيل چه په هغې باندې فهم د قرآن موقوف دې چه هغه څوارلس علوم كسبيه دي: علم لغت، علم نحو، علم صرف، علم اشتقاق او درې فنون د بلاغت چه معاني. بيان او بديع دي، علم قرآن، علم كلام يعني عقايد، اصول فقه، اسباب نزول، علم فقه، ناسخ اومنسوخ، او د هغه احاديثو علم چه د قرآن پاک د مجمل آيتونو په تفسير كې راغليدي.

دې ټولو فنونو ته ضرورت نه وو په زمان مباركه د نبي عليه السلام او صحابو كښې په بركت د صحبت د نبي عليه السلام او د قرب د زمانې دده سره اوروسته چه څومره بُعد راتلو د زمانې د نبي عليه السلام نه نو د فهم د قرآن لپاره حاجت راتلو فنونو ته، نو الله جل جلاله حسب وعده چه ﴿إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ ۝٩﴾ او ﴿ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُ ۝١٩﴾ الهام وكړو ائمو د فنونو ته د هر فن د قواعدو او ضوابطو او د هغې د اصطلاحاتو حسب ضرورت، او منبع د كل علومو قرآن دې

جميع العلم في القرآن لكن تقاصر عنه افهام الرجال

**تنبیه** لیکن ددې مطلب دا ندې چه چاته دا علوم حاصل نه وی نو هغه د قرآن سره هیڅ تعلق نه لری. بلکه دا علوم ضروری دی لپاره د کمال تفقه په قرآن کښې او د قرآن نه هر څوک نفع اخستې شی. ﴿وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْءَانَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ﴿١٧﴾﴾، «مالایدرک کله لایترک کله» مثل مشهور دې

او ددې څوارلسو علومو نه بعد علم وهبی دې چه د الله جل جلاله خاصه عطیه ده چه په خپل فضل سره ئی ورکوی، هغه چاته چه عمل کوی په علم باندې چه دیته اشاره ده په دې حدیث کښې «من عمل بما علم ورثه الله علم مالم یعلم»، او د علی رضی الله عنه نه چه کله سوال وکړې شو چه آیا تاسو خاص کړی یئ رسول الله صلی الله علیه وسلم په یو شی سره چه بل چاته نوی ملاؤ شوې؟ «وفی روایة هل عندکم کتاب» نو هغوئ اوفرمائیل «لا الا کتاب الله او فهم اعطیه رجل مسلم —— الحدیث» ددې فهم نه مراد علم وهبی دې چه حاصلیږی په سبب د عمل کولو سره په علم باندې

علامه سیوطی رحمه الله فرمائی چه شاید ستا به دا خیال وی چه د علم وهبی حاصلول د بنده د وس نه بهر دې خو حقیقت داسې ندې بلکه ددې د حاصلولو طریقه د هغې اسبابو حاصلول دی په کومو چه الله جل جلاله دا موقوف کړیدی، مثلاً په علم باندې عمل کول او د دنیا نه بی رغبتی وغیره وغیره، علم کسبی او وهبی ته اشاره د قرآن پاک په اول نازل شوی سورت کښې ده: ﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ ﴿١﴾ خَلَقَ الْإِنسَانَ مِنْ عَلَقٍ ﴿٢﴾ اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ ﴿٣﴾ الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ ﴿٤﴾﴾ دا علم کسبی شو — او چونکه پدې باندې د عمل کولو نه بعد علم وهبی حاصلیږی نو ځکه ئی وهبی وروسته ذکر کړو، او وې فرمائیل ﴿عَلَّمَ الْإِنسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ ﴿٥﴾﴾.

او دویم امر اجتناب دې د کبائرو نه او د تقوی اهتمام دې، د بعضې مفسرینو قول دې چه مراد د فوق او تحت نه پدې آیت کښې:

﴿وَلَوْ أَنَّهُمْ أَقَامُوا التَّوْرَاةَ وَالْإِنجِيلَ وَمَا أُنزِلَ إِلَيْهِم مِّن رَّبِّهِمْ لَأَكَلُوا مِن فَوْقِهِمْ وَمِن تَحْتِ أَرْجُلِهِم مِّنْهُمْ أُمَّةٌ مُّقْتَصِدَةٌ وَكَثِيرٌ مِّنْهُمْ سَاءَ مَا يَعْمَلُونَ ﴿٦٦﴾﴾

علوم وهبیه او کسبیه دی چه حاصلیږی په تقوی سره چه ذکر ئی په آیت سابق کښې شویدې پ ۲ مائده آیت ۶۶.

امام غزالی «رح» په کیمیائی سعادت کښې لیکلی دی چه د قرآن کریم تفسیر په درې قسمه کسانو نه ظاهریږی. اول په هغه چا چه څوک د علم عربیت نه واقف نوی. دویم په هغه چا چه کبیره

گناه بیابیا کوی یعني بدعتی وی چه د گناه او د بدعت په وجه د هغه زړه تور شی او د قرآن د معرفت نه محروم شي. دریم هغه کس چه په څه اعتقادی مسئله کښې د ظاهر قائل وی او د قرآن شریف کوم عبارت چه د هغې خلاف وی هغه ئی طبیعت نه مني نو دې کس ته هم د قرآن د پوهې نه حصه نه ملاویږی ، اعاذنا الله (ماخوذ از فضائل قرآن بتغیر حدیث ۸)

## پنځم مبحث

### د قرآن نومونه

علامه سیوطی رحمه الله په الاتقان فی علوم القرآن کښې د بعضې علماؤ نه نقل کړیدی چه اسماء د قرآن چه مذکور دی په قرآن کښې هغه پنځه پنځوس دی، قرآن عَلَمْ او اسم محضه دې او باقی اسماء صفتیه دی.

### د قرآن لغوی او اصطلاحی تعریف

په لفظ د قرآن کښې دوه قوله دی یو دا چه دا مهموز دې لکه دا صحیح او مشهور دې، او بل غیر مهموز او پدې تقدیر باندې نون اصلی دې ، زائد ندې.

قال الزجاج : ((هذا سهو والصحیح ان ترک الهمزة من باب التخفیف و نقل حرکة الهمزة الی الساکن قبلها)). بنا په دواړو تقدیرونو سره یعنی که مهموز شی یا غیر مهموز. راجح قول دادې چه قرآن عَلَمْ دې او مشتق ندې ((و به قال الشافعی (رح) وابن کثیر (رح) و کثیر عن الائمة) _ او بعضې وائی چه مشتق دې نو چه غیر مهموز شی نو بعض(۱) وائی چه مشتق دې د ((قرنت الشئ بالشئ)) نه (اذا ضممته الیه لانضمام السور والایات والحروف بعضها الی بعض و هذا عندالاشعری (رح) وغیره). (۲) او فراء وائی چه ماخوذ دې د قرائن نه : (لان الایات منه یصدق بعضها بعضاویشابه بعضه بعضا وهی القرائن- (القرائن و القرنیان – الثوران اذا جمعتهما فی نیرواحد والبعیران اذا جمعتهمافی حبل – المنجد) او چه مهموز شی نو بنا په قول راجح علم غیر مشتق دې او چه وصف شی نو عندالبعض دا مصدر دې د قراءت لپاره کالرجحان والغفران. (سمی به الکتاب المقروء من باب تسمیة المفعول بالمصدر )- او په نزد د بعضو باندې وصف دې په وزن د فعلان ، مشتق دې د قَرْءٌ نه په معنی د جمع سره. (و منه قرات الماء فی الحوض ای جمعته سمی به القرآن لانه جمع السور بعضها الی بعض). (۲) وقال الراغب لانه جمع ثمرات الکتب

السابقة المنزلة (۳) وقیل لانه جمع انواع العلوم کلها :

جمیع العلم فی القرآن لکن تقاصر عنه افهام الرجال

**د قرآن کریم اصطلاحی تعریف** : القرآن کلام الله المنزل علی رسوله، المکتوب فی دفات المصاحف، المنقول الینا علی الأحرف السبعة المشهورة نقلاً متواترًا.

نور اسماء د قرآن پدې جدول کښې دي.

| نمبر شماره | اسماء القران و کم مرة ذکر فی القران | الایات التی فیها اسم القران | السورة و رقم الایة |
|---|---|---|---|
| ۱-۲ | کتاب ۲۳ - مبین۱۸ | حم والکتاب المبین | زخرف ۱ |
| ۳-۴ | قران۷۰ - کریم۱ | انه لقران کریم | واقعه ۷۷ |

وجه التسمیة بالقرآن قد ذکرناه واما وجه التسمیة بالکتاب فلان الکتاب لغةً الجمع والقرآن جمع انواع العلوم والقصص والاخبار علی ابلغ وجه — و وجه التسمیة بالمبین لانه ابان ای اظهر الحق من الباطل — وجه التسمیة بالکریم لکرمه وکثرة نفعه و یسمی الشئ الکثیر النفع بالکریم.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۵ | کلام۴ لانه یؤثرفی ذهن السامع : مشتق من الکلم بمعنی التاثیر | حتی یسمع کلام الله | توبه ۶ |
| ۶ | النور۱۲ | وانزلنا الیکم نورامبینا | نساء ۱۷۵ |
| ۷-۸ | هدی۳۲ - و رحمة ۲۱ | هدی و رحمة للمؤمنین | یونس ۵۷ |

وجه التسمیة انه هاد فهو من باب المجاز وهو سبب الرحمة

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۹ | فرقان ۳ | تبارک الذی نزل الفرقان علی عبده | فرقان ۱ |

لکونه فارقابین الحق والباطل

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱۰ | شفاء ۳ | ونزل من القران ماهوشفاء | بنی اسرائیل ۸۲ |

لانه سبب الشفاء الظاهری والباطنی.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱۱ | موعظة ٦ | قدجاءكم موعظة من ربكم | يونس ٥٧ |
| ۱۲ | شفاء لمافی الصدور ١ وجه التسمية ظاهرة | وشفاء لمافی الصدور | يونس ٥٧ |
| ۱۳ | ذكر ٤٩ - مبارک ١٧ | وهذا ذكر مبارک انزلناه | انبياء ٥٠ |
| ١٤ - ١٥ | عليّ لانه عال على جميع الكتب ١ | وانه فی ام الكتاب لدينا لعلی حكيم | زخرف ٤ |
| ١٦ | حكمة ١٥ | حكمة بالغة | قمر ٥ |
| ١٧ | حكيم ٤ | تلک ايات الكتاب الحكيم. | يونس ١ |
| ١٨ | مهيمن ١ | ومهيمنا عليه | مائده ٤٨ |
| ١٩ | الحبل ١ | واعتصموا بحبل الله جميعا | ال عمران ١٥٣ |
| ٢٠ | صراط مستقيم ١٩ | وان هذا صراطی مستقيما | انعام ١٥٣ |
| ٢١ | قيم ١ | قيمالينذر | كهف ٢ |
| ٢٢-٢٣ | قول ٩ - فصل ١ | انه لقول فصل | طارق ١١ |
| ٢٤ | نبأ عظيم ٢ | عم يتساءلون عن النباء العظيم | نباء ٢٠١ |
| ٢٥-٢٦ | احسن ١ الحديث - مثانی ٢ | الله نزل احسن الحديث | زمر ٢٣ |
| ٢٧ | متشابه ١ | كتابا متشابها مثانی | زمر ٢٣ |
| ٢٨ | تنزيل ١٤ | وانه لتنزيل رب العلمين | شعراء ١٩٢ |
| ٢٩ | روح ٥ | وكذلک اوحينا اليک روحا من امرنا | حم الشوری ٥٢ |
| ٣٠ | الوحی ٢ | انما انذركم بالوحی | انبياء ٤٥ |
| ٣١ | العربی ١١ | قرآنا عربيا لعلكم تعقلون | يوسف ٢ |
| ٣٢ | البصائر | هذا بصائرمن ربكم | انعام ٢٠٣ |
| ٣٣ | البيان ١ | هذا بيان للناس | ال عمران ١٣٨ |
| ٣٤ | العلم ١٤ | من بعدماجاءک من العلم | بقرء ١٤٥ |
| ٣٥ | الحق ٦٣ | ان هذا لهو القصص الحق | ال عمران ٦٢ |
| ٣٦ | الهادی | ان هذا القران يهدی | بنی اسرائيل ٩ |
| ٣٧ | العجب ١ | قرآنا عجبا | جن ١ |
| ٣٨ | تذكرة ٧ | وانه لتذكرة للمتقين | الحاقة ٤٨ |
| ٣٩ | العروة الوثقی ٢ | فقد استمسک بالعروة الوثقی | بقرء ٢٥٦ |
| ٤٠ | الصدق ٣ | والذی جاء بالصدق | زمر ٣٣ |
| ٤١ | العدل ٤ | وتمت كلمة ربک صدقا و عدلا | انعام ١١٥ |
| ٤٢ | المنادی ١ | سمعنا مناديا ينادی للايمان | ال عمران ١٩٣ |

**فائده** اذاکان المراد من المنادی القرآن فالمراد من الایمان هوالتوحید وان کان المراد من المنادی هوالنبی صلی اللہ علیہ وسلم فالمراد من الایمان اما التوحید اوالقرآن.

| ۴۳ | الامر ۴ | ذلک امراللہ انزلہ الیکم | طلاق ۵ |
|---|---|---|---|
| ۴۴ | البشری ۵ | ھدی و بشری | بقرہ ۹۷ |
| ۴۵ | المجید ۲ | بل ھو قرآن مجید | بروج ۲۲ |
| ۴۶ | الزبور ۱ | ولقد کتبنا فی الزبور من بعد الذکر | انبیاء ۱۰۵ |
| ۴۷–۴۸ | بشیر ۱ – نذیر ۱ | قرآنا عربیا لقوم یعملون بشیرا و نذیرا | حم السجدۃ ۴ |
| ۴۹ | العزیز ۱ | وانہ لکتاب عزیز | حم السجدۃ ۴۱ |
| ۵۰ | البلاغ ۲ | ھذا بلاغ للناس | ابراھیم ۵۲ |
| ۵۱ | القصص ۳ | احسن القصص بما اوحینا الیک | یوسف ۳ |
| ۵۲–۵۳ | صحف ۲ – مکرم ۲ | فی صحف مکرمۃ | عبس ۱۳ |
| ۵۴–۵۵ | مرفوع ۱ – مطھر ۱ | مرفوعۃ مطھرۃ | عبس ۱۴ |

ھذا ما ذکرہ العلامۃ السیوطی (رح) فی الاتقان و زاد بعض العلماء علیہ.

| ۵۶ | ذکری ۱۳ | ان ھوالاذکری للعلمین | انعام ۹۰ |
|---|---|---|---|
| ۵۷ | ایمان ۱ | سمعنا منادیا ینادی للایمان | العمران ۱۹۳ |
| ۵۸ | ایات بینات ۷ | بل ھو ایات بینات فی صدور الذین اوتوالعلم | عنکبوت ۴۹ |
| ۵۹ | حکم ۳ | وکذلک انزلناہ حکما عربیا | رعد ۳۷ |
| ۶۰ | سبیل اللہ ۴ | فتفرق بکم عن سبیلہ | انعام ۱۵۲ |
| ۶۱ | کلمۃ ۲ | وتمت کلمۃ ربک | انعام ۱۱۵ |
| ۶۲ | کلمات اللہ ۶ | لامبدل لکلماتہ | انعام ۱۱۵ |
| ۶۳ | حدیث ۷ | ان لم یؤمنوا بھذا الحدیث | کھف ۶ |
| ۶۴ | فضل اللہ ۱۳ | قل بفضل اللہ و برحمتہ فبذلک فلیفرحوا | یونس ۵۷ |

| ٦٥ | برهان ١ | قدجاءكم برهان من ربكم | نساء ١٧٤ |
|---|---|---|---|
| ٦٦ | بينة | قدجاءتكم بينة من ربكم | انعام ١٥٧ |
| ٦٧ | مفصل ١ | انزل اليكم الكتاب مفصلاً | انعام ١١٤ |
| ٦٨ | نعمت الله ٦ | فاصبحتم بنعمته اخوانا | ال عمران ١٠٣ |
| ٦٩ | الكوثر ١ | انا اعطيناک الكوثر | الكوثر ١ |
| ٧٠ | الميزان١ | الله الذى انزل الكتاب بالحق والميزان | شورى ١٧ |
| ٧١ | الحجة البالغة١ | قل فلله الحجة البالغة | انعام ١٤٩ |
| ٧٢ | تبيان ١ | وانزلنا اليک الكتاب تبيانا لكل شئ | النحل ٨٩ |
| ٧٣ | النجوم ١ | فلا اقسم بمواقع النجوم | واقعه ٥٧ |
| ٧٤ | النجم ١ | والنجم اذا هوى | النجم١ |
| ٧٥ | مصدق ١٠ | مصدقالما معكم | بقرء ٤٢ |
| ٧٦ | عظيم ٣ | ولقد اتيناک سبعا من المثانى والقران العظيم | حجر ١٧ |
| ٧٧ | منزل ١ | يعلمون انه منزل من ربک بالحق | انعام ١١٤ |

٨ – و قد سماه شاهداً – كقوله تعالى: ((افمن كان على بينة من ربه و يتلوه شاهد منه)) ((هود ١٨)) والشاهد من الله تعالى هو القرآن .

## شپږم (٦) مبحث

## د قرآن جمع كول

زده كړه دا خبره چه قرآن په ۲۳ كلونو كښ مكمل شويدې ليكن په زمانه د حيات مباركه د نبى عليه السلام كښې قرآن پاک نه وو جمع شوې په يو مستقل مصحف كښې ځكه چه په حياة مباركه د نبى عليه السلام كښې احتمال د نسخ د بعضې احكامو او د تلاوت هم وو، او بعد د حيات مبارک نه دا احتمال منقطع شو، او بل دا چه نبى صلى الله عليه وسلم په خپل حيات كښ مشغول وؤ په ډيرو امورو عظامو كښې او فارغ نه وو جمع د قرآن ته، او پس د حيات د نبى صلى الله عليه وسلم نه الله (ج) الهام وكړو خلفاء راشدينو ته نو هغوئ جمع كړو قرآن لره ـ او جمع د قرآن دوه كرته شوې ده : اول په زمانه د خلافت د ابوبكر صديق كښ شويده په مشوره د حضرت عمر (رض) سره او

دیته جمع اولی وئیلې شي، او دویم وار په خلافت د عثمان (رضی الله عنه کښې په مشوره د حذیفه رضی الله عنه سره او دیته جمع ثانی وئیلې شی- او په بعضې روایاتو کښې (کمارواه الحاکم) چه راغلیدی چه جمع د قرآن درې کرته شویده اول په زمانه د نبی علیه السلام کښې او دویم په زمانه د ابوبکر رضی الله تعالی عنه کښې او دریم په زمانه د عثمان رضی الله عنه کښې نو مراد د جمع اولی نه پدغه روایت کښې صرف کتابت دې نه جمع په یو مصحف کښ ځکه جمع په مصحف واحد کښې په زمانه د حیات د نبی صلی الله علیه وسلم کښې نه وه، کما هو مصرح فی حدیث البخاری وغیره، نو صحیح خبره داده چه جمع د قرآن دوه وارې شویده، او باعث د جمع اولی او باعث د جمع ثانی او فرق په مابین د جمع اولی او د جمع ثانی کښې معلومیږی د هغه روایتنو نه چه روایت ئی کړیدې، امام بخاری رحمه الله:

**اول روایت**: زید بن ثابت رضی الله تعالی عنه (کاتب د وحی) فرمائی چه ماته ابوبکر رضی الله عنه قاصد راولیږه او زه ئی طلب کړم په زمانه د قتل د اهل یمامه کښې (چه دا قتال وو د بنی حنیفه سره چه پدې کښې مسیلمة الکذاب لعین قتل شوې وو، او وه سوه «(۷۰۰)» پکښې قراء د قرآن شهیدان شول او په ناموس رسالت ئی خپل ځان قربان کړې وو، (فجزاهم الله عنا احسن الجزاء) او په روایت د بخاری کښې د اویا (۷۰) کسانو ذکر دې ـ نو چه زه حاضر شوم نو حضرت عمر هم هلته حاضر وو، نو ابوبکر رضی الله عنه وفرمائیل چه عمر رضی الله عنه ماته راغې او وې وئیل چه (یا ابا بکر!) بیشکه قتل شدید شویدې په ورځ د یمامه کښې په قراء د قرآن - او ما ته خطره ده کچرې جنګ زیات سخت شی په قراؤ په نورو مواقعو د جنګ کښې (نو قراء به شهیدان شی) نو ضائع به شی ډیر قرآن او زما رایه داده چه ته امر وکړې په جمع د قرآن - نو حضرت ابوبکر رضی الله عنه فرمائی چه ما اوویل عمر رضی الله عنه ته چه ته به څنګه هغه کار وکړې چه نوی کړې رسول الله صلی الله علیه وسلم نو عمر رضی الله عنه وویل: والله چه دا خیر دې نو همیشه وو عمر رضی الله عنه چه ماته ئی مراجعه کوله حتی چه الله جل جلاله ځما شرح صدر وکړه ددغه کار لپاره او ځما هغه رایه شوه چه کومه رایه د عمر رضی الله عنه ده - زید رضی الله عنه وائی چه ابوبکر رضی الله عنه اوفرمایل چه ته یو ځوان سړې ئی (په قواوو کښې دې ضعف ندې راغلې) او عاقل ئی او متهم نه ئی په کذب اونسیان سره او ته په زمانه د نبی صلی الله علیه وسلم کښې کاتب د وحی وې لپاره د رسول الله صلی الله علیه وسلم نو ته د قرآن تتبع او تفتیش وکړه او جمع ئی کړه!

نو زید بن ثابت رضی الله عنهما فرمائی چه په خدای قسم کچرې دوئ زه مکلف کړې وې په نقل

کولو د یو غر بل ته نو دا به په ما زیاته ثقیله نوې لدې امر نه چه جمع د قرآن ده –او ما دوئ ته ووئل چه څرنگ به تاسو وکړئ یو کار چه نوی کړې رسول الله صلی الله علیه وسلم (یعنی د قرآن جمع) نو ابوبکر رضی الله عنه وفرمایل چه والله چه دا خیر دې، نو همیشه وؤ ابوبکر رضی الله عنه چه ماته ئې مراجعه کوله حتی چه الله جل جلاله څما شرح صدر وکړه لپاره د هغې خبرې چه د هغې لپاره الله جل جلاله شرح صدر د ابوبکر او عمر رضی الله عنهما کړې وه نو ما تتبع وکړه د قرآن او جمع کولو مې قرآن د عُسب نه یعنی پتو د کجورونه او د لخاف یعنی د سپین کانړی نه (چه پدې کښې قرآن په متفرق طور سره مکتوب وو) او د صدور رجال نه حتی چه ما وموند آخر د سورة توبه د ابوخزیمة الانصاری سره چه د بل چاسره م نه وو موندلې مکتوب یعنی دا آیت «لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ ـــــ الی اخر السورة» –نو کله چه قرآن مکتوب شو نو دغه مکتوب د ابوبکر رضی الله عنه سره وو او بیا پس د وفات دده نه د حضرت عمر رضی الله عنه سره وو او د هغه د وفات نه بعد د حفصه رضی الله عنها سره وو - انتهی.

**دویم روایت**: د حذیفه بن یمان رضی الله عنهما نه روایت دې چه دې راغې عثمان رضی الله عنه ته. او عثمان رضی الله عنه د فتح ارمینیه او اذربیجان لپاره اهل شام سره د اهل عراق نه د جنگ لپاره تیارول (او حذیفه ولیدو اختلاف د قراء، چه بعض قراءت د ابی ابن کعب رضی الله عنه وئیلو او بعضو د ابن مسعود رضی الله عنه او بعضو د ابوموسی رضی الله عنه او بعضو د بعضو تردید کولو او تغلیط او تکفیر ئې کولو، نو حذیفه رضی الله عنه پدې باندې گبراؤ شو او عثمان رضی الله عنه ته ئې وویل: «ادرک هذه الامة قبل ان یختلفوا فی الکتاب اختلاف الیهود والنصاری» یعنی د دې امت د اصلاح غور وکړه پخوا لدې نه چه په دوئ کښې د یهود او نصاری پشان اختلاف راشي.

نو عثمان رضی الله عنه حفصه رضی الله عنها ته قاصد ولیږه چه مونږ ته هغه مصحف راکړه چه لیکلي شوې وو په زمانه د ابوبکر رضی الله عنه کښې چه مونږ د هغې نه لیکل وکړو نو بیا به ستا مصحف تاته واپس کړو، نو حفصه رضی الله عنها دغه مصحف ولیږلو نو عثمان رضی الله عنه (کمیټی جوړه کړه) امر ئې وکړو زید بن ثابت او عبدالله بن زبیر او سعید بن العاص او عبدالرحمن بن حارث بن هشام رضی الله عنهم ته او وئې لیکه په مصاحفو کښې او عثمان رضی الله عنه وفرمایل دې درې قریشینو ته (عبدالله بن زبیر ، سعید بن العاص ، عبدالرحمن بن حارث) چه کچرې ستاسو اختلاف راشي د زید بن ثابت رضی الله عنه سره نو (فاکتبوه بلغة قریش) ځکه چه اول نزول د قرآن په لغت د دوئ شویدې نو هغوئ پدې ترتیب قرآن جمع کړ او وې ئې لیکه او اطرافو ته ئې

ولیږل او دديٍ نه ماسوی نورو مصاحفو متعلق ئی امر وکړو نو هغه ئی وسیزول - بخاری ج ۲ / ۷۴۶ - ۷۴۵ -

دديٍ دواړو حدیثینو نه معلومه شوه چه باعث د جمع اولی خطره د ضائع کیدلو د قرآن وه په سبب د شهید کیدلو د قراؤ سره - او باعث د جمع ثانی دفع د اختلاف وه چه مفضی کیدي شوه ډیرو مفاسدو ته

او فرق په مابین د جمع اولی او ثانی کښې دادې چه په جمع اولی کښې لغت د قریش او د غیر قریش ټول موجود وو او دارنګه منسوخ التلاوة او په جمع ثانی کښې اقتصار وشو فقط په لغت د قریش باندې او همدارنګه په جمع اولی کښې ترتیب نزول مرعی وو- او په جمع ثانی کښې ترتیب د لوح محفوظ مرعی دې - هکذا افادنا استاذنا العلامة الموسوم باسمه الشریف خان بهادر عرف مارتونګ مولنا صاحب رحمه الله.

# اووم (۷) مبحث

## د قرآن د مضامینو په بیان کښې

زده کړه دا خبره : چه اهم مضامین د قرآن اته (۸) دی :

۱ -توحید . ۲ -رسالت . ۳ - قیامت دیته اصول ثلاثه وئیلی شی ، ۴ -تخویف . ۵ -بشارت ، ۶ -احکام ، ۷ -جهاد ، ۸ -انفاق.

ددې مضامینو باهمی ربط او مناسبت دادې چه توحید اصل الاصول دې (۲) او رسالت مبیّن د توحید دې، او قیامت لپاره د جزاء او سزاء دې او تخویف لپاره د نه منونکو دې او بشارت لپاره د منونکو دې او احکام لپاره د انتظام د امورو دمسلمانانو دې. او جهاد لپاره د اعلاء د توحید دې او انفاق ته په جهاد کښې ضرورت راځی.

## تفصیل د مسئلهٔ توحید

د توحید معنی په شرح المقاصد، ج : ۲، ص : ۷۴ کښې دا کړې ده : ‹‹اعتقاد عدم الشریک فی الالوهیة وخواصها›› : توحید صیغه د مصدر ده د باب تفعیل نه او باب تفعیل کله راځی لپاره د ایجاد د ماخذ الاشتقاق لکه کسرته، قطعته یعنی ایجاد د کسر او قطع م وکړو پدغه شئ کښې او کله راځی لپاره د انتساب د ماخذ الاشتقاق لکه فسقته یعنی نسبت د فسق م وکړو فلانی ته. دلته

باب تفعیل لپاره د انتساب دې یعنی نسبت د یو والی، او انتساب نه مراد عقلی انتساب دې چه اعتقاد دې یعنی اعتقاد په یو والی او متفرد والی د الله تعالی په خدایٔ توب ، او په خواصو د اولوهية کښ چه هغی ته صفات الوهیه وئیلې شی ( د خدایٔ توب صفتونه) لکه خالقية رازقية وغیره شو.

زده کړه دا خبره ؛ چه **دا ثبات د توحید لپاره** په قرآن مجید کښ درې قسمه دلائل بیانیږی: ۱ - عقلی، ۲ - نقلی، ۳ - وحی - وجه د حصر داده چه منکر د توحید به خالی نه وی یا به وجه د انکار دا وائی چه توحید ځما عقل نه منی لکه فرمائی الله ، حکایة عن قولهم : ﴿ أَجَعَلَ الْآلِهَةَ إِلَٰهًا وَاحِدًا إِنَّ هَٰذَا لَشَيْءٌ عُجَابٌ ۝ ﴾ (ص ۵) نو ددې د رد لپاره دلیل عقلی ذکر کولې شی ، او یا به وجه د انکار دا وائی چه پدې مسئله کښې ته متفردئې بل چا دا مسئله نده کړې بلکه دا نوې (جدیده) مسئله ده لکه دا قول د دوئ شو: ﴿ مَا سَمِعْنَا بِهَٰذَا فِي الْمِلَّةِ الْآخِرَةِ إِنْ هَٰذَا إِلَّا اخْتِلَاقٌ ۝ ﴾ (ص ۷) نو ددې د رد لپاره دلیل نقلی پیش کیږی، او یا به دا وه وائی چه توحید زمونږ د مزاج رواج سره موافق ندې بلکه دا مسئله فتنه انگیزه ده لهذا نور مسائل بیا نوه او توحید پریده کماقال تعالی: ﴿وَمِنَ الْأَحْزَابِ مَن يُنكِرُ بَعْضَهُ ﴾ (رعد : ۳۲) وکماقال تعالی : ﴿وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ قَالَ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا ائْتِ بِقُرْآنٍ غَيْرِ هَٰذَا أَوْ بَدِّلْهُ قُلْ مَا يَكُونُ لِي أَنْ أُبَدِّلَهُ مِن تِلْقَاءِ نَفْسِي إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَىٰ إِلَيَّ ﴾ یونس(۱۵).

نو ددې په رد کښې دلیل وحی راځی کماقال تعالی: ﴿قُلْ مَا يَكُونُ لِي أَنْ أُبَدِّلَهُ ﴾ پس دلیل عقلی په دوه قسمه دې:

(۱) یو عقلی محض دې : او دا هغه دلیل دې چه پدې کښې د خصم نه اقرار نه وی اخستې شوې -(۲) او بل عقلی علی سبیل الاعتراف من الخصم دې - دا هغه دلیل دې چه د خصم نه پکښې اقرار اخستلې شوې وی (ع) والفضل ماشهدت به الاعداء -.

مثال ددې قسم لکه - ﴿ قُلْ مَن يَرْزُقُكُم مِّنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ أَمَّن يَمْلِكُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ

وَمَن يُخْرِجُ ٱلْحَىَّ مِنَ ٱلْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ ٱلْمَيِّتَ مِنَ ٱلْحَىِّ وَمَن يُدَبِّرُ ٱلْأَمْرَ ۚ فَسَيَقُولُونَ ٱللَّهُ ۚ فَقُلْ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴾ (یونس - ٣١)

او عقلی محض بیا په دوه قسمه دي یو افاقی دې دا هغه دې چه امور خارجی د ذات د انسان نه دلیل وګرځولې شي په توحید د باری تعالی باندې (٢) او بل انفسی دې او دا هغه دلیل دې چه خود ذات د انسان او هغه امور چه داخل دی په ذات کښې دا دلیل وګرځولې شي په توحید – کما قال تعالی: ﴿سَنُرِيهِمْ ءَايَٰتِنَا فِى ٱلْءَافَاقِ وَفِىٓ أَنفُسِهِمْ حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُ ٱلْحَقُّ ﴾ (حم سجده ٥٣)

او آفاقی بیا په درې قسمه دې (١) علوی- یا سماوی، (٢) جوی، (٣) سفلی، یا ارضی مثالونه ئې دادی:

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱعْبُدُوا۟﴾ (مدعی) ﴿رَبَّكُمُ ٱلَّذِى خَلَقَكُمْ وَٱلَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ﴾ دلیل عقلی محض انفسی ﴿لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ - ٱلَّذِى جَعَلَ لَكُمُ ٱلْأَرْضَ فِرَٰشًا﴾ - دلیل عقلی محض آفاقی سفلی دې ﴿وَٱلسَّمَآءَ بِنَآءً﴾ دلیل علوی ﴿وَأَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً فَأَخْرَجَ بِهِۦ مِنَ ٱلثَّمَرَٰتِ رِزْقًا لَّكُمْ ﴾ دلیل جوی ﴿فَلَا تَجْعَلُوا۟ لِلَّهِ أَندَادًا وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴾ (نتیجه)

او دلیل نقلی په دوه قسمه دې یو اجمالی دې دا هغه دلیل دې چه پدې کښې د یو خاص نبی یا د یو خاص کتاب نوم نوی ذکر شوې، مثال لکه: ﴿وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ مِن رَّسُولٍ إِلَّا نُوحِىٓ إِلَيْهِ أَنَّهُۥ لَآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنَا۠ فَٱعْبُدُونِ ﴾ (انبیاء: ٢٥)

او بل نقلی دې: او دا په شپږ قسمه دې: (١) نقلی د انبیاؤ نه لکه: ﴿ وَٱذْكُرْ فِى ٱلْكِتَٰبِ إِبْرَٰهِيمَ ۚ إِنَّهُۥ كَانَ صِدِّيقًا نَّبِيًّا ﴾، ﴿إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ يَٰٓأَبَتِ لِمَ تَعْبُدُ مَا لَا يَسْمَعُ وَلَا يُبْصِرُ وَلَا يُغْنِى عَنكَ شَيْـًٔا ﴾ مریم ٤١ - ٤٢

**فائده**: دا قسم دلیل نقلی په درې طورنو سره ذکر کیږی کله د انبیاؤ هغه بیان نقل کړې شی چه

خپل قوم ته نې کړې وی لکه دا مذکور آیت - او کله د هغوئ طرز او طريقه نقل کیږی په وقت د نزول د تکاليفو او مصائبو کښې لکه: ﴿وَلَقَدْ نَادَىٰنَا نُوحٌ فَلَنِعْمَ ٱلْمُجِيبُونَ ﴾ صافات ۷۵

يعنى انبياؤ په وقت د مصيبت کښې صرف د الله جل جلاله بلنه کوله، او کله د هغې ابتلاء ذکر کولې شي چه په انبياؤ راغلى وى لکه: «وَلَقَدْ فَتَنَّا سُلَيْمَانَ ـــــ الآيه» (ص ۳۴) لکه ﴿وَظَنَّ دَاوُۥدُ أَنَّمَا فَتَنَّٰهُ فَٱسْتَغْفَرَ رَبَّهُۥ﴾ (ص ۲۴)

(۲) دليل نقلى د مؤمنين سابقينو لکه: ﴿ ٱلَّذِينَ ءَاتَيْنَٰهُمُ ٱلْكِتَٰبَ يَتْلُونَهُۥ حَقَّ تِلَاوَتِهِۦٓ أُو۟لَٰٓئِكَ يُؤْمِنُونَ بِهِۦ﴾ (بقره ۱۲۱)

(۳) د جناتونه لکه: ﴿قُلْ أُوحِىَ إِلَىَّ أَنَّهُ ٱسْتَمَعَ نَفَرٌ مِّنَ ٱلْجِنِّ فَقَالُوٓا۟ إِنَّا سَمِعْنَا قُرْءَانًا عَجَبًا ﴿١﴾ يَهْدِىٓ إِلَى ٱلرُّشْدِ فَـَٔامَنَّا بِهِۦ ۖ وَلَن نُّشْرِكَ بِرَبِّنَآ أَحَدًا ﴿٢﴾﴾

(جن ۱ ـــ ۲)

(۴) د کتب سابقينونه لکه: ﴿ وَءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَٰبَ وَجَعَلْنَٰهُ هُدًى لِّبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ أَلَّا تَتَّخِذُوا۟ مِن دُونِى وَكِيلًا ﴾ (بنى اسرائيل: ۲)

(۵) د ملائکو نه لکه: ﴿ أُو۟لَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ يَدْعُونَ يَبْتَغُونَ إِلَىٰ رَبِّهِمُ ٱلْوَسِيلَةَ أَيُّهُمْ أَقْرَبُ وَيَرْجُونَ رَحْمَتَهُۥ وَيَخَافُونَ عَذَابَهُۥٓ ۚ إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ كَانَ مَحْذُورًا ﴾ (بنى اسرائيل ۵۷)

(۶) دليل نقلى د وحوش طيورونه لکه د نمل نه او هد هد نه، لکه: ﴿ قَالَتْ نَمْلَةٌ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّمْلُ ٱدْخُلُوا۟ مَسَٰكِنَكُمْ لَا يَحْطِمَنَّكُمْ سُلَيْمَٰنُ وَجُنُودُهُۥ وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴾ (نمل ۱۸)

او هد هد ووئيل: ﴿ وَجَدتُّهَا وَقَوْمَهَا يَسْجُدُونَ لِلشَّمْسِ مِن دُونِ ٱللَّهِ وَزَيَّنَ لَهُمُ ٱلشَّيْطَٰنُ أَعْمَٰلَهُمْ فَصَدَّهُمْ عَنِ ٱلسَّبِيلِ فَهُمْ لَا يَهْتَدُونَ ﴿٢٤﴾ أَلَّا يَسْجُدُوا۟ لِلَّهِ ٱلَّذِى يُخْرِجُ ٱلْخَبْءَ فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَيَعْلَمُ مَا تُخْفُونَ وَمَا تُعْلِنُونَ ﴿٢٥﴾ ﴾ (نمل ۲۴ - ۲۵)

او دا اخير قسم دليل د توحيد په قرآن پاک کښې قليل او نادر دې:







نو مجموعه اقسام د دلیل عقلی پنځه شو.

(۱) عقلی علی سبیل الاعتراف من الخصم ، (۲) عقلی محض (۳) افاقی علوی (۴) جوی (۵) سفلی -او مجموعه اقسام د دلیل نقلی اوه ۷ شو - یو نقلی اجمالی او شپږ تفصیلی - یو دلیل وحی نو دا ټول دلائل ۱۳ شو.

پس زده کړه دا خبره چه په قرآن کښې لکه څنګه چه اثبات د توحید کیږی په دلائلو سره نو

دا رنگه رد د شرک کبری څکه چه دا ضد د توحید دې نو په قرآن کښې د **یوولسو قسمونو د شرک رفع کبری** (۱) شرک اعتقادی (۲) شرک فی العبادة (۳) شرک فی الدعاء (۴) شرک فی العلم (۵) شرک فی البرکة (۶) شرک فی الخوف (۷) شرک فی الرجاء (۸) شرک فی المحبة (۹) شرک فی التسمیة (۱۰) شرک فی الشفاعة (۱۱) شرک فعلی – او ددې په ضمن کښې څلور مسائل دی.

(۱) اول نفی او رد د شرک فی التصرف، او دیته شرک اعتقادی هم وئیلې شی او دا عبارت دې لدینه چه په غیر د الله تعالی باندې دا اعتقاد راشی چه مالک دې د نفع او د ضرر او متصرف دې په جمیعو امورو کښې فوق الاسباب یعنې په غیر د اسبابو نه، او چونکه دا قسم شرک مبدا ده لپاره د شرک فعلی نو ددې قسم شرک رد او نفی ډیره کیدې شی په کلام الله کښې.

او دلته دوه عنوانه ذکر کیږی : **اول اثبات د تصرف** الله جل جلاله لره ، دا کله په ذکر د لام التخصیص سره کیږی لکه : «لله مافی السموات والارض» او کله په لفظ د مُلک او ملکوت سره کیږی لکه : «له ملک السموات والارض» «بیده ملکوت کل شیء» . او کله په لفظ د حکم سره کیږی لکه : «ان الحکم الا لله» .

او دویم عنوان : نفی د تصرف د غیر الله نه، یا په طریقه د خصوص سره د نبی صلی الله علیه وسلم نه لکه : ﴿قُل لَّآ أَمۡلِكُ لِنَفۡسِی نَفۡعًا وَلَا ضَرًّا إِلَّا مَا شَآءَ ٱللَّهُۚ﴾ (اعراف ۱۸۸)

یا لکه : ﴿وَمَن يُرِدِ ٱللَّهُ فِتۡنَتَهُۥ فَلَن تَمۡلِكَ لَهُۥ مِنَ ٱللَّهِ شَيۡـًٔاۚ﴾ مائده (۴۱)

یا په طریقه د خصوص سره د معبودانو باطلونه لکه : ﴿قُلۡ أَفَٱتَّخَذۡتُم مِّن دُونِهِۦٓ أَوۡلِيَآءَ لَا يَمۡلِكُونَ لِأَنفُسِهِمۡ نَفۡعًا وَلَا ضَرًّاۚ﴾ (رعد ۱۶)

یا لکه : ﴿وَٱلَّذِينَ تَدۡعُونَ مِن دُونِهِۦ مَا يَمۡلِكُونَ مِن قِطۡمِيرٍ ۝١٣﴾

یا لکه : ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ تَعۡبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ لَا يَمۡلِكُونَ لَكُمۡ رِزۡقًا﴾ (عنکبوت : ۱۷)

او یا په طریقه د عموم سره لکه : «**یوم لا تملک نفس لنفس شیئاً والامر یومئذ لله**»

(۲) دویم نفی او رد د شرک فی الدعاء : شرک فی الدعاء دیته وائی چه طلب دا مداد وکړې شی او سوال وکړې شي د غیر الله نه پدې عقیده سره چه دغه غیر مالک د نفع او ضرر دې بغیر د اسبابو نه

مثال د نفی د شرک فی الدعاء ﴿ ذَٰلِكُمُ ٱللَّهُ رَبُّكُمْ لَهُ ٱلْمُلْكُ ۚ وَٱلَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِهِۦ مَا يَمْلِكُونَ مِن قِطْمِيرٍ ﴾ (فاطر ۱۳)

دلته هم اثبات د دعاء او سوال او استعانت من الله کیږی، دا یو عنوان دې، لکه: «ادعوا ربکم تضرعا و خفیة»، او نفی د غیر الله نه کیږی دا بل عنوان دې لکه: ﴿ وَلَا تَدْعُ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَا لَا يَنفَعُكَ وَلَا يَضُرُّكَ ۖ فَإِن فَعَلْتَ فَإِنَّكَ إِذًا مِّنَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ (یونس ۱۰۲)

(۳) دریم نفی د شرک فی العبادة په طریقه د اثبات سره ده لپاره د الله تعالی او نفی د غیر الله نه لکه: ﴿ قُلْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِن كُنتُمْ فِى شَكٍّ مِّن دِينِى فَلَآ أَعْبُدُ ٱلَّذِينَ تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ دا د لا اله معنی ده - ﴿ وَلَٰكِنْ أَعْبُدُ ٱللَّهَ ٱلَّذِى يَتَوَفَّىٰكُمْ ۖ وَأُمِرْتُ أَنْ أَكُونَ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴾ (یونس ۱۰۴) دا د الا الله معنی ده.

او عبادت په لغت کښې غایت خشوع یا نهایت تذلل یا نهایت تعظیم ته وائی - او بهترین تعریف ئی علامه ابن قیم رحمه الله په مدارج السالکین کښې ۴۰ دا کړی دې: «العبادة عبارة عن الاعتقاد والشعور بان للمعبود سلطة غیبیة» (ای فی العلم والتصرف) مافوق الاسباب یقدرها علی النفع والضرر فکل دعاء وثناء و تعظیم ینشا من هذا الاعتقاد فهی عبادة»- نو معلومه شوه ددې عبارت نه چه چالره علم او تصرف ما تحت الاسباب ثابتول شرک ندې او دارنګه هغه تعظیم یا نداء غیر الله ته چه ناشی نه وی د اعتقاد مذکور نه هغه شرک ندې لکه چه شاه عبدالعزیز رحمه الله په فتاوی عزیزیه کښې لیکلی دی چه فرق په مابین د سجده تعظیمیه او سجده عبادتیه کښې صرف د نیت او د عقیدې دې، نو که د چا عقیده په غیرالله باندې دا وه چه دې کار ساز، حاجت روا، مشکل کشادې نو هغه ته سجده کول شرک دې او که ددې عقیدې نه په غیر ئی چاته سجده وکړه نو دا سجده تعظیمی ده، شرک ندې اګر چه حرام قطعی ده - (ماخوذ از مقدمه جواهر القرآن ۳۹)

(۴) څلورم نفی د شرک فی العلم یعنی غیرالله لره په کل غیب باندې عالم ګنړل او جمیع ماکان و مایکون باندې عالم ګنړل، او د غیب نه مراد دلته غیب حقیقی دې چه عبارت دې د «مالایدرک بالحس ولابالعقل ولابالوحی» نه، او دیته علم غیب حقیقی او علم بغیر سبب وئیلې شی.

او نفی د شرک فی العلم چه کیږی نو دا په طریقه د نفی د علم غیب سره کیږی د غیر الله نه او اثبات سره لپاره د الله تعالی، او نفی د غیر الله نه به یاعموما وی لکه: «قل لايعلم من في السموات والارض الغيب الا الله»، (نمل ۲۵) او یا به خصوصاً وی د ملائکو نه لکه: «سبحانک لا علم لنا الا ما علمتنا»، یا د انبیاؤ نه لکه: «يوم يجمع الله الرسل فيقول ماذا اجبتم قالوا لا علم لنا»، (مائده: ۱۰۹).

یا لکه: ﴿وَلَوْ كُنتُ أَعْلَمُ ٱلْغَيْبَ لَٱسْتَكْثَرْتُ مِنَ ٱلْخَيْرِ وَمَا مَسَّنِيَ ٱلسُّوٓءُ﴾ (اعراف ۱۸۸) یا د جناتونه لکه: ﴿وَأَنَّا لَا نَدْرِىٓ أَشَرٌّ أُرِيدَ بِمَن فِى ٱلْأَرْضِ أَمْ أَرَادَ بِهِمْ رَبُّهُمْ رَشَدًا (جن ۱۰)﴾

پس زده کړه دا خبره چه مغیبات په دوه قسمه دی: بعضې د جنس احکامونه دی او ددې کلی علم الله جل جلاله نبی صلی الله علیه وسلم ته ورکړیدې، لکه: «اليوم اکملت لکم دينکم»، (مائده ۳) او ددې جزئیاتو تفصیل او تبویب اذکیاؤ دَ اُمت کړیدې.

(۲) او بعضې د جنس دا کوانونه دی، او دا دوه قسمه دی یو زمانی بل مکانی: زمانی دوه قسمه دی: یو دنیوی بل اخروی او دنیوی بیا درې قسمه دی: ماضی، حالی، استقبالی، او دا پنځه واړه علوم کلیه خاصه د الله تعالی ده، قال تعالی: «ان الله عنده علم الساعة» (زمانی اخروی) «و ينزل الغيث» زمانی ماضی، دا مضارع په ځائ د ماضی استمراری راغلیده یعنی باران چه راځی خو معلومیږی لیکن دا چاته نده معلومه چه د مخکښې نه څه څه اسباب ور له فراهم کړې شوی وُ: «و يعلم ما في الارحام» زمانی حالی، «و ما تدری نفس ماذا تکسب غدا» زمانی استقبالی، «وماتدری نفس بای ارض تموت» مکانی ۰ «ان الله علیم خبیر»، (لقمان ۳۴)-

او دې پنځو ته په احادیثو کښې مفاتح الغیب وئیلې شویدی او ددې کلی علم خاصه خداوندی ده. البته ددې د بعضې جزئیاتو اطلاع ډیرو خلقو ته حسب استعداد ورکړې شوې ده او نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته لدینه یو وافره حصه ورکړې شوې ده، البته د قیامت دپاره چونکه جزئیات نشته دې نو ددې اطلاع هم بل چاته نده ورکړې شوې.(فوائد عثمانی).

(۵) پنځم قسم نفی د شرک فی البرکة کیږی یعنی غیرالله لره برکت د هنده گنړل: لکه «تبارک الذی نزل الفرقان علی عبده ليکون للعلمين نذيرا» (برکت ازوست ـ شاه ولی الله): «هو الذی جاء بکل خير و برکة» ابن عباس رضی الله عنهما. «البرکة ثبوت الخير الالهي في الشئ» ـ امام راغب.

(۶) شپږم نفی د شرک فی الخوف یعنی د غیر الله نه غائبانه یره کول لکه: ((وایای فارهبون)) (بقره ۴۰)

(۷) اووم قسم نفی د شرک فی الرجاء یعنی د غیر الله نه غائبانه امید کول لکه:

﴿وَلَا تُفْسِدُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ بَعْدَ إِصْلَٰحِهَا وَٱدْعُوهُ خَوْفًا وَطَمَعًا ۚ إِنَّ رَحْمَتَ ٱللَّهِ قَرِيبٌ مِّنَ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴾ (اعراف ۵۶)

پس زده کړه دا خبره چه رجاء د غیر الله نه ماتحت الاسباب جائز ده خو ذلت دې او مافوق الاسباب شرک دې او د الله تعالی نه عین ایمان دې او هم دغه تحقیق دې په خوف کښې.

(۸) اتم قسم نفی د شرک فی المحبة یعنی د غیر الله سره داسې محبت کول چه هغه مناسب وی د الله تعالی د ذات سره یعنې هغه خالق، مالک، کارساز، مشکل کشا، منل لکه: ((وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّتَّخِذُ مِنْ دُوْنِ اللهِ اَنْدَادًا يُّحِبُّوْنَهُمْ كَحُبِّ اللهِ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا اَشَدُّ حُبًّا لِّلّٰهِ))، (بقره ۱۶۵)

(۹) نهم قسم نفی د شرک فی التسمیه کیږی یعنی داسی نوم ایخودل چه په کښې ایهام د شرک وی او دا حقیقی شرک ندې ځکه چه حقیقی شرک راځی په فساد د عقیدې سره، لکه: ((فَلَمَّا اٰتَاهُمَا صَالِحًا جَعَلَا لَهٗ شُرَكَاءَ فِيْمَا اٰتَاهُمَا فَتَعَالَى اللهُ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ)) (اعراف ۱۸۹).

(۱۰) لسم قسم نفی د شرک فی الشفاعة کیږی لکه: ﴿ وَيَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَا لَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنفَعُهُمْ وَيَقُولُونَ هَٰٓؤُلَآءِ شُفَعَٰٓؤُنَا عِندَ ٱللَّهِ ۚ قُلْ أَتُنَبِّـُٔونَ ٱللَّهَ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَلَا فِى ٱلْأَرْضِ ۚ سُبْحَٰنَهُۥ وَتَعَٰلَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴾ (یونس ۱۸)

پس زده کړه دا خبره چه مشرکین قائل دی د شفاعت قهری یعنی شفاعت بلا اذن او معتزله منکر دی د شفاعت نه راساً لقوله تعالی: ((لیس لهم من دونه ولي ولا شفیع))، (قلنا معناه لیس لهم من دون ذاته ولی ولا من دون اذنه شفیع)، ولقوله تعالی: ((وَاتَّقُوْا يَوْمًا لَا تَجْزِيْ نَفْسٌ عَنْ نَفْسٍ شَيْئًا وَّلَا يُقْبَلُ مِنْهَا شَفَاعَةٌ))، (قلنا معناه فی حق الکفار)، او په نزد د اهل سنت والجماعة باندې شفاعت مشروط دې په شروطو ثلاثه ؤ سره: اول: کون د شفیع مؤمن لقوله تعالی: ﴿وَلَا يَمْلِكُ ٱلَّذِينَ يَدْعُونَ﴾ ای یدعونهم من دونه (بیان الذین) ﴿ مِن دُونِهِ ٱلشَّفَٰعَةَ إِلَّا مَن شَهِدَ بِٱلْحَقِّ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴾ زخرف (۸۶)

((لکن یشفع من اقر بکلمة الایمان مع العلم والتصدیق)).

دویم شرط : کون د مشفوع له مومن لقوله تعالی:﴿ وَلَا يَشْفَعُونَ إِلَّا لِمَنِ ٱرْتَضَىٰ وَهُم مِّنْ خَشْيَتِهِۦ مُشْفِقُونَ ﴾ (انبیاء : ۲۸)

دریم شرط : بعد د اذن الهی نه به وی لقوله تعالی : «من ذا الذی یشفع عنده الاباذنه» بقره ( ۲۵۵)

(۱۱) یوولسم قسم د شرک فعلی نفی او رد کیږی : او ددې په ضمن کښې د څلورو امورو ذکر کیږی : اول : نفی تحریمات غیرالله، یعنی د غیر الله دوجی نه یو شی نه حرام ویل او حرام ګڼل یعنې یو شی ته بغیر د حکم د الله تعالی نه حرام مه وائئ او اعتقاد د حرمة یی مه لرئ او که تاسو تحریمات کړی وی یعنی یو شئ مو د ځان نه بغیر د امر د الله تعالی نه حرام کړې وی نو دغه تحریمات ختم کړئ مثال ددې لکه :﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ كُلُوا۟ مِمَّا فِى ٱلْأَرْضِ حَلَـٰلًا طَيِّبًا وَلَا تَتَّبِعُوا۟ خُطُوَٰتِ ٱلشَّيْطَـٰنِ ۚ إِنَّهُۥ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ ﴾ (بقره ۱۶۸)

یا لکه : «احلت لکم بهیمة الانعام» (مائده ۱) یا لکه : ﴿ مَا جَعَلَ ٱللَّهُ مِنۢ بَحِيرَةٍ وَلَا سَآئِبَةٍ وَلَا وَصِيلَةٍ وَلَا حَامٍ ﴾ (مائده : ۱۰۳)

دویم نفی او رد د نذر لغیر الله یعنی نذرلغیر الله حرام دي بلکه اشد حرام دي دا مه کوئ لکه : «و ما اهل به لغیر الله» (بقره : )

دریم تحریمات الله یعنې هغه شې چه الله تعالی حرام کړې وی د هغې د حرمت عقیده لرل او هغې ته حلال مه وائئ ! لکه : «غیر محلی الصید و انتم حرم» (مائده۱).

څلورم نذر لله یعنی نذر لله صحیح دې او دا قائم ولرئ لکه : ﴿جَعَلَ ٱللَّهُ ٱلْكَعْبَةَ ٱلْبَيْتَ ٱلْحَرَامَ قِيَـٰمًا لِّلنَّاسِ وَٱلشَّهْرَ ٱلْحَرَامَ وَٱلْهَدْىَ وَٱلْقَلَـٰٓئِدَ ۚ ﴾ (مائده ۹۷)

حاصل دا چه تحریمات غیر الله یا تحریمات العباد، یا تحریمات الشیاطین باطل دی دا ختم کړئ او تحریمات الله صحیح دی ددې حرمت باقی وساتئ او نذر لغیر الله، باطل دې هغه مه کوئ ! او نذر لله صحیح دې ایفاء ئی کوئ ! ( دا تفصیل ددې مسئلې دې).

# مَسْئَلَه د اِلٰه

## د اِله معنٰی او ددې مَسئلې تعبيرات

د قرآن کريم ډيره اهمه موضوع او مرکزی مضمون دادې چه نشته دې بل څوک اله غير د الله نه او ددې لپاره ډير عنوانات او تعبيرات ذکر کيږی : (۱) «لا اله الا الله». لکه دا په سورة محمد آيت ۱۹ او صافات ۳۵ کښې دی (۲) «لا اله الا انا»- سورة نحل ۲ طه ۱۴ انبياء ۲۵ ، (۳) ، «لا اله الا انت» سورة الانبياء ۸۷ ، (۴) ، «لا اله الا هو»، آية الکرسی ، آل عمران ۵ ، (۵) ، «لا اله الا الذی» يونس ۹۰ ، (۶) ، «مامن اله الا الله» ، آل عمران ۶۲ ، (۷)، «و ما من اله الا اله واحد» . مائده ۷۲

(۸) ، «مالکم من اله غيره» -اعراف ۵۹ ، (۹) «ءاِله مع الله»، نمل ۶۰ ، (۱۰)، «من اله غيرالله»، انعام ۴۶ (۱۱) ، «والهکم اله واحد» بقره (۱۲)، «انما هو اله واحد» -انعام ۱۰۹ -(۱۳)، «انما الهکم الله الذی» ، طه.

د «اله» لغوی معنی ده مطلق معبود -د (اَلَهَ يَاْ لَهُ) نه ماخوذ دې په معنی د «عبد يعبد» سره نو اِله په معنی د معبود سره دې، او په عرف د شرع کښې مستعمل دې په دوه معاينو کښې (۱) يو معبود بر حق لکه پدې تير شوی آيتونو کښې. (۲) او بل اطلاق ئی په موصوف د هغه صفاتو کيږی چه هغه صفات د خواصو او د لوازمو د الوهية نه وی، لکه څرنګه چه په شرح المقاصد کښې د توحيد معنی داسې کړيده : «اعتقاد عدم الشريک فی الالوهية و خواصها» مثال ددې لکه په سورة نمل کښې دی : ﴿أَمَّنْ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَأَنزَلَ لَكُم مِّنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَنبَتْنَا بِهِ حَدَائِقَ ذَاتَ بَهْجَةٍ مَّا كَانَ لَكُمْ أَن تُنبِتُوا شَجَرَهَا﴾.

پدې آيت کښې استفسار دې چه پيدا کوونکې د آسمانونو، زمکو، او د آسمان نه د باران ورونکې او د تازه باغونو پيدا کوونکې څوک دې؟ نو بيا فرمائی : ﴿أَإِلَٰهٌ مَّعَ اللَّهِ﴾ نو معلومه شوه چه د اله نه آسمانونه زمکې پيدا کوونکې او بارنونه ورونکې مراد دې چه دا د لوازمو د الوهية نه دی. دغه شان بيا ذکر دې : ﴿أَمَّن جَعَلَ الْأَرْضَ قَرَارًا وَجَعَلَ خِلَالَهَا أَنْهَارًا وَجَعَلَ لَهَا رَوَاسِيَ وَجَعَلَ بَيْنَ الْبَحْرَيْنِ حَاجِزًا﴾ نو پدې پسی بيا فرمائی : ﴿أَإِلَٰهٌ مَّعَ اللَّهِ﴾ نو معلومه شوه چه د اله نه مراد دادې چه بل څوک زمکی لره قرار ګرزونکې او پدې کښې نهرونه جاری کوونکې او پدې کښې

غرونه پیدا کوونکې او د دریابونو په مینځ کښ پرده جوړونکې نشته دې.

دغه شان بیا فرمائی - ﴿أَمَّن يُجِيبُ الْمُضْطَرَّ إِذَا دَعَاهُ وَيَكْشِفُ السُّوءَ وَيَجْعَلُكُمْ خُلَفَاءَ الْأَرْضِ﴾

پدې پسی فرمائی ﴿أَإِلَٰهٌ مَّعَ اللَّهِ﴾ نو معلومه شوه چه د اله نه مراد هغه ذات دې چه دعاګانې قبلوی اومشکلات لرې کوی، دغسې روستو دوه آیاتونو کښې د دغه استفسار نه بعد فرمائی چه ﴿أَإِلَٰهٌ مَّعَ اللَّهِ﴾ نو د اله معنی دلته دا شوه چه رهنمائی کوونکې په ظلمات البر والبحر کښې او هواګانې رالیږونکې مخکښې د باران نه او اول پیدا کوونکې د مخلوق او دوباره پیدا کوونکې د مخلوق، او رزق ورکونکې د آسمان او زمکې نه، او ددې نه بعد بطور تعلیل ذکر دې چه ﴿قُل لَّا يَعْلَمُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ الْغَيْبَ إِلَّا اللَّهُ﴾ نو معلومه شوه چه اله به هغه ذات وی چه عالم الغیب وی. او د لوازمو د الوهیة نه دغه صفات مذکوره دی.

ددې وجه نه حضرة الشیخ الاستاذ المحترم د «لا اله» ترجمه داسې کوی چه نشته کار ساز، حاجت روا، مشکل کشا، متصرف فی الامور، خالق، مالک، عالم الغیب، «الا الله» مگر صرف الله دې.

وجه داده چه مشرکینو چه خپل معبودان د الله جل جلاله سره شریک گرزول نو په ذات کښې ئی شریک نه گرزول بلکه په صفاتو د الوهیة کښې ئی شریک گرزول او په ټولو صفاتو کښې ئی هم شریک نه گرزول.

## مُشرکین د څه قائل وو

(۱) مشرکین د الله د وجود قائل وو - (۲)- په مندرجه ذیل صفاتو کښې ئی د الله جل شانه سره څوک شریک نه منل: (۱) د آسمانونو او د زمکی مالک. (۲) نمر او سپوږمئ لره چلونکې. (۳) په هرشی غالب (۴) لوئی علم والا (۵) د آسمانونو نه د خپلی مرضئ موافق باران ورول (۶) د اوبو نه مړه زمکه تازه کول (۷) هر شي لره پناه ورکول - دا امور معلومیږی د قرآن نه لکه په سورة عنکبوت ع ۲ ص ۲۱ او حم زخرف ع۱ او سورة یونس ۳۱ وغیره کښې

اختلاف د مشرکینو د نبی پاک صلی الله علیه و آله وسلم سره په دې کښې وؤ چه دوئ خپلو معبودانو ته آلهه وئیل او هغه ئی هم حاجت روا، مشکل کشا گڼړل او د هغوئ په نامه به ئی نذرونه کول هغوئ ته به ئی سجدې کولې او د هغوئ نه به ئی مدد غوختلو.

او هم لدې وجه نه ئی نبی کریم صلی الله علیه وآله وسلم ته قسما قسم تکلیفونه رسول او د ساحر، مجنون، کذاب الزامونه ئی پرې لګول، اودارنګه خلاف ئی د نبی صلی الله علیه و آله وسلم سره په حشر جسمانی کښې وو، اوپه اعمال صالحو کښې ئی ورسره خلاف نه وو لکه

﴿أَجَعَلْتُمْ سِقَايَةَ ٱلْحَآجِّ وَعِمَارَةَ ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ «توبه ۱۹»

وَمَا كَانَ صَلَاتُهُمْ عِندَ ٱلْبَيْتِ إِلَّا مُكَآءً وَتَصْدِيَةً «انفال ۳۵»﴾

عمر رضی الله عنه په جاهلیت کښې د اعتکاف په مسجد حرام کښې نذر کړې وو. بخاری ۹۹۱ عثمان رضی الله عنه اوفرمائل : «ما زنیت فی الجاهلیة»، ثمامه رضی الله عنه په جاهلیت کښې :عمرې نیت کړې وو. مشرکینو به حج، عمره کول. عرفات له به تلل.

## څوک څوک معبُودان ګرزولې شویدي

«۱» ملائک : «﴿ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ يَدْعُونَ يَبْتَغُونَ ﴾ ـ الایه» «بنی اسرائیل ۵۷».

«۲» انبیاء کرام : «﴿وَإِذْ قَالَ ٱللَّهُ يَٰعِيسَى ٱبْنَ مَرْيَمَ ﴾ ـ الایة» ، «مائده ۱۱۲»

«۳» مولیان ، «۴» اوپیران : «﴿ ٱتَّخَذُوٓاْ أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَٰنَهُمْ ﴾ ـ الایه» ، «توبه ۳۱»

«۵» نمر : «﴿ وَجَدتُّهَا وَقَوْمَهَا يَسْجُدُونَ لِلشَّمْسِ مِن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ ـ الایه» «نمل ۲۴»

«۶» ستوری : «﴿فَلَمَّا جَنَّ عَلَيْهِ ٱلَّيْلُ رَءَا كَوْكَبًا قَالَ هَٰذَا رَبِّى ﴾ ـ الایه » «انعام ۷۲».

«۷» جنات : «﴿وَأَنَّهُۥ كَانَ رِجَالٌ مِّنَ ٱلْإِنسِ يَعُوذُونَ بِرِجَالٍ مِّنَ ٱلْجِنِّ ﴾ ـ الایه »، «جن ۲»

«۸» شیطان : «﴿بَلْ كَانُواْ يَعْبُدُونَ ٱلْجِنَّ ﴾ ـ الایه» ، «سبا ۴۱».

«۹» د انبیاؤ قبرونه او د کومې ونې لاندې چه دوی ناست وؤ .

وفی الحدیث : «لعن الله الیهود والنصاری اتخذوا قبور انبیائهم مساجد، اذامات فیهم رجل صالح بنوا علی قبره قبة»

و قال علیه الصلوة والسلام : «اللهم لا تجعل قبری و ثنا يُعبد» ، او عمر فاروق رضی الله عنه شجرة الرضوان څکه پریکړه چه عبادت ئی شروع نشی ، د بخاری شریف په روایت کښ ۷۳۲ دی ـ چه «وَد» وغیره اسماء د رجال صالحینو دی د قوم د نوح علیه الصلوة والسلام

## قانون د لفظ د اله

چرته چه په قرآن کښې نفی د (اله غیر الله) و شی نو هلته به نفی د الوهیة د هر غیر الله وی خواه ولی وی او که نبی وی او که فرشتې وی او که بل څوک وی، او دارنګه مراد به نفی د الوهیة او معبودیت او د لوازمو د الوهیة وی چه هغه کار سازیت، مشکل کشا، حاجت روا او غیر ذالک دی الوهیة او صفات د الوهیة لازم ملزوم دی نو چه یو نفی کیږی نو بل به هم نفی کیږی.

## رسالت

زده کړه دا خبره چه اثبات د رسالت د جناب محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم په قرآن کښې په مختلفو وجوهو سره کیږی: اول ایحاء: یعنی وحی کول د الله جل جلاله لکه: ﴿ إِنَّآ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ كَمَآ أَوْحَيْنَآ إِلَىٰ نُوحٍ وَٱلنَّبِيِّـۧنَ مِنۢ بَعْدِهِۦ ۚ ﴾ (نساء: ۱۲۳)

یا لکه: ((نحن نقص علیک احسن القصص بما اوحینا الیک هذا القرآن))، (یوسف: ۲)

دویم انباء او اخبار صادق عن الامور الماضیة لکه ﴿ ذَٰلِكَ مِنْ أَنۢبَآءِ ٱلْغَيْبِ نُوحِيهِ إِلَيْكَ ۚ وَمَا كُنتَ لَدَيْهِمْ إِذْ يُلْقُونَ أَقْلَـٰمَهُمْ أَيُّهُمْ يَكْفُلُ مَرْيَمَ وَمَا كُنتَ لَدَيْهِمْ إِذْ يَخْتَصِمُونَ ﴾

(آل عمران ۴۴)، ((**ذلک من انباء الغیب نوحیه الیک وماکنت لدیهم اذا اجمعوا امرهم و هم یمکرون**))، (یوسف: ۱۰۲)

دریم انباء عن الامور الاتیة وهی فی الاحادیث کثیرة لا تحصی ومثاله فی القرآن: ((فان لم تفعلوا ولن تفعوا فاتقوالنار التی وقودها الناس ـــــ الایة))، (بقره ۲۴)

څلورم: وصف دې په امی سره یعنی نبی علیه السلام با وجود ددې چه امی دې، نه ئی خط لیکلې دې او نه ئی لوستلې دې او نه ئی انشاء د شعر کړې ده خو ټول فصحا او بلغاء ئی لاجواب کړیدی کما قال تعالی: ﴿ وَمَا كُنتَ تَتْلُوا۟ مِن قَبْلِهِۦ مِن كِتَـٰبٍ وَلَا تَخُطُّهُۥ بِيَمِينِكَ ۖ إِذًا لَّٱرْتَابَ ٱلْمُبْطِلُونَ ﴾ (عنکبوت ۴۸)، قال تعالی: ((وما علمناه الشعر وماینبغی له ان هو الاذکر و قرآن مبین)) (یس: ۶۹)

وقال تعالی ﴿ ٱلَّذِينَ يَتَّبِعُونَ ٱلرَّسُولَ ٱلنَّبِيَّ ٱلْأُمِّيَّ ٱلَّذِي يَجِدُونَهُۥ مَكْتُوبًا عِندَهُمْ فِي ٱلتَّوْرَىٰةِ وَٱلْإِنجِيلِ ﴾ (الاعراف ۱۵۷)

## په رسالت باندې شُبهات او دهغې جوابونه

منکرین د رسالت د جناب محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم معاندانه سوالات او شبهات ذکر کوی او دا کثیر دی، بعضې د شبهاتو د دوئ نه چه دوئ به بار بار په کثرت سره ذکر کوله هغه دا وه چه ستا رسالت ځکه نه منو چه ته بشرېې او بشر رسول نوی، شاه ولی الله رحمه الله فرمائی چه د دوئ په زعم کښې دا خبره راسخه وه چه رسول به د مرسِل (لیگونکی) سره مجانس او مشابه وی نه د مرسَل الیهم سره او الله جل جلاله په جواب کښې فرمائی : چه تمام انبیاء چه تیر شویدی هغوئ بشر وو او فرق ئی د نورو عامو انسانو او بشر سره صرف په وحی سره وو لکه چه فرمایی

﴿وَمَآ أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ إِلَّا رِجَالًا نُّوحِيٓ إِلَيْهِمْ ۖ فَسْـَٔلُوٓا۟ أَهْلَ ٱلذِّكْرِ إِن كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ۝ ﴾ (انبیاء : ۷)

او مرسَل د مرسَل الیهم سره مماثل او مشابه پکار دې نه د مُرسِل سره کما قال تعالی : ﴿ قُل لَّوْ كَانَ فِي ٱلْأَرْضِ مَلَٰٓئِكَةٌ يَمْشُونَ مُطْمَئِنِّينَ لَنَزَّلْنَا عَلَيْهِم مِّنَ ٱلسَّمَآءِ مَلَكًا رَّسُولًا ﴾ (بنی اسرائیل ۹۵)

او بعضې ددغه شبهاتو نه مطالبه وه د اخبار د هغه امورو غیبی نه چه علم د هغوئ خاص دې په الله تعالی پورې لکه علم د قیامت ﴿ يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلسَّاعَةِ أَيَّانَ مُرْسَىٰهَا ۖ قُلْ إِنَّمَا عِلْمُهَا عِندَ رَبِّي ۖ لَا يُجَلِّيهَا لِوَقْتِهَآ إِلَّا هُوَ ۚ ثَقُلَتْ فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۚ لَا تَأْتِيكُمْ إِلَّا بَغْتَةً ۗ يَسْـَٔلُونَكَ كَأَنَّكَ حَفِيٌّ عَنْهَا ۖ قُلْ إِنَّمَا عِلْمُهَا عِندَ ٱللَّهِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ ٱلنَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ (اعراف : ۱۸۷) ، «یسئلک الناس عن الساعة قل انما علمها عند الله» ، (احزاب ۲۲)

او بعضې ددغه شبهاتو نه مطالبه وه د معجزاتو مقترحو یعنی فرمایشی معجزی کما قال تعالی

﴿ وَقَالُواْ لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ ءَايَةٌ مِّن رَّبِّهِۦ ۚ قُلْ إِنَّ ٱللَّهَ قَادِرٌ عَلَىٰٓ أَن يُنَزِّلَ ءَايَةً وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴾ (انعام: ٣٧)

وقال تعالی: ﴿ وَيَقُولُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ لَوْلَآ أُنزِلَ عَلَيْهِ ءَايَةٌ مِّن رَّبِّهِۦ ۗ قُلْ إِنَّ ٱللَّهَ يُضِلُّ مَن يَشَآءُ وَيَهْدِىٓ إِلَيْهِ مَنْ أَنَابَ ﴾ (رعد ٢٧)

او بعضې ددغه شبهاتو نه دا وه چه د دوئ زعم فاسد وو چه ستا نه نور غوره خلق هم شته نو هغوی ته نبوت ولې نه ملاویدو؟ ﴿ أَءُنزِلَ عَلَيْهِ ٱلذِّكْرُ مِنۢ بَيْنِنَا ۚ بَلْ هُمْ فِى شَكٍّ مِّن ذِكْرِى ۖ بَل لَّمَّا يَذُوقُواْ عَذَابِ ﴾ (ص: ٨)

وقال تعالی: ﴿ وَقَالُواْ لَوْلَا نُزِّلَ هَٰذَا ٱلْقُرْءَانُ عَلَىٰ رَجُلٍ مِّنَ ٱلْقَرْيَتَيْنِ عَظِيمٍ ﴾، وقال تعالی: ﴿ أَهُمْ يَقْسِمُونَ رَحْمَتَ رَبِّكَ ۚ ﴾، (حم زخرف: ٣١ – ٣٢)، وقال تعالی ﴿ أَءُلْقِىَ ٱلذِّكْرُ عَلَيْهِ مِنۢ بَيْنِنَا بَلْ هُوَ كَذَّابٌ أَشِرٌ ﴾، وقال تعالی: ﴿ سَيَعْلَمُونَ غَدًا مَّنِ ٱلْكَذَّابُ ٱلْأَشِرُ ﴾ (قمر: ٢٦)

او بعضې ددغه شبهاتو نه داوه کچرې ته پیغمبر وې نو ستا به ازواج نه وې.

قال تعالی: ﴿ وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّن قَبْلِكَ وَجَعَلْنَا لَهُمْ أَزْوَٰجًا وَذُرِّيَّةً ۚ ﴾ (رعد: ٣٨)

بعضې ددغه شبهاتو نه دا وه چه کچرې ته نبی یې نو زمونږ لپاره دا کارونه وکړه!

﴿وَقَالُواْ لَن نُّؤْمِنَ لَكَ حَتَّىٰ تَفْجُرَ لَنَا مِنَ ٱلْأَرْضِ يَنۢبُوعًا أَوْ تَكُونَ لَكَ جَنَّةٌ مِّن نَّخِيلٍ وَعِنَبٍ فَتُفَجِّرَ ٱلْأَنْهَٰرَ خِلَٰلَهَا تَفْجِيرًا أَوْ تُسْقِطَ ٱلسَّمَآءَ كَمَا زَعَمْتَ عَلَيْنَا كِسَفًا أَوْ تَأْتِىَ بِٱللَّهِ وَٱلْمَلَٰٓئِكَةِ قَبِيلًا أَوْ يَكُونَ لَكَ بَيْتٌ مِّن زُخْرُفٍ أَوْ تَرْقَىٰ فِى ٱلسَّمَآءِ وَلَن نُّؤْمِنَ لِرُقِيِّكَ حَتَّىٰ تُنَزِّلَ عَلَيْنَا كِتَٰبًا نَّقْرَؤُهُۥ ۗ قُلْ سُبْحَانَ رَبِّى هَلْ كُنتُ إِلَّا بَشَرًا رَّسُولًا ﴾ (بنی اسرائیل: ٩٠ – ٩٤)، ددې نه علاوه متعدد شبهادت دی چه مذکور دی په مواضعو متعددو کښې سره د جوابونو نه.

# مسئله د قیامت

دا اصل ثالث دې د اصول ثلاثو نه او د ضروریاتو ددین نه دې او ایمان په قیامت مدار د نجات دې او سبب دې لپاره د احسن صفاتو او اعمالو او انکار د قیامت سبب دې لپاره د هلاکت او مصائبو او اساس دې لپاره د قبائحو، تعبیر د قیامت نه په قرآن کښې په ۳۵ اسماؤ سره شوې دې یوم الدین - الاخرة- الیوم الآخر - یوم القیمة - ساعة - یوم کبیر - یوم عظیم - یوم مشهود - یوم الحسرة - یوم البعث - یوم الفتح - یوم الفصل - یوم الحساب - یوم التلاق- الازفة - یوم التناد - یوم الجمع - یوم الیم - یوم الوعید - یوم الخلود - یوم الخروج - یوم التغابن - الواقعه - الحاقة - القارعة- یوم عسیر - یوم عبوس- یوم ثقیل - الیوم الحق - الطامة الکبری- الصاخة- الغاشیة - الخافضة - الرافعة - لقاء الله.

پس زده کړه دا خبره چه باری تعالی په قرآن کښې اثبات د قیامت کوی په مختلفو وجوهاتو سره اول په اثبات د علم او قدرت سره لپاره د خپل ذات کقوله تعالی:

﴿قَدْ عَلِمْنَا مَا تَنقُصُ ٱلْأَرْضُ مِنْهُمْ ۖ وَعِندَنَا كِتَٰبٌ حَفِيظٌۢ﴾ ... ﴿أَفَلَمْ يَنظُرُوٓا۟ إِلَى ٱلسَّمَآءِ فَوْقَهُمْ كَيْفَ بَنَيْنَٰهَا وَزَيَّنَّٰهَا وَمَا لَهَا مِن فُرُوجٍ﴾ (ق ۴ - ۶)

(۲) دویم ژوند په اول ژوند قیاس کول «افعیینا بالخلق الاول» (ق ۱۵) ، «قل یحییها الذی انشاها اول مرة و هو بکل خلق علیم» (یس ۷۹)

(۳) د بعث بعد الموت قیاس کول په زمکه باندې د شنې گیاه پیدا کیدلو باندې.

﴿وَنَزَّلْنَا مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً مُّبَٰرَكًا فَأَنۢبَتْنَا بِهِۦ جَنَّٰتٍ وَحَبَّ ٱلْحَصِيدِ ۝ وَٱلنَّخْلَ بَاسِقَٰتٍ لَّهَا طَلْعٌ نَّضِيدٌ ۝ رِّزْقًا لِّلْعِبَادِ ۖ وَأَحْيَيْنَا بِهِۦ بَلْدَةً مَّيْتًا ۚ كَذَٰلِكَ ٱلْخُرُوجُ ۝﴾ (ق ۹- ۱۰، ۱۱)

(۴) قیاس کول دبعث بعد الموت په خوب او بیدارکیدلو دخوب نه: ﴿وَهُوَ ٱلَّذِى يَتَوَفَّىٰكُم بِٱلَّيْلِ وَيَعْلَمُ مَا جَرَحْتُم بِٱلنَّهَارِ ثُمَّ يَبْعَثُكُمْ فِيهِ لِيُقْضَىٰٓ أَجَلٌ مُّسَمًّى﴾ (انعام ۶۰)

﴿ٱللَّهُ يَتَوَفَّى ٱلْأَنفُسَ حِينَ مَوْتِهَا وَٱلَّتِى لَمْ تَمُتْ فِى مَنَامِهَا ۖ فَيُمْسِكُ ٱلَّتِى قَضَىٰ عَلَيْهَا ٱلْمَوْتَ وَيُرْسِلُ ٱلْأُخْرَىٰٓ إِلَىٰٓ أَجَلٍ مُّسَمًّى ۚ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَٰتٍ لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ﴾ (زمر ۴۲)

(۵) قیاس کول د بعث بعد الموت د دنیا په بعضې نا آشنا واقعاتو چه په هغې کې پس د مره کولو نه د بیا ژوندی کولو ذکر دې لکه واقعه د عزیر علیه السلام (بقره : ۲۵۹) یا پس د طویل خوب نه د بیدارولو ذکر دې لکه واقعه د اصحاب کهف.

(۲) اثبات د بعث : په قسم سره په خپل ذات : «قل ای وربی انه لحق وما انتم بمعجزین» (یونس ۵۳)، «قل بلی و ربی لتبعثن ثم لتنبئن بما عملتم و ذلک علی الله یسیر» ، (تغابن ۷)

(۴) **تخویف** :

دوه قسمه دې یو تخویف دنیوی چه د هغې نه شاه ولی الله رحمه الله تعبیر کوی په (تذکیر بایام الله) سره او بل تخویف اخروی دې چه د هغې نه شاه ولی الله رحمه الله تعبیر کوی په تذکیر بما بعد الموت سره.

مثال د تخویف دنیوی لکه :﴿ وَكَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّن قَرْنٍ هَلْ تُحِسُّ مِنْهُم مِّنْ أَحَدٍ أَوْ تَسْمَعُ لَهُمْ رِكْزًا ﴾ (مریم : ۹۸) مثال د خویف اخروی لکه : «ونسوق المجرمین الی جهنم وردا» ، (مریم : ۸۶)

(۵) **بشارت** :

دا هم دوه قسمه دې یو دنیوی دې لکه : «ولینصرن الله من ینصره»، یا لکه : «انا لننصر رسلنا والذین آمنوا فی الحیوة الدنیا» .

اوبل أخروی دی لکه : «ان الذین آمنوا و عملوا الصالحات کانت لهم جنات الفردوس نزولا»، شاه ولی الله صاحب رحمه الله د بشارت نه تعبیر کوی په تذکیر بآلاء الله سره.

(۲) **احکام** :

دا درې قسمه دی ، یو سیاسة المدینة یعنې هغه احکام چه تعلق لری د سلاطینو د حکمرانی سره لکه قصاص، دیة- حدود وغیرها شو ، بل تدبیر المنزل لکه احکام متعلقه د حقوقو د زوجیة سره، لکه : مهر . نفقه، سکنی، طلاق، عدت وغیرها شو ، دې دواړو قسمونو ته امور انتظامیه وئیلې شی دریم قسم : تهذیب الاخلاق دی لکه : صوم، صلوة ، زکوة، حج شو او دیته امور مصلحه وئیلې شی.

(۷) **جهاد** : یعنې د اعلاء کلمة الله لپاره خپل ځان قربانول ، جهاد په دوه قسمه دې ، یو دفاعی او بل اقدامی. دواړه قسمونه د قرآن نه ثابت دی .

(٨) **انفاق**  فی سبیل الله یعنی د اعلاء کلمة الله لپاره خپل مال قربانول ، انفاق هم دوه قسمه دي یو واجبی دي لکه زکوة ، مهر او نفقه د زوجی وغیرها　بل غیر واجبی دي

## بقیه مباحث

(١) **شکوی**  یعنی منکرین داعی د حق لره عاجز کول او ذلیل کول غواړی چه خلق دده اتباع پرېږدی. پدې باندې شکایت ذکر کیږی. د شکوی په اول کښې لفظ د **قال** او **قالوا** وی، او جواب د شکوی کله مذکور وی او کله نوی.

(٢) **زجر** : یعنې د منکرینو په ناجائز قول یا عمل باندې زور نه ورکول ، کله داعی حق ته د خلاف اولی فعل په ارتکاب باندې هم زورنه ذکر کیږی لکه : ﴿عَفَا ٱللَّهُ عَنكَ لِمَ أَذِنتَ لَهُمْ حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَكَ ٱلَّذِينَ صَدَقُوا۟ وَتَعْلَمَ ٱلْكَٰذِبِينَ﴾ (توبه).

(٣) **تسلی** : داعی د حق ته چه د منکرینو د طرفنه تکلیفونه رسیږی په هغې باندې تسلی ورکول چه غم زائل شی او تکلیفونه آسان شی لکه : «قد نعلم انه لیحزنک الذی یقولون فانهم لایکذبونک ولکن الظالمین بآیات الله یجحدون» (انعام ٣٣).

(٤) **مثال** : کله باری تعالی د وضاحت د مسئلې لپاره مثال ذکر کوی لکه : ﴿مَثَلُ ٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُوا۟ مِن دُونِ ٱللَّهِ أَوْلِيَآءَ كَمَثَلِ ٱلْعَنكَبُوتِ ٱتَّخَذَتْ بَيْتًا ۖ وَإِنَّ أَوْهَنَ ٱلْبُيُوتِ لَبَيْتُ ٱلْعَنكَبُوتِ ۖ﴾ .

(٥) **تزهید من الدنیا** : یعنې د دنیا سره بی رغبتی بیانول، چونکه محبت ددنیا سره سبب دې لپاره د هر معصیت نو ددې وجه نه کله باری تعالی تزهید من الدنیا ذکر کوی لکه : ﴿بَلْ تُؤْثِرُونَ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا ﴿١٦﴾ وَٱلْـَٔاخِرَةُ خَيْرٌ وَأَبْقَىٰٓ ﴿١٧﴾﴾ ، یا لکه : ﴿أَلْهَىٰكُمُ ٱلتَّكَاثُرُ ﴿١﴾ حَتَّىٰ زُرْتُمُ ٱلْمَقَابِرَ ﴿٢﴾ كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴿٣﴾ ثُمَّ كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴿٤﴾ كَلَّا لَوْ تَعْلَمُونَ عِلْمَ ٱلْيَقِينِ ﴿٥﴾﴾ - الایه.

(٦) **امور دفعیه د عذاب** : کله باری تعالی د عذاب ذکر وکړی نو د عذاب د دفعیه لپاره امور ثلاثه ذکر کوی (بیماری او علاج د بیماری) دوه امور سلبیه یو دا چه شرک مه کوئ، بل دا چه ظلم مه کوئ! یو امر ایجابی چه احسان دې . لکه : «ان الله یامر بالعدل والاحسان وایتاء ذی القربی وینهی عن الفحشاء والمنکر والبغی یعظکم لعلکم تذکرون» ، نحل ٩٠ -

(٧) **طریقه برای اصلاح منکرین** : کله باری تعالی د اصلاح د منکرینو لپاره درې طریقې ذکر کوی (١) تقلیل دنیا ، (٢) عذاب دنیا ، (٣) عذاب عقبی .

# سورة الفاتحة

سورة الفاتحة مكية وهى سبع آيات : نزلت بعد المدثر رقمها (۱) تسلسلها حسب النزول ۵)

أَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ

پناه نیسم په الله سره د شیطان رټلی شوی نه

| آیاتها | | رکوعها |
|---|---|---|
| | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ [1] | |
| ۷ | خاص پهٔ نوم دالله سره چې بېحده مهربان اوډېر رحم کوونکي دې شروع کوم [2] | ۱ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| اَلْحَمْدُ | لِلّٰهِ | رَبِّ | الْعٰلَمِيْنَ ① | الرَّحْمٰنِ |

ټول صفتونه [3] (دأولوهيت دخدائي توب) خاص الله لره دي [4] چې پالونکې دټولومخلوقاتودي [5] چې بېحده مهربان

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| الرَّحِيْمِ ② | مٰلِكِ | يَوْمِ | الدِّيْنِ ③ | اِيَّاكَ | نَعْبُدُ |

اوډېرزيات رحم کوونکې دې [6] مالک اوواکدار دهرڅه، دې په ورځ دقيامت کښې [7] خاص تالره عبادت کوؤ مونږ [8]

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاِيَّاكَ | نَسْتَعِيْنُ ④ | اِهْدِنَا | الصِّرَاطَ | الْمُسْتَقِيْمَ ⑤ | صِرَاطَ | الَّذِيْنَ | اَنْعَمْتَ |

اوخاص ستانه مدد غواړومونږ [9] روان کړه مونږپه سمه لاره [10] لاردهغه خلقوچې انعام(اوسود)کړيدې تا

1 - «بسم الله ای قولوا بسم الله» الله حصه اول اشاره ده دلفظ دالله نهٔ . وصف مشهور مراد دې يعنی خالق.

2 - «الرحمن الرحیم» دریمې حصې ته اشاره ده صراحة او دويمې ته ضمنا.

3 - «الحمدلله»، ای قولوا الحمد لله، صفات دخدائې توب مراد دی.

4 - «لله» حصه اول تهٔ اشاره ده.

5 - «رب العلمين» حصه ثانی ته اشاره ده.

6 - «الرحمن الرحيم» دریمې حصې ته اشاره ده.

7 - «مالک یوم الدين» څلورمې حصې ته اشاره.

8 - «اياک نعبد» د سورة زمر دعوې ته اشاره ده.

9 - «اياک نستعين» دحوامیم خلاصی تهٔ اشاره ده.

10 - «الصراط المستقيم» یاپوره شریعت مراد دې یا خاص توحید

عَلَيْهِمْ ۙ غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ وَ لَا الضَّآلِّيْنَ ۝

په هغوئ باندې [1]. چې په هغوئ نه ستا غضب شوې دې [2] او نه هغوئ ګمراه دی [3]

**تشریح** :

لفظ د سورة یا مهموز دې ماخوذ دې د سُؤر نه «و هو ما بقی من الشراب فی الإناء» او سورة هم یوه قطعه د قرآن ده - یا غیر مهموز دې ماخوذ دې د سور البلد نه او سورت محیط وی په آیاتونو لکه چه سور البلد محیط وی په بیوتو -

یا د سورة لغوی معنی ده (المنزلة الرفعیة) او سورت چونکه جزء د کلام الله دې نو مرتفع دې سان او منزله دده.

او سورة په اصطلاح کښې : «قرآن یشتمل علی آیِ ذی فاتحة و خاتمة و اقلها ثلاث آیات» یعنی یوه حصه د قرآن مجید ده چه مشتمل وی په آیاتونو - چه اول اخرئ معلوم وی (یعنی توقیفا) او کم از کم درې آیتونو وی-

«و قیل السورة الطائفة المترجمة توقیفاً» ای المسماة باسم خاص بتوقیف من النبی صلی الله علیه وسلم (اتقان) یعنی سورة یوه حصه د قرآن ده چه مسمی وی په اسم خاص سره په توقیف سره د نبی علیه الصلوة والسلام نه - د سورتونو تقسیم او ترتیب پخپله رسول الله صلی الله علیه وسلم کړیدې او د هغه د حکم مطابق د سورة ابتداء او اختتام دی، او کل سورتونه (۱۱۴) دی، چه ۸۶ مکی دی او ۲۸ مدنی دی.

آیت په لغت کښې علامې ته وائی او په اصطلاح کښې «قرآن مرکب من جمل ولوتقدیراً، ذو مبدا ومقطع مندرج فی سورة» - وقیل فی حده : «طائفة من کلام الله علم اوله و آخره توقیفا»، «و قیل طائفة من القرآن منقطعة عما قبلها و ما بعدها» وجه تسمیه داده چه آیت علامه ده په صدق د نبی صلی الله علیه وسلم.

یا دا علامه ده په عجز «د متحدیٰ بها» باندې، یا دا علامه ده په انقطاع د ما قبل د مابعد نه.

1 - «الذین انعمت علیهم» ددې نه مراد یا څلور درجې دي یا څلور جماعتونه.
2 - «المغضوب علیهم» دې نه مراد هغه دي چې د مهر جباریت تحت راغلي دی.
3 - «ضالین» ددې نه مراد هغه دي چې د مهر جباریت تحت نه دي راغلی او صرف یهود او نصاری نه دي مراد.

علامه سیوطی رحمه الله په الاتقان کښې د ابن عباس رضی الله عنهما روایت نقل کړیدې چه کل آیتونه د قرآن مجید شپږ زره شپږ سوه شپاړس(۶۲۱۶) دی۔

دالانی رحمه الله وئیلی دی چه اجماع ده پدې چه کل آیتونه خو شپږ زره دی ۰. بیا اختلاف دې بعضې وائی چه زیات ندی په شپږ زرو، او بعضې وائی چه زائد په شپږ زرو باندی دوه سوه څلور دی یعنی کل آیتونه ۶۲۰۴ دی او بعض وائی چه ۶۲۱۴ دی بعض وائی چه ۶۲۱۹ بعض وائی چه ۶۲۲۵ او بعض وائی چه ۶۲۳۲ دی دا اخری عدد موافق دې د مصاحفو زمونږ سره - لیکن کوم چه مشهور عند الناس دی یعنی ۶۶۶۶ ددې صحت مونږ ته ندې معلوم او سبب د اختلاف په زیاتوالی او کموالی کښې اختلاف دې د قُراؤ چه د یو حد نه تر بل حد پورې په نزد د بعضو یو آیت دې مثلاً او په نزد د بعض آخرو دوه ایتونه دی مثلاً په فاتحه کښې د (صراط الذین انعمت علیهم) نه تر آخره پوری په نزد د بعضو یو آیت دې او په نزد د بعضو دوه آیاتونه دی۔

علامه سیوطی رحمه الله وائی چه په بعضې سورتونو کښې اختلاف ندې شوې اصلاً او د هغوئ عدد ۴۰ دې او په بعضو کښې اختلاف شوې دې تفصیلاً نه اجمالاً یعنی په مجموعی تعداد کښې اتفاق دې اوددې تعداد څلور دې، او په بعضې سورتونو کښې اختلاف شوې دې هم اجمالاً او هم تفصیلاً او ددې تعداد ۷۰ دې، مزید تفصیل په اتقان کښې ملاحظه کړئ!

## مکی او مدنی اصطلاحات

**مکیة** : منسوب دې مکه ته **مک الشئ ای اهلکه** او بکه هم ورته وائی : **بک الشئ ای خرقه و قیل البک الدق** : یعنی دا بلد خپل مخالف هلاکوی، د مکی او مدنی سورت په تعریف کښې درې اقوال دی : **اول تعریف** چه اصح او اشهر دې دادې چه مکی سورت هغه دې چه نازل وی قبل الهجرة ، او مدنی هغه دې چه نازل وی بعد الهجرة خواه که په مدینه کښې نازل وی یا مکه کښې په کال د فتح مکه نازل وی او که په حجة الوداع کښې نازل وی او که په سفر کښې نازل وی.

او **تعریف ثانی** : دادې چه مکی سورة هغه دې چه په مکه کښې نازل وی اگرچه بعد د هجرت نه وی او مدنی هغه دې چه په مدینه کښې نازل وی بناء پدې تعریف واسطه راغله په مابین د مکی سورة او مدنی سورة کښې څکه سفری آیتونه مکی هم نشو او مدنی هم نشو.

**دریم تعریف** دادې چه مکی هغه سورة دې چه پکښې خطاب اهل مکه ته وی اگر که نازل وی په مدینه کښې او مدنی هغه سورة دې چه پکښې خطاب اهل مدینه ته وی، مکی سورتونه ۸۲ دی او

مدني سورتونه اته ويشت (۲۸) دي.

## دَ مکي او مَدني سورتونو فرق

په لسو وجوهو سره فرق بيان شوې دې ليکن دا وجوه د فرق اکثري دي نه کلي، (۱) کلاً لفظ په مکي سورتونو کښې په پنځلس سورتونو کښې په نصف اخير کښې شته دې او په مدني سورتونو کښې **کلا** نشته (۲) آيات سجده په مکي سورتونو کښې شته او مدني سورتونو کښې نشته مگر صرف په سورة حج کښې ده (۳) د آدم على نبينا وعليه الصلوة والسلام او د ابليس عليه اللعنة قصه په مکي سورتونو کښې ده په مدني سورتونو کښې نشته **الافي سورة البقرة** (۴) په مکي سورتونو کښې د جهاد حکم نشته او مدني سورتونو کښې شته (۵) په مکي سورتونو کښې د منافقينو ذکر نشته او په سورة عنکبوت کښې چه ذکرد منافقينو دې نودغه څوآيتونه مدني دي او په مدني سورتونو کښې ذکرد منافقينو شته.

(۶) په مکي سورتونو کښې اکثر خطاب په «**يا ايها الناس**» سره دې او په مدني سورتونو کښې خطاب په «**يا ايهاالذين آمنوا**» سره دې ، (۷) په مکي سورتونو کښې صرف مضامين د توحيد ، رسالت، قيامت، صبر، تسلي دي، او په مدني کښې امور انتظاميه هم وي نه په مکي کښې - (۸) مکي سورتونه اکثر مختصر دي او مدني طويل دي (۹) په مکي سورتونو کښې مقابله د مشرکينو سره او په مدني کښې مقابله د منافقينو او اهل کتابو سره ده - (۱۰) په مکي سورتونو کښې استعارات، تمثيلات، تشبيهات دي، او د مدني سورتونو انداز بيان ساده دې.

## د مکي او مدني سورتونو تعداد

اقرب الى الصحة قول دادې چه دَ مدني سورتونو تعداد (۲۰) دې او دَ مکي سورتونو تعداد (۸۲) دې او د مختلف فيه سورتونو تعداد (۱۲) دې.

## مکي زندگي او د هغې ادوار

د نبي صلى الله عليه وسلم کل عمر ۶۳ کلونه دې څلوېښت کاله قبل د نبوت نه او ۲۳ کاله د نبوت عمر دې پدې کښې ۱۳ کاله د مکي او ۱۰ کاله د مديني عمر دې د مکي عمر په څلورو ادوارو تقسيم دې : دور اول : درې کاله خفيه دعوت، دور ثاني دوه کاله علانيه دعوت بغير د ايذاء د کفارونه ځکه چه غلبه د دعوت نه وه، دور ثالث: پنځه کاله دعوت سره د ايذاء د کفارونه

لیکن سره د مانع د ایذاء نه چه حیات د ابوطالب او خدیجه رضی الله عنها وو، څلورم دور: دعوت سره د ایذاء نه مع عدم المانع چه دا ډیر آزمایشي دور وو، او د مدینې زندګی شاهي دور وو، دویم او دریم دور ته دور متوسط هم وائی په دریم او څلورم دور کښې الله جل جلاله بنی کریم صلی الله علیه وسلم او اصحابو رضی الله عنهم ته تسلی او تلقین د صبر ورکوی.

## د سورت فاتحه اسماء ((نومونه))

علامه سیوطی رحمه الله په اتقان کښې د سورة فاتحه (۲۵) اسماء نقل کوی. منجمله د هغوی نه دادی: (۱) سورة الشفاء: قال علیه الصلوة والسلام: (فاتحة الکتاب شفاء من کل داء) (دارمی) (۲) سورة الکنز قال الله تعالی: (الفاتحة کنز من کنز عرشی) (مدارک) (۳-۴) فاتحة الکتاب و فاتحة القرآن لافتتاح القرآن بها - (۵) سورة الصلوة (لتوقف الصلوة علیها) و قیل لحدیث: (قسمت الصلوة بینی و بین عبدی) . (الحدیث) (۶) السبع المثانی: (لانها سبع ایات واما المثانی فاما من الثناء ای سبع آیات مشتملة علی الثناء و اما من التثنیة لانها تثنی فی الصلوة و اما من الثنیالان الله استثناها لهذه الامة)

(۷) سورة الرقیة (۸) الکافیة (لانها تکفی فی الصلوة عن غیرها ولایکفی غیرها عنها) (۹) الوافیة (۱۰) الشافیة لمامر (۱۱) ام القرآن (۱۲) القرآن (۱۳) اساس القرآن (۱۳) القران العظیم (۱۴) تعلیم المسئلة - وجهه ظاهر (۱۵) سورة الدعاء (۱۶) سورة المناجات.

وجه د تسمیه په ام القرآن او اساس القرآن او په القرآن العظیم سره داده چه کل هغه مضامین چه په ټول قرآن کښې بالتفصیل مذکور دی هغه په سورة فاتحه کښې اجمالا موجود دی، او دا سورت په هغه ټولو مضامینو مشتمل دی.

او ددې لپاره دوه تقریره دی: اول تقریر: حضرت مولانا شبیر احمد عثمانی صاحب فرمائی چه په قرآن مجید کښې کل شپږ مضامین دی (۱) توحید (۲) رسالت (۳) احکام (۴) قیامت (۵) دمنونکو احوال (بشارات) (۶) د نه منونکو احوال (تخویفات) او په سورت فاتحه کښې دا تمام مضامین بالاجمال موجود دی. (الحمدلله) نه د الرحمن الرحیم پوری توحید (مالک یوم الدین) کښې د قیامت ذکر او په (ایاک نعبد) او (اهدنا الصراط المستقیم) کښې د احکامو بیان دې او په (صراط الذین انعمت علیهم) کښې د رسالت بیان هم دې ځکه چه منعم علیهم څلور قسمه خلق دی چه یو قسم پکښې انبیاء هم دی او د منونکو د احوالو بیان هم دی چه په دوی هر قسم انعام د الله (ج) د طرفه شوې دې

او په «غیر المغضوب علیهم ولا الضالین» کښې د نه منونکو د احوالو بیان دې.

دویم تقریر: ځمونږ د شیوخو، شیخ مولانا حسین علی (رحمة الله علیه) فرمائی چه امام ربانی مجدد الف ثانی رحمه الله د حضرت علی رضی الله عنه نه نقل کوی چه د ټولو آسمانی علومو او د قرآن مجید خلاصه په سورت فاتحه کښې ده.

ځکه چه د مضامینو په اعتبار سره قرآن پاک څلور حصې دې او هره حصه په «الحمد لله» سره شروع ده. **او له حصه** د سورة فاتحه نه تر سورة انعام پورې ده، پدی کښې زیاده تر مضمون د خالقیة بیانیږی یعنې د هرې هرې ذرې د کائناتو خالق صرف الله جل جلاله دې.

**دویمه حصه** د سورة انعام نه تر سورة کهف پورې ده، پدې حصه کښې زیاده تر مضمون د ربوبیة بیانیږی یعنی د هرې هرې ذرې د کائناتو پرورش کونکې او حد کمال ته رسوونکې صرف الله جل جلاله دې. دریمه حصه د سورت کهف نه تر سورة سبا پورې ده، پدې حصه کښې مضمون تصرف و برکت بیانیږی یعنی په هر شئ کښ تصرف کونکی او برکات ورکونکی صرف الله جل جلاله دې.

او **څلورمه حصه** د سورة سبا نه تر آخر پوری ده او پدې حصه کښې مضمون قیامت او نفی د شفاعت بلا اذن بیانیږی یعنی قیامت حق دې او مشرکین چه پدې امید کښې دی چه د دوئ دا فرضی خدایان به د دوی سفارش کوی او نجات به ورته ورکوی، نو دانشته نو پس دا کل څلور واړه مضامین په سورة فاتحه کښې بیان شویدی، اولی حصې ته اشاره ده په «الحمدلله» سره ځکه چه د الله نه وصف مشهور مراد دې چه خالق دې او دویمه حصی ته اشاره ده په «رب العلمین» سره او دریمی حصی ته اشاره ده په «الرحمن الرحیم» سره.

اوڅلورمې حصی ته اشاره ده په «مالک یوم الدین» سره.اوپه «ایاک نعبدوایاک نستعین» کښې بیان دې د خلاصې د قرآن یعنې پدې کښې بیانیږی مضمون د سورة زمر او حوا میم او هغه دادی «فاعبدالله مخلصا له الدین» -- زمر ، «فادعوا الله مخلصین له الدین» ( حم مؤمن ع ۲ ) د سورة زمر خلاصه په «ایاک نعبد» کښې ده.

او د حوا میم خلاصه په «ایاک نستعین» کښې ده او حوامیم د کل قرآن لب لباب دی

ابن کثیر وائی «الفاتحة سر القرآن وسرها هذه الکلمة «ایاک نعبدوایاک نستعین» او په «اهدنا الصراط المستقیم ـ الایه» کښې سوال دې د استقامت په قرآن مجید، او لکه څرنګه چه کل مضامین د قرآن په فاتحه کښې دی نو دغه شان مضامین د فاتحه په تسمیه کښې دی

ځکه چه په «بسم الله» کښې مضمون خالقية دې صراحةً کما مرآنفاً . او مضمون تربية پکښې ضمنا دې او په «الرحمن الرحيم» کښې مضمون ثالث يعنی مضمون برکت او تصرف صراحة دې . او مضمون رابع يعنی مضمون قيامت پکښې ضمنا دې.

او دا مضامين بيا د بسم الله په اول حرف يعنی «ب» کښې مندرج دی او موجود دی گويا د کل قرآن اصل مقصد د حرف «ب» نه معلوميږی، ځکه باء په «بسم الله» کښې لپاره د استعانت ده. مقصود دادې چه په هر کار کښې استعانت صرف د الله جل جلاله نه حاصلوم حضرت الاستاذ رحمه الله د خپل شيخ حضرت مولانا حسين علی رحمه الله کلام داسې ذکر کوی : «اعلم يا اخی ! ان جميع القرآن منقسم الی اربعة اثاث کل بحث يبتدا بالحمدلله الاول من فاتحة الکتاب الی آخر سورة النساء والثانی من الانعام الی آخر سورة بنی اسرائيل والثالث من الکهف الی آخر الاحزاب والرابع من السباء الی آخر القرآن ».

فاجمعت المضامين الاربعة فی الفاتحة والفاتحة فی بسم الله الرحمن الرحيم. وبلفظ اخر تمام القرآن فی الفاتحة فان لباب القرآن فی حواميم و خلاصة الحواميم فی حمٓ المؤمن ای ادعوا الله مخلصين له الدين کما نبينه فی تفسير الحواميم و ذکر فی السور السابقة انه تعالی هوالخالق لاغيره فاعبدوا الله مخلصين له الدين و هذا المذکور ثابت فی الفاتحة والفاتحة فی بسم الله و بسم الله فی الباء کاَنَّ لفظ الله جمعت فيه الالوهية والربوبية.

والمقصود من الحصر فی الحمدله هو حصر العبادة التی اعظم شعابها الاستعانة فاذا قرا القاری بسم الله استعين بتقديم الجار فهم حصر الاستعانة ای بسم الله — استعين لابما اشرک به المشرکون فالفاتحة جامعة و ام للقران و هی فی البسملة والبسملة فی الباء — نقل عن علی رضی الله عنه ان الباء فی بسم الله جامعة کذا فی المکتوبات للامام الربانی قدس سره والله اعلم بالصواب. فشروع القرآن بحصر الاستعانة والختم علی قل هو الله احد و قل اعوذبرب الناس.

فالشروع بالاستعانة منه والختم عليها کذا سنة رب العلمين فی الاشجار الا تری الی حبة تنبت فالمبدأ والمنتهی ثم المثمرة التی هی الحبة وهذا يشعر ان المبدا منه واليه المرجع والمصير —

تـــــمـــــت بالخـــــيـــــر

اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

**تعوذ**:

تعوذ يعنى «اعوذبالله ـــــ الايه» وئيل د آدابو د قراءت نه ده، لوجه ددې قول د الله تعالى نه: «واذا قرات القرآن فاستعذبالله من الشيطن الرجيم»، دا امر د بعضې علماؤ په نيز د وجوب لپاره دې او د جمهور علماؤ په نيز د وجوب لپاره نه دې.

د امام ابوحنيفه رحمه الله او د امام شافعي رحمه الله په نيز د تعوذ لپاره دا الفاظ متعين دى چه: اعوذبالله من الشيطان الرجيم — لقوله تعالى: ((فاستعذبالله من الشيطان الرجيم)) و قدجاء فى بعض الاحاديث ايضاً، او امام احمد رحمه الله فرمائى: چه بهتر داسې وئيل دى: «اعوذبالله من الشيطان الرجيم ان الله هوالسميع العليم»، او بعضې اهل علم وائى چه داسې الفاظ بهتر دى: «اعوذبالله السميع العليم من الشيطن الرجيم»، چنانچه په بعضې احاديثو كښې دغه شان مروى دى.

**د تعوذ ترجمه**:

شاه ولى الله صاحب رحمه الله دا اعوذبالله ترجمه داسې كوى: (پناه مى گيرم بخدا) يعنى پناه نيسم په خدائ سره د شيطن رټلى شوى نه، او داسې ترجمه غلطه ده چه: «پناه غواړم د خدائ نه»

اعوذ: د عوذ نه مشتق دې او د عوذ دوه معانى يوه معنى (التجاء او پناه نيول) دويمه معنى ملاو ول ده - يعنى ملاوول د خپل نفس د الله د رحمت او فضل سره، او د امن د شيطان نه - او شيطان مشتق دې د شطن نه معنى ئى بُعد او لرې والى دې يعنى ډير بعيد د د رحمت او د محل دخير نه - او بعض وائى چه شيطان مشتق دې د شيط نه او د شيط معنى هلاک او باطل والې، او رجيم په معنى د مرجوم يعنى لعنت كړې شوې او رټلې شوې د رحمت د الله نه.

**نكات**:

علماء مفسرينو د قرات نه قبل د تعوذ ډير حكمتونه او نكات ذكر كړيدى. (۱) منجمله د هغې نه داده چه انسان په هر امر كښې خواه كه دينى وى او كه دنيوى وى بالكل محتاج او عاجز دې يعنى نه نيكى په غير د اعانت د الله تعالى نه كولې شى او نه د گناه نه بچ كيديشى نو پكار شوه چه په الله

سره پناه او نیسی ځکه دا قانون دې چه څوک په عظیم ذات پناه اونیسی نو د شر د دشمن نه په امن کښې وی. د انسان محتاج والې او عجز لدینه ظاهریږی چه هر انسان دا غواړی چه زما اعتقاد صحیح او حق وی او د جهل کفر او نا حق نه لرې وی نو که دا امور د بنده په اختیار کښې وی نو ټول به په عقائدو حقو باندې وی لیکن فی الواقع داسې نه ده بلکه حق عقائدو والا دومره کم دی لکه: تور غوایه په څرمن سپین ویخته کما فی الحدیث.

او دارنګه انسان دا غواړی چه زما عملونه نیک او صالح وی نو که بنده په نیک اعمالو کولو کښې محتاج نه وی نو پکار وه چه دده ټول عملونه صالح وی لیکن فی الواقع داسې نه ده بلکه اکثر د غوګونو او سترګو او باقی حواس خمسو ظاهریهؤ او دارنګه د حواس باطنیو او قوة شهوانیه او د قوة غضبی استعمال په صحیح نهج باندې ندی.

نو په اعوذبالله کښې د خپل عجز اقرار دې او د الله جل جلاله د قدرت اقرار دې او په حدیث شریف کښې دی: من عرف نفسه فقد عرف ربه - یعنی چا چه اوپیژندو خپل نفس په عجز اوقصورسره چه زه عاجز اوقاصر یم نو ده اوپیژندو رب خپل په قدرت او کمال سره - او چا چه اوپیژندو نفس خپل په جهل سره نو ده اوپیژندو رب خپل په علم او عدل او فضل سره.

(۲) منجمله د هغې نه داده چه په اعوذبالله کښې رجوع ده د مخلوق نه خالق ته او د ممکن نه واجب ته او د الله جل جلاله د معرفت لپاره اول دا طریقه مقرر ده چه د مخلوق احتیاج او ګوری نو دا دلیل اوګرزوی په وجود د داسې ذات چه غنی او قادر دې. کما قال الله تعالی: ((ففروا الی الله)).

(۳) منجمله د هغې نه داده چه چونکه شیطان سخت دشمن دې د انسان او الله (ج) مولی او حافظ او سمونکې د کارونو دې نو چه انسان یو عبادت (لکه تلاوت وغیره) شروع کوی نو ددشمن خوف په زړه باندې غالب وی نو ددې وجه نه دا انسان کوشش کوی د راضی کولو د الله (ج) لپاره ددې چه پچ شی د شر د دښمن نه او کله چه بچ شی نو بیا به ورسی پاک بارګاه د رب العزت ته او په قسمونو کرامتونه عزتونه ورته ملاؤ شی نو پس مقام د تیختی د دشمن نه په اعوذبالله کښې راغې او مقام د وصول د درګاه د رب العزت او د حاصلیدلو د انواعو د کرامتونو او عزتونو راغې په بسم الله الرحمن الرحیم کښې

(۴) منجمله د هغې نه داده چه الله تعالی فرمائی: «لا یمسه الا المطهرون» نه به مسه کوی قرآن لره مګر پاکان او د انسان په زړه کښې چه کله د غیر تصور وی. یا په ژبه دغیر تذکره وی نو دا یو قسم آلودګی (خچن والې) دې نو ددې وجه نه چه کله ئې اعوذبالله او وئیل نو ژبه او زړه پاک شو نو د

تلاوت او د ذکر الله چه دا صلوة حقیقي دي لائق شو نو ځکه ئی ورپسی بسم الله اووئیله او هم دا وجه ده چه کله د تلاوت په درمیان کښ څوک خبری وکړی نو بیا ورله پکار دي چه اعوذبالله او وائی او تلاوت شروع کړی.

﴿۵﴾ منجمله د هغی نه داده چه د مؤمن زړه د ټولو ځایونو نه افضل او اشرف دې ځکه چه قلب د مؤمن محل او باغ دې د ایمان او د الله ﴿ج﴾ د نوم او د الله جل جلاله د محبت او معرفت د حدیث قدسی مفهوم دي چه الله تعالی وائی اې بنده ! ستا زړه ځما باغ دې او ځما جنت ستا باغ دې پس که چری ته بخل اوکړی لدی خبری نه چه په خپل زړه کښ ماته ځائ راکړې نو زه به ضرور بالضرور بخل وکړم لدی نه چه خپل ځای تاته درکړم.

بل روایت کښې دی د مؤمن زړه عرش الرحمان دې ، بل روایت کښې دی نه ځایه وی مالره آسمان ځما او نه زمکه ځما او ځایه وی مالره قلب د بنده ځما چه مؤمن وی. ګویا که الله تعالی فرمائی چه اې بنده ! ما مقرر کړیدې خپل جنت ستا لپاره او تا مقرر کړې دې جنت خپل یعنی قلب ځما لپاره پس ستا د راتلو نه مخکښې خو ما د خپل جنت نه ستا دشمن وباسلې دې کما قال تعالی ﴿اخرج منها مذموما مدحوراً﴾ نو اې بنده ! ته هم د خپل باغ یعنی قلب نه ځما دشمنی اوباسه نو زه به درته درشم ، نو ګویا که بنده جواب ورکوی چه یا الهی صرف ته قادرئی دده په وباسلو باندې او زه خو عاجز او ضعیف یم. ځما قدرت نشته د ده د وباسلو. نو الله جل شانه فرمائی چه عاجز چه کله په حمایت د قادر مطلق بادشاه کښ شی نو قوی شی نو اې بنده ! ته ځما په حمایت کښ داخل شه چه قوی شی او دشمن اوباسی او اوایه : اعوذبالله من الشیطان الرجیم – او که څوک دا سوال وکړی چه کله د بنده زړه د الله باغ دې نو بنده ته ولې امر کوی د اوباسلو د دشمن پخپله دې براه راست بلا واسطه اوباسی – جواب : ګویا که الله ﴿ج﴾ فرمائی : اې بنده! تابادشاه په خپل کور کښ میلمه کړې دې او په حجره د قلب د ورله ځائ مقرر کړې دې او دا قانون دې چه د مهمان ﴿میلمه﴾ لپاره میزبان ﴿کوربه﴾ ځائ جارو کوی صفائی کوی نو ددې وجې نه بنده ته امر وشو.

## د تعوذ فضائل :

د اعوذبالله وئیلو امر تمامو بندګانو ته دې، او د انبیاؤ طریقه ده، انبیاؤ استعاذه کړې ده نوح علیه السلام استعاذه اوکړه : ﴿انی اعوذبک ان اسالک مالیس لی به علم﴾ -- نو دوه انعام ورته ملاؤ شو یو سلام او بل برکات. قال تعالی : ﴿یا نوح اهبط بسلام منا و برکات علیک ـــــ الایه﴾ یوسف علیه السلام استعاذه اوکړه : ﴿قال معاذالله انه ربی احسن مثوای﴾ – نو دوئ ته هم دوه انعامه ملاؤ شو چه

بچ کول دی د سوء نه اوبل د فحشاء نه ، کما قال تعالی : «لنصرف عنه السوء والفحشاء» ، موسی علیه السلام استعاذه وکړه : «اعوذبالله ان اکون من الجاهلین» نو دوه انعامه ورته ملاؤ شو - (۱) تهمت لرې کول (۲) او د مقتول زنده کیدل- «فقلنا اضربوه ببعضها کذالک یحیی الله الموتی».

او د مریم مور استعاذه اوکړه - انی اعیذها بک و ذریتها من الشیطن الرجیم - نو دوه انعامه ملاؤ شو (۱) قبول حسن (۲) بهترین نشو و نما د مریم کما قال تعالی: «فتقبلها ربها بقبول حسن و انبتها نباتا حسنا» - او مریم چه جبرئیل علیه السلام په شکل انسانی کښې اولیدو نو استعاذه ئې اوکړه : «انی اعوذبالرحمن منک ان کنت تقیا» - نو دوئ ته هم دوه نعمتونه ملاؤ شو، یو په غیر د خاوند نه بچې (عیسی علیه السلام) او بل د تهمت نه بچ کیدل په واسطه د بچی (عیسی) سره او رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ته هم په کرات سره امر د استعاذه شوې دې په قرآن کښې - «و قل رب اعوذبک من همزات الشیاطین و اعوذبک رب ان یحضرون ـــــ الایه» ، «قل اعوذبرب الفلق ـــ الخ» ، «قل اعوذبرب الناس ـــ الخ» او احادیث هم پدې باب کښې ډیر دی د معاذبن جبل رضی الله عنه نه روایت دې چه دوه کسانو د رسول الله صلی الله علیه وسلم په مخکښې خصومت (جګړه) اوکړه او کثرت ئې وکړو په خصومت کښې پس او فرمائیل نبی کریم صلی الله علیه وسلم چه تحقیق سره ماته معلومه ده یوه کلمه کچرې دا دواړه کسان ئې اووائی نو خامخا به لرې شی د دوی نه خصومت (جګړه) او هغه کلمه ده «اعوذبالله من الشیطن الرجیم» - بل حدیث دې چه څوک اووائی درې کرته «اعوذبالله السمیع العلیم من الشیطن الرجیم» او بیا اولولی درې آخری آیتونه د سورة الحشر : «هو الله الذی لا اله الا هو عالم الغیب والشهادة هو الرحمن الرحیم ـــ الی آخر السورة». نومقرر کړی الله تعالی پده باندې اویا زره فرشتی چه دعاء کوی دده لپاره د ماښام پوری او که چرې دا شخص په دغه ورځ کښې مړ شو، نو شهید مړ شو او څوک چه دغه دعاء مذکوره ماښام کښې اووائی نو هم دغسی ثواب دې.

او بل روایت دې چه څوک استعاذه اوکړی په الله سره په ورځ کښې لس واری نو مقرر کړی الله تعالی په دغه کس یو فرشته چه لرې کوی لده نه شیطان او روایت دې د ابن عباس رضی الله عنه نه چه نبی صلی الله علیه وسلم به تعوذ د امام حسن رضی الله عنه او امام حسین رضی الله عنه لپاره وفرمائیل : «اعیذک بکلمات الله التامة من کل شیطان وهامة و من کل عین لامة» - او فرمائیل به رسول پاک صلی الله علیه وسلم چه ستاسو نیکه ابراهیم علیه السلام به پدې سره تعوذ کولو د اسماعیل او د اسحاق (ع).

لفظ د اعوذ په اعتبار د ظاهر سره صیغه د فعل مضارع ده مګر ددې معنی دعاء ده ، ګویا په

منزله ددې عبارت دې چه اللهم اعذني.

## بسم الله الرحمن الرحيم

(۱) اختلاف کړيدې علماؤ پدې کښې چه آيا (بسم الله الرحمن الرحيم) د خصوصياتو ددې امت نه ده او که نه ؟ اکثر علماء په اول دی او بعض علماء په ثاني - او راجح داده چه ((بسم الله ـــــ الايه)) د مفهوم په اعتبار سره نه دې خصوصيت ددې امت، او په اعتبار د مخصوص الفاظ عربيو سره خصوصيت ددې امت دې.

(۲) اختلاف کړې شويدې چه ((بسم الله الرحمن الرحيم)) علاوه د سورة نمل نه (ځکه هغه بالاتفاق آيت من القرآن دې).

آيت د قرآن نه دې او که نه ؟ او مستقل آيت دې او که جزء د آيت ؟ او جزء د سورة فاتحه نه دې او که نه ؟ او جزء د هر سورة نه دې او که نه ؟ د امام شافعي (رح) يو قول دادې چه دا صرف د سورت فاتحه نه جزء دې، او بل قول ئې دادې چه دا د هر سورة نه جزء دې، او د احنافو په نيز بسم الله الرحمن الرحيم جزء د قرآن دې خو جزء د فاتحه نه يا د بل سورت نه ندې بلکه دا نازل شويدې لپاره د فصل په مابين د سورتين کښې.

باء په ((بسم الله الرحمن الرحيم)) کښې لپاره د استعانت ده يا لپاره د مصاحبت او الصاق ده يا لپاره د تبرک ده، ليکن راجح داده چه باء لپاره د استعانة شي ځکه چه بسم الله نازل شويدې لپاره د رد د مشرکانو چه هغوی به د خپل کار ابتداء داسې کوله باسم اللات والعزی نو الله (ج) او فرمايل قولوا بسم الله الرحمن الرحيم ، بل لدې وجه نه چه د سورت فاتحه يو اسم تعليم المسئله دې يعنی الله تعالی خپلو بندگانو ته د سوال کولو تعليم ورکوی چه تاسو استعانت د يو الله نه طلب کړئ نه د غير نه ، او جار مجرور متعلق دی په ابتدا پورې چه مفهوم ئې عام دې هر فعل ته شامل دې. يا متعلق دې په فعل خاص چه د هر مقام مناسب به مقدر وی لکه دلته کښې په اقرأ پورې متعلق دې او په وقت د ذهاب (تللو) کښې په اذهب پورې او په وقت د خوراک کښې په اءکل پورې و على هذا القياس او په متعلق کښې راجح داده چه مؤخر شي ځکه قانون دادې چه جار مجرور معمول وې. او متعلق ورله عامل وی د معمول حق تاخير دې نو چه مقدم شي نو تقديم دما حقه التاخير راغې نو فائده کوی حصر و اختصاص لره نو مغنی به داشی چه خاص په استعانة او امداد د اسم د الله (ج) سره لولم، يا خوراک کوم يا سکل کوم وغير ذلک-

**تنبیه** : پکار ده چه د هر نیک کار په اول کښې چه بسم الله وائی نو دا استحضار د کوی چه زه صرف د الله جل جلاله په امداد او اعانت سره دا کار کوم، «فلیجرب».

اسم په معنی د ذات سره هم راتلې شی لکه : «سبح اسم ربک» ای ذات ربک، یا لکه «ما تعبدون الا اسماءً سمیتمو ها ـــ الایه» ای ذواتاً او په معنی د علم سره هم رازی او صفت سره هم رازی او کله په معنی عام شامل داوړو ته یعنی ذات صفت، دلته عموم مراد دې نو شامل دې د الله (ج) اسم ذات او صفاتو ته ځکه چه استعانت په ذات او صفات دواړو سره کیدې شی، قال تعالی : «ولله الاسماء الحسنی فادعوه بها» – یا «قل ادعوا الله او ادعوا الرحمن ایا ما تدعوا فله الاسماء الحسنٰی».

او په لفظ د الله کښې اقوال متعدده دی. (١) بعض وائی چه دا اسم مشتق دې – (٢) بعض وائی چه دا علم دې- (٣)بعض وائی چه صفت مشتق دې (۴) او بعض وائی چه دا لفظ سریانی دې، او چه مشتق شی نو بیا پدې کښې سبع (٧) اقوال دی:

(١) ماخوذ دې د آلَهَ من باب فتح الهة نه په معنی د عبادت نو اله په معنی د مالوه معبود سره دې

(٢) ماخوذ دې د اله نه من باب سمع په معنی د تحیر سره اله په معنی د مالوه یعنی هغه ذات چه متحیر دی خلق د هغه په باره کښې.

(٣) ماخوذ دې د «الهتُ الی فلانٍ» نه بمعنی السکون والاطمینان یعنې هغه ذات چه زړه ته سکون او اطمینان دهغه په ذکر حاصلیږی، «الا بذکر الله تطمئن القلوب ـــ الایه»

(۴) ماخوذ دی د «اَلِهَ» نه په معنی د فزع (گبراهټ) یره د مصیبت او په دې معنی سره د «اَلِهَ» نه بعد آلَهَهُ استعمالیږی په معنی د ازاله د خوف، نو د اله معنی ده ملجا یعنی زائی د پناهئ.

(۵) مشتق دې د « آ لَهَ الفصیل» نه یعنی پیوست شو بچې د اوخ په خپل مور پورې، اله معنی داده چه خلق په خپلو حوائجو کښې په ده پورې پیوست شی او ده په ذکر ولگی (معنی الله گفت آن سیبویه. یولهون فی حوائجهم لدیه – (٦) مشتق دې د وَلَهَ نه په معنی د تحیر، خلق متحیر دی په معرفت د ذات ده کښې نو اله پدې مذهب په اصل کښې وله وو و او په الف بدل شو لکه اشاح په اصل کښې وشاح وو.

(٧) مشتق دې د لاه یلیه لیهًا په معنی دُ احتجاب او ارتفاع سره لانه تعالی محتجب عن الابصار و مرتفع عن النقائص.

# خصوصيات د لفظ د الله

(۱) دخول د (يا) په الله باندې (سره ددې نه چه معرف باللام دې) (۲) نه حذف کيدل د همزه په حالت د وصل کښې (۳) تفخيم په لفظ د الله کښې چه ما قبل ضمه يا فتحه وی (۴) اعرف د معارفو دې او سره ددې نه چه عَلَمْ دې او مرتبه د عَلَمْ په تعريف کښې روستو ده.

**حکايت**: سيبويه چا په خوب کښې وليدو پس د مرگ نه نو تپوس ئې ترينه وکړو چه څه معامله در سره وشوه نو هغه اووئيل چه الله (ج) ځما مغفرت پذې وجه اوکړو چه زما مذهب داؤو چه لفظ د الله اعرف المعارف دې (قهستاني) يعنی په ده کښې تعريف د ضمير متکلم نه زيات دې - (۵) په عوض د ياء ندائيه کښې ميم مشدد په آخر کښې راوړل لکه اللهم په اصل کښې يا الله دې

﴿الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ﴾ دا دواړه صيغې د صفت مشبه دی مفيد دی لپاره د مبالغی ځکه چه صفت مشبه په دوام او ثبوت دلالت کوی يا لدی وجه نه چه دا معدول دې د راحم نه او علامه زمخشری قول دې چه کل ماهو معدول عن اصله فهو ابلغ عن اصله، او دا مشتق دې د رحم نه او رحم په لغت کښې رقت د قلب دې چه پيدا شی ترې نه تفضل او احسان چونکه دا د کيفيات انفعاليونه دې او الله ج د انفعالاتونه منزه دې نو ددې وجه نه قاضی بيضاوی وائی چه دا صفات د باری تعالی په اعتبار د غاياتو سره دی اگرچه د بعضو صفاتو اطلاق په اعتبار د مباديو او غاياتُ دواړو سره دې لکه صفة العلم، خو د بعضې صفاتو اطلاق باعتبار د غاياتو سره هغه افعال دی، يعنی تفضل او احسان. نه انفعالات.

ليکن تحقيقی خبره داده چه د صفاتو د خالق او مخلوق په مابين کښې صرف اشتراک په لفظ کښې دې، ځکه د لفظ د علم اطلاق په علم د خالق هَم کيگی او په علم د مخلوق هم کيږی. ليکن د دواړو حقيقت او ماهيت بالکل جدا دې، دغه شان رحم صفت د مخلوق هم دې او تعريف ئې دغه مذکور دی چه رقة القلب، او رحم صفت د خالق هم دې خو هغه مجهول الحقيقت والکنه دې کما يليق بشانه دې) - دارنگه هر صفت د الله (ج) معلوم دې اطلاق د هغه او اثبات د هغه لپاره د الله تعالی ليکن مجهول دې کيفيت او حقيقت د هغه - ((ليس کمثله شیٔ))، ((ولم يکن له کفواً احد))

او لدې وجه نه امام مالک (رح) د استواء علی العرش په باره کښې فرمايلی دی -

الاستواء معلوم، ای معلوم اطلاقه علی الله تعالی و اثباته له - والکيفية مجهول - يعنی استواء ليس کاستواء ناحق نعلم حقيقته و کيفيّتهُ ، والايمان به واجب، والسوال عنه بدعة ...... الخ

او په رحمن کښې مبالغه زياته ده په نسبت د رحيم ځکه چه زيادت د حروفو دلالت کوی په زيادت

د معنی باندې او لدی وجه نه شیخ الهند (رح) ترجمه د رحمن کوی. بیحد مهربان او د رحیم ترجمه کوی. زیات رحم والا سره – د یو لفظ په ترجمه کښې بیحد ذکر کول اشاره ده زیادت د مبالغی ته او د بل لفظ په ترجمه کښې نهایت مهربانی ذکر کولو کښې اشاره ده نفس مبالغی ته (فلله دره).

علماء مفسرینو د رحمن او رحیم په مابین کښې فرق په ډیرو وجوهو سره ذکر کړې دې (۱) د رحمن تعلق د ټولو خلقو سره دې ځکه چه دا ذکر شویدې د استواء علی العرش سره – (الرحمن علی العرش استواء) او د استواء علی العرش تعلق د کل مخلوقاتو سره دې او د رحیم تعلق خاص د مؤمنانو سره دې لقوله تعالی: (و کان بالمؤمنین رحیما) - (۲) د رحمن تعلق د نعمتونو ورکولو سره دې او د رحیم تعلق د مصیبتونو لرې کولو سره دې (۳) د رحمن تعلق د دنیا سره دې او د رحیم تعلق د آخرت سره دې، ویرد علیه ماورد فی الحدیث : یارحمن الدنیا والآخرة و رحیمهما – ددې نه نور ډیر وجوهات مفسرینو ذکر کړیدی (۴) حضرت الاستاذ شیخ القرآن د خپل شیخ نه فرق دا سی نقل کوی چه د رحمن معنی داده چه رحم ئې عام دې هر هر ذرې ته بالفعل شامل دې، او رحیم (صفت مشبه) معنی داده چه رحم ئې خپل ذاتی صفت دی.

﴿الحمد لله رب العالمين ۞﴾ : الف لام په الحمد کښې یا لپاره (۱) دعهد دې لکه د رای د میر زاهد هروی (رح) ده معهود پدې سره حمد کامله دې چه هغه حمد د الله تعالی دې خپل ذات لره او په حدیث کښې ورته اشاره شویده : اللهم لک الحمد کما ینبغی لجلالک و عظیم سلطانک لا احصی ثناء علیک انت کما اثنیت علی نفسک – او حمد د مخلوق مخلوق لره ناقص دې په اعتبار د حامد سره او حمد د خالق مخلوق لره ناقص دې په اعتبار د محمود سره. او حمد د الله (ج) خپل ځان لره کامل دې په اعتبار ده حامد او محمود دواړو سره. (۲) او یا الف لام لپاره د جنس دې کما هورای صاحب الکشاف – او بعض علماؤ وئیلی دی چه اختیار د کشاف لام الجنس لره بناء دې په مذهب اعتزال ځکه معتزله قائل دی پدې خبره چه خالق دا فعال العباد عباد دی.

لیکن علامه تفتازانی دا خبره رد کړې ده په مطول کښې او وئیلی ئې دی چه ترجمه د لام الجنس بناء ده په نکته د بلاغت، نه ده بناء په اعتزال لکه مشهوره ده د «ما فهم القرآن الا الاعرجان جار الله والجرجان» والتفصیل فی المطول و بعض حواشیه. بلکه مآل د لام الجنس اولام الاستغراق یو دې ځکه الف لام چه د جنس لپاره شی نو لام په لله کښې لپاره د اختصاص دې او اختصاص د جنس مستلزم دې اختصاص د کل افرادو لره او دغه معنی د لام الاستغراق هم ده.

(۳) یا الف لام په الحمد کښې لپاره د استغراق دې – نو په لام الجنس او لام الاستغراق دا سوال

ورادیږی چه په دواړو صورتونو کښ مطلب دا کیږی چه تمام صفتونه خاص دی په الله تعالی پوری او سره لدینه چه د مخلوق هم صفت کیږی نو ټول صفتونه خاص نشو په الله تعالی پورې.

عام مفسرین وغیره جواب دا کوی چه د مخلوق د صفاتو خالق الله تعالی دې نو دا حمد در حقیقت حمد د الله تعالی لپاره دې ځکه هغه خالق او ورکونکې د کمالاتو دې.

**حمد راباتو نسبتی هست درست — بر درِ هر که رود، بر در تُست**

(۲) حضرت الشیخ فرمائی چه مراد د حمد نه هغه صفات دی چه هغه الله تعالی په قرآن پاک کښې خپل ځان لره بار بار ثابت کړیدی چه هغه خالقیت، رازقیت تصرف وغیره دی کما قال تعالی «امن خلق السموات» الی آخر الایات (نمل) او ددې صفاتو نه تعبیر کیږی په صفات فاعلیه یا صفات مافوق الاسباب، یا صفات الوهیت سره یعنی د خدای توب صفتونه، نو که لام الجنس شی یا لام الاستغراق نو څه اشکال نه راځی ځکه مطلب ئی دادې چه تمام صفات فاعلیه یا تمام صفات الوهیة (د خدائ توب) خاص دی په الله (ج) پورې، او مخلوق لره دا ندی ثابت، او دا خبره په قرآن کښ بار بار ذکر کیږی – یو ځای کښ فرمائی: «فقطع دابر القوم الذین ظلموا» نو بعد کښ فرمائی: «والحمدلله رب العلمین» یعنی چه کله ظالمان مشرکان هلاک او تباه کړې شو، نو معلومه شوه چه صفات الوهیة تصرف وغیره صرف الله (ج) لره دی ځکه که غیر لره وی نو مشرکان به بچ شوی وې.

او په سورة نمل کښ د صالح علیه السلام او د هغه د قوم ذکر دې، د کفارو په باره کښ دی: ﴿أَنَّا دَمَّرْنَاهُمْ وَقَوْمَهُمْ أَجْمَعِينَ﴾ او د مؤمنین په باره کښې دی: «و انجینا الذین آمنوا و کانوا یتقون» –او دغسې د لوط علیه السلام د قوم د کفارو او د مؤمنینو انجام ذکر دې: «فانجینه واهله الا امراته» – او بعد کښې ئی اوفرمایل: «فامطرنا علیهم مطراً» –ددې نه بعد پدې باندې بطور تفریح ذکر دې – «قل الحمدلله وسلام علی عباده الذین اصطفی —— الایه» (نمل) – یعنی کفاروته هلاکت ورکونکې او مؤمنانوته سلامتی ورکونکې صرف الله (ج) دې نو دلته هم د الحمدلله معنی صفات کارساز دې یعنی کارساز صرف الله (ج) دې کچرې بل څوک وې نو هغه معبودان باطلو به خپل عبادت کوونکی بچ کړی وې.

﴿ لله ﴾ لفظ د الله علم شخص دې د ذات واجب الوجود مستجمع لجمیع الصفات الکمالیة لپاره خو دلته ترې نه مراد معنی وصفی ده یعنی الحمدللخالق نو پدې کښ اشاره حصه اولی ته او په (رب العلمین) کښ اشاره ده حصه ثانیه د قرآن ته یعنی د هر هر ذرې د کائناتو مربی او حد کمال ته

رسونکې صرف الله (ج) دې او رب يا مصدر دې د تربيت نه – معنى ئې داده : تبليغ الشئ الى كماله بحسب استعداده الازلى شيئاً فشيئاً يعنى رسونکې کمال مناسب دده ته دده د استعداد سره په دمه دمه نو په مفهوم د تربيت کښې دوه څيزونه دى (١) يو دپالنې څيزونه پيدا کول لکه د خوراک سکاک اشياء پيدا کول او د هغې آلات پيدا کول لکه انسانانو لره خوله، شونډې، ژبه ، غاښونه معده وغيره (٢) او دويم په دغه اشياؤ کښې اثر پيدا کول يعنى د خوراک ، سکاک په څيزونو مړيدل او د هغې نه وينه جوړيدل او بدن ته طاقت رسول.

يا «رب» صيغه د صفت مشبه ده يا مبالغه ده په اسم فاعل کښې يا صيغه د اسم فاعل ده په اصل کښې «رَابٌّ» وو نو الف حذف شويدې تخفيفاً لکه «بارٌّ» او بَر شو ، او اطلاق د رب په لغت عربى کښې په ډيرو معاينو کيږى . (١) پالنه کونکې، دا معنى مشهوره ده . (٢) خالق (٣) سيد ، کما فى سورة يوسف : «انه ربى» ، ٤٢ . (٤) مالک ، کما فى النمل : «انما امرت ان اعبد رب هذه البلدة ـ الخ» نمل ٩١ (٥) منعم (٦) مصلح ، (٧) معبود ، (٨) صاحب – او اطلاق د رب په غير د الله تعالى جائز ندې مگر جائز دې په هغه وقت کښې چه مقيد شي په اضافت وغيره سره لکه رب الدار – رب الثياب، او بعض مکروه وئيلى دى اطلاق د رب په وقت د اضافت کښې عاقل ته لکه رب العبد - روى الشيخان عن ابى هريرة رضى الله عنه : «لايقل احدكم اطعم ربک وضئ ربک ولايقل احد ربى وليقل سيدى و مولاى – و قول يوسف عليه السلام مخصوص بزمانه» .

او «عالمين» جمع د عالم ده او عالم وزن د فاعل دې ، ما يُفعل به لپاره وضع دې لکه خاتم و مايختم به او قالب د مايقلب به لپاره ، نو د عالم معنى لغوى: ما يُعلم به ده او په عرف عام کښې عالم کل ماسوى الله تعالى ته وئيلى شى، جن ، انس ، ملک، علويات، سفليات، مشاهدات، مغيبات، دا ټول عالم دې او صفات د الله تعالى د عالم نه ندى.

که څوک دا سوال وکړى چه کله عالم چه مفرد دې کل ماسوى الله ته وئيلى کيږى نو بيا د جمع صيغه راوړل څه فائده لرى – نو جواب دادې چه د عالم اطلاق کله په يو يو جنس هم کيگى لکه عالم النبات عالم الحيوان، عالم سفلى، عالم مشاهد ، نو که جمع نه وې ذکر شوې نو توهم به کيده چه يو جنس به مراد وى او مراد به دا وى چه الله تعالى صرف د عالم سفلى يا صرف د عالم علوى وغيره رب دې نو لدې وجه نه ذکر شوه صيغه د جمع چه دا توهم پاتى نشى.

په «الرحمن الرحيم» کښې اشاره ده حصه ثالثه ته او تفصيل د رحمان او رحيم تير شو آنفاً . «مالک يوم الدين» کښې اشاره ده حصه رابعه د مضامين د قرآن ته يعنى قيامت حق دې او واکدار د هر څ

په ورځ د قیامت صرف الله (ج) دي او مشرکان چه پدې طمع دی چه د دوی مفروضه آلهه به د دوئ شفاعت وکړی نو دا خیال غلط او فاسد دي او ددې مقصد ښکاره کولو لپاره تخصیص وشو د یوم الدین اگر چه الله (ج) مالک دي په دنیا کښ هم ، او بل لدې وجه نه تخصیص په یوم الدین پوری وشو چه په دنیا کښ ظاهری طور باندې ملکیت د انسانانو هم شته او په قیامت کښ سوا د الله تعالی نه د بل هیڅا ملکیت نشته نه حقیقةً نه مجازاً کما قال تعالی : «لمن الملک الیوم ، لله الواحد القهار» - او لفظ ددین په ډیرو معانیو کښ مستعملیږی (۱) پوره شریعت (۲) خالص توحید (۳) طاعت (۴) عبادت (۵) دعا (۶) جزا او سزا ، دلته آخری معنی مراد ده - او اضافت د مالک، یوم الدین ته اضافت معنوی دې څکه اسم فاعل هله عمل کوی چه په معنی د حال یا استقبال شی او دلته ندې په معنی د حال یا استقبال سره نو دا اضافت د صفت خپل معمول ته نشو نو دا اضافت معنوی شو نو دا معرفه شو نو صفت د معرفه لپاره چه الله دې واقع کیدې شی.

﴿إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ ۝٥﴾ : په فاتحه کښ دا آیت مرکزی حیثیت لری، ایاک نعبد د سورة زمر خلاصه ده څکه چه د سورة زمر مدعی او د مضمون خلاصه داده : (فاعبدالله مخلصا له الدین) ۱ - او (ایاک نستعین) د حوا میم خلاصه ده څکه چه د حوامیم خلاصه دا مدعی ده : «وقال ربکم ادعونی استجب لکم» - او حوا میم د قرآن لُب لباب دی لکه چه روایت دې د ابن عباس رضی الله عنه نه : «لکل شئ لباب و لباب القرآن حوا میم» -لدې وجه نه ابن کثیر د بعض اکابرو قول نقل کړې دې چه «الفاتحة سِر القرآن و سرها هذه الکلمة : ایاک نعبدو ایاک نستعین» - او عبادت په اصل کښ غایت تذلل او عجز ته وائي بلکه د ( ع ب د ) په ماده کښ دې تذلل او د کثرت استعمال لوجه نه سولیدل معنی ده ، لکه وئیلې شی طریق متعبد و ثوب متعبد ای متذلل - او د شرعی معنی د عبادت تعریف علامه ابن قیم په خپل کتاب مدارج السالکین ۴۰ کښ داسی کړیدې

(العبادة عبارة عن الاعتقاد والشعور بان للمعبود سلطة غیبیة یقدر بها علی النفع والضرر فکل ثناء و دعاء و تعظیم یصاحبه هذا الاعتقاد والشعور فهی عبادة) نو معلوه شوه ددې عبارت نه چه د ځا ثناء کول یا تعظیم او آدب کول مطلقًا عبادت نه دې بلکه هله عبادت گرزی چه ناشی وی د اعتقاد مذکور نه (چه هغه غیبی قدرت په نفع او ضرر د یو شخص (وګنړی) او تقدیم د ایاک په نعبد باندې لپاره د حصر و اختصاص دې او مقصود حصر د تمامو انواعو د عبادت دې په الله پورې خواه که عبادت بدنی وی لکه مونځ سجده وغیره شو او که مالی وی لکه نذر وغیره شو او که قولی وی لکه

دعا او استعانت شو ځکه دعا او استعانت هم عبادت دي بلکه مخ العبادة دي : او هر کله چه عبادت شامل وو استعانت لره نو ذکر د استعانت (نستعین) بعد د عبادت نه لپاره د تخصیص بعد التعمیم دي لپاره د اهتمام د شان ځکه چه مشرکانو اکثر شرک فی الاستعانة کړيدي او اوس هم اکثر جاهلان شرک فی الاستعانة کوی ډیر ډیر په وقت د مصیبت کښ وائی یا فلانی بابا راورسه ، په نیکه را مدد شه، او بعض جاهل شیخان ختم شریف کوی او داسې وائی یا شیخ عبدالقادر شیئاً لله ، څوک وائی : امداد کن امداد کن از بند غم آزاد کن، دا ټول صریح شرک دي او دا زیات دي، او هر چه دي شرک په عبادت بدنی کښ لکه سجده غیر الله ته نو دا په بعض او قاتو کښ وی او دارنگه شرک په عبادة مالی کښ هم په بعض اوقاتو کښ وی نو د اهتمام شان له وجه نه ذکر شو ایاک نستعین بعد د ایاک نعبد نه ، او دلته هم تقدیم د ما حقه التاخیر شویدي لپاره ددې چه فائده کړی حصر اختصاص او مقصود ددینه رد دې د شرک فی الاستعانت او د شرک فی الدعاء ، یعنی خاص لتانه مدد غواړو په خپل حاجتونو پوره کولو کښ.

او که څوک سوال وکړی چه هر انسان د بل نه مدد غواړي بلکه د دنیا کارو بار لدینه بغیر نشی چلیدي، او ذوالقرنین اعینونی بقوة وئیلی دی او عیسی علیه السلام (من انصاری الی الله) - وئیلی دی - او الله جل شانه فرمائی : «وتعاونوا علی البر والتقوی»، «وان استنصروکم فی الدین فعلیکم النصر» - نو په «ایاک نستعین» کښ څرنگه تخصیص وشو - او ددې نه اهل بدعت دا ثابتوی چه د اولیاء الله نه هم غائبانه مدد غوختل جائز دی.

جواب دادي چه اهل بدعت خو په عجیبه کشمکش کښ مبتلا دی ځکه چه مدعی ئی داده چه انبیاء او اولیاء کرام حاجت روا مشکل کشا دی ، لدوی نه حاجت غوختل او مدد غوختل جائز دي او دلیل ئی دا پیش کوی چه انبیاء او اولیاء کرامو د غیر نه مدد غوختلی دي ؟ دا جواب الزامی دی - او تحقیقی جواب دادي چه استعانت په دوه قسمه دي یو ما فوق الاسباب دي یعنی د چانه په داسې طریقه مدد غوختل چه هلته اسباب ظاهریه نوی او بل قسم دي ماتحت الاسباب یعنی د چانه په داسې طریقه سره مدد غوختل چه ظاهری اسباب موجود وی . او مختص په الله (ج) پورې قسم اول دي ځکه نصرت او مدد د الله تعالی بغیر د احتیاج د اسبابو نه دي او اسباب هم هغه پیدا کړی دی او قسم ثانی شرک نه دي بلکه دغه قسم استعانت د غیر الله نه په امور دنیویو کښ مباح دي او په امورو دینیو کښ مسنون سنة الانبیاء دي .

حاصل دا چه نصرت او عون د بندگانو د ظاهری اسبابو په استعمالولو سره وی او پدې کښ هم

الله ج ته محتاج وی او په هغی سره ثواب، عقاب ملاویږی ، او نصرت د الله تعالی بغیر د احتیاج نه دې اسبابو ته بلکه اسباب هم هغه پیدا کړیدی او هغه ته محتاج دی لهذا استعانت (طلب د مدد) د الله تعالی نه مافوق الاسباب دې او د بندگانو نه ماتحت الاسباب دې خو چرته چه اسباب نه وی او سره لدینه څوک ترینه مدد غواړی نو دلته قسم اول د استعانت دې چه هغه مختص دې په الله پورې او هغه ثابت شو غیر الله لره نو ځکه دا شرک شو او چه اسباب ظاهریه موجود وی - او څوک تنه مدد غواړی نو دلته قسم ثانی د استعانت راغې نو دا شرک نه دې .

او شیخ الهند رحمه الله چه وئیلی دی چه د یو مقبول بنده نه استعانت غوختل جائز دی مراد ئی دادې چه د زنده ولی نه دعا غوختل جائز دی، او دارنگه د چا په وسیله سره سوال کول شرک نه دې ځکه دلته بنده مستعان به شو ، نه مستعان منه ، لکه صبر صلوة په واستعینوا بالصبر والصلوة کښ مستعان به دې او مستعان منه الله (ج) دې .

**فائده** : افعال درې قسمه دی (۱) طبعی لکه حرکت د نبض (۲) اضطراری لکه حرکت د مرتعش (فالج زده) (۳) فعل اختیاری لکه خبرې، ذهاب وغیره .

په فعل اختیاری کښ دری مذاهب دی (۱) اهل سنت والجماعت وائی چه الله (ج) خالق دې او بنده پکښی کاسب دې (۲) معتزله وائی چه بنده ئی خالق دې (۳) جبریه وائی چه د بنده هیڅ اختیار نشته دې بلکه مجبور محض دې نو په ایاک نعبد کښ رد دې په جبریو باندې، ځکه چه نسبت د فعل شویدې انسان ته او په ایاک نستعین کښ رد دې په معتزلو باندې ځکه که انسان خالق وی نو ولی به ئی امداد غوختنه د الله (ج) نه .

﴿ اهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ ۝٥ ﴾ : دا سوال او دعاء ده لپاره د ثبات او استقامت په قرآن باندې، چونکه مخکښ لدینه مضامین د کل قرآن ذکر شو د (مالک یوم الدین) پورې او بیا لب لباب او خلاصه د قرآن ذکر شوه په (ایاک نعبدو ایاک نستعین) کښ نو اوس دعا ذکر کیږی لپاره د استقامت او ثبات په قرآن مجید باندې نو گویا که اصل عبارت داسې وو : (قولوابعد ختم القرآن و لبا به اهدنا الصراط المستقیم) او هر کله چه دلته تعلیم وشو د سوال هم او د طریقه د سوال هم - نو ددې وجه نه دې سورة ته تعلیم المسئله وئیلې شی، تعلیم د سوال داسې وشو چه تاسو ځما نه د هدایت دعا وغواړئ، او تخصیص ئی ځکه اوشو چه د هدایت په حاصلیدلو سره تمام مقاصد حاصلیږی، جنت، فلاح، امن د عذاب نه وغیره - او هم لدې وجه نه متعین شو لوستل د فاتحه په هر مونځ او

هر رکعت کښې په طریقه د فرضیت، یا د وجوب سره بنابر اختلاف مذاهب-

او تعلیم د طریقه د سوال داسې ؤ شو چه د «الحمد لله رب العلمین» نه د «مالک یوم الدین» پورې توسل په صفات عظیمو د الله (ج) سره دې، رب، رحمن، رحیم، مالک یوم الدین، او په ایاک نعبد کښې توسل په خپل تضرع عاجزی کولو سره دې او په ایاک نستعین کښې توسل په خپل وفادارئ سره دې نو معلومه شوه چه طریقه د سوال داده چه سائل به اول د الله (ج) عظیم صفات بیانوی او بیا د تضرع او عاجزی کوی، او اظهار د وفادارئ دې کوی، او دارنګه سائل به اقرار د وحدانیت د الله (ج) کوی، او انکار به د هر قسم شرک (فی العبادة وفی آلدعاء) نه کوی نو بیا به د زړه په استحضار سره دعا کوی، او د صراط مستقیم اطلاق کله (۱) په توحید د باری تعالی باندې کیږی کما قال تعالی حکایة عن عیسی علیه السلام: «وان الله ربی و ربکم فاعبدوه هذا صراط المستقیم» -یا لکه پدې قول د الله (ج) کښې: «الم اعهدالیکم یا بنی آدم ان لا تعبدوا الشیطن انه لکم عدو مبین و ان اعبدونی هذا صراط المستقیم» -نو که دلته د صراط مستقیم نه دا معنی مراد شی نو لام به په «صراط المستقیم» کښې لپاره د عهد خارجی ذکر شی او معهود پدې سره به: «ایاک نعبد و ایاک نستعین» والا لار شی. (۲) او کله د صراط مستقیم اطلاق په کل شریعت باندې کیږی چه شامل دې اعتقاد یات، عملیات، معاشیات، سیاسیات ټولو لره لکه په سورة انعام ع ۱۹ آیت ۱۵۲ کښې د شرک منع کول او د والدینو سره احسان ذکر کول او نور و ډیرو امورو ذکر کولو نه بعد فرمائی: «وان هذا صراطی مستقیما» نو که دلته دا معنی اراده کړې شی نو پدې تقدیر به لام په «الصراط المستقیم» کښې لام الجنس شی - او هدایت په دوه قسمه دې (۱) یو فطری هدایت دې او هغه عام دې ذوی العقول او غیر ذوی العقول او مسلم کافر ټولو ته شامل دې لقوله تعالی: «الذی خلق فسوی، والذی قدر فهدی» -یعنی د هر چا لپاره ئی رزق مقرر کړیدې او د هغې د حصول او د خوړلو هدایت ئی ورته کړې دې، نو ماشوم بچی ته او حیواناتو او د هغوی بچو ته په فطری هدایت سره دا معلومه ده چه دا فلانې شې ځما رزق، روزی ده، او دائی د خوړلو طریقه ده.

(۲) او بل هدایت کسبی دې چه حاصلیږی د انبیاء او د آسمانی کتابونو په ذریعه سره، او دا په دوه معانیو کښې مستعملیږی (۱) دلالت علی ما یوصل، آراءة الطریق (لارخودنه) (۲) دلالت موصله یعنی منزل مقصود ته رسول - هدایت متعدی کیږی دوه مفعوله ته اول ته بالذات او دویم ته کله متعدی وی بالذات او کله متعدی وی په‌واسطه د لام یا د الی سره نو بنا په اول به معنی ثانی مراد وی دلته کښې مفعول اول (نا) دې او مفعول ثانی (الصراط المستقیم) نو متعدی دې مفعول ثانی ته

بالذات نو معنی ثانی مراد ده - او دارنګه چه اسناد د هدایت ؤ شی الله ته نو مراد د لالت موصله وی او دلته اسناد شویدې الله (ج) ته نو معلومه شوه چه مراد دلالت موصله دې نو ځکه علامه شاه عبدالقادر ترجمه داسی کوی: ((چلا هم کوراه سیدهی)).

او هدایت لپاره (چه حاصلیږی د انبیاء او د آسمانی کتابونو په ذریعه سره) څلور درجې دی.

(۱) **انابت**: یعنی د ضد، عناد پریخودل او د حق تلاش کول او په چا کښې چه دا جذبه وی نو هغه ته هدایت ملاویږی، ((یهدی الیه من اناب))، (رعد ع ۴)، ((و یهدی الیه من ینیب))، (شوری ع ۱)

(۲) **هدایت**: یعنی د حق تلاش نه بعد حق ته رسیدل.

(۳) استقامت یعنی حق باندې مضبوط کیدل: ((ان الذین قالوا ربنالله ثم استقاموا))، ((حم سجده ع ۴)).

(۴) **ربط القلب**: یعنی د ایمان او یقین داسې رسوخ او پوخ والې چه نه زائله کیږی لکه د اصحاب کهف په باره کښی دی ((انهم فتیة آمنوا بربهم و زدناهم هدی، و ربطنا علی قلوبهم)) په دې آیت کښې د هدایت درې درجې ذکر دی: (۱) ((آمنوا بربهم)) درجه ثانیه ده چه هدایت دې (۲) ((زدناهم هدی)) دریمه درجه ده استقامت (۳) ((و ربطنا علی قلوبهم)) څلورمه درجه ده یعنی ربط القلب، نو په اهدنا کښې د آخری دوو درجو طلب دې ځکه چه انابت او هدایت خو مخکښې حاصل شویدې په اقرار د ((الحمدلله ـــــ الایه)) او ((ایاک نعبد و ایاک نستعین)) سره او د هدایت په مقابله کښې د ضلالت هم څلور درجې دی چه عنقریب به ذکر شی ان شاء الله.

او قاضی بیضاوی رحمه الله فرمائی چه د هدایت دپاره انواع لاتحصی دی خو منحصر دی په څلورو اجناسو کښی (۱) قُوٰی مدرکه ورکول - ((لقد خلقنا الانسان فی احسن تقویم)) - (۲) نصب د دلائل فارقوبین الحق والباطل والصلاح والفساد ((و هدیناه النجدین))، (۳) ارسال الرسل انزال الکتب ((و جعلناهم ائمة یهدون بامرنا)) ((ان هذا القرآن یهدی للتی هی اقوم)) (۴) کشف د سرائرو په قلوبو باندې په وحی او الهام او منامات صالحهؤ سره ((والذین جاهدوا فینا لنهدینهم سبلنا)).

﴿صِرَٰطَ ٱلَّذِينَ أَنۡعَمۡتَ عَلَيۡهِمۡ﴾ دا په ترکیب نحوی کښې بدل الکل دې د ((الصراط المستقیم)) نه او فائده د بدل تفسیر او تعین کول دی د ((الصراط المستقیم)) ځکه چه صراط مستقیم معلومیږی په ذریعه درجال الله سره چه هغه ((انعمت علیهم)) دی او دا څلور قسمه دی کما قال تعالی: ((فاولئک مع الذین انعم الله علیهم من النبیین والصدیقین و الشهداء والصالحین وحسن اولئک رفیقا))، ((صدیق)) هغه چاته

وئیلې شی چه کمالات نبوت پکښې پطور د ظلته سره موجود وی لکه ابوبکر ، علی ، ابوذر، عائشه رضی الله عنهم، وغیر هم شو او «شهید» هغه چاته وئیلې شی چه کله د حق او باطل مقابله راشی نو دې بی چینه او بی اختیاره وی تر څو چه اجراء د حق نوی شوی لکه عمر فاروق رضی الله عنهما او «صالح» هغه ته وئیلی شی چه فطرةً یې د فواحش او معاصی نه نفرت وی او پدې آیت کښ طلب د چلیدو دې په لاره دَ نبیین، او صدیقین، او شهداء، او نشته دې په دې کښې طلب دَ نبوت یا د درجه د نبوت، نو په ختم نبوت باندې لدینه هیڅ داغ نه لگی.

﴿غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ ۝﴾ دا بدل دې د «الذین انعمت علیهم» نه یائی صفت دې او «غیر» اگر چه متوغل دې په ابهام کښې او په اضافت سره معرفه نه گرځی نو هله چه د مضاف الیه لپاره ئی ډیر اضداد وی او که د مضاف الیه لپاره ئی ضد واحد وی نو بیا په اضافت سره معرفه گرځی نو صفت د معرفه لپاره واقع کیدې شی لکه علیک بالحرکة غیر السکون او دلته ئی هم د مضاف الیه لپاره ضد واحد دې نو معرفه شوه نو صفت د معرفه لپاره واقع کیدې شی اولا په «ولاالضالین» کښې زائد دې لپاره د تاکید د نفی او دا عطف دې په «مغضوب علیهم» باندې نو ترجمه دا شوه (چه نه غضب شوې دې په هغوئ او نه هغوئ گمراه دی) او داسی ترجمه چه نه لاره د هغوئ چه غضب کړې شویدې په هغوئ ـ الخ د ترکیب نحوی موافق نده .

او د «مغضوب علیهم» او «ضالین» په تفسیر کښې اقوال دی: (۱) «مغضوب علیهم» هغه دی چه سره د علم نه انکار کوی او په غلطه روان وی او ضالین هغه دی چه هغوئ ته حق معلوم نه وی (۲) «مغضوب علیهم» یهود او «ضالین» نصاری دی (۳) «مغضوب علیهم» هغه دی چه د غضب د مهر (مهر جباریت لاندې راغلی وی (درجه رابعه د ضلالت) او ضالین هغه دی چه د مهر جباریت لاندی نوی راغلې، یعنی د ضلالت اولنی درې درجې دی - تفصیل ئی دادې چه ضلالت مقابل د هدایت دې نو لکه څرنگه چه د هدایت لپاره څلور درجې وی نو دغه شان د ضلالت څلور درجې دی.

(۱) شک او عدم انابت او ضد کول- دا د ضلالت پیش خیمه ده (۲) ضلالت یعنی د باطل لاره اختیارول - کله چه انسان ازاله د شک اونکړی او حق طلبی اونکړی او ضد شروع کړی نو د گمراهئ په کنده کښې غورزیږی (۳) جدال یا مجادله . یعنی د باطل دا ثبات لپاره دلائل او کوششونه (۴) مهرجباریت. یا ختم ، یا طبع، د گمراهئ نه بعد چه کله څوک د باطل لپاره جدال شروع کړی او وضوح د حق نه بعد هم حق نه منی او په ضد او عنادَ باندې کلک وی نو دده په زړه

مهر ولگی یعنی په زړه کښې ئې صلاحیت او استعداد د قبولو د حق ختم شي او د دینه تعبیر کیږی کله په ختم سره او کله په طبع وغیره سره او دا څلور درجې کله په قرآن کښې جدا جدا ذکر کیږی او کله دوه یا درې یو ځائ ذکر کیږی او په سورة حم مؤمن ع ۴ ، کښې څلور واړه درجې یو ځائ ذکر دی قال تعالی «ولقد جاءکم یوسف من قبل بالبینات فمازلتم فی شک مماجاءکم به» دا ذکر د درجه اولی دې ، «حتی اذا هلک قلتم لن یبعث الله من بعده رسولا، کذالک یضل الله من هومسرف مرتاب» دا دویمه درجه ده «الذین یجادلون فی آیات الله بغیر سلطان اتاهم» . دا دریمه درجه ده . «کبر مقتا عندالله و عند الذین آمنوا کذالک یطبع الله علی کل قلب متکبر جبار». دا څلورمه درجه ده نو د «مغضوب علیهم» نه درجه رابعه مراد ده او د ضالین نه اولنی درې درجې مراد دی (آمین)

**تم تفسیر سورة الفاتحة والحمدلله علی منه و کرمه .**

**وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد وعلی اله واصحابه وسلم اجمعین برحمتک یا ارحم الراحمین**

# سورة البقرة مكية

| آياتها | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ | ركوعها |
|---|---|---|
| ٢٨٦ | خاص په نوم دالله سره چې بېحده مهربان اوډېر رحم کوونکې دې شروع کوم | ٤٠ |

الٓمٓ ۝١ ذٰلِكَ الۡكِتٰبُ لَا رَيۡبَ ۛ فِيۡهِ ۛ هُدًى

الله ښه پوهيږي په مراد دخپل له دې نه. داكامل كتاب(١) نشته هيڅ شک په دې کښې، کامل هدايت کوونکې دې

لِّلۡمُتَّقِيۡنَ ۝٢ الَّذِيۡنَ يُؤۡمِنُوۡنَ بِالۡغَيۡبِ وَيُقِيۡمُوۡنَ الصَّلٰوةَ وَمِمَّا

دپاره دمتقيانو. داهغه خلق دي(٢) چې يقين كوي په غيب باندې اوپابندي كوي دمانځهٔ اوبعضې دهغې څيزونو نه

رَزَقۡنٰهُمۡ يُنۡفِقُوۡنَ ۝٣ وَالَّذِيۡنَ يُؤۡمِنُوۡنَ بِمَآ

چې مونږدوي ته وركړي دي خرچ كوي (په رضا دالله كښې) او دا متقيان هغه دي چې ايمان لري په هغه څه

أُنۡزِلَ اِلَيۡكَ وَمَآ أُنۡزِلَ مِنۡ قَبۡلِكَ ۚ وَبِالۡاٰخِرَةِ هُمۡ يُوۡقِنُوۡنَ ۝٤

چې نازل كړې شوېدې تاته اوپه هغه څه چې نازل كړې شوېدې پخواستانه ، او په آخرت دوئ يقين كوي(په دنيا كښې)

أُولٰٓئِكَ عَلٰى هُدًى مِّنۡ رَّبِّهِمۡ ۖ وَأُولٰٓئِكَ هُمُ

اودغه صفتونو والا محكم دي په هدايت باندې دطرفه درب خپل (پهٔ دنياكښې) اودغه صفتونو والا هم دوئ

الۡمُفۡلِحُوۡنَ ۝٥ اِنَّ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا سَوَآءٌ

كامياب دي (په آخرت كښې) . بيشكه هغه خلق چې كفرئې كړېدې (٣) (عناداً) برابره ده دوئ ته (داخبره)

عَلَيۡهِمۡ ءَأَنۡذَرۡتَهُمۡ اَمۡ لَمۡ تُنۡذِرۡهُمۡ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ ۝٦ خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوۡبِهِمۡ

كه ته يروې دوئ لره اوكه نه يروې دوئ لره دوئ ايمان نه راوړي. مهردغضب لګولې دې الله په زړونو ددوئ

وَعَلٰى سَمۡعِهِمۡ ؕ وَعَلٰٓى اَبۡصَارِهِمۡ غِشَاوَةٌ ۫ وَّلَهُمۡ عَذَابٌ عَظِيۡمٌ ۝٧

او په غوږونو ددوئ او د ددوئ په ستركو باندې پردې دي او دوئ دپاره عذاب لوئې دې

---

١ - تمهيد د درې جماعتونو ذكر لف نشر مرتب.

٢ - داول جماعت ذكر يعني منعم عليهم.

٣ - ددويم جماعت مغضوب عليهم ذكر چې د مهر جباريت لاندې راغلي دي.

| وَمِنَ النَّاسِ | مَنْ يَّقُوْلُ | اٰمَنَّا بِاللّٰهِ | وَبِالْيَوْمِ | الْاٰخِرِ | وَمَا هُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوبعضې (۱) دخلقو نه هغه دی | چې وائی ایمان راوړې دې مونږ | په الله باندې | او په ورځ | دآخرت | او حالانکه دوی |

| بِمُؤْمِنِيْنَ ۝۸ |
|---|
| بالکل مومنان نه دی. |

**سورة بقره مدنی دې ترتیب قرآنی سره دویم (۲) دې**
**اوپه ترتیب نزولی سره أوه اتیایم (۸۷) نمبر دې**
**آیات (۲۸۶) رکوعات (۴۰) کلمات (۶۱۴۱) حروف (۲۵۵۰۰).**

**وجه تسمیه**: پدې سورت کښې چونکه دبقرې ذکردې نوځکه ورته سورة بقره وائی نو دا تسمیه دکل ده په اسم دجزء سره .اوحجاج بن یوسف باوجود ددې چه ډیر زیات ظالم ؤو، خود قرآنی معلوماتو شائق وو. اوپه قرآن کښې علامات د اعراب اومد او تعداد دحروفو او :ارنګه اوه ۷ منازل دقرآن وغیره دهغه کوشش دې نوده به اضافت ددې سورة دبقرې طرف ته ںکروه ګنړلو چه ډاسوء ادب دې لیکن دامت اجماع ده چه دا اضافت مکروه ندې په احادیثو ںحیحو کښې دا اطلاق راغلې دې.

**فضیلت**: ۱_ ان لکل شئ سناماً وان سنام القرآن سورة البقره (الترمذی).

یعنی دهرشی لپاره اعلیٰ حصه وی اودقرآن مجیداعلی حصه سورة بقره ده دیته ئی اعلی حصه ځکه فرمایلې ده چه تمام هغه مضامین چه په ټول قرآن پاك کښې دی لکه اعتقادیات اعمال معاملات وغیره پدې مضامینوباندې داسورة مشتمل دې او پدې وجه په بعض روایاتوکښې د دې سورة نوم «فسطاط القرآن» راغلې دې لکه څرنګه چه فسطاط یعنی خیمه مشتمل اوحاوی وی په کیناستونکو باندې دغسې داسورة هم حاوی دې په مضامینو دقرآن .

۲- بل روایت دې «عن ابی امامه رضی الله عنه قال سمعت رسول الله ﷺ یقول اقرأوا القرآن فانه یأ تی یوم القیامة شفیعاً لاصحابه اقرأوا الزهراوین البقره وسورة آل عمران فانهما یأتیان یوم القیامة کانها غمامتان اقرأوا سورة البقرة فان اخذها برکة

۱- دریم جماعت ذکرضالین.

وتركها حسرة ولايستطيعها البطلة » نومعلومه شوه چه ددې سورة نومونه دادی (۱) سورة البقرة (۲) فسطاس القرآن (۳) سنام القرآن (٤) زهراء ،چمك دار.

**ربط**: زده کړه داخبره چه دبعض علماؤو قول دې چه په کلام الله کښې ربط اومناسبت بیانول ندی پکارځکه چه لکه څرنګه چه په باغ کښې مخالف رنګونووالا ګلونه زیات حسن لری نودغه سی په قرآن پاك کښې مختلف مضامین بی دبیان دربط اومناسبت نه هم حسن لری ،او اکثرعلمأ دربط دبیانولو اهتمام کوی ځکه چه بی ربطه کلام عیب دې اودالله ﷻ کلام دعیب نه منزّه دې ، اودغه شان اکثر علمأ اکابرین دسورة دمضامینو خلاصه بیانولو اهتمام کوی ځکه پدې سره تول سورت ذهن نشین شی. اودا دواړه امرین ذوقی دی، هر مفسر دخپل ذوق مطابق ربط اوخلاصه بیانوی اوپدې کښې حاجت نشته دې نقل ته دسلفونه.

اومونږدحضرت شیخ الشیوخ حضرت مولاناحسین علی رحمه الله دذوق مطابق ربط اوخلاصه بیانوو پس ددې سورة ربط دفاتحې سره په څووجوهو سره دې .

(۱) **اول ربط** : اسمی دې او دا دحضرت شیخ دمخصوص افاداتونه دې اود دې تفصیل دادې چه یهودو به دبقرې عبادت کولواوهم داوجه وه چه کله سامری دعجل صورة جوړکړو نو یهودو ئی عبادت شروع کړو با وجود د حضرت هارون علیه السلام او د موسیٰ علیه السلام دموجودګئ نه. او دیهودو نه علاوه مشرکین عرب هم پدې کښې مبتلا ؤ اوکله به چه باران نه کیدلونو دوئ به دغوا په لکئ پورې اوچ واښه اوتړل او اُوربه ئی ورته ولګولو چه دا فریاد وکړی اوالله باران وکړی چنانکه دجاهلیة د زمانی یوسلیم الفطرة شاعر «الورل الطائی» دضعیف الاعتقاد مشرکانو ده ملامت کولولپاره وائی : «شعر»

**لادَرَّ دَرّ رجال خاب سعیهم یستمطرون لدی الازمان بالعُشر**

یعنې دهغه خلقو عمل بی نتیجې، بې خیره دې چه دهغوئ کوشش ناکام دې چه هغوئ په خشك سالئ کښې په عُشر اوښانو سره باران طلب کوی .

بل فرمائی :

**اجاعل انت بیقوراً مسلعةً ذریعةً لک بین الله والمطر**

آیا ته دالله ﷻ اودباران په درمیان کښې هغه غوا ذریعه ګرزوې چه هغې پورې سلَع واخه تړلې شوی وی، اوعیسایانو ،آل عمران لره یعنی حضرت عیسی اوحضرت مریم علیهما السلام معبودان ګرزول او مشرکینُ عربو دشرك نه علاوه حقوق العباد خصوصا حقوق

دنساؤو ډیرپه بې دردئ سره پامال کول او دبنځوسره به ئې ډیروحشیانه اوبې انصافه سلوك کولۀنو ددې سورتونو **اسمي ربط** درانګی دې ، چه په فاتحه کښې دی، ﴿إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ﴾ ،اوپه سورة بقره کښې داده چه «لانعبدولانستعين البقرة كمافعل اليهود والمشركين» اوپه سورة آل عمران کښې دی چه «لانعبدولانستعين آل عمران كمافعل النصارى» اوپه سورة نسآء کښې «ونؤدى حقوق النسآء رغبةً نؤتى صدقاتهن نحلةً » نوپه سورة مائده کښې دی چه «فانزل علينا مائدة رحمتك وفضلك فى الدنيا والآخرة» ؛

(2) **دویم ربط**: په سورة فاتحه کښې دهدایت درخواست وشووچه «اهدناالصراط المستقيم» نوپدې سورة کښې دهغې اجابت دې چه ﴿الٓمٓ ۝ ذَٰلِكَ الْكِتَابُ لَا رَيْبَ فِيهِ هُدًى لِّلْمُتَّقِينَ ۝﴾

(3) **دریم ربط** په سورة فاتحه کښې د درې جماعتونوذکر ؤ 1 - یومنعم علیهم 2- بل مغضوب علیهم 3- دریم **ضالین** نودلته دهغه درې واړه جماعتونوتفصیل دې په ترتیب دفاتحه سره (لف اونشرمرتب) اول بیان دمنعم علیهم دې، د ﴿ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِالْغَيْبِ﴾ نه د ﴿وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴾ پورې «اى هم المنعمون بنعمة الهداية والفلاح» ددویم جماعت ذکردان الذين كفروا...الخ نه تر ختم الله الخ... پورې دې،یعنی مهر دغضب په دوئ لګیدلې دې او دَدریم جماعت ذکر د «ومن الناس — الخ» نه شروع دې اوتفصیل ئې داسې شویدې ﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الضَّلَالَةَ﴾ اوضلالت چه چاته حاصل شی نوهغه ضال وی

(4) **څلورم ربط** : دسورة فاتحه مرکزی مضمون داؤ چه ﴿إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ ۝﴾ نوپه سورة بقرة کښې دغه مضمون یعنی توحید ، د مختلف مقاصدولپاره درې واري ذکردې

اول : ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ وَالَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ۝﴾ .

دویم : ﴿وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ لَّا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمَٰنُ الرَّحِيمُ ۝﴾

دریم : ﴿اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ لَا تَأْخُذُهُ سِنَةٌ وَلَا نَوْمٌ لَّهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ

وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِۗ مَن ذَا ٱلَّذِي يَشۡفَعُ عِندَهُۥٓ إِلَّا بِإِذۡنِهِۦۚ يَعۡلَمُ مَا بَيۡنَ أَيۡدِيهِمۡ وَمَا خَلۡفَهُمۡۖ وَلَا يُحِيطُونَ بِشَيۡءٖ مِّنۡ عِلۡمِهِۦٓ إِلَّا بِمَا شَآءَۚ وَسِعَ كُرۡسِيُّهُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضَۖ وَلَا يَـُٔودُهُۥ حِفۡظُهُمَاۚ وَهُوَ ٱلۡعَلِيُّ ٱلۡعَظِيمُ ﴿٢٥٥﴾ ﴾ .

درې واړې ذکرکول دجداجدا مقصدونو لپاره دی اول وارلپاره دنفې دشرك فی التصرف. دويم وار لپاره دنفی د شرك فعلی ده، اوددې وجه نه دغه ځای اول دتوحيد ذکردې اوبيائی د دليل ذکردې اوبيا مسئله دتحريمات غيرالله اوتحريمات الله اودنذرلغيرالله ذکرده- اودريم وار لپاره دنفی شرك فی الشفاعت دې لکه فرمائی ﴿مَن ذَا ٱلَّذِي يَشۡفَعُ عِندَهُۥٓ إِلَّا بِإِذۡنِهِۦ﴾ .

## دسورت دمضامينو خلاصه

دمضامينو په اعتبارسره داسورت دوه حصی دې اويوتمهيد دې . تمهيد داول نه د آيت (۲۰) ((إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ)) پورې دې اوپدې کښې دوه خبرې بيانيږی اول داچه د کوم هدايت سوال چه تاسوکړې ؤپه فاتحه کښې هغه به تاسوته د قرآن مجيد نه ملاويږی.

﴿ذَٰلِكَ ٱلۡكِتَٰبُ لَا رَيۡبَۛ فِيهِۛ هُدٗى لِّلۡمُتَّقِينَ ــ الآيه﴾ اودويم داچه کومه دعوه بعدکښې ذکرکيږی (**توحيدورسالت**) دهغې متعلق خلق درې فرقې دی يوه فرقه ظاهراً باطناً منونکې ده، بله فرقه ظاهراً باطناً انکارکونکې ده، بله فرقه ظاهراً منونکې ده اوباطنا انکارکونکې ده .

دتمهيدنه بعد بيا دسورت دوه حصی دی : په اوله حصه کښې چه شروع د ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱعۡبُدُواْ رَبَّكُمُ ٱلَّذِي ــ الخ﴾ 21 . نه اوختم ده په ﴿وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُتَّقُونَ ﴿١٧٧﴾﴾ باندې پدې کښې دوه مسئلې ذکرکيږی او د دواړو تعلق د اعتقاد سره دې اول توحيد ، دويم رسالت . او دسورت دويمه حصه شروع ده، دآيت 178- تر آخر پورې ددې مرکزی اوبنيادی مضمون هم دوه مسئلې دی چه دهغې تعلق د عمل سره دې او هغه جهادفی سبيل الله اونفاق فی سبيل الله دی - **دحصه اولیٰ تفصيل** دادې چه د ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱعۡبُدُواْ ــ الخ﴾ نه د ﴿فَأُوْلَٰٓئِكَ

﴿هُمُ ٱلۡخَـٰسِرُونَ﴾ پورې بيان دتوحيد ومايتعلق به دې او ددې نه بعد، د آيت ۱۷۷- پورې مسئله د رسالت اود هغې متعلقات دی، دمسئلۀ توحيدتفصيل دارنګې دې چه ﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱعۡبُدُواْ﴾ دعوی د توحيدده معنی ئی داده چه «وَحّدواربکم» ﴿ٱلَّذِى خَلَقَكُمۡ وَٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكُمۡ﴾ دائی دليل عقلی نفسی دې ﴿ٱلَّذِى جَعَلَ لَكُمُ ٱلۡأَرۡضَ فِرَٰشًا﴾ دا يې دليل عقلی آفاقی سفلی دې ﴿وَٱلسَّمَآءَ بِنَآءً﴾ دايې دليل عقلی آفاقی علوی دې ﴿وَأَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً.... الايه﴾ يې دليل عقلی آفاقی جوی دې ﴿فَلَا تَجۡعَلُواْ لِلَّهِ أَندَادًا﴾ يې نتيجه ده ﴿وَإِن كُنتُمۡ فِى رَيۡبٍ مِّمَّا نَزَّلۡنَا ـ الايه﴾ جواب داولې شبهې دې په توحيدباندې، شبهه داوه چه داخبره تا دخپل طرف نه جوړه کړيده او دالله جل جلاله د طرفه نده. کماقال الله تعالى ﴿أَمۡ يَقُولُونَ ٱفۡتَرَىٰهُ﴾.

﴿إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَسۡتَحۡىِۦٓ أَن يَضۡرِبَ مَثَلًا مَّا بَعُوضَةً فَمَا فَوۡقَهَا﴾ ددويمې شبهې جواب دې. شبهه داوه چه دعویٰ توحيدکه چرې دالله ﷻ دطرفه وې نوپديکښې به دحقير اشيأ ذکرنوې اودنيکانواولياؤ دبلنې اوطلب امداد تشبيه به دحقير اشياؤ سره نوې ورکړې شوې حالانکه په سو رة عنکبوت کښې داتشبيه موجوده ده ﴿مَثَلُ ٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُواْ مِن دُونِ ٱللَّهِ أَوۡلِيَآءَ كَمَثَلِ ٱلۡعَنكَبُوتِ - الايه﴾

﴿كَيۡفَ تَكۡفُرُونَ﴾ ددفع شبهات نه بعدعود دې اصل موضوع د توحيد ته.

﴿وَإِذۡ قَالَ رَبُّكَ لِلۡمَلَـٰٓئِكَةِ - الايه﴾ دامتعلق دې ددعویٰ توحيدسره ځکه چه پدې قصه کښې د درې قسمه مخلوق ذکر دې. ۱- ناری ۲- نوری ۳- خاکی. ناری مخلوق چونکه ستاسو آبائی دشمن دې نوهغه خو ستاسو معبود نشی کيدې ځکه معبود دُشمن نه وی کماقال الله تعالى ﴿أَفَتَتَّخِذُونَهُۥ وَذُرِّيَّتَهُۥٓ أَوۡلِيَآءَ مِن دُونِى وَهُمۡ لَكُمۡ عَدُوٌّ﴾ او نوری مخلوق دخپل عجز او لاعلمی اقرار په خپله کړې دې ﴿سُبۡحَـٰنَكَ لَا عِلۡمَ لَنَآ - الايه﴾ اوعاجز لاعلم

معبودنشی کیدې، اوخاکي مخلوق دشیطان په دهوکه کښې راغې.

﴿فَأَزَلَّهُمَا ٱلشَّيْطَٰنُ﴾ اومعبود خو دهوکه کیږی نه . نو معلومه شوه چه بل څوك معبو نشته نو ثابت شو دا چه «یاایهاالناس اعبدوا» داعمومی دعوت توحیدؤ، اوچونکه دمدنې په گردونواح کښې یهود آبادؤ اوپه دوئ کښې علماً هم ؤ او اوپیران هم ؤ او دواړه طبقې دعام خلقو لپاره مقتدا او مرجع وې نوکه چرې دوئ ایمان راوړی نو ډیرخلق به ایمان راوړی نو ددې وجه نه دعمومی دعوت نه بعدخصوصی دعوت بنی اسرائیلوته ورکولې شی :

﴿ يَٰبَنِيٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ٱذْكُرُوا۟ نِعْمَتِيَ ٱلَّتِيٓ أَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ وَأَوْفُوا۟ بِعَهْدِيٓ أُوفِ بِعَهْدِكُمْ وَإِيَّٰيَ فَٱرْهَبُونِ ۝ وَءَامِنُوا۟ بِمَآ أَنزَلْتُ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُمْ وَلَا تَكُونُوٓا۟ أَوَّلَ كَافِرٍۭ بِهِۦ﴾

یعنی که تاسو کفروکړئ او ایمان او توحید قبول نه کړئ نوستاسوپه وجه به نور خلق هم کافر او دَ توحیدنه انکارکوونکی شی نودهغوئ دکفر وبال هم په تاسودې ،نو دا ستاسو دا جرم دوچندجرم اوکفردې ،پدې کښې بنی اسرائیلوته اته ۸- اوامراوڅلور ۴- نواهی ذکردی. ددې نه بعد بیا د آیات ۴۹- نه پنځه انواع دبنی اسرائیلو ذکرکیږی دیهودو د تذکیر اوتفهیم لپاره او دا مشتمل دې په بیان دانعاماتو او نقمتونو او دارنگه د دوئ او ددوئ دآباؤ دخباثتونو ذکردې دآیات ۹۰ پورې لپاره ددې چه نورخلق ددوئ اتباع ونکړی اوبیا ددوئ دیوباطلې مقولې چه ﴿نُؤْمِنُ بِمَآ أُنزِلَ عَلَيْنَا﴾ تردید دې په پنځه وجوهوسره او دوئ ته دمباهلې چیلنج دې ﴿فَتَمَنَّوُا۟ ٱلْمَوْتَ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ۝﴾ بیاد آیت ۹۷ نه بعد دیهودو په توحیدباندې درې شبهات اوجوابونه دی، اوله شبه داوه چه دعوی توحیدیعنی ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱعْبُدُوا۟﴾ راوړونکی فرشته جبرئیل ﷺ زمونږ دشمن دې نوځکه ئی مونږنه منو، نوجواب راغې ﴿مَن كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيلَ - الایه﴾ اودویمه ۲ شبه داوه چه زمونږ څه اوراد اوظائف چه دحضرت سلیمان ﷺ نه منقول دی اومونږته رسیدلی دی په هغې کښې دغیرالله نه استعانت اواستمداد موجود دې نولهذا مونږ ستا دعوی ﴿إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ﴾،

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱعۡبُدُواْ - الآيه﴾ نه منو ، اودريمه ۳ شبه داوه چه هاروت اوماروت چه دوه فرشتې دی هغوئ نه الله ﷻ دسحراو جادو تعليم ورکړې ؤ اوپه سحراوجادوکښې استعانت دغيرالله نه دې نو معلومه شوه چه استعانت دغيرالله نه جائزدې نوځکه مونږ ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱعۡبُدُواْ﴾ والا خبره نه تسليم کؤ نوجواب کښې الله ﷻ ؤفرمايل ﴿وَٱتَّبَعُواْ مَا تَتۡلُواْ ٱلشَّيَٰطِينُ عَلَىٰ مُلۡكِ سُلَيۡمَٰنَۖ وَمَا كَفَرَ سُلَيۡمَٰنُ وَلَٰكِنَّ ٱلشَّيَٰطِينَ كَفَرُواْ يُعَلِّمُونَ ٱلنَّاسَ ٱلسِّحۡرَ وَمَآ أُنزِلَ عَلَى ٱلۡمَلَكَيۡنِ - الآيه﴾ دشبهاتو دجواباتونه بعد هرکله چه يهودوته دانکار دعوی ځه وجه په نظر را نغله ، نودوئ دا سازش خفيه طورجوړکړوچه په مسلمانانو کښې الفاظ موهم دشرك غيرشعوری طورسره داخل کړی چه بيا په شرك کښې مبتلا شی.

نو الله ﷻ ددوئ ددې سازش نه مسلمانان آگاه کړل او وې فرمائيل : ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَقُولُواْ رَٰعِنَا وَقُولُواْ ٱنظُرۡنَا وَٱسۡمَعُواْۗ وَلِلۡكَٰفِرِينَ عَذَابٌ أَلِيمٞ ﴿١٠٤﴾﴾

ددې نه بعد ديهودو اونصاریٰ اومشرکين عرب د پنځه معاندانه خبرو شکوه او دهغې جواب . دآيت نمبر( ۱۱۵)- نه تر(۱۲۵) پورې ، بياپه دعوی توحيد باندې دليل نقلی پيش کړې شو. ﴿وَٱلَّذِينَ ءَاتَيۡنَٰهُمُ ٱلۡكِتَٰبَ - الآيه﴾ اوبيايهوديانو ته ياد دهانی ورکړې شوه چه ﴿يَٰبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ ٱذۡكُرُواْ — الايه﴾ آيت نمبر( ۱۲۲- ۱۲۳) . په دې باندې ختمه شوه مسئله دتوحيد.

او دحصه اولی دويم مضمون : ((مسئله رسالت ومايتعلق بهاد)) آيت نمبر (۱۲۴ ) نه شروع شوه . اول تمهيد دې چه حضرت ابراهيم ﷺ چه مشرکين عرب اويهود اونصاریٰ هغه لره خپل روحانی اوجسمانی پلارمنی اوهغه ابراهيم ﷺ چه په هر ازمائش کښې کامياب شوې دې اوالله ﷻ ورته عهدهٔ امامت ورکړې ده اوهغه ابراهيم ﷺ چه خانه کعبه ئی جوړه کړې ده نو دوئ دالله ﷻ نه دعاغوښتلې ده چه ﴿رَبَّنَا وَٱبۡعَثۡ فِيهِمۡ رَسُولٗا مِّنۡهُمۡ - الايه﴾ نورسول ﷺ ددغه دعأ مصداق دې ((کماقال عليه الصلاة والسلام انادعوة ابی ابراهيم)) او بل دا چه ملت ددې رسول، ملت ابراهيمی دې . قال الله تبارك وتعالی ﴿وَمَن يَرۡغَبُ عَن مِّلَّةِ إِبۡرَٰهِـۧمَ إِلَّا مَن

سَفِهَ نَفْسَهُ - الایه﴾ دادوه وجهې د اثبات رسالت لپاره دی. اوددې نه بعد دیهودو نصاراوؤ درې غلطی پروپیګنډې اودهغې جواب دې .اوله پروپیګنډه داوه چه یعقوب ﷺ دوفات په وخت کښې وصیت کړیدې چه تاسوخماعبادت کوئ ، دهغې جواب په دې آیت کښې دې .

﴿أَمْ كُنتُمْ شُهَدَآءَ إِذْ حَضَرَ يَعْقُوبَ ٱلْمَوْتُ - الآیه﴾.

اودویمه پروپیګنډه داوه چه یهودو ووئیل چه ابراهیم ﷺ اودغه رنګه نور انبیأ علیهم السلام یهودیان وؤ. اوعیسایانو وئیل چه عیسایان وؤ . لهذا چه څوك یاعیسائی شی یایهودی شی نو هدایت به مومی ددې جواب راغې آیت نمبر(۱۲۵) کښې. اودریمه پروپیګنډه داوه چه یهودو وئیل چه مونږ دانبیاؤ علیهم السلام اولاد یو لهذا په مونږه به څه مُواخذه نوی . دهغې جواب راغې . ﴿تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ لَهَا مَا كَسَبَتْ- الایه﴾ .

ددې نه بعد بیا دمشرکینو دطرفه ددوه شبهاتوجوابونه : اوله شبه دتحویل قبلې متعلق ده یعنی که چرې ته نبی وې نو تا دکل انبیاؤ علیهم السلام قبله چه بیت المقدس دې ولې پریخوده نو دهغې جواب دآیت ۱۲۴ نه ترآیت ۱۵۷ پورې ذکرکیږی..

دویمه شبه دمشرکینودطرفه داسی کیدې شوه «بلکه دبعضې مؤمنانوپه زړه کښې هم داسوال راغلې ؤوکماقی الحدیث چه سعی دصفا اومروه په درمیان کښې دامورو دجاهلیة نه ده نو کچرې ته نبی وې نو تابه داسې امرنه کولو ، جواب راغې : ﴿إِنَّ ٱلصَّفَا وَٱلْمَرْوَةَ مِن شَعَآئِرِ ٱللَّهِ ﴾. بیا زجراو تخویف ذکرکیږی هغه اهل کتابوته چه کتمان ئی کولو د رسالت دحضور ﷺ او د امر دتحویل دَ قبلې، اوبیا په آیت۱۲۳ کښې اعاده دتوحیدده سره ددلائلونه اوذکر د ابطال تحریمات غیرالله اونذر لغیرالله دې بیا دتحویل قبلې متعلق مزید تنویر بیانیږی تر آیت ۱۷۷ پورې دا خلاصه دحصه اولی شوه .

## د دویمې حصې خلاصه

د دویمې حصې خلاصه داده چه دلته هم دوه اهمْ اوبنیادی مسئلې بیانیږی اول جهاد فی سبیل الله .اودویم انفاق فی سبیل الله ،دجهاد فی سبیل الله بیان شپږ وارې کیږی کله صراحةً اوکله اشارةً . اومسئله انفاق فی سبیل الله هم شپږ وارې بیانیږی اوپه جهاد کښې لکه څرنګه

چه انفاق دمال ته ضرورت دي نو دغسې اتفاق اومنظم کيدلو ته هم ضرورت دي نو ددې وجه نه امور انتظاميه هم ذکرکيږي درې وارې اواتفاق اوانتظام هله براٰبريږي چه اصلاح دباطن وشي نولهذا امورِ مصلحه هم درې وارې ذکرکيږي - صوم، حج، صلوة.

## مسئله د جهاد

اول وار ذکرکيږي دَ آيت - ۱۹ نه تر ۱۹۴ بيا ترغيب الى الجهاد ذکرکيږي په اته ۸ وجوهو سره دآيت ۲۰۴ نه تر ۲۱۴ پورې بيا مسئله دجهاد دويم وار ذکرکيږي دَ آيت ۲۱۲ نه تر ۲۱۸ پورې او مسائل خمسه ذوجهتين بيانيږي په مناسبت ددې حکم. ﴿وَعَسَىٰٓ أَن تَكۡرَهُواْ شَيۡـٔٗا وَهُوَ خَيۡرٞ لَّكُمۡۖ وَعَسَىٰٓ أَن تُحِبُّواْ شَيۡـٔٗا وَهُوَ شَرّٞ لَّكُمۡۚ﴾ باندې، دريم وارمسئله دجهاد ذکرکيږي د آيت ۲۴۳ نه تر ۲۴۴ او څلورم وار ذکرکيږي په آيت ۲۴۲ کښې. پنځم وارذکرکيږي په آيت ۲۵۱ کښې اوشپږم وار ذکرکيږي په آيت ۲۵۲ کښې اشارةً مقصود ئې دادې چه غرض دجهادنه اکراه فى الدين نه ده بلکه دفع دفساد ده.

## مسئله د انفاق

مسئله د انفاق يو وار ذکر ده په آيت ۱۹۵ کښې دويم وارذکرده په آيت ۲۱۵ کښې، دريم وار ذکرده په آيت ۲۱۹ کښې، څلورم وار ذکر ده په آيت ۲۴۵ کښې، پنځم وارذکر ده په آيت ۲۲۱ تا ۲۸۰ کښې تفصيلاً او ذکردحرمة دربوٰ چه مقابل د انفاق فى سبيل الله دې اوشپږم وار ذکرده په آيت ۲۸۰ کښې.

## امورانتظاميه

يوهغه دي چه دهغې تعلق دسياسة المد ينه سره دې يعنى احکام سلطانيه لکه قصاص ديت، حدود وغيره شو. بل هغه دی چه دهغې تعلق د تدبيرالمنزل سره دې لکه نکاح، طلاق ،رضاع وغيره شو، نو اول وار د امورانتظاميؤ ذکرکيږي دآيت ۱۷۸ نه تر ۱۸۲ پوری، دا بيان دسياسة المدينه دې. اودويم وار ذکرکيږي په آيت ۱۸۸ کښې .او دريم وار ذکرکيږي په آيت ۲۲۴ تر آيت ۲۳۷ پورې او دا بيان دهغه امور انتظاميه ؤدې چه تعلق لری دَ تدبيرمنزل سره

## امور مصلحه

امور مصلحه اول وار ذکرکیږی دَ آیت ۱۸۳ نه تر ۱۸۷ دویم وار ذکرکیږی دَ آیت ۱۹۲ نه تر آیت ۲۰۳ پورې دریم وار ذکرکیږی په آیت ۲۳۸ کښې او بیا تر ۲۳۹ پورې او بیا په آیت ۲۵۵ کښې اعاده دتوحید ده او دسورت په آخرکښې دبعضې امور انتظامیه ؤ اعاده او ددلیل توحید اعاده ده اوبیان دې چه نظریه دتوحید د نبی ﷺ اودکل مؤمنانو بنیادی عقیده ده

## دسورة مختصرخلاصه

په حصه اولی کښې یوتمهید دې اوبل توحید و مایتعلق به، او رسالت ومایتعلق بها. په حصه ثانیه کښې جهاد،انفاق دې، دسورت روح اولب لباب دادې چه د (لااله الاالله محمدرسول الله) لپاره منظم شئ اوجان پری قربان کړي.

﴿ الٓمٓ ﴿۱﴾﴾ دیته حروفِ مقطعات ویلې شی ځکه چه هریو دبل نه جدا جدا لوستلې شی او اطلاق دحروفو په دو باندې اصطلاح دمتقدمینو ده چه هغوئ په هره کلمه باندې اطلاق دحروفو کوی اوپه اصطلاح دمتاخرینوکښې دا اسماً دی ځکه چه «الف» اسم دخپل مسمی دې چه «ا» دي او«لام» اسم دخپل مسمیٰ دې چه «ل» دې اودغه شان میم اسم دخپل مسمی دې چه «م» دې نو دا درحقیقت اسماء مقطعات دی او دا په یوکم دیرش ۲۹سورتونوکښې ذکرشویدی، مجموعه ۷۲ حروف دی اوچه تکرارترینه لرې کړیشی نومجموعه څوارلس حروف دی اوعلماؤ ددې مجموعه دا را ویستلې ده «نصٌ حکیمٌ قاطعٌ له سرٌ».

بیا زده کړه داخبره چه دا دمتشابهاتونه دې ځکه متشابهات دوه قسمه دی یوهغه دی چه دهغې معنی نوی معلومه لکه مقطعات شو او بل هغه دی چه دهغې لفظی معنی خومعلومه وی خوهغه مراد نوی اوچه کم مراد وی نوهغه معلوم نوی لکه نسبت د«ید» مثلا یا د وجه طرف د الله ته نودلته د «ید» معنی خو معلومه ده خومراد دالله ﷻ پدې سره مونږته معلوم ندې دغه شان - ساق -عین - «استوی علی العرش» - دا ټول دمتشابهاتونه دی او.د اهل السنت والجماعت عقیده داده چه مراد ئی صرف الله ﷻ ته معلوم دې او امام مالك رحمه الله چه ویلی دی چه «الاستواءمعلوم — الخ» نودهغې معنی داده چه «معلومٌ اطلاقه علی الله» او دا مطلب ندې چه «مَعلُومٌ مُرَادِه» ځکه چه که دَدې نه مراد «عضو» شی نوبیاخومتشابه نشو بلکه

لازم شو تبعض اوتجزّی په ذات دالله تعالی کښې او دا مخالف دې دنص قطعی نه «لیس کمثله شیٌ» نو دجمهورو علمأ رائ داده چه علم ددې خاص دې په الله تبارك وتعالی پورې ، لکه بعض حضراتو ویلی دی «هذاعلم مستوروسرٌ محجوب استاثرالله تبارك وتعالی به» -امام شعبی فرمائی «سرالله فلا تطلبوه »لدې وجه نه صاحب جلالین او نور ډیر مفسرین د «آلم» او نور مقطعاتو په تفسیرکښې لیکی چه «الله اعلم بمراده بذلك» نو دا مقطعات بې معنی هم ندی او دفصاحت بلاغت خلاف هم ندی ځکه معترضین په هر دورکښې داعتراض لپاره معمولی بهانه لټوی لیکن ددې با وجود هغوئ پدې باندې څه اعتراض ندې کړې نومعلومه شوه چه دا بی معنی یاخلاف فصاحت او بلاغت ندی.

باقی داخبره چه هرکله ددې معنی مونږته معلومه نده نوڅه فائده ده دنزول ددې ؟ نوجواب دادې چه په نزول ددې کښې بې شماره فوائد دی منجمله دهغې نه یوه داده چه لکه څرنگه چه اعمال شرعیه دوه قسمه دی یوهغه دی چه دهغې حکمت اومنفعت زمونږ په فهم کښې راځی لکه «صلوة» چه حکمت ئی معلوم اوظاهر دې چه تعظیم دخپل خالق دې یا «صوم» چه حکمت ئی معلوم دې چه هغه شهوات نفسانیه کمزوری کول دی یا «زکوة» چه حکمت ئی معلوم دې چه هغه همدردی ده دفقرأ او مساکینوسره.

اوبل قسم اعمال شرعیه هغه دی چه دهغې حکمت زمونږپه فهم کښې نه راځی لکه په حج کښې رَمْی دجمراتواوسعی دصفا او مروه وغیره ددې حکمتونه اگرکه زمونږپه فهم کښې نه راځی لیکن کمال اطاعت او انقیاد خو دیته ویلې شی چه د احکم الحاکمین ډهرحکم تعمیل اوکړې شی خواه که دهغه ددغه حکم، حکمت په فهم عقل کښې رازی یانه راځی بلکه داطاعت کولولپاره علت دریافت کول بې ادبی ده نولکه څرنگه چه اعمال شرعیه دوه قسمه دی نودغه شان «اقوال» هم دوه قسمه دی یوهغه دی چه دهغې مفهوم زمونږپه فهم کښې راتلې شی او دهغی په معانیو کښې غور او فکرکول او دهغې مطابق عمل کولوحکم شویدې او بل هغه اقوال دی چه دهغې مفهوم زمونږعقل اوفهم ته نشی راتلې خو بیاهم دهغې د ویلو او منلو او اعتقاد ساتلومونږته حکم شویدې، باقی داچه بعض مفسرینو چه ددې حروفو معانی بیان کړیدی لکه دبعضوقول دې چه ددې معنی ده : «اناالله اعلم» او بعضوویلی دی «الف» دالله نه دې او «لام» د جبرئیل نه دې او«میم» دمحمدنه دې .

یاشاه ولی الله صاحب فرمایلی دی چه پدې حروفوکښې په قانون دعلم الحروف سره اشاره ده مضامینو د کل سورت ته، نوداټول صرف تمثیل اورموز بیانول دی، نه معنی حقیقی

﴿ذَٰلِكَ ٱلْكِتَٰبُ لَا رَيْبَ ۛ فِيهِ﴾ په دې آیت کښې دترکیب نحوی ډیرصورتونه دی (۱)

«ذلك الكتب» مبتدأ او «لاریب فیه» جمله ورله خبر

(۲) (ذالك) مبتدأ او(الكتاب) ورله خبراول، او (لاریب فیه) خبربعدخبرشو، اوپدې صورت کښې په (الكتاب) کښې به لام، یا لام الحقیقت یا لام العهد شی مطلب به ئې داشی چه کامل او په صحیح معنی کښې کتاب هم داکتاب دې. شعر:

**قرآن بخوان بصورت ومعنی که مثل او ندیده هیچ دیده ونشنیده هیچ گوش**

یا دا هغه کتاب دې چه موعود دې په کتب سابقه کښې اوپدې دواړوصورتونوکښې ﴿هُدًى لِّلْمُتَّقِينَ﴾ یاخبر بعدخبر دې د «ذالك الكتاب» لپاره یا علیحده جمله ده په حذف دمبتدأ سره «اي هوهدی» او د «لاریب فیه» معنی داده چه نشته هیڅ شك په کیدلو ددې کتاب کښې دالله دطرفه.

(۳) (ذالك الكتٰب) مبتدأ او «هدی للمتقین» ئې خبردې او (لاریب فیه) جمله معترضه ده لپاره دتاکید (ای لاریب فی کونه هدًی للمتقین — الایه) او په اول دواړه تقریرونو سره معنی د «لاریب فیه» داده چه (لاریب فی کونه من عندالله)، یا (لاریب فی انه کامل) ځکه ریب اوشك تعلق لری دنسبت سره اوضمیر د فیه راجع دې کتاب ته اوهغه مفرددې.

او دا ترکیب راجح دې په نزد دشیخ الشیوخ حضرت مولاناحسین علی -وکان الاستاذیقول عند هذه الایة: شعر:

**درصرف صرف کردی عمرعزیزی را درنحو، محوگشتی نشاختی خدارا**

اود (ریب) معنی ده شك، اوبعضې حضرات فرمائی چه ریب خاص دې دشك نه ځکه ریب هغه شك ته وائی چه سره دتهمت نه وی، اودریب یوه معنی حادثه ده لکه (ریب المنون) اودلته کښې مراد دشك معنی ده.

سوال راځی چه په قرآن کښې شك کوونکی خوډیردی نوځرنګه نفی دریب صحیح کیږی

(۱) جواب په دې آیت کښې نفی دریب ده نفی دمرتابینُ نده معنی داده چه دا قرآن فی نفس الامر محل دریب ندې او دا معنی نده چه شك کوونکی په قرآن کښې نشته، او دا خویقینی خبره ده چه قرآن محل دریب ندې، اوکه څوك پکښې شك کوی نودغه دهغه خپله کج فهمی او

کم فهمی ده.

(۲) صاحب تلخیص اوسکاکی وائی چه دا دقبیلی دفرض کولودموجودنه په منزله دمعدوم دي ځکه چه مزیل دشك موجود دي.

(۳) امام رازی اوبعضي نورو ویلی دی چه نفی په معنی دنهی سره ده یعنی ((لاترتابوفیه)) یعني ریب مکوئ پد یکښي.

﴿هُدًى لِّلْمُتَّقِينَ﴾ دا خبر بعد خبر دي د ((ذالك الکتب)) لپاره یا حال دي نومنصوب دي یا خبرد مبتدأ مقدري لپاره دي چه ((هو)) دي او راجع دي کتاب ته اوحمل د (هدًی) په کتاب باندي یا مبالغۀ دي یا مصدر په معنی د اسم فاعل دي او یا په واسطه د ((ذو)) سره دي،

((متقین)) دتقوی نه مأخوذ دي او تقوی په لغت کښي دیته ویلی کیږی چه په پوره احتیاط سره ځوك ځان بچ کوی اوپه اصطلاح دشرع کښي دیته وائی چه ځان ساتل دمنهیاتو او راتله کول په ماموراتو.

او دتقوی مراتب ډیردی (۱) ځان ساتل دشرك نه لکه. ((والزمهم کلمة التقوی)) (۲) ځان ساتل دمعصیت نه لکه ((ولون اهل الکتاب أمنواواتقوا)). (۳) ځان ساتل د متشابهاتونه لکه حدیث کښي دی ((لایبلغ العبدحقیقة التقوی حتی یدع ما حاك فی الصدر)) (بخاری) (۴) زړه پاکول دشغل دغیرالله نه.

**علامات تقوی** : (۱) صبر په تکلیف کښي، (۲) رضا په قضا، (۳) شکر دنعمت، (۴) عمل په قرآن شریف باندي. ((عبدالله بن زبیر))

سوال راځی چه قرآن خو د تمامو انسانانو اوجناتو دهدایت لپاره نازل دي کماقال تعالی فی موضع اخر ((هدی للناس)) یعنی دا قرآن هدایت دي لپاره د ټولوخلقوخواه که متقی وی اوکه غیرمتقی وی. نودلته تخصیص دمتقین ولي اوشو؟

جواب دادي چه بیشکه چه قرآن د تمامو مخلوقاتو د هدایت لپاره دي لیکن نفع او فائده ترینه صرف متقیان اخلی.

اوچونکه پدي آیاتونوکښي د دري قسمه خلقو بیان مقصودؤ مؤمنین، کافرین. منافقین، نو پدي آیت کښي اشاره ده دي خبري ته چه کافرین، منافقین چه دقرآن نه هدایت اونفع نشی حاصلولي نو دا ځکه چه پدوئ کښي تقوی اوخوف الهی نشته دي اومؤمنان چه ترینه نفع اوهدایت حاصلوی نودا لدي وجه نه چه ددوئ په زړه کښي خوف الهی دي

بیاسوال راځی چه متقی ته خوهدایت حاصل شوي دي نومتقی ته هدایت ورکول تحصیل

دحاصل دي او دا خو باطل دي؟

(۱) جواب دادي چه مراد دمتقی نه متقی بالفعل ندي مراد بلکه مراد ترینه انابت والا او خوف خدا والا دي یعنی دا قرآن دهغه چا لپاره هدایت دي چه په زړه کښې ئی انابت اوخوف الهی وی اوضد او تعصب نه کوی نو په (للمتقین) سره یوه معنی مراد ده یعنی بالقوه متقی اوبعدکښې چه صفات دی «الذین یؤمنون .... الایه» هلته بالفعل متقی مراد دي په طریقه دصنعة الاستخدام سره.

(۲) یا اطلاق دمتقین باعتبار ماسیکون سره دي.

(۳) عبیدالله سندهی رحمه الله فرمائی چه مطلب دآیت دادي چه دا قرآن دالله تعالی کتاب دي ځکه چه دده دهدایت نه داسی جماعت تیارشویدي چه متقیان دی ﴿ٱلَّذِينَ يُؤۡمِنُونَ بِٱلۡغَيۡبِ وَيُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ وَمِمَّا رَزَقۡنَٰهُمۡ يُنفِقُونَ﴾ او دا مراد نه دي چه په دوران دتقوی کښې ورته هدایت کوی چه تحصیل دحاصل راشی لکه ویلې شی. «فلان جوان شیر دادهٔ فلان زن است» یعنی ددغه زنانه په پیوکښې خه تاثیرؤ ، دانه چه په دوران جوانی کښې یې ورله پئ ورکړیدی.

(۴) حضرت تهانوی رحمه الله فرمائی چه مراتب دتقوی لاتقف عندحد دی، نوپه دوران دتقوی کښې هم ورته قرآن هدایت کوی او د هرې مرتبې دتقوی نه ئی فوقانی مرتبی ته رسوی.

(۵) د «هدی للمتقین» نه تثبت اوپوخ والې مراد دي یعنې دقرآن په وجه پوخ والې په هدایت کښې راځی.

روی ابن ابی حاتم عن معاذبن جبل رضی الله عنه یقول یحبس الناس یوم القیٰمة فی بقیع واحدفینادی منادٍ این المتقون فیقومون فی کنف الرحمٰن لایحتجب الله منهم ولایستتر- قلت من المتقون قال قوم اتقواالشرک وعبادة الاوثان واخلصوالله العبادة فیمرون الی الجنة . وروی ابن ماجه عن ابی امامة رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ماستفادالمرأ بعدتقوی الله خیراً من زوجةٍ صالحةٍ ان نظرالیهاسرّته وان امرهااطاعته وان اقسم علیهاابرته وان غاب عنها نصحته فی نفسهاوماله.

﴿يُؤۡمِنُونَ بِٱلۡغَيۡبِ﴾ (غیب) مصدر بمعنی الفاعل دي اوبمعنی المفعول ندي ځکه دا فعل لازم دي او بأ په بالغیب کښې یا صله ده لپاره د (یؤمنون) نو غیب «مؤمن به» شو

او غیب په دوه قسمه دي یوغیب حقیقی دې، دا هغه دې چه دهغه علم په اسبابوسره نـ وی، نه حواس،نه عقل، نه وحی، او دا قسم غیب خاص دي په الله ﷻ پورې اومراد دې په دې قول دالله ﷻ کښې : ﴿قُل لَّا يَعْلَمُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ الْغَيْبَ إِلَّا اللَّهُ﴾ ، اوبل غیب اضافی دې او دا هغه دې چه نه معلومیږی په حواسواو بداهة دعقل سره بلکه طریقه دمعلومیة دهغې صرف وحی وی اودلته دغه معنی مرادده څکه چه مفسرینو دا معنی لیکلی ده : ((مالایقع تحت الشعور ولاتقضیه بداهة العقل)) (روح) نودلته دغیب نه هغه امور مراددی چه ذکرشویدی په حدیث جبرئیل کښې: ((ان تؤمن بالله وملائکته .... الحدیث)) لیکن دلته مقصود تسمیه د الله ﷻ په غیب سره نده بلکه ضمناً اطلاق دغیب دې په الله ﷻ باندې نو دا سوال وارد نشو چه لازمیږی ددینه اطلاق دغیب په الله ﷻ باندې.

اوغیب او غائب یوه معنی ده، نو اطلاق دغائب ؤشوو په الله ﷻ باندې. اوبعضې علماؤ ویلی دی چه فرق دې په مابین دغیب او دغائب کښې نوالله ﷻ غیب دې اوغائب ندې څکه چه غیب هغه دې چه (مالاتراه) یعنې چه ته ئی نه وینې اوغائب هغه دې چه (مالایراك) یعنې چه تا نه وینی.

اوایمان دصحابؤ ﷺ په نبی کریم ﷺ باندې درحقیقت ایمان ؤو په رسالت باندې اورسالت هم غیب دې دلائل پرې قائم شویدی ، یا دا دباب دتغلیب نه دې

**بیازده کړه داخبره** : چه ایمان په مغیباتوباندې دهغه کیفیاتواوتفصیلاتومطابق راوړل فرض دی چه کوم تفصیلات ،کیفیات مخبرصادق ﷺ بیان کړیدی او د خپل ظن تخمین مطابق امور غیب منل ایمان بالغیب ندې او دعالم غیب امور یوقسم هغه دی چه په دلائل قطعیؤسره ثابت دی.لکه حشر،نشر بالاجساد، عذاب قبر وغیره ددې نه انکارکفردې ، او بل قسم هغه دی چه په دلائل ظنیؤسره ثابت دی لکه ایصال ثواب یاصلوة اوسلام د امتیانو حضور ﷺ ته پیش کیدل، ددې نه انکار بدعت اعتقادی دې ، اوبل قسم هغه دې چه په هغې کښې په ظاهر تعارض د دلائلو وی او اجتهاد لره په کښې دخل وی ددغه شان امورو منل یا رد کول مخل ایمان ته ندی، البته پدې کښې ترجیح دیوجانب ته دصحیح دلیل ضرورت دې

(۲) یابالغیب په موضع دحال کښې دې او با لپاره دمصاحبت ده، تقدیری عبارة دارنګه دې.

((یؤمنون حال الغیبة منکم کمایؤمنون حال الحضورلاکالمنافقین)) ، یاتقدیری دعبارة دارنګه دې ((یؤمنون حال کونهم غائبین عن المؤمن به)) نومؤمن به محذوف دې . او ددې تائید دیوحدیث

نه کیږی (رواه البیهقی وابن مردویه) قال رسول الله ﷺ : ای الخلق اعجب الیکم ایمانا : قالوا الملائکة قال ومالهم لایؤمنون وهم عندربهم قال فالنبیون قال ومالهم لایؤمنون والوحی ینزل علیهم قالوا فنحن قال ومالکم لاتؤمنون وانابین اظهرکم قال فقال رسول الله ﷺ الاان اعجب الخلق الیّ ایماناً لقومٌ یکونون من بعدکم یجدون صحفافیها کتاب یؤمنون بمافیها

(۳) یابالغیب نه مرادبالقلب دي او بأ لپاره د آلې ده «ای یؤمنون بقلوبهم لاکمن یقولون بافوههم مالیس فی قلوبهم» .

﴿وَيُقِيمُونَ ٱلصَّلَوٰةَ﴾ دادمتقینُ دویم صفت دي د ایمانیاتو نه بعد دعباداتُ بیان او دا دعبادت بدنیه بیان دي اوپه عبادات بدنیؤکښې زیات اهم مونځ دي نوځکه تخصیص بالذکر وشؤ اومونځ زیات اهم ځکه دي چه صلوة دایمان نه بعد اول فرض شویدي اوپه قیامت کښې به ئی اول حساب کیږی لکه په حدیث شریف کښې چه وارد دی : «ان اول مایحاسب به العبدمن عمله صلوته فان صلحت صلحت سائرعمله وان فسدت ،فسدت سائرعمله ــــ الحدیث» .

نومعلومه شوه چه دمونځ په برابرولو سره دزندګی تمام شعبې خواه که تجارت دي اوکه نوري شعبې دی برابریږی نوددې وجه نه مونځ دایمان نه بعدمتصلاً ذکرشو.

او (یقیمون) داقامة نه مشتق دي او اقامة په عرف کښې حق پوره کولوته وائی لکه پدې قول دالله ﷻ کښې : ﴿حَتَّىٰ تُقِيمُوا۟ ٱلتَّوْرَىٰةَ وَٱلْإِنجِيلَ﴾ ای توفوا حقوقهمابالعلم والعمل نو د (یقیمون) ، معنی داده چه مونځ اداکوی دټولوحقوقُ سره.

اوحقوق د (صلوة) (۱) یوظاهری دی لکه طهارة دمکان،اوبدن ،او د ثیاب وغیره یالکه په حدیث کښې دی. «سوّوا صفوفکم فان تسویة الصفوف من اقامة الصلوة». یعنی دمونځ په حقوق کښې داهم ده چه تسویه دصفوف ؤوشی. (۲) او بل باطنی حقوق دی هغه دادی چه مقصودئی دصلوة نه رضأ الهی وی او د استحضاراوخشوع او خضوع سره وی.

﴿وَمِمَّا رَزَقْنَٰهُمْ يُنفِقُونَ﴾ دادمتقین دریم صفت دي اودعبادت مالیه بیان دي «مما» په اصل کښې (من ما) دي «من» د تبعیض لپاره راځی نو پدیکښې اشاره ده چه په انفاق کښې هم اسراف ندي پکار او اسراف دادي چه مال په معصیت کښې خرچ شی یاپه خلاف سنت طریقی سره صدقه کړي شی او رزق «ماینتفع به الحیوان» ته ویلې شی اومراد د «رزقناهم» نه

«اعطیناهم» دي څکه چه دعلم کلام مسئله ده چه څوك د بل چا رزق نشی خوړلي . او مراد له دینه په نزد دبعضوعلماؤ زکوة دي څکه چه په نورو آیاتونوکښې دصلوة نه بعددزکوة ذکردي او په نزد دنورو علماؤ ترینه مراد عام دي که نفلی صدقات وی اوکه فرضی وی اوپه نزد دمحققینومفسرینو دینه مراد تمام نعمتونه ظاهری،باطنی، مادی، بدنی، مالی وغیره اوغیر مادی لکه علمی صلاحیتونه عقل،هنر،فراست،سوچ،فکر، عمر،وغیره داټول مراد دی.

**فائده** : په دنیاکښې درې نظامه دی (۱) اشتراکیت : هغوئ دا وایی چه مال دچا نه دې ، ددې رد وشو په (رزقناهم) کښې (۲) دویم سرمایه دارانه نظام دې : چه مال دمالك دې دبل چاپه کښې حق نشته، ددوئ ردوشوو په ذکرد (ینفقون) سره، یعنی په مال کښې دمالك نه علاوه حقوق واجبه اوغیر واجبه شته دې .(۳) دریم شرعی نظام دې چه مال دمالك دې چه په شرعی سبب سره مالك شوې وی خو بیا هم په دې کښې حقوق واجبه اونفلیه شته دې .

﴿وَٱلَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ﴾ دا دمتقینُ څلورم صفت دې په دې آیت کښې د دوو اموروذکردې : (۱) یوهغه وحی چه حضورﷺ ته نازل شویده خواه که په صورت دقرآن کښې ده اوکه په صورت دحدیث کښې ده اوپدې باندې د ایمان مطلب دادې چه دحقوالی تصدیق وکړې شی اوپدې باندې عمل وکړیشی. (۲) اودویم هغه وحی اوکتابونه چه پخوانو انبیاؤته نازل شوی ؤو اوپه هغې باندې دایمان مطلب دادې چه په هغې دحق والی اعتقادوکړیشی یعنی دا عقیده ولری چه دغه کتابونه او صحیفی من عندالله ؤو، البته عمل به د قرآن اوحدیث دهدایاتو مطابق کولې شی !

او دا دوه امره درحقیقت د﴿ يُؤْمِنُونَ بِٱلْغَيْبِ﴾ یوه حصه ده څکه ﴿يُؤْمِنُونَ بِٱلْغَيْبِ﴾ عام دې شامل دې دیته چه ﴿يُؤْمِنُونَ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ﴾ نوداتخصیص بعدالتعمیم دې لپاره داظهار دفضیلت دهغه یهودو اونصاریٰ چه ایمان ئی په حضورﷺ راوړې دې لکه بیان ئی په حدیث کښې هم راغلې دې چه دغه قسم اهل کتابوته اجرمرّتین ورکیدې شی .

﴿وَبِٱلْأَخِرَةِ هُمْ يُوقِنُونَ﴾ داپنځم صفت دې دمتقیانو او «الاخرة» صفت دموصوف مقدر لپاره دې چه دار دې «ای بالدارالاخرة» اولفظ د دار مؤنث سماعی دې لکه «وان الدارالاخرة» نو مطابقت په مابین دموصوف اوصفت کښې راغې او دفع شوه مغالطه دقادیانی ملعون چه

وائی چه موصوف د «الاخرة» لپاره «النبوة» دي ای «بالنبوة الاخرة» او مراد کوی لدینه خپل نبوة اوخپلی رسالې کتابونه او وائی چه موصوف والاخرة لپاره دارنه دې ځکه چه هغه مذکر دي نومطابقت نه راځی په مابین دموصوف اوصفت کښې.

﴿ أُوْلَـٰٓئِكَ عَلَىٰ هُدٗى مِّن رَّبِّهِمۡ ﴾ دا بیان دانعام دي لپاره ددې فرقی «ای هم المنعمون بنعمة الهداية فی الدنیاوالفلاح فی الاخرة» او تعبیر په اسم اشاره «اولئك» سره وشو ځکه مقصود په اسم اشاره کښې مشارالیه وی په شرط دصفاتوسره نوپدیکښې اشاره شوه دیته چه دغه صفتونه علت دی لپاره دحکم په «علی هدی» او «مفلحون» سره، او په لفظ د علی کښې معنی د علو هم ده او دتمکن هم ده یعنی دوئ عالی اومتمکن «کلك» دی په هدایت باندی اوددې په مقابله کښې ضلالت چه ذکرشی نوهلته «فی» ذکرکیږی لکه «لعلی هدی اوفی ضلل مبین». «سباء» لفظ دفی دلالت کوی په انخفاض، انغماس «ښکته والی،ننوتل» باندې او «هدًی» نکره ذکرشوه لپاره داشاره دعظمت دشان ته اوپه «من ربهم» کښې اشاره ده دیته چه توفیق دهدایت دالله دطرفه ملاویږی اودارنګه اشاره شوه دیته چه هدایت هغه دې چه دطرف درب نه منزّل وی چه وحی ده یعنی قرآن اوحدیث، اوکه څوك دوحی خلاف روان وی او دعوی دهدایت کوی نو دا غلطه دعوی ده.

﴿وَأُوْلَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُفۡلِحُونَ﴾ د فلاح تعلق دآخرت سره دې او د دنیاسره هم دې اوفلاح ویلی کیږی مطلوب حاصلیدل اومهروب یعنی دمصیبت نه بچ کیدلوته «فازوا بماطلبوا ونجوا مماهربوا» ، «اولئك» مبتدأ ده او «هم» ضمیر فصل دې د تاکیداو حصرفائده کولولپاره او «المفلحون» ئی خبردې معّرف باللام دې نوحصرفائده کوی، نومعلومه شوه چه فلاح په غیر دصفات مذکورو نه، نه حاصلیږی ،اومعتزله او خوارج پدې آیت سره استدلال کوی چه مرتکب دکبیره خواه که تارك صلوة یا انفاق وی یامرتکب دنورو منهیاتو وی دامخلد فی النار دې یعنی همیشه به په جهنم کښې وی، جواب داستدلال ددوئ نه دادې چه دلته مقصود حصر دفلاح کامل دې او هغه دخول اولی دې جنت ته، نوکه یوسړې ایمان والاوی اوبعض اعمال ترك کړی نو دهغه سره ددخول اولی جنت ته وعده نشته الاان یشأ الله . اودامطلب ندې چه نفس فلاح او دخول ئی جنت ته نشته.

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ﴾ دا بيان ددويمې فرقې دې يعنى هغه چه ظاهراً باطناً انكاركوونكى دى : (ياايهاالناس اعبدو— الخ) نه

كفر شرعى بضم الكاف دې او دا ماخوذ دې دكَفر بفتح الكاف نه اوپه لغت كښې كفرپه معنى دسترسره دې. مدارك ترجمه دكفروا داسې كوى چه ((ستروالحق عناداً)) او زميندار چه دانه پټوى په زمكه كښې هغه ته هم كافراوكفارويلې شى ((كمثل غيث اعجب الكفارنباته)) اوكفارې ته هم كفاره ځكه ويلې شى چه پدې سره ستر دمعصيت راځى اوكفر پټولو دنعمت ته هم ويلې شى چه هغه ناشكرى ده : ((اَلَمْ تَرَاِلَى الَّذِيْنَ بَدَّلُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ كُفْرًا)) اوكفر مطلق انكارته ويلې شى خواه كه انكار دحق نه وى ياد باطل نه لكه (ومن يكفربالطاغوت) او په شرع كښې انكارته ويلې شى دضروورياتو د دين نه. اوكله دكفراطلاق په ترك دعمل هم كيږى اوديته امام بخارى كفر دون كفرويلې دې

**اوبيا كفر په څلورقسمه دې** : (۱) كفرانكارى. چه ظاهراً باطناً يعنى لساناً قلباً دواړوسره انكاروى يعنى نه اقرار لسانى وى اونه تصديق اومعرفت قلبى وى.

(۲)كفرجحودى.چه ظاهراً يعنى لساناً انكاركوى اوباطناً يې منى يعنى تصديق اومعرفت قلبى بى اختياره ورته حاصل وى چه هغې ته استيقان ويلې شى- لكه (وجحدوا بها واستيقنتها انفسهم).

(۳) كفرعنادى. چه ظاهرا باطنا يې منى خو غاړه نه ږدى يعنى انقياد اوتسليم نه كوى اود (ويسلمواتسليما) نه مخالف وى لكه كفرد ابوطالب شوچه ويلى ؤو

و لقد علمتُ بان دين محمد من خير اديان البرية دينا
فلولا الملامة او حذار مسبةٍ لو جدتنى سـمحا بذاك مبينا

اناعلى دين الاشياخ عبدالمطلب وعبدمناف قبلت النار على العار فمات كافرا.

(۴) كفر نفاقى چه صرف اقرارلسانى وى اوتصديق قلبى نوى. اودلته هغه كفرمراد دى چه قابل داصلاح نه وى.

﴿سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ ءَأَنذَرْتَهُمْ أَمْ لَمْ تُنذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ﴾ دا جمله خبر دې لپاره د ((ان الذين كفروا)) اوهمزه په ((أ أ نذرهم)) كښې داستفهام لپاره نده بلكه لپاره دتسويه ده دارنګه ((ام))

لپاره دتسویه دي خکه دا قانون دي چه کومه همزه بعد د «سوأ» نه راشي يابعد د «ما ادری» نه يابعد د «ما ابالی» نه يا بعد د «ليت شعری» نه راشي نو هغه لپاره دتسويه وی او دا فعل په تاويل د «انذارك» «وعدم انذارك» سره مبتدأ ده او سوأ په معنی د «مستو عليهم» سره ئی خبر دي

(۱) او دا جمله خبردي لپاره ده «انّ» (۲) ياخبر د «انّ» لپاره جمله د «لايؤمنون» ده او «سوأ عليهم ءانذرتهم ام لم تنذرهم» په درميان کښې جمله معترضه ده (۳) يا «سواء» خبر دمبتدأ مقدردي «ای الامران سوأ عليهم» او «ءانذرتهم ام لم تنذرهم» بيان دي لپاره د «الامران» او جمله د «لايؤمنون» په توجيه اول اوثالث کښې بيان دي لپاره دسوأ يعنی ددوئ په حق کښې انذار ستا او عدم انذار ستا يوشان دی، نومطلب ئی دادي چه په دوئ انذار ستا او تبليغ ستا اثر نه کوی اودوئ ايمان نه راوړی، اوکه څوك داسوال وکړی چه ډيرو کفار وايمان راوړي ؤو په وجه دانذار اوتبليغ سره بلکه دا سلسله دقيامت پورې جاری ده نوبياخه مطلب شود (لايؤمنون) جواب دادي چه اسم موصول «ان الذين کفروا» پشان دلام التعريف دی چه کله دعهد لپاره هم راځی، نو دلته موصول دعهد لپاره دي معهود مخصوص کافران دی. لکه ابولهب. ابوجهل وغيره، يامعهود هغه کافران دی چه دضد او عناد لوجه نه ايمان نه راوړی. لکه دلالت کوی پدې باندی جمله د (سوأ عليهم) او دا قسم کافران کامل دی په کفرکښې او ددې آيت مطلب داهم ندې چه دغه قسم کافرانو ته دانذار او دتبليغ ضرورت نشته خکه چه انذار او تبليغ دنبی کريم ﷺ فرض منصبی کارؤو بلکه مطلب دادې چه ته ددوئ د ايمان راوړلو فکرمکوه اوددوئ دايمان نه راوړلوپه وجه مغموم کيږه مه. اوکه څوك سوال کوی چه هرکله دغه کافران ايمان نه راوړی نودوئ ته انذار اوتبليغ عبث شو نو بيا ولی نبی کريم ﷺ او دده متبيعين مأ مور شو په تبليغ باندې هغوئ ته . جواب دادې چه انذاراو تبليغ به هله عبث وي چه پکښې هيڅ چاته فائده نه وي، نه مبلّغ ته اونه مبلّغ ته اودلته خو مبلّغ نه فائده شنه دي. اگرکه مبلّغ ته نشته  شعر

**احمد تو عاشقی بمشيخت تراچه کار  دیوانه باش سلسله شدشد نه شد نه شد**

اوددې وجه نه بې (سواءٌ عليهم) ويلی دی (سواءٌعليكَ) ندی ويلی. او که څوك سوال وکړی چه هرکله الله ﷻ خبرورکړو چه دوئ ايمان نه راوړی نوخلاف دخبر د الله تعالی ﷻ خو محال وی نوددوئ ايمان راوړل محال شو اوپه محال سره څوك مکلّف نوی نوپکارده چه

دوئی مکلف نشی په ایمان سره اومعذورشی په کفرکښې، جواب دادې چه داالله ﷻ په خبر ورکولوسره ددوئ ایمان راوړل ندی محال شوی، لکه یوطبیب چه دیومریض دتشخیص نه بعدخبرورکړی چه دا مریض لاعلاج دې، نولکه څرنګه چه دا مریض دطبیب خبرورکولودوجه نه لاعلاج شوې نه دې، بلکه لاعلاج دبل څه دوجهِ نه دې اوطبیب خوصرف دهغه د لاعلاج والی خبرورکړې دې، دغه شان الله ﷻ له دوئ نه صرف خبرورکړې دې چه دوئ ایمان نه راوړی، اوایمان نه راوړل ددوئ دخپل اختیاری شرارت، عناد، مخالفت حق. لوجهِ نه دې.

﴿خَتَمَ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ وَعَلَىٰ سَمْعِهِمْ ۖ وَعَلَىٰ أَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ۝﴾

داجمله تعلیل دې لپاره دماقبل یعنی ایمان ځکه نه راوړی چه الله ﷻ په دوئ باندې دغضب مهرلګولې دې، **دلته کښې یو خواموردی** : (۱) **دمهرنه څه شی مراد دې؟**. ختم په لغت کښې آخرته رسولوته ویلې شی، لکه یوخط لیکل چه آخرته ورسی ، بیاپه عرف کښې دهغې سره لازم مهرلګول دی لپاره ددې چه نور اشیأ په هغې کښې داخل نه شی او ددینه خارج کول هم منع شی، دلته مراد په طور دتشبیه دمعقول دمحسوس سره پیداکیدل دهغه کیفیت دې په قلوبو او حواسو کښې چه هغه مانع وی لپاره دنفوذ دحق . (استعیرلاحداث هیئة فی القلب والسمع مانعة من نفوذالحق الخ) ، (روح)

حاصل دادې چه دلته د ختم نه مراد سلب استعداد دې یعنی په قلوبوکښې چه دحق دقبلولو کوم صلاحیت او استعدادوؤ او په غوږونوکښې چه د حق آوریدلو (په سماع قبول سره) کوم صلاحیت ؤو اوپه سترګوکښې چه دحق دلیدلو(په نظرعبرت سره) کوم صلاحیت ؤو دغه صلاحیتونه دکفارو دقلوبونه اوغوږونونه اوسترګونه ختم شویدی .

(۲) **داختم اومهرکله لګی؟** داهله کیږی چه په ګناهونوکښې ډیرمشغول شی اوداالله ﷻ دنافرمانی هیڅ خوف، هیڅ غم او فکر ورسره نوی، یا دحق خبرې معلومیدلو باوجود ضداوتعصب کوی دحق سره، دضداوعنادنه بعدختم رازی.(۳) **دلته څلورقسمه تعبیرات کیږی**

۱- یوتعبیر دادې چه دا حالت اوکیفیت یعنی سلب استعداد سبب وغیره ته منسوب نشی .

لکه (ولهم قلوب لایفقهون بها ولهم اعین لایبصرون بها ولهم آذان لایسمعون بها اولئك کالانعام بل هم اضل) (**اعراف ع ۲۲**).

۲- دویم تعبیردادي چه ددوئ دا حالت ددوئ اعمالوته منسوب شی لکه (کلابل ران علی قلوبهم ماکانوایکسبون).

۳- دریم تعبیردادي چه دا حالت خود مشرکانوته منسوب شی لکه (وقالوا قلوبنا فی اکنة مما تدعونا الیه وفی آذاننا وقر ومن بیننا وبینك حجاب فاعمل اننا عاملون)

۴- څلورم تعبیر دادي چه ددې حالت نسبت وشی الله تعالی ته لکه (ختم الله . طبع الله) په اول تعبیرکښې بیان د معنی دمهراوختم دي یعنی ختم اومهر دقلب دادي چه «لایفقهون بها» او دسترګو مهردادي چه «لایبصرون بها» یعنی په نظرعبرت نه ګتل اود غوږونو مهردادي چه «لایسمعون بها» حق په سماع قبول سره نه اوریدل . او په دویم تعبیر کښې بیان دسبب دختم او دمهر دي . اوپه دریم تعبیرکښې بیان دکسب دي اوپه څلورم تعبیرکښې بیان دخلق اوایجاد دي.

**نو یوحقیقة دمهراوختم دي اوبل نسبت ددې**، نونسبت یوکسباً دي او بل خلقاً دي . بل تسبیباً دي، نوچونکه خالق دهرشی صرف الله تعالی دي نو نسبت الله ﷻ ته خلقاً دي او کاسب چونکه بنده دي نونسبت بنده ته کسباً دي اوسبب ورله اعمال قبیحه اوعناد دي دحق سره نو نسبت ئې اعمالوته تسبیباً شو

(۴) **سوال کیږی** چه هرکله الله ﷻ ددوئ نه استعداد سلب کړو نو دوئ خو معذور شو او په کفرباندې مجبورشو . نوبیا ورته ولې عذاب ورکوی. جواب دادي چه په دوئ باندی مهر لګیدل اواستعداد سلب کیدل بناء دی په قانون تکوینی درب العلمین باندې چه ترتب دي په اسبابو او عللو باندې یعنی دمهر لګیدلو او د استعداد سلب کیدلو سبب اوعلت دکفارو . بد عملونه.اوددوئ ضداوعناد دحق سره، ځکه چه الله ﷻ دحق معلومولو او قبلولو لپاره انسان ته عقل اوآلات ورکړل . (والله اخرجکم من بطون امهاتکم لاتعلمون شیئاً وجعل لکم السمع والابصاروالافئدة لعلکم تشکرون). «نحل ع ۱۱».

بیائی پدې اکتفا ونکړه بلکه دحق اوباطل معلومولو لپاره ئې دلائل انفسیه اوآفاقیه هم نصب کړل (سنریهم آیاتنا فی الافاق وفی انفسهم حتی یتبیّن لهم انه الحق) اوبیائی پدې هم اکتفا ونکړه بلکه انبیا ئې را ولیږل ((رسلاً مبشرین ومنذرین لئلایکون للناس علی الله حجة

بعدالرسل) او انبیاؤو په ډیر وضاحت اوهمدردی سره دحق او باطل اظهاروکړو. دحق اوباطل واضح کیدلوباوجود چه هرکله کفارو خپل ضد او عناد ترك نه کړو او دعقل اوشعورنه ئی کاروانه خستلو. اوغوږونه سترګی ئی په صحیح نهج استعمال نه کړې، اوبارباړئی داغلط حرکت کاؤه . اوددینه نه منع کیدل نو الله ﷻ دخپل رحمت نه محروم کړل او استعداد ئی ورله سلب کړو، نوپه دوئ باندې مهرلګیدل اواستعداد سلب کیدل، ددوئ دضد او عناد او غلط حرکاتو نتیجه ده ، داسې نه چه دمهر دوجه نه دوئ په کفرمجبورکړې شو. بلکه که چرې دوئ خپل ضد او عناد ترك کړی او انابت الی الله وکړی .نو الله ﷻ به ورته خپل نعمت بیا واپس کړی نو دا جبرنه دې. بلکه مهرجباریت دې لکه ویلی دی عارف رومی رحمه الله شعر :

**این نه جبرومعنی جباری است معنی جباریت را زاری است**

ددې مثال حضرت تهانوی رحمه الله داسې بیانوی چه یو بادشاه یوفقیرته تنخواه مقررکړی خو دغه فقیرنا اهل ، ناشکر، چه کله تنخواه وصول کوی نوفوراً ئی دریاب ته یاکوهی ته غورزوی بادشاه دغه فقیر ددې نامعقول حرکت نه باربار منع کړی، خودې منع نشی نو بالآخر بادشاه پدغه ناشکره فقیرباندی تنخواه بندکړې . اوفقیر پدې باندې څه افسوس اوغم هم ونکړی او بادشاه ته خپل معذرت هم پیش نه کړی. نوظاهره ده چه دلته تنخواه بندکیدل صرف دفقیرجرم دې، ورنه کچرې دې دخپل غلط حرکاتونه واپس شی اوبادشاه ته خپل معذرت پیش کړی نو بادشاه به ورته بیاتنخواه جاری کړی.

اودلته لکه څرنګه چه داسې مختلف تعبیرونه کیدیشی چه کله ویلې شی دناشکره فقیر تنخواه بنده شوه اوکله ویلی شی چه بادشاه دناشکره فقیرتنخواه بندکړه اوکله ویلې شی چه ده دغلطو حرکاتو دَ ده تنخواه بندکړه، نودغه شان دلته هم کله ویلې شی (ختم الله . طبع الله) اوکله ویلې شی (کلابل ران .علی قلوبهم ماکانوایکسبون). کله ویلې شی. (لهم قلوب لایفقهون بها)

(۵) **سوال** . په دې آیت کریمه کښې چه قلوب او ابصارجمع ده نوسمع ولې مفردذکرشو

۱- جواب : دلته تقدیر دمضاف دې: ((ای مواضع سمعهم)) ۲- جواب سمع. مصدر دې او (المصدرلایثنی ولایجمع) . ۳- جواب دقلب مدرکات (معلومات) مختلف اشیأ دی جواهراعراض او دارنګه دسترګو مبصرات ډیرقسمونه اومختلف الوان وغیره دی لیکن دغوږونو مدرکات صرف مسموعات دی، نو ددې وجهِ نه مفرد ذکرشو. په قرآن کښې سمع دهمیشه لپاره مفرد

ذكركيږي او «اذان» جمع ذكركيږي.

﴿وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾ ١- «اى ثبت لهم عذاب عظيم». ٢- يا «لهم» خبرمقدم دي او «عذابٌ» نكره مخصصه مبتدأ مؤخره ده. - يا «عذاب» فاعل دظرف دي او **د عذاب، عقاب او نكال اصل معنى يوه ده،** يعنى سزا دجرم ليكن فرق په مابين ددوئ كښې دادې چه عقاب ؤرته په دې لحاظ سره ويلې شى چه عقيب دجرم نه وى، اونكال ؤرته پدې لحاظ سره ويلې شى چه خلق ترينه عبرت واخلى، اوعذاب ورته پدې لحاظ سره ويلى شى چه په دې سره منع شى ځكه عذاب دعذب نه مأخوذ دې په معنى دحبس سره، اوخوږووالى ته ځكه عذبٌ ويلې شى چه منع كوى تندى لره اوسزا دجرم ته ځكه عذاب ويلې شى چه دې منع كوى هرخير او راحت دصاحبِ عذاب نه.

﴿وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَقُولُ ءَامَنَّا بِٱللَّهِ وَبِٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ﴾ **دادريمه فرقه بيانيږي يعنى هغه خلق** چه ظاهراً دعوى د توحيد منى او باطناً انكاركوى، داقانون دې چه كله داعى دحق دعوت وركوى نوخلق دوه فرقې شى يوتسليم كونكى اوبل انكاركوونكى، نو څه زمانه بعد چه كله حق ته ترقى حاصله شى نوبيا دريمه فرقه پيداشى چه هغه ظاهراً خوتسليم كوى او درحقيقت پس پرده مخالف وى او انكاركوى، دا قسم خلق زيات نقصانى وى، نو ددې وجه نه ددې فرقې دلته زيات تفصيل ذكركيږي.

«من» په «من الناس» كښې ياپه معنى دبعض سره اسم دې نو دا مبتدأ ده او (من يقول) ئى خبردې او يا حرف جر دې اوسره دمجرور نه خبرمقدم دې او (من يقول) ئى مبتدأ مؤخره ده او بأ په ﴿وَمَا هُم بِمُؤْمِنِينَ﴾ كښې زائده ده لپاره دتاكيد دنفى، يعنى دوئ بالكل او هرګز ايمان والا ندى.

اوددې آيت نه دامعلومه شوه چه صرف اقرارلسانى په كلمه دتوحيدباندې په غير دتصديق قلبى نه ايمان نه دې.

| يُخَٰدِعُونَ ٱللَّهَ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَمَا يَخْدَعُونَ إِلَّآ أَنفُسَهُمْ |
|---|
| دهوكه كوى دوئ الله سره اودمومنانوسره، او دهوكه نه كوى دوئ په حقيقت كښې مگردخپل ځان سره |
| وَمَا يَشْعُرُونَ ۝ فِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ فَزَادَهُمُ ٱللَّهُ مَرَضًا ۖ وَلَهُمْ |
| اودوئ نه پوهيږي ددوئ په زړونو كښې لوئې مرض دې، نونورهم زيات كړو الله ددوئ مرض ، او ددوئ دپاره |

| |
|---|
| عَذَابٌ اَلِيۡمٌ ۢ بِمَا كَانُوۡا يَكۡذِبُوۡنَ ۝١٠ وَ اِذَا قِيۡلَ لَهُمۡ لَا تُفۡسِدُوۡا |
| عذاب دردناک دي. پدې وجه چې دوئ به دروغ وئيل. او کله چې دې منافقانو ته اوونيلې شی فساد (وراني) مکوئی |
| فِي الۡاَرۡضِ ۙ قَالُوۡۤا اِنَّمَا نَحۡنُ مُصۡلِحُوۡنَ ۝١١ اَلَاۤ اِنَّهُمۡ هُمُ الۡمُفۡسِدُوۡنَ |
| په ملک کښې نودوئ وائی چې مونږ خوصرف اصلاح (جوړخ) کونکی یو. خبردار بیشکه دوئ هم دوئ فساد کوونکی دی |
| وَلٰـكِنۡ لَّا يَشۡعُرُوۡنَ ۝١٢ وَاِذَا قِيۡلَ لَهُمۡ اٰمِنُوۡا كَمَاۤ اٰمَنَ النَّاسُ |
| خودوئ نه پوهیږي. اوکله چې اوونیلې شي دوئ ته ایمان راوړئ تاسو پشان دهغې چې ایمان راوړې دې کاملو خلقو |
| قَالُوۡۤا اَنُؤۡمِنُ كَمَاۤ اٰمَنَ السُّفَهَآءُ ؕ اَلَاۤ اِنَّهُمۡ هُمُ |
| نودوئ وائی، آیامونږ ایمان راوړو پشان دهغه چې ایمان راوړې دې کم عقلوخلقو. خبردار! دوئ خاص هم دوئ |
| السُّفَهَآءُ وَلٰـكِنۡ لَّا يَعۡلَمُوۡنَ ۝١٣ وَاِذَا لَقُوا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا قَالُوۡۤا |
| کم عقل دي خو دوئ نه پوهیږی. او کله چې ملاؤشی دوئ دمومنانو سره نودوئ وائ |
| اٰمَنَّا ۖۚ وَاِذَا خَلَوۡا اِلٰى شَيٰطِيۡنِهِمۡ ۙ قَالُوۡۤا اِنَّا مَعَكُمۡ ۙ |
| چې مونږ ایمان راوړې دې ، اوکله چې یوازې شي دخپلو شیطانانو سره نوهغوئ ته وائ چې بیشکه مونږ ستاسو سره یو |
| اِنَّمَا نَحۡنُ مُسۡتَهۡزِءُوۡنَ ۝١٤ |
| اوبیشکه مونږ خو توقې کوونکي یو په مومنانو پورې. |

﴿يُخٰدِعُوۡنَ اللّٰهَ﴾ یخادعون مأخوذ دې دخداع نه اوخدع اوخداع په اصل لغت کښې پټولوته وائی اولدې وجه نه خزانی ته مخدع وائی اواخدعین عرقین خفیفین (پټې دوه رګونه په ځائ داحتجام کښې) ته وائی **اوپه عرف کښې** اراده دمکروه چاته چه هغه خبرنوی ((ارادة المکروه وهو لایعلم)) دلته یخادعون باب مفاعله ده اومفاعله دطرفین نه وی، نومطلب داشو چه منافقان دهوکه ورکوی الله ﷻ ته اوالله ﷻ دهوکه ورکوی منافقینو ته، حالانکه ١- الله ﷻ علام الغیوب دې هغه ته دهوکه نشی ورکیدې. ٢- اودارنګه الله ﷻ چاته دهوکه نه ورکوی ځکه دهوکه قبیح فعل دې، اوبل دا چه دهوکه هغه څوك ورکوی چه څرګند تکلیف رسولونه عاجز وی، اوالله ﷻ منزه دې دعجزنه.

**جواب داول نه دادې** . ١- چه کفارپه خپل ګمان کښې دهوکه ورکوی الله ﷻ ته ځکه

ددوئ گمان داؤو چه الله ﷻ په بعض کارونو علم نه لری، کماقال تعالی (ولکن ظننتم ان الله لایعلم کثیراًمماتعملون) حم سجده آیت ۲۲ .

۲- مضاف مقدردي «ای یخادعون رسول الله». ۳- منافقین چه اظهارد ایمان کوی په لسان سره اوپه زړه کښې ئی ایمان نشته نو دا فعل خداع ده، اگرکه دالله ﷻ سره خداع نشی کیدې خو دا فعل فی نفسه خداع ده، دلته مقصود تعبیر دې دهغوئ دفعل نه. ۴- «والذین آمنوا» کښې واو دعطف تفسیرلپاره دې یعنی دوئ خداع کوی دمؤمنانو سره اوکله کله الله ﷻ فعل دمؤمنانو منسوب کوی خپل ځان ته. لکه په یوحدیث کښې راغلیدی چه مفهوم ئی دارنگه دې، چه دقیامت په ورځ به الله ﷻ یوبنده ته وفرمائی چه زه بیمارشوې ؤوم خوتا زما بیمارپرسی نوه کړې. نوبنده به ووائی «کیف اعودك وانت رب العلمین»، «قال» نوالله ﷻ به اوفرمائی «اماعَلِمْتَ اَنّ عبدیْ فلاناًمرض»، آیا تاته پته نشته چه ځما فلانې بنده بیمار شوې ؤو اوتائی بیمارپرسی نوه کړې.

آیاتاته پته نشته کچرې تا دهغه بیمارپرسی کړې وې «وجدتنی عنده» نوزه به دې موندلې وې هلته، یعنی ځمارضا به دې موندلې وه ، دغه شان سوال د اطعام په باره کښې به وکړی ،اودغه شان سوال به دطلب داوبو په باره کښې وکړی (استسقیتك فلم تسقنی) الحدیث.

**جواب د دویم سوال نه دادې** (۱) چه دمنافقانودطرفه دهوکه ده او دالله ﷻ دطرفه سزا د دهوکې مراد ده، اوکله په سزا دفعل باندې اطلاق دفعل کیږی لکه (وجزاُ سیئةٍ سیّئةٍ) .

(۲) صورةً فعل دالله تعالی منافقینوسره چه اجراء د احکامو مسلمانانو په دوئ کوی،اوسره ددینه چه دوئ عندالله ډیربد ترین دی اوپه درك اسفل دنارکښې به وی. نودافعل په شان دفعل دمخادع دې او دا دواړه توجیه دنساء په آیت ۱۴۲ (وهوخادعهم) کښې جاری کیږی.

(۳) مفاعله په معنی داصل فعل ده (ای یخدعون الله) .(۴) باب مفاعله دمبالغې لپاره ده لکه عاقبت اللّص نه لپاره دمغالبی یعنی دوئ ډیرې اولوئ دهوکې کوی ځکه دهوکه په امورو د ایمان او ددین کښې سخت جرم دې. ﴿یُخَدِعُونَ إِلَّآ أَنفُسَهُمْ﴾ یعنی په ظاهرکښې خو دوئ دالله ﷻ اومؤمنانوسره دهوکه کوی خوپه حقیقت کښې صرف دخپل ځان سره دهوکه کوی ځکه وبال ددهوکې دوئ ته واپس کیږی

﴿فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ﴾ دا بيان دحال دمنافقينُ دي (مرض) د زړه يا دبل عضو. دهغه غيرطبعي حالت نوم دي چه ددغي وجه نه دغه عضو خپل طبعي افعال ترك كړي او فتور پكښې راشي نوكه مناسب علاج ئې ؤشي نوصحت راشي اوكه علاج ونشي نوبيا هلاكت او زوال دحيات ته رسي. نو دقلب طبعي اوفطري افعال، عقائدحقه، ايمان ، اخلاق حسنه لكه تواضع ،جود، وغيره دي، اومرض ئې كفر، نفاق، حسد ،جهل،جُبن، بخل،وغيره يعني ددوئ په زړنو كښې كفر دې اونفاق دې اوحسد دې دمؤمنانوسره نو ددې روحاني مرض علاج هم روحاني دې چه عمل دې په كتاب الله نوكه دا روحاني علاج ئې ؤنه شي نودوئ به ورسي هلاكت ابدي ته چه جهنم دې.

﴿فَزَادَهُمُ ٱللَّهُ مَرَضًا﴾ (۱) دا بد دعا ده منافقانوته په طريقې د تعليم سره، دطرف دالله تعالى نه . ((زاد)) صيغه دماضي ده اومعنى ئې انشأ ده، يعني الله دې ددوئ دا مرض، چه كفر دې، نور هم زيات كړي په سبب دنزول دقرآن سره لكه (فزادهم رجسا الى رجسهم) اوحسد دې په سبب دترقي دمؤمنانوسره . (۲) يا دا اخبار دې دطرف ده الله ﷻ نه چه الله ﷻ به قرآن نورهم نازلوي او مؤمنانو ته به ترقي وركوي او ددوئ دا كفر اوحسدبه نور زياتيږي. (والله متم نوره ولوكره الكافرون). اوپه اوله توجيه كښې دا جمله معترضه ده مابين دمعطوف اومعطوف عليه كښې اوپه جمله معترضه باندې فأ داخليږي لكه شعر

**و اعلمْ فعلم المرء ينفعه — أن سوف ياتي كل ماقدرا**

اوپه دويمه توجيه كښې فأ لپاره دتعقيب ده. ذكرشويده لپاره ددلالت په ترتب دمضمون ماقبل. يعني زيادت دمرض. دكفراوحسد نتيجه ده ددوی كفر ده، يافأ جزائيه ده او دا جزأ دشرط مقدرده تقديرى عبارت داسې دي ((لمالم يعالجوابشفأ القرآن فزادهم الله مرضاً)) .

﴿وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ ((اليم)) په وزن دفعيل بمعنى الفاعل دې يعني مؤلم درد رسونكې .

﴿بِمَا كَانُوا يَكْذِبُونَ﴾ ((باء)) سببيه ده يعني دعذاب اليم لپاره سبب كذب ددوئ دې په ايمان اونورو معاملاتوكښې. نومعلومه شوه چه كذب كبيره گناه ده اوپه كوم روايت كښې چه نسبت دكذب ابراهيم ﷺ ته راغليدې نوهلته مراد توريه ده . او(ما) مصدريه دي او دخول د (كان) په مضارع باندې فائده كوي داستمرار. نومعنى داشوه چه ((بسبب كذبهم دائماً))

﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ لَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ﴾ داجمله یاعطف ده په «كانوايكذبون» باندې او د با سببیه ماتحت ده نو دا بیان دبل سبب دې لپاره دعذاب «ای لهم عذاب الیم بسبب كذبهم وبسبب انهم اذاقیل لهم » یا داجمله عطف ده په «یقول» باندې او د «مَن» ماتحت ده «ای من الناس مَن اذا قیل لهم » او**فساد**، شرارت او د حد اعتدال نه وتلوته وائی او اصلاح په حد اعتدال برابرتیا ته وائی، او دا بیان د نورو احوالو دمنافقینو دې نودمنافق صفت داوی چه دوی ته خپل عیب اوشرارت کمال ښکاری اودبل اصلاح اوکمال ورته عیب ښکاری .

**دلته مراد دفساد نه** هرقسم شرارت اوحد اعتدال نه وتل مراد دی یامراد ترینه دمؤمنانو خبرې کافرانو ته رسول او د کافرانوخبرې مؤمنانوته رسول مراد دی – اود «الارض» نه مراد یا جنس ارض دې یعنې دنیا یامراد ترینه مدینه منوره ده، او ذکرئې ځکه ؤ شو چه فساد پداسې مقدس سرزمین کښې زیات قبیح دې .

﴿إِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُونَ﴾ «انما» دحصر لپاره دې یعنی مونږ منحصر یو په اصلاح کښې او په مونږکښې داصلاح نه سوا هیڅ فسادنشته، دوئ دا دعوی په طریقه دحصرسره لدې وجه نه ذکرکوی چه په دوئ کښې روحانی مرض دې نو چاته چه روحانی مرض ولګی نوهغه ته شر داسې ښکاری لکه خیر، اوخیرورته په شان د شر ښکاری، یاد دوئ مراد دادې چه زمونږ ددوارو فریقینُ په مینځ کښې صلح پیداکول غرض دې، دوئ دا خپله دعوی مؤکده کړه په درې تاکیداتو سره : (۱) انما (۲) نحن، چه ضمیرفصل دې (۳) جمله اسمیه . نو الله ﷻ ددوئ د دعوی رد مؤکد کوی په پنځه تاکیداتوسره . (۱) الا (۲) انّ (۳) هم ، چه ضمیرفصل دې (۴) المفسدون . یعنی خبرمعرف باللام دې . (۵) جمله اسمیه .

﴿وَلَٰكِن لَّا يَشْعُرُونَ﴾ لفظ دلکن راځی لپاره د استدراك، یعنی دفع دتوهم. نودلته توهم داسې کیدې شو چه دوئ خوعاقلان دی، نو ولې افساد کوی نوجواب ؤشوچه دوئ شعورنه لری چه دا افساد دې، بلکه ددوئ په ګمان کښې دا اصلاح ده .

سوال لاذمّ علی من افسدولم یعلم وانماالذم علی من افسدعن علم (الجواب) المقصّرفی العلم مع التمکن منه مذموم بلاریب بل ربمایقال انه اسوأ حالامن غیره ـ

﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ آمِنُوا﴾ حال ددې جملې په شان دجملې سابقې دې اودوئ ته چه دعوت دایمان ورکولې شی نو د ایمان خالصه دعوت ورکولې شی، ځکه چه دنفس ایمان دعوی خو

دوئ په خپله کړې وه نو ددې وجه نه دا قید زائد (مدارکلام) ذکرشو ﴿كَمَآ ءَامَنَ ٱلنَّاسُ﴾ **او مراد د ناس نه صحابه کرام** ﷺ **دي**، مهاجرین او انصار، یا په اهل کتابو کښې مخلصین مؤمنین لکه عبدالله بن سلام وغیره شو ،نولام دعهد لپاره دې نو ددینه معلومه شوه چه **صحابه معیارحق دي** او دصحابؤ ایمان او اعمال دنورو انسانانو دایمان او اعمالو دپاره معیار دې یعنی دصحابؤ پشان ایمان معتبرعندالله دې، او د صحابؤو پشان اعمال مقبول عندالله دې.

﴿قَالُوٓاْ أَنُؤۡمِنُ كَمَآ ءَامَنَ ٱلسُّفَهَآءُ﴾ داد منافقانو د طرفه ددعوت د ایمان رد دې په ناکاره لهجه کښې، **همزه** لپاره داستفهام انکاری ده او ((**سفهاء**)) **جمع د سفیه ده، خفیف العقل** (کم عقل) ته وائی اومراد د دوئ په دې سره صحابه کرام ﷺ دي، اوصحابه کراموته دوئ سفهاء ځکه وائی چه ددوئ په خیال کښې خوکمال داؤ چه خپل مال محفوظ وساتی او ډیروګتی اوجان محفوظ وساتی اوصحابه کرام ﷺ خو دا دواړه په دین قربانوی نو ددوئ په خیال کښې صحابه سفهاً دی ، امام رازی ﷫ فرمائی چه منافقین صاحب اقتدارخلق ؤو ددولت او داقتدار په نشه کښې مست ؤو او اسلام ئی باطل ګڼړلو اوچا به چه اسلام قبول کړو نوهغه ته به ئی سفیه او کم عقل ویلو ،حضرت الشیخ ﷫ لیکی :

*جیساکہ آج کل روشن خیالی کی مرض میں مبتلا اور نشۂ اقتدار میں بدمست طبقہ دین کا درد رکھنے والوں اور ان کی خدا اور رسول ﷺ کی احکام سے بغاوت پر حرف گیری کرنے والوں کو کم فھم، دقیانوس، اورموجودہ دور کی تقاضوں سے بی خبر، وغیرہ القاب سے سرفرازی فرماتے ہیں یہ بعینہ ان منافقین کی تقلید ہے.*

**دا آیت پدې دلالت کوی** چه طعن اواعتراض کول په صحابؤ دمنافقانوخصلت دې اوپدې آیت کښې دصحابه کرامو ﷺ ډیرلوئ فضیلت ثابت شو ځکه دا آیاتونه ددوئ د مخلص مؤمن والی ، واضح او لا فانی ثبوت دې، او دا چه ددوئ ایمان دومره قدرکامل، اود شائبه دنفاق نه پاك، اودالله ﷻ په نزد دومره پسندیده اومقبول دې چه الله ﷻ منافقینُ ته بلکه تمام انسانانو ته بطورنمونه پیش کړیدی

او دارنګه دې مبارك جماعت ته سفیه ویونکی پخپله سفیه دی اوددې آیت نه داخبره هم معلومه شوه چه څوك په صحابه کرامو ﷺ باندې څه طعن کوی نو پدغه طعن سره پخپله مطعون کیږی دصحابه کرامو فضائل اومناقب دومره ډیردی چه احاطه ئی دشوارده اوالله

ﷺ نه جماعت دصحابؤودومره محبوب دي چه ددوئ دطرفه پخپله جواب ورکوی اوفرمائی «أَلَآ إِنَّهُمْ هُمُ ٱلسُّفَهَآءُ وَلَٰكِن لَّا يَعْلَمُونَ» دلته هم پنځه تاکيدات ذکرشو لکه په تيره شوی فقره کښې اودلته (لايعلمون) ذکرشو او دفسادسره (لايشعرون) ځکه چه ايمان عقلی غيرمحسوس شئ دې اوفساد محسوس شئ دې اوشعور په محسوساتوکښې استعماليږی اوعلم په عقلياتوکښې استعماليږی.

«وَإِذَا لَقُوا۟ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ قَالُوٓا۟ ءَامَنَّا» دا بيان دبل حال اوخباثت دمنافقانودې لقاء هغه ملاويدوته وائی چه بغير د وعدې نه وی يعنی چه دمؤمنانوسره ناڅاپه ملاؤشی نو وائی «امنا» يعنی مونږ اخلاص سره ايمان قبول کړيدې ځکه چه زبانی ايمان ددوئ خومسلمانانوته مخکښې هم معلوم ؤو مگر دا لفظ ددوئ نفاق ظاهروی، ځکه مؤمنانوته لفظ د «امنا» وائی اوخپلو شياطينوته (انامعکم) وائی چه په دې کښې تاکيد دې او «امنا» کښې تاکيدنشته

«وَإِذَا خَلَوْا۟ إِلَىٰ شَيَٰطِينِهِمْ» د «خلا» په صله کښې اکثرباً راځی اوچه «الی» ئې په صله کښې راشی نو دا متضمن وی معنی د ذهاب لره معنی داشوه (واذاخلواذاهبين الی شياطينهم) پدې تضمين کښې يوه فائده داده چه ددوئ ملاقات دمؤمنانوسره خونا څاپه دې او دخپلو شياطينوسره په قصد او «ذهاب» سره دې ، اوبله فائده پدې تضمين کښې داده چه دمنافقينو ، منافقت بنه ظاهرشی اودشياطين نه احبار ديهودو اومشران دمشرکينو اود منافقينو مرادی

«إِنَّا مَعَكُمْ» مراد دمعيت (ملگرتيا) نه معيت اوشرکت دې په دين او اعتقادکښې او کلام ئې مؤکد کړو لپاره د ازالې دشك دشياطينُ ځکه چه هغوئ پې شك کوی چه تاسو خو دمؤمنانو مجلس ته ځئ نو دوئ تاکيدذکرکړوچه چه قلباً اوحقيقةً مونږ دتاسو سره يو. نو سوال راته چه تاسو بياولی دا قول کړې دې چه «امنا» نوجواب وکړودوئ «مُسْتَهْزِءُونَ» يعنی مؤمنانوته چه مونږ اقرار د «امنا» کوو او دهغوئ په مجالسوکښې شرکت کوو نو دا صرف داستهزأ لپاره په رسول الله ﷺ اوصحابه کرامو پورې دلته هم مؤکدکلام ذکرشو لپاره دازالې دشك او د **استهزاء مطلب** دادې چه دوئ يعنی رسول الله ﷺ اومؤمنان په مونږباندې دمؤمنانو گمان کوی نو زمونږ جان اومال به محفوظ شی اوپه غنيمت کښې به مونږته حصه ملاؤشی او درحقيقت مونږ ددوئ ملگری نه يو.

اَللّٰهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ وَيَمُدُّهُمْ فِيْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ ﴿۱۵﴾

الله توقې کوي په دوئ پورې او ترقي ورکوي دوئ لره په سرکشئ ددوئ کښې په داسې حال کښې چې دوئ به حيران وي

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اشْتَرَوُا الضَّلٰلَةَ بِالْهُدٰى فَمَا رَبِحَتْ

دغه صفتونو والا داسې خلق دي[1] چې اخيستلې ئې ده گمراهي په بدله دهدايت کښې. پس گټه او نه کړه

تِّجَارَتُهُمْ وَمَا كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ ﴿۱۶﴾ مَثَلُهُمْ كَمَثَلِ الَّذِى اسْتَوْقَدَ نَارًا

تجارت ددوئ او نه دوي په سمه لار روان دي حال ددوئ پشان دحال دهغه چادې چې بل کړې ئې وي اور

فَلَمَّآ اَضَآءَتْ مَا حَوْلَهٗ ذَهَبَ اللّٰهُ بِنُوْرِهِمْ

پس هرکله چې روښانه کړي دااور هغه ځائې چې گيرچاپيره وي ددغه کس نه نوزائله کړی الله رڼړا ددوئ

وَ تَرَكَهُمْ فِىْ ظُلُمٰتٍ لَّا يُبْصِرُوْنَ ﴿۱۷﴾ صُمٌّۢ بُكْمٌ عُمْىٌ

او پريږدي دوئ لره په داسې سختو تيرو کښې چې دوئ هيڅ نه ويني. دوئ کاڼړه دی. گونگيان دي. ړانده دي

فَهُمْ لَا يَرْجِعُوْنَ ﴿۱۸﴾ اَوْ كَصَيِّبٍ مِّنَ السَّمَآءِ فِيْهِ ظُلُمٰتٌ

نودوئ نه واپس کيږی دگمراهئی نه. ياحال ددوئ په شان ده برباران دې دآسمان نه چې په هغې کښې ډيرې تيرې وی

وَّرَعْدٌ وَّبَرْقٌ ۚ يَجْعَلُوْنَ اَصَابِعَهُمْ فِىْٓ اٰذَانِهِمْ مِّنَ الصَّوَاعِقِ حَذَرَ الْمَوْتِ ؕ

گړگوړوی او بريخناوی، اړدی دوئ گوتې خپلې په غوږونو خپلو کښې دوجې دگړزارې نه دوجې دوبرې دمرگ نه

وَاللّٰهُ مُحِيْطٌۢ بِالْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۹﴾ يَكَادُ الْبَرْقُ يَخْطَفُ اَبْصَارَهُمْ ؕ كُلَّمَآ اَضَآءَ

او الله احاطه کونکې دې په کافرانو. قريب دې دابريښناچې اوتختوی ددوئ نظرونه. هغه وخت چه روښانه کړي

لَهُمْ مَّشَوْا فِيْهِ ۙ وَاِذَآ اَظْلَمَ عَلَيْهِمْ قَامُوْا ؕ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ

دوئ ته لار نوروان شي په هغې کښې. او کله چې تيارهٔ کړي په دوئ باندې نو اودريږی. او که الله اوغواړی

لَذَهَبَ بِسَمْعِهِمْ وَاَبْصَارِهِمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۲۰﴾

نو ختم به کړی ددوئ غوږونه او ددوئ سترگې . بيشکه الله په هرڅيز قادردې

---

۱ - دا فرقه ډيره مضره ده نو ددوي حالات زيات تفصيل سره بيان شو

﴿ اَللّٰهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ ﴾ **نسبة داستهزاء الله تعالى ته** په نزد داهل حديثُ اوبعض اهل تاويل حقيقةً دي اګر چه (مستهزی) ندي داسماؤ دالله ﷻ نه او دوئ ويلی دی چه ((استهزاء)) دې تحقيرکول دی پداسی طريقه سره چه څوك پری خبرشی نوتعجب اوخندابه ورپورې کوی او دا معنی محاله نده پشان دالله ﷻ کښې اودجمهوررأی داده چه نسبت داستهزأ الله ﷻ ته مجازأ دې اوحقيقةً ندې څکه استهزأ اګرکه په دغه معنی مذکورِ سره شیْ خوپدې کښې تقريرد (مستهزأ به) (يعنی په چاپورې چه استهزأ شويده) دې په جهل باندې اوحالانکه مقتضی دحکمة او رحمة داده چه هغه ته حق وخودلې شی ، بل دا چه استهزأ لعب (لوبی) کول دی مناسب ندې دشان کبريائی دالله ﷻ سره ((روح)).

نو **په آيت کښې تاويل دې** چه (۱) مراد د استهزأ نه جزأ اوبدله د استهزأ ده اوکله په فعل باندی اطلاق دجزأ کيږی لکه : (وجزأ سيئةٍ) ، (فيسخرون منهم سخرالله منهم) يالکه (نسوالله فنسيهم).

(۲) او يا مراد داستهزأ نه صورت داستهزأ دې اومراد دادې چه الله تعالی ددوئ سره معامله کوی پشان دمعامله دمستهزئ په دنياکښې اودارنګ په آخرت کښې، هرچه دې په دنياکښې نوهغه اجرأ د احکامو د اسلام ده پدوئ باندې اواستدراجاً دوئ ته ترقی اومهلت ورکول دی لکه په دويمه جمله معطوفه کښې ددی بيان دې : ((ويمدهم فی طغيانهم)) اوهرچه دې په آخرت کښې نوهغه دې چه معلوميږی دسورت حديد آيت ۱۳ نه او دارنګه روايت دې چه منافقين چه جهنم ته داخل شی نوکلاؤ به شی دجنت دروازه يوکس ددوئ ته اوورته به وا ويلی شی ((هَلُمّ ! هَلُمّ!)) يعنې رازه ! رازه ! نوچه دې دروازې ته راشی نوهغه به بند شی اودغه شان به ډيرکرته وشی حتی چه يوکس ته چه بيا دروازه کُلاوشی اوورته ويلی شی ((هلم ! هلم!)) نودې به نه راځی (دادروايت په سند مرسل جيدالاسنادسره مروی دې ) ((روح)).

﴿وَيَمُدُّهُمْ فِى طُغْيَانِهِمْ﴾ (يمد) د (مدّ) نه مشتق دې اومدّ په دوه معانيوسره مستعمليږی (۱) په معنی دکثرت اوزيادت سره او مدّ او اَمَدّ په يو معنی سره دی، لکه ((مدّ الجيش)) ،((امدالجيش)) اوبعضې وائی چه (مدّ) مستعمليږی په هغه زيادة کښې چه دهم جنس نه وی او (امد) هغه زيادت دې چه د غيرجنس نه وی لکه (امدکم بالنعام) اوبعضې وائی چه (مدّ) په

زيادة الشر کښې مستعمليږي او (أمدّ) په زيادة الخير کښې مستعمليږي په عکس د (وَعدَ، أوْعَدَ) سره. (۲) دويم په معنى د امهال يعنى مهلت ورکولوسره **اودلته يا اول معنى مراد ده** يعنى زيادة اوترقى. او دا راجحه ده يعنى الله ﷻ دوئ ته ترقى ورکوی ددوئ په سرکشئ کښې استدراجاً او دا نسبت الله تعالى ته خلقاً دې، ځکه چه الله ﷻ دهرڅه خالق دې اوپه «طغيانهم» کښې اضافت شويدې منافقينوته نو دا کسباً دې نو معلومه شوه چه الله ﷻ خالق دې اوبنده کاسب دې او دا مذهب داهل سنت والجماعت دې.

او يا دويمه معنى مراد ده يعنى الله تعالى دوئ ته مهلت ورکوی ددوئ په سرکشئ کښې نو.(فى طغيانهم) ديمدهم سره متعلق دې.

او ﴿يَعْمَهُونَ﴾ مشتق دې دعَمَهَ نه اوعَمَهَ دعقل ړوندوالى ته وائى لکه عَمىٰ چه دسترګو ړوندوالى ته وائى اولازم دعمه سره تردد اوتحيردې اوپدې کښې اشاره ده چه په سرکشى کښې د زړه اطمينان اوخوشحالى اوسکون نه وى بلکه تحير اوپريشانى وى.

﴿أُولَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ ٱشْتَرَوُا۟ ٱلضَّلَٰلَةَ بِٱلْهُدَىٰ﴾ (شرى) په عرف کښې ورکولو دقيمت ته وائى لپاره دوصول کولو دسلع (مال) او ددې نه بعد بأ داخليږي په ثمن باندې، نو **سوال راځى چه** دوئ سره خو هدايت نه ؤ چه ضلالت پرى واخلى، نوجواب دادې چه (۱) دوئ سره فطرى هدايت موجودؤو ځکه چه (کل مولوديولدعلى الاسلام) (۲) يا دشرأ نه مراد اختيار اوترجيح ده يعنى دوئ ترجيح ورکړيده ضلالت لره په هدايت او اختيارکړې يې دې ضلالت په هدايت باندې.

﴿فَمَا رَبِحَت تِّجَٰرَتُهُمْ﴾ هرکله چه معامله دمنافقانو (استبدال) مشابه کړې شوه دتجارت سره نودلته دمشبّه به يعنى تجارت ملائمات چه ربح ده ذکرشوه نفياً دا استعاره ترشيحيه شوه، او دا په کلام کښې حسن پيداکوى نو دا اشاره شوه ديته چه تجارت خو د ربح يعنى د ګټى لپاره وى خو ددوئ چه کوم قسم تجارت و کړونوپدې کښې خو ربح درکناربلکه د رأس المال نه بالکليه محروم شو. ﴿وَمَا كَانُوا۟ مُهْتَدِينَ﴾ يعنى د رأ س المال نه هم محروم شو

﴿مَثَلُهُمْ كَمَثَلِ ٱلَّذِى ٱسْتَوْقَدَ نَارًا﴾ ددې نه بعد دوه مثالونه ذکر کيږي دجمهورو مفسرينو په راى دا دواړه مثالونه دمنافقينولپاره دى ځکه چه دوئ ډيرضرر رسونکى دى

اسلام او مسلمانانو ته «دلستونړی ماران دی» او**فرق په مابین ددې دواړو مثالونه کښې** دادې چه اول مثال ددوئ دې مع حضور النبی ﷺ . اودویم مثال ددوئ دې مع نزول القرآن اوکلمه د «أو» په دې قول کښې چه ﴿أَوْ كَصَيِّبٍ﴾ لپاره دتخییر ده. او زمونږ دشیخ الشیوخ په رأی اول مثال ددویمې فرقې دې یعنی کافر مجاهر اودویم مثال د دریمې فرقې دې یعنې منافقین او کلمه د «أو» په «اوکصیّب» کښې لپاره دتنویع ده یعنی د یوې نوعې مثال دغه اول دې او د بلې نوعې مثال دادویم دې

(۱) **دجمهورو مفسرینو په رای تشریح داسې ده چه** ﴿ ٱلَّذِى﴾ مفرد دې لفظاً اوجمع دې معنًا نو په ﴿ٱسْتَوْقَدَ﴾ کښې او ﴿مَا حَوْلَهُۥ﴾ کښې دلفظ لحاظ شویدې اوضمیر دمفرد ورته راجع شویدې اوپه (بِنُورِهِمْ) او ﴿وَتَرَكَهُمْ﴾ ، ﴿ لَّا يُبْصِرُونَ﴾ کښې دمعنی لحاظ شویدې او ضمیر دجمع ورته راجع شویدې او ﴿ٱسْتَوْقَدَ نَارًا﴾ په معنی د اوقد سره دې.

﴿ذَهَبَ ٱللَّهُ بِنُورِهِمْ﴾ باء لپاره دتعدیت ده یعنی یوسی اوختم کړی الله تعالی نور ددوئ او دلته کښې (بنارهم) ونه ویلې شو او سره ددینه چه دا موافق ؤو د استوقد ناراً سره ځکه چه په نارکښې دوه صفتونه (اشراق) رڼړا کول او (احراق) سوزول دی او دکافرانو اومنافقانو فائده په نورکښې وه نوهغه ترینه الله تعالی سلب کړه اوهرچه دې احراق یعنی سوزول په عذاب سره یاسوزیدل دزړونوپه ترقی دمؤمنانوسره نو دا خوضرر ؤ نو هغه پاتې دې او دارنګه دلته داسې ذکرنه شو چه (ذهب الله بضوئهم) اوسره ددینه چه دا موافق ؤ د «اضآت» سره. ځکه چه ضوء زیادت دنور ته ویلې شی نوکه «بضوئهم» ویلې شوې وې نو توهم به کیدې شو چه زیاته رڼا به ختم شوی وی اولګه به پاتې وی، نو ددې وجه نه «بنورهم» وه ویلې شو. او تطبیق دمثال دممثل سره دارنګه دې چه منافقانو اظهار دایمان وکړو او دمؤمنانو سره نی په بعضې عباداتوکښې شرکت وکړو نو دوئ ته آمن حاصل شو او جان اومال نی محفوظ شو او په مال غنیمت کښې ورته حصه ملاؤشوه نو دوئ پشان دهغه چا دی چه په یوبیابان کښ ئی شپه راشی او اور بل کړی ددفع دموذیاتولپاره او د رڼا حاصلولولپاره

نومنافقانو ته هم په ایمان ظاهرولوسره دنیوی فوائد حاصل شو اوضررونه ترینه دفع شو.

لیکن چه کله دوئ مره شی نو دا حال ئی مشابه شو د (ذهب الله بنورهم) سره نو دمرگ نه روستو به دوئ په ظلماتُ دحشر او ظلماتُ دجهنم کښې وی، نو دا حال ئی مشابه شو د (وترکهم فی ظلمات) سره او دجهنم نه د وتلوځه لار نشته نوځکه (لایبصرون) راغې.

(۲) **او تشریح دمثال په رای دحضرت الشیخ داسې ده** چه (کمثل الذی) کښې «الذی» مفرد دې لفظاً اومعنیً دواړه خو دلته د (استوقد ناراً) نه بعد دا عبارت مقدر دې (وهناك رجال قاعدون) اودیته «اندماج» ویلې شی او مراد په (الذی) سره نبی ﷺ دې او د (نار) نه مراد درُشد اوهدایت نور دې او د قرآن او د ایمان دعوت دې نوتطبیق دمثال دارنګه دې چه مثال دکافرانو اومشرکانو دمکې دنبی ﷺ سره دارنګه دې چه نبی ﷺ د رُشد اوهدایت چراغ بَلْ کړو (استوقدناراً) اوپه دغه مکان کښې مشرکین مکه موجودؤو «هناك رجال» اوکله چه درُشد اوهدایت انوارات مدینې ته اونورو اطرافوته ورسیدل «فلما اضات ماحوله» او مشرکینو دضد او عناد دوجه نه دعوت دایمان قبول نکړو، نوالله ﷻ ددوئ نور ختم کړو (ذهب الله بنورهم) نو دا ضمیر راجع دې هغه رجالٌ ته چه مقدردې په عبارت کښې او د ذهاب د نور نه مطلب ددوئ استعداد سلب کول دی او دظلمات نه مراد دجهل اودکفرظلمات دی، او وروستو جمله چه ﴿صُمٌّ بُكْمٌ عُمْيٌ فَهُمْ لَا يَرْجِعُونَ﴾ دې نو دا د «ترکهم فی ظلمات» تفسیر دې او ددې آیت دا مفهوم بعینه هغه دې چه مخکښې ذکرشو یعنی «ختم الله علی قلوبهم وعلی سمعهم وعلی ابصارهم غشاوة».

﴿صُمٌّ بُكْمٌ عُمْيٌ﴾ صُمّ جمع د اصم ده او بُکمٌ جمع د ابکم ده اوعُميٌ جمع د اعمی ده او دا خبر د مبتدأ محذوفې لپاره دې، «ای هم صم» نو سوال راځی چه دوئ خو کانړه، ړانده ،ګونګیان نه دی، نوجواب دادې چه دلته حرف تشبیه حذف دې «ای هم کالصم والبکم» اوحذف شویدې حرف تشبیه نو دا تشبیه بلیغه شوه لکه (زید اسدٌ) او **تشبیه د** «اصم . ابکم ،اعمی» **سره پدې کښې ده** چه دوئ دا قوتونه یعنې قوة سامعه اوقوة نطقی اوقوة باصره دحق لپاره بالکل استعمال نه کړل حالانکه داپیداؤو په حق کښې داستعمال لپاره نودا داسې شوه چه دا قوتونه بالکل نشته.

(اَوْكَصَيِّبٍ) دلته (مثلهم) مبتدأ مقدر ده او صَيِّب په حذف دمضاف سره دې. «ای مثلهم

كاصحاب صيّب» او ذوی صیّب . «ای مثلهم مع نزول القرآن كصيّب من السما» صیّب ډير باران ته وائی او هغه باران دي چه پس دسوكړي نه اووريږي او مطر عام دې او اكثر اطلاق ئې په قرآن كښې په باران دعذاب كيږي، چونكه باران رحمت وی او سبب د احيا د زمكې وی او دطرف د آسمان نه راځي نو دغه شان قرآن هم رحمت دې اوسبب دې لپاره داحيا دقلوبُ او نزول ئې داسمان نه دې «فيه ظلمات» په باران كښې ډيرې تيرې وی يو تياره دباران وی بله تياره دوريځی، بله تياره دشپې وی. او په قرآن كښې تكاليف شرعيه يعنی تكليفونه ددعوت ،اوجهاد او د نور عباداتو چه ذكر دی په قرآن كښې اوبيان دقباحتونو دكفر او دنفاق دې .

«رعد» آواز دګړګړ چه د وريځې نه اوريدې شی او په قرآن كښې تخويفات دنيويه او اخروی او زجرونه په كفراونفاق ذكر كيږي .

«وبرق» هغه پړق دې چه د وريځی نه ښكاره كيږی اوپه كومه وريځ كښې چه رعداوبرق وی نو دهغې نه باران ډيرورېږی نوپه قرآن كښې چه بشارتونه مؤمنانوته دی او دلائل دتوحيد دی نو دا پشان دبرق دی .

﴿يَجْعَلُونَ أَصَٰبِعَهُمْ﴾ داجمله مستأنفه ده اوبيان دتمثيل دې لپاره د «رعد» يعنی رعد دومره سخت اوتيز وی چه دهغې د تيزوالې اودتندر د ويرې نه دغه خلق غوږونه بنده وی او دباران دځائ نه تختی نوحصه ددغه خلقو دباران نه صرف يره اوهيبت وی او نورو فوائدوته فكرنه كوی نودغه شان دا منافقان دمجلس دقرآن نه تختی اوغوږونه بندوی لپاره ددې چه دقرآن دتخويفات اوزجرونو نه اثرقبول نه كړی . «اصابعهم» ذكر دكل دې مراد ترينه جزء دې يعنی «انامل» يعنی سرونه دګوتو ﴿مِّنَ ٱلصَّوَٰعِقِ﴾ «من» تعليليه دې دا علت دې د «يجعلون» او صواعق جمع دصاعقه ده هغه اورچه دسخت آواز د رَعَدْ نه پيداشی ﴿حَذَرَ ٱلْمَوْتِ﴾ دا مفعول له دې د «يجعلون» لپاره اوپه صاعقه كښې دموت حقيقةً خطره وی اوپه قرآن اوريدوكښې د«اخلاص ايمان» او د«نفاق» پريخودلو خطره وی او دا دوئ ته دمرګ پشان ښكاری

﴿وَٱللَّهُ مُحِيطٌۢ بِٱلْكَٰفِرِينَ﴾ يعنې دوئ نشی خلاصيدې دالله ﷻ نه لكه محاط چه نشی خلاصيدی دمحيط نه نو دا استعاره تبعيه ده او تشبيه ديوحال ده دبل حال سره. يا احاطه

دعلم او دقدرت مراد ده یعنې دوی دالله ﷻ دعلم اوقدرت ماتحت دی .

﴿يَكَادُ ٱلْبَرْقُ يَخْطَفُ أَبْصَٰرَهُمْ﴾ دا تتمه دمثال ده یعنی دلائلو دقرآن ته عقلونه حیرانیږی خو دا منافقان ئی دبد قسمتی دوجه نه، نه منی. اوپه دې کښې اشاره ده چه بشارت مفید نه دې منافقانوته. (خطف) اخذ دې بسرعة یعنی تښتول ﴿كُلَّمَآ أَضَآءَ﴾ دا متعدی دې اومفعول ئی مقدردې ای (مسلكاً) او (طريقاً) یا لازمی دې یعنې چه ښکاره شی دوئ ته رڼړا ﴿مَّشَوْا۟ فِيهِ﴾ د (فيه) ضمیر راجع دې مسلكاً مقدر ته اوكه (ضأ) لازمی شی نو بیا ضمیرراجع دې مکان د رڼړا ته، یعنی لکه څرنګه چه په حال دباران اوتیاروکښې کله چه بریښناؤشی نودغه خلق قدم واخلی اوکله چه تیاره شی نو بیا ولاړوی نودغه شان حال دمنافقانودې چه کله په اسلام کښې دنیوی منافع و وینی لکه توقع ده مال غنیمت حاصليدل وغیره نودوی بیا دمسلمانانو ملګرتیا کوی اوپه جهاد وغیره کښې شرکت کوی اوکله چه دنیوی منافع نه وی اوتکالیف او مصائب برداشت کول راشی نوبیا دوئ ملګرتیانه کوی ﴿وَلَوْ شَآءَ ٱللَّهُ﴾ یعنی که الله ﷻ وغواړی نو ددوئ دا ظاهری سمع اوبصربه هم ختم کړی لکه باطنی چه ختم دی نو ړانده خره به ترینه جوړشی .

﴿إِنَّ ٱللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ﴾ دا تعلیل د ماقبل دې (شئ) په لغت کښې ((مايصح ان يُعلمَ ويُخبرعنه)) ته وائی نو دا شامل دې موجود او معدوم او واجب اوممکن ټولوته اوپه عرف کښې ئی اطلاق په متعدد معانیو باندې کیږی اوتعین دماهوالمرادبه ترینه په قرینه سره کیږی (۱) کله ترینه مراد ټول افرادوی یعنی موجود اومعدوم او واجب اوممکن لکه (والله بکل شئ علیم) ذکر دعلم قرینه ده چه مراد دشئ نه موجودات اومعدومات اوممکنات اوذات دالله تعالی دا ټول مرادی، ځکه علم دباری تعالی دې ټولوته شامل دې.

(۲) کله ترینه مراد صرف ممکنات وی لکه پدې آیت کښې په قرینه دذکردقدرت سره ځکه قدرت نه متعلق کیږی په محالاتو پوری اودارنګه په واجب الوجود پوری .

(۳) کله ترینه مرادهغه ممکن وی چه موجودوی په ذهن کښې لکه (ولاتقولنّ لشئ انی فاعل ذلك غدا الاان یشأ الله). نو دلته مراد د(شئ) نه هغه دې چه تصورئی شوې وی په ذهن کښې .

(۴) کله ترینه مراد هغه ممکن وی چه معدوم وی لکه (انماامرنالشئ اذا اردناه) ـ الایه

(۵) کله ترینه مرادموجودخارجی وی لکه (وقدخلقتك من قبل ولم تك شيئا) ای موجوداً خارجیاً.

| يَاَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوْا رَبَّكُمُ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ |
|---|
| اې خلقو! (۱) صرف دخپل رب عبادت کوئ هغه (۲) چه تاسو ئې پیدا کړي يئ او هغه خلق چه مخکښې وو ستاسو نه |
| لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ۙ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ فِرَاشًا وَّالسَّمَآءَ بِنَآءً ۣ |
| دپاره ددې چې تاسو بچ شئ دعذاب نه هغه ذات (۳) چې ګرزولې ئې ده ستاسو دپاره زمکه فرش او آسمانونه چت |
| وَّاَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَخْرَجَ بِهٖ مِنَ الثَّمَرٰتِ رِزْقًا لَّكُمْ ۚ فَلَا تَجْعَلُوْا لِلّٰهِ |
| اوراوری د آسمان د طرفه اوبه نوراوباسی په هغې سره دمیوؤنه رزق ستاسو دپاره، نومه ګرزوئ (۴) دپاره د الله |
| اَنْدَادًا وَّاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝ |
| شریکان او حال دا دې چې تاسو پوهیږئ (چې دا کارونه صرف الله کوي) |

﴿يَاَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوْا﴾ ددینه مخکښې ذکرد تمهیدؤو یعنی بیان ددرې فرقوؤ، اودلته داصل دعوی د سورت یعنی دعوی توحید ذکردې، او دا دعوی درې وارې ذکرکیږی : یو وارې دلته ذکرشوه اودویم وار په آیت ۱۶۳ اودریم وار په آیت ۲۵۵ کښې، اول وار ذکرئی لپاره دنفی شرك اعتقادی دې، او دویم وار ذکرئی لپاره دنفی دشرك فعلی دې، او دریم وار ذکر ئی لپاره دنفی شرك فی الشفاعة دې (یا) حروف ندا دې ، دقریب اوبعید دواړو لپاره استعمالیږی.
«أيُّ» اسم مبهم دې پدې سره توصل کولې شی لپاره دندا معرّف باللام ته په هغه ځائ کښې چه په دغه معرّف باللام باندې (یا) نه داخلیږی، یعنی غیر دلفظ دالله نه او دالفظ د (أيُّ) مبنی دې په ضمه، ځکه دا منادی ده او «ها» زائیده لپاره دتنبیه اوعوض دې د مافات چه اتصال د «یا» دې د اصل منادی سره.

۱ - اصل دعوي
۲ - دلیل انفسی
۳ - دلیل افاقي سفلی ـ والسماء علوی دلیل انزل من السماء جوی دلیل
۴ - نتیجه دماقبل

او «الناس» صفت یابدل دې د «أيُّ» نه اومرفوع دې اولفظ دناس اسم جمع ده، او **مراد د ناس نه** په نزد دبعضې هغه دی چه موجودؤ په زملنه دنزول د وحی کښې نو دا خطاب موجودینو ته دې، اګرچه حکم دعبادت عام دې غیرموجودین لره په اجماع سره اوپه نزد دبعضې دا خطاب عام دې موجودین اومعدومین ټولوته دې، اومعدوم ته اګرچه خطاب نشی کیدې لیکن اصالةً نشی کیدې اودلته خطاب یاپه طریقه دتغلیب سره دې یاپه فرض کولوده معدوم پشان دموجود او بنا په هرتقدیرسره هغه چه روایت دې دابن مسعود ﷺ اوعلقمه اوابن عباس ﷺ نه«ان لکل شئ نزل فیه یاایهاالناس مکی ویا ایهاالذین آمنوامدنی» نو دا روایت په تقدیر دصحت سره مؤول دې یعنی مصداق اولین اومخاطب اولین په (یاایهاالناس) سره اهل مکه دی اوپه (یاایهاالذین آمنوا) سره اهل مدینه دی ،دا مراد ندې چه (یاایهاالناس) خطاب صرف اهل مکه ته دې، بلکه دا خطاب اوحکم عام دې ټولو موجودین اومعدومین ته . او **دحضور اکرم ﷺ خطاب په** (یاایهاالناس) سره او دنورو انبیاؤ علیهم الصلاة والسلام خطاب په «یاقوم» سره لپاره د اشارې دې عموم بعثت دحضورﷺ ته ، او که **څوک سوال وکړي** چه جنات خو دجنس د«ناس» نه ندی نوهغوئ خارج شودخطاب اوحکم نه نوجواب دادې چه د (یاایهاالناس) نه بعدوالجن مقدردې نوخطاب اوحکم دوئ ته هم شامل شو اوبعضې حضرات فرمائی چه «الناس» نه مراد ناسی دې یعنی هغه مخلوق چه وعده ازلی ترینه هیره شوی ده، یاجنات چونکه په احکاموکښې تابع دی د انسانانو نوذکرمستقلاً ته ئی حاجت نشته.

«اعبدواربکم» دلته دحصرمعنی مراده، یعنی صرف دیو رب عبادت کوئ اوعبادت عام دې که مالی وی اوکه بدنی وی اوکه قولی وی.

اوحصر دعبادت په رب پورې معنی .دتوحیدده نوددې وجه نه مفسرینود (اعبدوا) تفسیرپه (وَحّدوا ربکم) سره کړیدې او دحصرمعنی ځکه مراد ده چه مشرکین چه مخاطبین اولین دی پدې خطاب سره هغوئ دعبادت د رب نه منکرنه ؤ بلکه دحصر دعبادت نه په رب پورې منکرؤ لکه دوئ به ویل: (هذا لله بزعمهم وهذالشرکائنا) نوکچرې دلته دحصرمعنی مراد نشی نو دا کلام به مفید نشی اوپدې وجه تصریح کړیده بعض اهل علمُ لکه شیخ رضی شو چه

کله کله په کلام کښې دحصرمعنی مراد وی او ادوات د حصر نوی موجود او بله داوجه ده چه ﴿فَلَا تَجْعَلُوا لِلَّهِ أَندَادًا﴾ نتیجه د ماقبل ده اوپدې کښې حصردې نومعلومه شوه چه په اول کښې یعنی «اعبدوا» کښې هم حصردې ځکه چه نتیجه اومُدعی یوشئ وی.

﴿ الَّذِي خَلَقَكُمْ وَالَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ ﴾ دا صفت موضحه دې دربکم لپاره او **دا بیان ددلائل عقلیو** دې په دعوی توحید باندې . نودا اول دلیل عقلی انفسی دې یعنی دا ستاسو انفس دلیل د وحدانیت درب دې .

﴿ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ﴾ «لعل» په معنی دلام کَی سره دې او(تتقون) په اصل کښې (توتقِیُون) ؤ. واو په تا بدل شو او ادغام ؤشو نوتتقون شو.

﴿ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ فِرَاشًا﴾ دا دلیل عقلی اٰفاقی سفلی دې او«جعل» کچرې په معنیٰ د «خلق» سره شی نو «فراش» حال دې اوکه په معنی دصیّرسره شی نو بیا «فراشا» مفعول ثانی دې او «فراشًا» په معنی دمفروشةً دې، یا د «کالفراش» یعنی پشان دبسترې غوریدلی، یعنی دا زمکه نه ډیره نرمه ده چه خپې په کښې ننوزی اوتلل پی نشی کیدې، او نه ډیره سخته ده چه آرام پې نشی کیدې او دغه د (ذلولاً) معنی ده چه سورة الملك کښې ذکردی ﴿وَالسَّمَاءَ بِنَاءً ﴾ دا دلیل عقلی آفاقی علوی دې ، او «بناءً» په معنی دمبنی جورکړې شوی سره راځی خواه که کوټه وی یاخیمه وی یا گنبد وی خودلته ترینه مرادسقف «چهت» دې .

﴿وَأَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً﴾ دا دلیل عقلی جوی دې په توحید باندې، حاصل دا چه علویات سفلیات، جویات ټول دالله ﷻ دتوحید شواهداودلائل دی. نونتیجه داشوه چه (فلاتجعلوا — الآیه) اومراد (من السمآء) نه جهة العلو ده یاسحاب مراد دې.

﴿فَأَخْرَجَ بِهِ مِنَ الثَّمَرَاتِ رِزْقًا لَّكُمْ﴾ «رزقا» مفعول د اخرج دې او «من الثمرات» په اخرج پورې متعلق دې یا په موضع دحال کښې دې «ای رزقاکائنامن الثمرات».

﴿فَلَا تَجْعَلُوا لِلَّهِ أَندَادًا﴾ د تجعلوا نه مراد دادې چه مه گرزوئ په خپل اعتقادکښې الله ﷻ لره شرکاً یعنی اعتقادمکوی ، یاگرزول په اعتبار دعمل سره مراددی، «انداد» جمع دند ده دا

هغه مقابل ته ویلې شی چه مساوی وی، اودلته مراد مطلق شرکاً دی خواه که مساوی وی اوکه غیرمساوی وی اوجن وی اوکه انس وی، نوسوال رازی چه مشرکانو خو خپل معبودان مساوی نه ګنړل دالله ﷻ سره بلکه ادنی ئی ګنړل اووسیله ئی ګرزول دتقرب الی الله لپاره، نوجواب دادې چه اطلاق د «ند» پدوئ باندې په طریقه داستعارې تهکمیه سره شویدې یعنی دمشرکینو په اعتقادکښې خو اګرچه دوئ مقابل مساوی نه ؤ، خو اطلاق دمقابل مساوی په دوئ باندې تهکماً شویدې لکه (وبشرهم بعذاب) کښې چه استعاره تهکمیه ده، یاهرکله چه دوئ خپل معبودان برابرکړه دالله ﷻ سره په استعانت اوسجده اونذروغیره کښې نوپه دوئ باندې اطلاق د «ند» بطریق الالزام ؤکړې شو.

او (انداداً) چه په صیغه دجمع سره ذکرشویدې نو مراد ترینه داندې چه ډیر انداد مه ګرزوی او د یواجازت دې بلکه دا سلب کلی دې، خو دجمع ذکرکول په اعتباردواقع دحال سره دی، چه مشرکینو الله ﷻ لره ډیر بی شماره معبودان ګرزولی ؤ.

﴿وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ﴾، «ای وَاَنْتُمْ تَعْلَمُونَ ان شیئًا مّاذُکِرَلایفعلهٗ غیره تعالی» یعنی پدې خبره باندې تاسو(مشرکان) ښه پوهیږئ چه پیدا کول ستاسو او دارنګه آسمان، ځمکه، باران وغیره صرف الله تعالی کړیدی اودغه کارونه چه څوك کوی خوصرف هم هغه معبودوی نو پکارده چه تاسوقول او اقراروکړئ پدې چه معبود صرف الله تعالی دې حالانکه تاسو دا اقرار نه کوئ نو ګویاچه تاسودلیل اومقدمات ددلیل منئ اونتیجه ددلیل نه منئ، او دا نهایت بی وقوفی ده، اوهرکله چه دعوی توحیدثابته شوه په دلائلوسره نو دمشرکینو دطرفه سوال راغې چه دا دعوی توحید ځکه نه منوچه داستا دطرفه ده، یعنی الله تعالی داسی امر ندې کړې چه «اُعبدواربکم» چه صرف د یورب عبادت کوئ لکه په سورث یونس «ع» کښې ذکردی (ام یقولون افتراه) اومشرکین چه قرآن ته افتراً وویله یائی انکار او ریب کولو نوفی الحقیقت دوئ مسئله توحیدته افتراً وویله اوددینه ئی اصالةً انکارکولو اوریب ئی کولو لکه په سورت یونس آیت «۱۵» کښې دی (ائت بقرانٍ غیرهٰذا اوبدّله) مشرکانوا د تغیراوتبدیل مطالبه ؤکړه نومعلومه شوه چه اصل اختلاف ئی دتوحیدسره ؤ.

| وَاِنْ كُنْتُمْ فِيْ رَيْبٍ مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلٰى عَبْدِنَا فَاْتُوْا بِسُوْرَةٍ مِّنْ مِّثْلِهٖ |
|---|
| او که چرې يئ تاسو په شک کښې [1] دغه کلام نه چه نازل کړيدې مونږ په خپل بندهٔ نو راوړئ يو سورت مثل ددې |
| وَادْعُوْا شُهَدَآءَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝ فَاِنْ لَّمْ تَفْعَلُوْا وَلَنْ تَفْعَلُوْا |
| او راؤغواړئ مددگاران خپل سوا داالله نه که يئ تاسو رېښتني . بس که چرې تاسو اونکړئ داکار او هرګزئ نشئ کولی |
| فَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِيْ وَقُوْدُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ ۚ اُعِدَّتْ لِلْكٰفِرِيْنَ ۝ |
| نو خان بچ کړئ دغه اور نه چه لرګی دغې خلق دي او ګټې دي، تيار کړې شوېدې دپارهٔ د کافرانو |

بهر حال هر کله چه دمشرکانو دطرفه په مسئله توحید سوال وشو نو جواب ئې راغې چه

﴿وَاِنْ كُنْتُمْ فِيْ رَيْبٍ مِّمَّا نَزَّلْنَا﴾ حاصل دجواب دادې چه که دا مسئله دطرفه دالله ﷻ نه، نه وی نو تاسو هم عرب فصحأ يئ نو داسې کتاب تاسو جوړ کړئ او پيش ئې کړئ، او چه داسې نشئ کولائ نو معلومه شوه چه دا کتاب او دا مسئله دطرفه دالله ﷻ نه ده، نو دا ؤمنئ او ايمان راوړئ او خپل ځان دجهنم نه بچ کړئ، **سوال** راځی چه ريب دکفارو خويقيني ؤ او کلمه د «انْ خو دشك لپاره مستعمليږي؟ **جواب** دادې : (۱) چه «انْ» لپاره دتوبيخ اوزورنې دې په ارتياب باندی لکه يو سړې خپل بچی ته وائی «ان كنت ابنى فاطعنى» يعنې کچرې ته ځما ځوې يې نو زما خبره منه، نو دلته انْ دشك لپاره ندې بلکه لپاره دتوبيخ دې په ترك داطاعت (۲) يا دلته تغليب دې يعنی دبعضو ريب ؤ قطعا او دبعضو نه ؤ نو تغليب ؤشو دغيرمرتابينُ په مرتابينُ (۳) ياچونکه دمخالفين ريب اګرکه يقيني ؤخوبې دليله ؤ نو نازل کړې شو په منزله دغيريقيني (۴) ياکلمه دانْ په معنی د «اذ» سره ده.

﴿عَلٰى عَبْدِنَا﴾ د قرآن قانون دې چه کوم ځائ دنبی ﷺ نه اظهار دمعجزې ؤشی نو هلته دنبی کريم ﷺ نه تعبير په عبد سره کيږی لپاره ددې چه څوك نبي کريم ﷺ ته د اظهار معجزې له وجه معبود ؤنه وائی

لکه پدې آيت کښې او په سورة انفال ۴۱ کښې (ومانزلنا على عبدنا). يا لکه (سبحان الذى اسرى بعبده) (بنى اسرائيل)، يالکه (تبارك الذى نزل الفرقان على عبده) فرقان

1 - جواب داولې شبهې ا ام يقولون افتراه

۱ - د (عبدنا) لفظ نه معلومیږی چه اشاعت ددین دعبدیت نه کیږی نه دسلطنت نه اوعبدیت په مراتبو دقرب کښې لویه مرتبه ده اوله دې وجه نه نبی کریم ﷺ عبدیت غوره کړو کله چه ورته اختیارورکړې شو دسلطنت او دعبدیت اوددې وجه نه نبی کریم ﷺ فرمائی: «من تواضع لله رفعه الله ومن تکبرلله وَضَعَهُ اللهُ» ، دمخلوق سره عبدیت مناسب دې . حضرت شاه انورشاه صاحب فرمائی چه آدم علیه الصلاة والسلام ته چه خلافت ملاؤشویدې نو دا په عبودیت سره ملاؤشویدې نه په علم سره لکه دا مشهوره ده (فیض الباری ج ۴).

دکوموبادشاهانو دلاسه چه نشر داسلام شویدې لکه صحابه ﷺ نه نودغه دعبدیت دوجه نه شویدې نه دسلطنت دوجه نه، اوهم ددې وجه نه د وروستو بادشاهانو دلاسه نشر داسلام نه کیده .

﴿فَأْتُوا بِسُورَةٍ مِّن مِّثْلِهِ﴾ دا امر دتعجیز لپاره دې او «من مثله» یاظرف مستقردې (۱) صفت دې د«بسورة» لپاره او«مِنْ» بیانیه دې یاتبعیضه دې اوضمیرراجع دې «مانزلنا» ته نوچه «مِنْ»بیانیه شی نومعنی داده چه راوړئ یوسورة داسې سورة چه مثل وی دقرآن مانزلنا . یعنی دقرآن مماثل وی په فصاحت ،بلاغت، اخبارعن المغیبات وغیره کښې، اوچه «مِنْ» تبعیضه شی، نو معنی داده چه راوړئ یوسورت چه بعض وی دمماثل دقرآن نه. یعنی یو داسې کتاب چه مماثل وی دقرآن نو دهغې نه یوسورت راوړئ، او مراد په مثل سره پدې تقدیرباندې مثل محقق ندې مراد بلکه مماثل فرضا مراد دې لکه و (مثلك لایبخل).

(۲) او یا «مِنْ مِثْلِهِ» ظرف لغو دې متعلق په «فَأْتُو» پورې او ضمیر پدې تقدیر راجع دې «عبد» ته او«مِنْ» ابتدائیه دې یعنې راوړئ یوسورت دطرفه دیوشخص نه چه هغه مثل وی خما ددې عبد . اومراد مثلیة په مطلق بشریة کښې دې یاپه اُمیة کښې دې یعنی داسې شخص ؤګورئ چه هغه هم بشر وی او امی وی او داسې فصیح بلیغ کلام راوړی. نو دهغه شخص نه سورت راوړئ لیکن دا احتمال بعضې حضراتو ضعیف کړیدې په ډیرووجوهو سره چه منجمله دهغې نه داده چه پدې کښې اثبات دعجزؤشو د اتیان مخصوص نه چه اتیان دې دداسی چانه چه هغه هم امی اوبشر وی اومقصود اثبات دعجزدې دمطلق اتیان نه .

پس زده کړه داخبره چه پدې آیت کښې تحدیٰ (چیلنج) شویدې چه مثل دقرآن راوړئ . عام **مفسرین حضرات فرمائی چه مراتب دتحدیٰ خلوردی** (۱) تحدیٰ په کل قرآن سره لکه (قل لئن

اجتمعت الانس والجن علی ان یا تواجثل هذالقرآن لایا تون بمثله ولوکان بعضهم لبعض ظهیرا) سورة بنی اسرائیل آیت (۸۸). (۲) تحدی په لسو سورتونو سره لکه (فأتوا بعشرسورمثله مفتریٰت) سورة هود آیت ۱۳. (۳)په یو سورت سره لکه دلته (۴) تحدی په یوجمله اوکلام سره لکه (فلیأتوا بحدیث مثله ان کانوا صادقین) طور، آیت ۳۳. حضرت الاستاذ رحمه الله فرمایل چه (۵) تحدی په حرف واحدسره ده، حروف مقطعات هغه چه مفرد واقع شویدی لکه ((ص، ق، ن)) پدې کښې هم داچلینج دې چه داسې حرف تاسونشئ راوړې.

﴿وَٱدۡعُواْ شُهَدَآءَكُم﴾ دا توسیع دمیدان دمقابلې دې یعنی که پخپله یوازې دقرآن مثل نشئ پیش کولې نوتاسوته ته اجازت دې چه خپل شهدأ راوبلئ، اومراد د شهداء نه هغه دی چه دوئ معبودجوړکړی ؤ ، یامراد ترینه ددوئ اکابرین اوموافقین دی په انکارکښې

﴿فَإِن لَّمۡ تَفۡعَلُواْ﴾ (فا) لپاره دتعقیب ده یعنی بعد دتحدیٰ او چلینج ورکولونه خومقابله ضروری وی خصوصاً دضدی اومعاند لپاره خو ډیر ضروری وی نوکه ستاسو څه جرأت او طاقت وی نومقابله وکړئ. اوکه مقابله نشئ کولې نو بیا ایمان راوړئ نو (فان لم تفعلوا) شرط دې او جزاء ئی مقدره ده چه ((فامنوا)) ده ، او دا قول چه ﴿فَٱتَّقُواْ﴾ دمحذوف جزا قائم مقام دې او ﴿وَلَن تَفۡعَلُواْ﴾ د شرط او جزاء په درمیان کښې جمله معترضه ده لپاره د اظهار دعجز دمخالفینو او دایوه ښکاره معجزه د قرآن او دحضور ﷺ ده چه اخبارئی وکړو دغیب نه، یعنی لدې خبرې نه چه تاسو هرګز دقیامت پورې هم ددې مثل نشئ پیش کولې نوظاهره ده چه پدې باندې به مخالفینوته ډیرجوش ورغلې وی او ډیره سعی به ئی کړې وی خویوحرف اویوه جمله ئی هم په مثل د قرآن نه ده پیش کړې اوعاجز شویدی نو دا پیشنګویی تکی په تکی صحیح ثابته شوه نو دا دلیل د اعجاز دقرآن او د رسالت درسول الله ﷺ شو یعنی اخبار دمغیباتو راتلونکونه

﴿وَقُودُهَا﴾ وقود بضم الواومصدر دې اوبفتح الواواسم دې لپاره دهغه شی چه هغه سره اور بلولې شی یعنی خشاك ،لرګی، اودغه شان نور اوزان دفُعول اودفَعول دی لکه وُضوء اووَضوء اوطُهور، طهور ، وَزوع- وُزوع، لغوب، لُغوب

﴿اَلنَّاس﴾ نه مراد كفارمشركين دی ﴿وَالْحِجَارَةُ﴾ دابن عباس رضي الله عنه اوابن مسعود رضي الله عنهما نه مروی ده **چه مراد دینه** حجارة الكبريت يعنی دګوګړو، كانړی مراد دی اوتخصيص ئی ځكه وُشو چه پدې كښې ۱- سخته ګرمی ۲- لمبې ۳- اواور زر بليدل ۴- او دبدن سره جوختيدل وی اوچه ناس وُرسره بطورخشاك استعمال شی نو بياورسره ۵- مزيد بدبوئی ، ۲- اوسخت لوګې شامل شی (اللّهم اعذنامنها) او**بعضې وائی** چه مراد د «حجارة» نه بتان دی اوتخصيص ئی ځكه وُشو چه بتان دوئ ذريعه دنجات ګڼړله اوهغه ذريعه دعذاب شوه نوخلاف توقع كار وُشو نو دا روحانی عذاب شوچه دجسم عذاب سره ضم شو.

﴿أُعِدَّتْ لِلْكَٰفِرِينَ﴾ داجمله په موضع دحال كښې ده د «نار» نه، او «اعداد» تيارولوته ويلې شی او دا دليل دې پدې خبره چه جهنم او دارنګه جنت موجود دې فی الحال لكه دا مذهب داهل سنت والجماعت دې، **ددې آيت نه مرجئه** دا ثابتوی چه ګناه، ايمان ته څه نقصان نه رسوی، ځكه په ګناه كولوسره څوك نه كافركيږی او اور دجهنم خاص دكافرانو لپاره دې لكه ددې آيت نه واضحه شوه، او**معتزله، خوارج** ددې آيت نه دا ثابتوی چه مرتكب دګناه كبيره دايمان نه خارج دې ځكه چه دګناه دوجې نه بنده جهنم ته ځی اُودجهنم او رخاص دكافرانو لپاره دې نومعلومه شوه چه مرتكب دكبيره كافر دې اوخارج دې د ايمان نه، **اهل السنت والجماعت** وائی چه مراد دآيت نه دادې چه اصالةً جهنم دكافرانو لپاره تيارد‌ې او مؤمن عاصی به ورته تطفلاً يعنی تبعاً . ياتطهُراً يعنی دپاكولو لپاره ورته داخليږی، بلكه دا چه د اُعدت معنی دانه ده چه صرف كافران به ورته داخليږی بلكه معنی ئی داده چه تياركړې شويدې دكافرانولپاره . يا أعدت د اعداد نه مشتق دې او دلالت كوی په معنی د دوام باندې نو مطلب دادې چه په طريقه د دوام سره خاص دې دكافرانولپاره .

| وَبَشِّرِ | الَّذِينَ | اٰمَنُوا | وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ | اَنَّ | لَهُمْ | جَنّٰتٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|

او زيرې وركړهٔ هغه خلقوتهٔ چې ايمان ئې راوړې وي اونيک عملونه ئې كړي وي چې بيشكه دوئ لره جنتونه دي

| تَجْرِيْ | مِنْ | تَحْتِهَا | الْاَنْهٰرُ ؕ | كُلَّمَا | رُزِقُوْا | مِنْهَا | مِنْ | ثَمَرَةٍ | رِّزْقًا ۙ | قَالُوْا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

چې بهيږی لاندې دونودهغې نهٔ نهرونه. هركله چې وركړېشي دوئ تهٔ په جنت كښې دميوؤنهٔ رزق. نودوئ بهٔ وائ

| هٰذَا | الَّذِيْ | رُزِقْنَا | مِنْ قَبْلُ ۙ | وَاُتُوْا | بِهٖ |
|---|---|---|---|---|---|

چې داخوهغه دې چې مونږ تهٔ راكړې شوېدې مخكښې ددې نهٔ، اوراوړې بهٔ شي دغه رزق دوي تهٔ

| وَّهُمْ فِيهَا خٰلِدُوْنَ | اَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ | فِيْهَآ | وَلَهُمْ | مُتَشَابِهًا |
|---|---|---|---|---|
| اودوئ به په هغې کښې همېشه وي | ښېښانې وې پاکیزه، | دپاره به په جنت کښې | اوددوئ | چې یوشان به وي دمخکښې سره، |

﴿وَبَشِّرِ الَّذِيْنَ﴾ دا معطوف دې په ماقبل باندې اوپه ماقبل کښې اگر که صیغه د امر یا دنهی نشته دی چه هغه په لفظ کښې معطوف علیه شی د «بشّر» لپاره چه صیغه د امر ده لیکن دیته عطف القصه علی القصه وائي، یعنی چه مضمون دیوې جملې مناسب ... د مضمون دبلې جملې سره، نو عطف ؤشی اگر که موافق نه وی په (خبریت) (انشائیت) کښې کمایقال (زید یعاقب بالقید والارهاق، وبشرعمروا بالعفو والاطلاق.

﴿أَنَّ لَهُمْ جَنّٰتٍ﴾ په بشارت کښې ۱- یومبشّروی نو هغه حضور ﷺ دی ۲- اویل مبشرلهم وی، هغه مؤمنان دی چه ذکردی په (آمنواوعملواالصالحات) کښې او ۳- بل مبشّربه وی، دا دهغې ذکردې اوبا مقدره ده «ای بان لهم» اوجنت اسم دې لپاره د دار دثواب او اطلاق ئې کیږی کله په حال باندې یعنې ونې، چه زمکه ئې پټه کړې وی اوقصور یعنی بنگلې اوکله ئې اطلاق کیږی په محل د «ونو» ، بنگلوباندې، نوکه دلته حال مراد شی نو مضاف مقدرکولوته ضرورت نشته اوکه محل مرادشی نو بیا مضاف مقدر دې «ای من تحت اشجارهاوقصورها» ، او (جنات) په صیغه دجمع اونکره ذکرشوه ځکه جنت چه دارالثواب دې، مشتمل دې په ډیرو جنتونو اوپه ډیرومراتبو مطابق داعمالودعاملینو او (الانهار) معرفه ذکرشوه ځکه په سورة محمد ﷺ آیت ۱۵ کښې د انهار اربعۀ ذکر دې (فیها انهارمن ماء غیرآسن وانهرٌ من لبن لم یتغیرطعمه وانهرمن خمرلذة للشاربین – وانهارمن عسل مصفی الایه).

﴿كُلَّمَا رُزِقُوْا مِنْهَا﴾ پدې کښې توسع دخوراك ته اشاره ده لکه په ماقبل کښې توسع د سکاك ته اشاره وه. «رُزقوا» په صیغه دمجهولې سره ذکرشوه نو اشاره ده چه ددوئ به خدمت گاران وی (منها) ضمیر راجع دې جنت ته ، اومن ابتدائیه دې یا په معنی دفی سره دې او «من ثمرة» کښې من ابتدائیه دې یازائد دې لپاره د افادې داستغراق او «رزقا» په معنی د مرزوقا سره مفعول ثانی دې د «رزقوا» لپاره. او «کلّما» منصوب دې ظرف دې د «قالوا» لپاره

﴿هَـٰذَا ٱلَّذِى رُزِقْنَا مِن قَبْلُ﴾ لفظ د هذا اشاره ده یا نوع د مرزوق ته اوبعض افراد د نوع چونکه محسوس دی نودغه کافی دی لپاره داشارې، یا په هذا کښې اشاره ده مشخص مرزوق ته، نو **سوال** راځی چه په مشخص حاضرطعام باندې اطلاق د رزقنا چه ماضی ده، نه صحیح کیږی ځکه حاضرطعام خوعین خوړلې شوې ندې.

**جواب** دادې چه حاضرطعام ته «رزقنا» ویل مبالغهٔ دی یا دلته لفظ دمثل مقدر دې «ای هذا الحاضر مثل الذی رزقنامن قبل» اوپه «من قبلُ» کښې دوه توجهین دی (۱) «من قبل هذه الساعة فی الجنة» . نو**سوال** راځی چه کلما خو د استغراق لپاره وی یعنی هر وارې نو پدې کښې اول وارهم داخل دې او د اول وارنه قبل خوڅه نشته نوڅرنګه به ویلې شی چه «هذالذی رزقنامن قبل». **جواب** دادې چه اول ترینه مستثنی دې په قرینې عقلی سره. یا کلما لپاره داستغراق حقیقی ندې بلکه داستغراق عرفی لپاره دې. (۲) «من قبلُ فی الدنیا» مراد دې یعنی میوې دجنت به دمیوو ددنیاسره مشابه وی خو صرف په لون او اسم کښې ځکه مأنوس شئ ته دطبعیت میلان کیږی، نو پدې توجیه هم دا **سوال** رازی چه ډیرمسلمانان جنتیان داسی دی چه هغوئ د دنیا میوې ندی خوړلې اونه ئی لیدلی دی، او دارنګه دجنت ډیرې میوې داسی دی چه هغه جنتیانوندی لیدلی اونه ئی تصورکړیدې نوڅرنګه به صادق شی داچه «کلما رزقوا ــ الایه»

(۱) **جواب** دلته استغراق حقیقی ندې مراد.(۲) «رُزقنا» په معنی د(وُعِدنامن قبلُ فِی الدّنیَا) سره دې (۳) تقدیری عبارة داسی دې (هذا جزأ العمل الذی وُفّقنامن قبل فی الدنیا).

﴿وَأُتُوا۟ بِهِۦ مُتَشَـٰبِهًا﴾ دا علت دې دماقبل یعنی ددې قول لپاره چه (هذالذی رزقنامن قبل) او دمتشابهاً نه مراد یوشان.والې دې په رنګ اونوم کښې نه په خوندکښې (رُوِیَ عن الحسن ان احدهم یؤتیٰ بالصحفة فیأکل منهاثم یؤتی باخری فیراها مثل الاولی فیقول ذالک ؟ فیقول الملك : کُل، فاللون واحد والطعم مختلف).

﴿وَلَهُمْ فِيهَآ أَزْوَٰجٌ﴾ دنیا والابیبیانی هم مرادکیدې شی اوحورې هم مرادکیدې شی.

﴿مُّطَهَّرَةٌ﴾ یعنی دهرعیب ظاهری اوباطنی نه به پاکې وی، دانسان خوشحالی اولذت به

درې اشيأ ودې ۱- مسکن چه فراخ اوعمده وی ۲- اوخوراك سکاك چه عمده اوفراخ وی ۳- بی بی چه پاکه اوخائسته وی. ددې درې واړو ذکروشوو خوپه دنياکښې هروقت خوف دزوال او دفنأ وی نو ددې توهم د ازالې لپاره ورسره دا ذکرشو چه ﴿وَهُمْ فِيهَا خَالِدُونَ﴾.

| |
|---|
| إِنَّ اللَّهَ لَا يَسْتَحْيِي أَنْ يَضْرِبَ مَثَلًا مَا بَعُوضَةً فَمَا فَوْقَهَا ۚ فَأَمَّا الَّذِينَ |
| بيشکه الله شرم[1] (حيا) نۀ کوي ددينه چې بيان کړي يو مثال ديوماشي يادهغې نۀ زيات. پس هرچې دی هغه کسان |
| آمَنُوا فَيَعْلَمُونَ أَنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَبِّهِمْ ۖ وَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا |
| چه ايمان نې راوړې دي نو هغوئ پوهيږي چې دامثال حق دي دطرفه درب ددوئ نۀ. اوهرچې کافران دي |
| فَيَقُولُونَ مَاذَا أَرَادَ اللَّهُ بِهَٰذَا مَثَلًا ۘ يُضِلُّ بِهِ كَثِيرًا وَيَهْدِي بِهِ |
| نودوئ وائ چې څۀ اراه کړېده الله ددې مثال نۀ، گمراه کوي[2] الله پدې سره ډېر خلق. اوهدايت کوي پدې سره |
| كَثِيرًا ۚ وَمَا يُضِلُّ بِهِ إِلَّا الْفَاسِقِينَ ﴿٢٦﴾ الَّذِينَ يَنْقُضُونَ عَهْدَ اللَّهِ مِنْ بَعْدِ مِيثَاقِهِ |
| ډېرو تۀ. او نۀ گمراه کوي پدې سره مگرفاسقان . داهغه خلق دي چې ماتوي وعده لوظ دالله روستو دمضبوط کولو نۀ |
| وَيَقْطَعُونَ مَا أَمَرَ اللَّهُ بِهِ أَنْ يُوصَلَ وَيُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ ۚ أُولَٰئِكَ |
| او پرېکوي هغه څيز چې حکم کړېدې الله دهغې دوصل (پيوست) کولو اوفساد کوي پۀ زمکه کښې ، دغه کسان |
| هُمُ الْخَاسِرُونَ ﴿٢٧﴾ |
| هم دوي تاوانيان دي |

﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَسْتَحْيِي﴾ داجواب ددويمې شبهې دې چه واردېږی په توحيد باندې، امام سدی رحمه الله اومجاهد رحمه الله نه روايت دې چه هرکله بيان کړل الله تعالی مثالين مذکورين (کمثل الذی استوقداه) ، (اوکصيب من السمأ) نو کافرانو اومنافقانو وويل چه دا کلام دالله جل جلاله ندې ځکه الله جل جلاله منزه دې دداسې تمثيلاتُ نه او دقتاده رحمه الله اوابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه هرکله ذکر کړل الله جل جلاله عنکبوت او ذباب لره نومشرکينو وويل چه دا دالله جل جلاله

1 - جواب شبۀ ثانيه

2 - مرتب برماقبل لف نشر غير مرتب.

کلام نه دي ځکه چه الله ﷻ دداسې حقيراشياؤ ذکرنه کوی، نو ګوياکه دا معارضه شوه،
**حاصل دجواب** دادي چه مناسبت دمثال دممثّل سره ضروری دې او د ممثِّل يعنی مثال بيانونکی سره ضروری ندې ځکه چه مثال دوضاحت لپاره ذکرکيږی نوپکارده چه دچا لپاره چه مثال وی نو دهغه سره دې مناسب وی، داسې نده چه دبيانونکی سره مناسب وی

(لَا يَسْتَحِي) بعضې مفسرين وائی چه حيا «انقباض النفس عن القبيح مخافة الذم» ته وائی اودا دصفاتُ دمخلوق نه دي نودلته ددغه صفت غايه مراده (چه لايترك) يعنی الله ﷻ نه پريدی، اوبعض وائی چه حياً صفت دالله تعالى دي اثباتاً لکه په صحيح رواياتوکښې راغلی دی، او دلته دا صفت دالله ﷻ صفت سلبيه مقيده دي، نوثبوت دصفت حيا د الله تعالى لپاره مخالف ندې، ددې آيت نه ، نوحياً صفت دالله تعالى دې او جاری دې په ظاهر باندې اودغه مخکښې ذکرشوې تعريف دهغه حياً دې چه صفت دمخلوق دې اوهغه حياً چه صفت دالله ﷻ دې نو دهغې تعريف مذکورنه دې بلکه هغه مجهولة الکنه دې ، او اشتراك په مابين دصفاتو دالله تعالى او دصفاتو دمخلوقاتوکښې صرف اشتراك دلفظ دې حقيقة او ماهيت دهر يوجدا جدادې . نوبناً پدی (لايستحي) په ظاهری معنی پاتې دي ﴿أَن يَضْرِبَ مَثَلًا﴾ داپه محل دجرکښې دې په «من»مقدره سره«ای من ان يضرب»يامنصوب بنزع الخافض دي چی من دې اومراد (يضرب) نه يبين دي او تنوين په «مثلاً» کښې دتنکيرلپاره دي او (ما) يا زائده دي لپاره د زيادة دتنکيرذکرشويدې، يانکره دې صفت دي دَ مثلا لپاره دمزيد ابهام پيداکولوذکرشويدې او «بعوضة» بدل ياعطف بيان دې دمثلاً لپاره او«فوقها»کښې فوقيت يادجسم مراد دې، يا فوقيت په حقارت کښې او ذباب دجسم لحاظ سره هم فوق دې او دحقارت په لحاظ سره هم فوق دې.

**ابن جرير** رحمه الله **اونوروعلماؤويلی دی** چه بعوضه (ماشې) په مثال ددنياکښې پيش کيږی ځکه چه دماشی خاصيت دادې چه دې خالی البطن (وږی) وی نو ژوندی وې اوهرکله چه ئی خيته دچا دوينې ځکلوسره ډکه شی نومړ شی، نو دارنګه انسان دي عموماً کله چه باطن ئی دمحبت دمال نه خالی وی اومال ورسره کم وی نو دده په زړه کښې حيات روحانی وی اوکله چه د دنياپه مال سره موړشی نوزړه ئی مړشی اوغافل شی .

﴿فَأَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾ پديکښې بيان دحکمت دمثال دي، چه د مثال دوه حکمتونه دی

اول داچه په مثال سره تمیز دخلقو معلومیږی «فیعلمون انه الحق» . دویم حکمت ترتب د آثارو مختلفو دې چه هدایت دې اوضلالت دې .

وقال الشیخ رحمه الله فی ضرب الامثال بالمحقرات ابتلاً للمؤمنین والکفار — او یُضل کښې نسبت داضلال الله جل جلاله ته خلقاً دې، اوحقیقةً دې خلافاً للمعتزلة.

﴿ يُضِلُّ بِهِۦ كَثِيرًا ﴾ نه مراد ضدیان اومعاندین دی . ﴿ وَيَهْدِي بِهِۦ كَثِيرًا ﴾ نه مراد انابت والا دی اومراد د «کثیراً» نه کثرة فی نفسه دې چه معنی دصیغې دمبالغې ده، نه کثرت اضافی چه هغه معنی دصیغی داسم تفضیل ده ځکه دهغې مقابله کښې کثرت نه راځی بلکه قلت راځی نو بیا داسې ویل پکاروو «یهدی قلیلاً» .

﴿وَمَا يُضِلُّ بِهِۦٓ إِلَّا ٱلْفَـٰسِقِينَ﴾ یعنې الله جل جلاله انابت والا نه ګمراه کوی بلکه فاسقین ګمراه کوی . **اوسبب دګمراهی ددوی دا صفات دی** :

(۱) ﴿ ٱلَّذِينَ يَنقُضُونَ عَهْدَ ٱللَّهِ﴾ عهد ازلی دایمان او دتوحید مراد دې، یاعهدی فطری چه «کل مولو دیو لدعلی الفطرة» ، یاعهد دبیعت ایمان بالمشافه یا بالغیب مراددې .

(۲) ﴿وَيَقْطَعُونَ مَآ أَمَرَ ٱللَّهُ﴾ یعنی پریدی هغه چه الله جل جلاله پرې امر دکولو کړې وی په ﴿بِهِۦٓ﴾ کښې(ه) مبدل منه ﴿أَن يُوصَلَ﴾ په تاویل دمفردسره بدل اشتمال دې، نومعنی دا شوه چه «ما امرالله بوصله ای بفعله» او دا عام دې شامل دې هرهغه قطع اوترک لره چه الله جل جلاله په هغې ناراض کیږی خواه که ترک دصله رحمی وی اوکه ترک دایمان او دتوحید وی یا دنورو فرائضو وی، اګرکه مشهوره داده چه مراد ترک دصله رحمی دې خوتحقیق دادې چه چه داعام دې.

(۳) ﴿وَيُفْسِدُونَ فِى ٱلْأَرْضِ﴾ فسادکول په شرک سره او دارنګه په نورو معاصیو سره.

| كَيْفَ تَكْفُرُونَ بِٱللَّهِ وَكُنتُمْ أَمْوَٰتًا فَأَحْيَـٰكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ |
|---|
| څرنګه تاسو کفرکوئ (۱) په الله باندې، اوحال دادې چې تاسو بې جانَ وئ نو الله ژوندي کړئ، بیابهٔ مړهٔ کړي تاسو |
| ثُمَّ يُحْيِيكُمْ ثُمَّ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ۝ هُوَ ٱلَّذِى خَلَقَ |
| او بیابهٔ ژوندي کوي تاسو، بیا بهٔ خاص هغه تهٔ واپس بوتلې شئ الله هغه ذات دې چې پیدا کړي ئې دي |

۱ - متعلق بدلیل عقلي.

| |
|---|
| لَكُمْ مَّا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا ثُمَّ اسْتَوَىٰ إِلَى السَّمَاءِ فَسَوَّاهُنَّ |
| ستاسو دفائدې دپاره ټول هرهغه څيزونه چې په زمکه کښې دي، اوبيائې اراده اوکړه آسمان ته نوبرابرئې جوړکړل |
| سَبْعَ سَمَاوَاتٍ ۚ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿٢٩﴾ |
| دا اووۀ آسمانونۀ ، او هغه په هرڅۀ باندې عالم دې |

﴿كَيْفَ تَكْفُرُونَ بِاللَّهِ وَكُنتُمْ أَمْوَاتًا فَأَحْيَاكُمْ﴾ مخکې اثبات دتوحيدؤشوپه دلائلِ عقليوسره اوبيا ددوه شبهو چه واردې وې په توحيد باندې جواب ؤشو. نواوس بيا عود دې اصل مسئله توحيدته. لفظ د(کيف) داستبعاد لپاره دې، يعنې دا کفرستاسو بعد د دلائلو دتوحيد او بعد دجواب د شبهونه مستبعد دې عقلاً و(کنتم امواتاً) بی جانه بی روحه. **خلور عالمه** دی. (١) عالم مبادی ، دحياة نه قبل چه انسان په صورت دغذا ،اود دم ،نطفه،علقه، اومضغه کښې ؤو، دلته د امواتاً نه مراد دا عالم دې چه په ديکښې بی جانه دې. (٢) عالم دنيا ، ياعالم حياة يعنی په بدن کښې دروح اچولونه بعد د انتها دحياة دنيوی پورې اود دې ذکرپه (فاحياکم) کښې شويدې، مطلب دادې چه په عالم مبادی کښې ستاسوخالق صرف الله ﷻ دې او بيا چه تاسو دغه مراحل طې کړل يعنې غذا نه دم اود دم نه نطفه اونطفه نه علقه او دعلقه نه مضغه نو بياحياة هم صرف الله ﷻ درکړو . (٣) عالم برزخ پديکښې انفصال او جدائی دروح ده دبدن عنصری نه، او اعاده دروح بدن ته لاعلی سبيل الحلول ده. (وتفصيله فی موضعه) ، **دبعض مفسرينوخيال دې** (کما رواه ابن کثير عن السدی عن ابی صالح).

چه (ثم يحييکم) کښې داحياة مراد دې ليکن دا قول مرجوح دې او راجحه خبره داده چه دلته دحياة برزخی ذکرندې شوې اوقول دسدی عن ابی صالح ته مفسرينو ابعدالاقوال ويلی دی کمافی روح وغيره، اوصحيح قول دابن مسعود رضي الله عنه اوابن عباس رضي الله عنهما دې چه مراد لدينه حياة دعالم عقبی دې چه دغه څلورم (۴) عالم دې يعنی بعث بعدالموت چه هغی ته حياة اخرويه حقيقيه ويلی شی، باقی **دا قول دمعتزلؤ** چه دلته حياة برزخی ذکرنه شو نومعلومه شوه چه حياة برزخيه نشته دې، نو دا باطل قول دې، ځکه دلته زيات نه زيات عدم ذکر دې اوددينه نه لازميږی چه حياة برزخيه نشته دې ځکه دهغې ثبوت په نورونصوصوقرآنيواواحاديث صحيحؤسره شويدې، نوکه دلته ندې ذکرشوې خو په نورونصوصوسره ئی اثبات راغليدې کمابين فی محله. اودلته دنه ذکر کولويوه نکته داده چه دا حياة حقيقيه ندې ځکه حقيقی

حياة هغه دي چه په هغې کښې تعلق دروح دبدن سره په طريقه د ادخال او دحلول سره وی اوپه عالم برزخ کښې اگرکه تعلق دروح دبدن سره شته دې خونه دې په طريقه دحلول سره لکه تصريح کړيده پدې باندې ملاعلی قاری رحمه الله.

﴿ثُمَّ إِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ﴾ يعنی دحشر اوبعث نه بعد ﴿هُوَ الَّذِيْ خَلَقَ لَكُمْ مَّا فِي الْأَرْضِ﴾ دا دليل عقلی دې په توحيد اولام په «لكم» کښې دانتفاع لپاره دې اوپه هرشئ کښې نفع ده دانسان لپاره اگرکه مونږته هغه کله معلومه وی اوکله معلومه نوی

حضرت تهانوی رحمه الله فرمائی که بله نفع مونږته معلومه نوی نو دا نفع هرچاته معلومه ده چه دهرشئ دکتلونه علم صحيح دتوحيد باری تعالی حاصليږی

**قصه** يوواري چين والومشوره وکړه چه ماشې صرف مضر دې اوڅه فائده پکښې نشته نو لهذا دا ختمول پکاردی چنانچه دوئ داسې ادويه استعمال کړل چه په هغی سره ماشی ختم شول. خو يوداسې بيماری شروع شوه چه ډاکټران دهغې دعلاج نه عاجزشو، دتحقيق نه بعد معلومه شوه چه په فضأ کښې داسی جراثيم دی چه دهغې دفاع ماشی کولې شی اوفقط، نو بيائی دبل ملك نه ماشی راوړل اودهغې تربيت ئی شروع کړو.

**فائده** - ۱ په متصوفوکښې فرقه اباحيه وائی چه د دنيائول څيزونه حلال اومباح دی او اشتراکيه وائی چه هرڅه مشترك دی حتی چه زر، زن، زمين، هم مشترك دی او دا آيت په دليل کښې پيش کوی، **جواب** دادې چه دآيت نه انتفاع معلوميږی او دانتفاع سره حل او اباحت ندې لازم لکه په زهرياتُ کښې نفع شته خو استعمال ئی مضردې دغه شان محرّمات شرعيه دی چه استعمال ئی حرام دې خونفع پکښې شته دې، بله دا چه پدې کښې مقابله دجمع دجمع سره شويده اوقاعده داده چه مقابله دجمع دجمع سره فائده کوی تقسيم د احادو په احادو باندې اوتخصيص ديومنفعت په يوشخص پورې ددليل شرعی نه معلوميږی داسې نه ده چه دهرشی نه انتفاع هرچاته جائزه ده.

**فائده** - ۲ دعلماؤ اختلاف دې چه اصل په اشياؤکښې «يعنی په هغه اشياؤکښې چه په هغوئ کښې حکم شرعی امر، نهی، حل، حرمت، نوی ښکاره» حل او اباحت دې يا اصل حرمت دې.ياتوقف دې. پوره تفصيل په مسلم الثبوت اوتلويح وغيره کتابونوکښې دې خوپدی آيت سره استدلال شويدې دقول اول لپاره مخالفين ترينه جوابونه کوی «والتفصيل في موضعه»

﴿ثُمَّ اسْتَوٰى إِلَى السَّمَآءِ فَسَوّٰىهُنَّ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ﴾ د استوا لپاره **معانی کثيره دی** «۱»کله په

معنى د ارتفاع، علو(اوچتوالى) سره رازى (٢)كله په معنى دقصد او توجه كول يوشى ته (٣) اوكله په معنى دځوانى دانسان راځى لكه ((ولمابلغ اشدّه واستوى)) (۴) كله په معنى دغلبه كولوسره راځى (۵) كله په معنى داستقامت (برابروالى) سره. دلته يا اوله معنى مراد ده ليكن په غير دتشبيه اوتمثيل نه ((اى علا اليها وارتفع من غيرتكييفٍ ولا تمثيل ولاتحديد قاله الربيع)) (روح). يادويمه معنى مراد ده. **سوال** راځى چه آسمان خوموجودنه وُ نوهغه ته ئى څنګه استواء ؤکړه؟ جواب دادې چه يا دلته دسمأ نه معنى لغوى مراد ده يعنى اوچت طرف. اوددې وجه نه ئى مفرد ذكركړو. يامراد دلته ماده دسمأ ده او هغه موجوده وه مخكښې لكه په سورة حم السجدة كښې دى ﴿ثم استوى الى السمأ وهى دخان﴾ او ضميرپه ((فسوّٰهن)) كښې يا ضمير مبهم دې او﴿سبع سموات﴾ ئى تفسيردې يا دا ضميرراجع دې سمأ ته. او سمْأ جمع ده او مفرد ورله سماوة دې واو په همزه سره بدل شو نوسمأ ة شو. او﴿سبع سموات﴾ منصوب دې بنا بر بدلية دضميرنه.

**فائده** - ١ د زمكې آسمان پيدايش ذكرپه قرآن پاك كښې په ډيروځايونو كښې راغليدې . مګر دترتيب بيان چه پديكښې كوم يواول دې اوكوم يو بعد دې دا بظاهرمختلف معلوميږى. دبعض آياتونه تقديم دخلق دزمكې معلوميږى، لكه دا د ډيرو اهل علمٌ رايه هم ده چه اول زمكه پيداشويده او بيا آسمان اومقتضى دعقل هم دغه ده ځكه چه اول فرش وى او بيا چت وى، **سوال** دسورة بقرې ددې آيت او دسورة حٰم سجده دآيت نه معلوميږى تقديم دخلق دزمكې، او دسورة نازعات دآيت نه معلوميږى تقديم دخلق دآسمان اوتاخيردزمكې- كماقال الله تعالى ﴿أ أنتم اشدخلقاً ام السمأ بناها رفع سمكها فسوّاها واغطش ليلها واخرج ضحٰها والارض بعدذالك دحها اخرج منهامأها ومرعاها ـــ الآيه﴾

ددې سوال بى تكلفهجواب (١) يو دادې چه خلق دزمكې مقدم دې لكه معلوميږى ددې آيت د بقرې نه او(( بعد)) په دې آيت دنازعات كښې په معنى دمع سره دې اوندې لپاره دترتيب لكه په ﴿عتل بعدذالك﴾ كښې ((اى مع ذالك)) (٢) بعدَ د تراخى زمانى او ترتيب زمانى لپاره ندې بلكه دتراخى ذكرى لپاره دې، معنى داده چه بيا دا هم واوره چه زمكه الله ﷻ غوړولې ده. او ترتيب اوتاريخ پيدايش ذكركول دآيت مقصد ندې بلكه دا خو دبندګانو عادت دې چه عمارت جوړكړى نوتاريخ ئى وليكى اوالله ﷻ په قرآن كښې تاريخ پيدايش نه

لیکی بلکه یا دخپل نعمتونوتذکره کوی داثبات دتوحید لپاره یادخپلو قدرتونوتذکره کوی د اثبات قیامت لپاره عقلاً. نوکله چه الله تعالی دنعمتونوتذکره کوی نوهلته دزمکې ذکر مقدم کوی ځکه انسانانو ته نعمتونه د زمکې نه ملاویږی اوکله چه دقدرتونو تذکره مقصودوی نوهلته داسمانونو ذکر مقدم کیږی ځکه هغه عظیم مظاهر دقدرت الهی دی.

(۳) دبخاری شریف په کتاب التفسیر کښې دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه ددې سوال جواب داسې منقول دې چه الله ﷻ پیداکړیده زمکه (یعنی نفس زمکه) په دوه ورځوکښې اوبیائې پیداکړیدې آسمان. اوبیائې قصد وکړوآسمان ته نو برابرئې کړل دا اُوه آسمانونه په نورو دوه ورځوکښې اوبیا یې زمکه غوړولې ده ، اوغوړول ئې دادی چه اوبه ئې ددینه راویستلی او مرعیٰ اوپیدائې کړل په دې باندې غرونه او اوښان (یعنی مخلوق) اوغونډئ اوهغه څیزونه چه په مابین ددوئ کښې دی. په نورو دوه ورځوکښې ـ الخ.

حاصل داچه کل شپږ ورځې وې اوترتیب ئې دادې چه اول زمکه پیدا شوه بیا آسمان اوبیا دَحْوالارض وُشویعنی پدې کښې اشجار،جبال ،غونډئ اونورمخلوق ، نوخلقت دنفس زمکې مقدم دې دخلقت د آسمان نه او دا په سورة حم سجده کښې ذکرد ی او دَحْوالارض دتخلیق دآسمان نه بعد دې چه دهغې ذکرپه سورت نازعات کښې دې حضرت تهانوی رحمه الله فرمائی چه په آیاتونو او روایاتوکښې غورسوچ کولونه داسې معلومیږی چه اول (۱) ماده دزمکې پیداشوه او تراوسه پورې ئې دا موجوده هیئت نه ووجوړشوې چه بیا(۲) ماده داسمان جوړه شوه چه هغه ماده دُخانیه سیّاله ده، لدینه بعد بیا(۳) زمکه په موجو ده هیئت باندې وغوړولې شوه (۴) بیاپرې غرونه وغیره پیداکړې شو. (۵) او بیا اووه ۷ آسمانونه جوړشو امید دې چه ټول آیاتونه پدې تقریرمنطبق شی (انتهی) ولکن لی قلبی من هذاالتحقیق خدشة لقصورفهمی والله اعلم

﴿وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾ دا په منزله دنتیجه دماقبل دې یعنی پیدا کول د آسمانونو ،زمکې په عجیب نمط سره دلیل دې پدې خبره چه ((وهوبکل شئ علیم))بکل شئ جارمجرورمتعلق دې دعلیم سره او مراد د (شی) نه دلته عام دې واجب لوجود اوممکناتو، معدوماتو، موجوداتو ټولو ته شامل دې او په ((علیمٌ)) کښې مبالغه ده په نسبت سره ((عالمٌ)) ته، او **مبالغه په صفاتو دباری تعالی** کښې نده راجعه نفس صفاتوته، ځکه نفس صفات دباری تعالی نه قبلوی زیادت اوکم والې، او مبالغه په هغه شئ کښې رازی چه زیادت او نقصان قبلوی، بلکه مبالغه

دلنه راجع ده متعلق دصفت ته چه علم دي خکه علم چونکه متعلق دې په کلی ،جزئی ،موجود ،معدوم، متناهی غیرمتناهی، تولو پورې، نو ددې وجه نه مبالغه ذکرشوه په علم کښې

وَاِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلٰٓئِكَةِ اِنِّيْ جَاعِلٌ فِي الْاَرْضِ خَلِيْفَةً ؕ قَالُوْٓا

او کله چې اووئيل رب ستاملائکوته چې بيشکه څۀ پيدا کونکې يم په زمکه کښې خليفه، نو اووئيل ملائکو

اَتَجْعَلُ فِيْهَا مَنْ يُّفْسِدُ فِيْهَا وَيَسْفِكُ الدِّمَآءَ ۚ وَنَحْنُ

آياته پيدا کوې پدې زمکه کښې هغه خوک چې وراني به کوی پدېکښې اوتويوي به وينې په ناحقه سره ، او مونږ

نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ ؕ قَالَ اِنِّيْٓ اَعْلَمُ مَا

خوپاکی وايو سره دستاينې ستانه او پاکې اولوئ بيانوؤتالره، نو اووئيل الله چه څه پوهيږم په هغه اسرارونو

لَا تَعْلَمُوْنَ ۝ وَعَلَّمَ اٰدَمَ الْاَسْمَآءَ كُلَّهَا ثُمَّ عَرَضَهُمْ عَلَى الْمَلٰٓئِكَةِ ۙ

چې تاسو به هغې نه پوهيږئ او اوخودل ئې آدم ته نومونه دټولو څيزونو اوبيائې پيش کړل دغه څيزونه په ملائکو

فَقَالَ اَنْۢبِـُٔوْنِيْ بِاَسْمَآءِ هٰٓؤُلَآءِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝ قَالُوْا سُبْحٰنَكَ

نو اووئيل الله خبر راکړئ مانه د نومونو ددې څيزونو که يئ تاسو رينښتوني نو اووئيل ملائکو پاکي ده تالره دشريک دعلم نه

لَا عِلْمَ لَنَآ اِلَّا مَا عَلَّمْتَنَا ؕ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَلِيْمُ

نشته [2] هيڅ علم مونږلره مگرهغه مقداردعلم چې تامونږته راکړيدې . بيشکه صرف ته يۀ هرڅه عالم

الْحَكِيْمُ ۝ قَالَ يٰٓاٰدَمُ اَنْۢبِئْهُمْ بِاَسْمَآئِهِمْ ۚ فَلَمَّآ

اوحکمت والا يې اووئيل الله اې آدم [1] خبرورکړه دوئ ته په نومونو اوفائدودې څيزونو . پس هرکله چې

اَنْۢبَاَهُمْ بِاَسْمَآئِهِمْ ۙ قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّكُمْ اِنِّيْٓ اَعْلَمُ

خبرئې ورکړو هغوئ ته په نومونو اوفائدو ددغه څيزونو نو اووئيل الله آيا نه وونيلی ماتاسوته چې بيشکه څۀ عالم يم

غَيْبَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَاَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ وَمَا كُنْتُمْ تَكْتُمُوْنَ ۝

په غيب دآسمانونو اودزمکو اوڅه عالم يم په هغه څۀ چې تاسوئې ښکاره کوئ او په هغه څۀ چې تاسوئې پټوئ

---

1 - متعلق بدعوي توحيد

2 - نودمخلوق معبودنشی کيدې خکه چې دوئ علم الغيب نه دي

﴿وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ إِنِّى جَاعِلٌ فِى ٱلْأَرْضِ خَلِيفَةً﴾ په دې آیاتونو کښې قصه د آدم ﷺ او د ملائکو او د ابلیس ذکر کیږي او دا متعلق دې دعوی توحید سره یعنی معبود صرف الله ﷻ دې. مخلوق معبود نشی کیدې ځکه مخلوق درې قسمه دی : ۱- خاکی ۲- نوری ۳- ناری

نو خاکی مخلوق په دهوکه کښې واقع شو او ځوك چه دهوکه کیدشی نو هغه معبود نوی. او نوری مخلوق د خپل لاعلمئ اقرار وکړونو هغه معبود نشی کیدې، او ناری مخلوق خو ستاسو آبائی دشمن او ملعونٌ دې. نو هغه هم معبود نشی کیدی، نو ثابت شو «یاایهاالناس اعبدوا ربکم». کلمه د «إذ» ظرف دې د ماضی لپاره راځی لکه چه «اذا» د مستقبل لپاره راځی. نو دې یو مضاف الیه غواړی. بل عامل غواړی. نو مضاف الیه ورله جمله ده نو ځکه دې مبنی دې او عامل دده په نزد د بعضو باندې «اذکر» مقدر دې «ای اذکر القصة» او مراد په «اُذکر» سره غور او سوچ او تدبر دې په قصه کښې، لکه پدې باندې تصریح کړیده شیخ رضی په بحث د ظروفو کښې او دارنګه نورو مفسرینو هم تصریح کړیده او دا مطلب ندې چه نبی کریم ﷺ ته دا قصه د مخکښې نه معلومه وه او اوس ورته وائی چه ته ئی رایاده کړه، حتی چې پیغمبر ﷺ ته علم غیب ثابت شی پدې سره لکه دا رائی داهل بدعٔ ده، بعض وائی چه «اذ» زائد دې او بعض وائی په معنی د «قد» سره دې او کشاف او نورو مفسرینو تصریح کړیده چه عامل ئی مؤخر «قالوا» دې ځکه چه په ظروفو کښې توسع ده نو تقدیم ئی په عامل راتلې شی نو تقدیر دارنګه شو «قالوا وقت قول ربك للملائكة» انورشاه صاحب ﷫ فرمائی چه «اذ» د قبیلې د تعداد د مواضعو هائلونه دې نو تحقیق دادې چه تفتیش د عامل ته ئی ضرورت نشته دې.

«ملائك» د الله ﷻ نوری مخلوق دې. دا لفظ په اصل کښې (۱) بعضې وائی چه مالكٌ په وزن د مفعلٌ دې او مشتق دې د «اُلوكة» نه په معنی د رسالت سره بیا همزه مؤخر شوه د لام نه نو «مَلْاء كٌ» شو نو حرکت د همزه لام ته ورکړې شو او همزه حذف شوه نو ملك شو. نو بیا چه ترینه جمع جوړه شوه نو همزه بیا واپس شوه . «ملائكةٌ» شو.

(۲) او بعضې ویلی دی چه دا په اصل کښې «مَلأكٌ» وو یعنی قلب په کښې ندې شوې همزه حذف شوه نو ملك شو او جمع ئی ملائكة ده. (۳) او بعضې وائی چه دا مشتق دې د «مَلِكَ» نه په معنی د قوة سره لفظ د «دآدم» د ډیرو اهل علم په نزد عربی دې او غیر منصرف دې له وجه د وزن فعل او علمیت نه، ځکه دا په اصل کښی «ءَأْ دَمُ» دی په وزن د افعل مشتق دې د «اُدمة» نه

په معنی د سمرة (گندم گون) یا بیاض سره یامشتق دی د ((اَدَمَةٌ)) نه په معنی د اُسوة. قدوة (مقتد، پیشوا) سره. یامشتق دې د ادیم الارض نه. روی الترمذی وغیره ((اِنَّ اللهَ تَعَالٰی خَلَقَ آدم قبضةٍ قبضها مِنْ جَمِیعِ الاَرْضِ)) ــ الحدیث.

یا د ((ادم ، اَدَمة)) نه مشتق دې په معنی دموافقت سره اوبعضې اهل علمُ ویلی دی چه دا لفظ عجمی عبرانی دې ((ادمه)) په عبرانی کښې خاورې ته ویلې شی نوغیرمنصرف شو لوجه دعجمه اوعلمیت نه. نو آدم پشان د آزر(( شالح)) دې. اولفظ د (ابلیس) د ابلاس نه ماخوذ دې معنی ئی ده ډیرمایوس درحمت نه اولفظ د (شیطان) یا دشطن نه ماخوذ دې په معنی دسرکش سره او یا د شیط نه ماخوذ دې په معنی د باطل اوهلاك سره

((**خلیفه**)) (۱) ددې مصدر خَلَفاً وخلافة راځی په معنی د ورستوالی سره خوخَلَفاً په فتح دلام سره صحیح نائب ته ویلی شی اوخلفاً په سکون دلام سره نا اهل نائب ته ویلې شی.

اوخلیفةٌ د فعیلةٌ په وزن دې اوتاً ۱ دمبالغی لپاره ده، یا۲- دنقل لپاره ده دوصفیت نه اسمیة ته. یا۳- د تانیث لپاره ده کچرې موصوف ورله سلسلةٌ شی، دخلیف اوخلیفة یوه معنی ده خو دخلیف جمع خلفاً راځی او دخلیفه جمع خلائف راځی. او دا وزن دفعیلة بمعنی الفاعل اکثرراځی، خلیفه بمعنی الفاعل. معنی ده دبل چانه وروستو راتلونکې اوکله بمعنی المفعول راځی. نوخلیفه په معنی دمخلَفٌ (وروستو راوستلې شوې).

(۲) **مراد دخلیفه نه دلته** ۱- یا آدم ﷺ دې لکه دا قول د ابن عباس رضی الله عنه اوابن مسعود رضی الله عنه دې او توصیف ئی په (من یفسدفیها) سره اوپه (ویسفك الدمأ) سره په اعتبار د تسبب سره دې، یا مراد ترینه (مَن فیه قوة الفسادوسفك الدمأ) دې. ۲- یامراد دخلیفه نه آدم ﷺ او دده اولاد دې په قرینه دمابعدسره چه (من یفسدفیها ــ الآیه) دې. او آدم ﷺ ته چه خلیفه ویلې شویدې نو ددې معنی ۱- یا داده چه دې خلیفه دالله تعالی دې په اجرأ او تنفیذ د احکام شرعیه ؤ کښې او دغه شان هرنبی خلیفة الله دې په زمکه کښې لیکن دا استخلاف پدې وجه ندې چه الله تعالی محتاج دې (العیاذبالله)، بلکه دا د قصور د مستخلف علیهم د وجه نه دې کما صرح به المفسرون، او دا استخلاف په اجرأ د احکام تشریعیوکښې دې نه دتکوینی کښې. او۲- یائی معنی داده چه دې خلیفه د من قبلهم دې یعنی ورستو راغلې دې دملائکو اوجناتو نه او اولاد د آدم ﷺ ته خلیفه پدې وجه ویلې شویدی چه دوئ خلیفه دمن قبلهم دي

يا دوئ د يوبل خليفه دى، اى سلسلةً يخلف بعضهم بعضاً .

**وجه دخليفه جوړيدلو** دآدم ﷺ او د اولاد دده داده چه اول په زمکه باندې دجناتو تصرف ؤ نو دوئ ډير فساد او قتل اوغارت شروع كړو، نوالله تعالى پدوئ پسى فرشتې راؤليږلې نوبعضې شريران ئى ترينه قتل كړل او باقى ئى وشړل غرونو، بيابانونو، اوجزيروته او ابليس پدوئ كښې وړوكې بچې راهب مكارؤ دملائكو په سفارش سره آسمان ته وختلو. او ډير زيات عبادت ئى كولو لپاره ددې چه خلافت راته ميلاؤشى اوكله چه خلافت آدم ﷺ ته ملاؤ شو نو ده حسدشروع كړو او ملعون شو، دلته دملائكو نه مراد بنا په قول راجح باندې ټول ملائك دى، اوبعض وائى چه هغه ملائك مراد دى چه راليږلى شوې وې د (محاربة الجن) يعنى دجناتو دقتل اودشړلو لپاره .

**اوقول دالله ﷻ فرشتوته اوتپوس** دهغوئ نه مشتمل دې په ډيروحكمتونوچه په هغې كښې يوحكمت انسانانو ته تعليم وركول دمشورې دى، (قاله البيضاوى وغيره) ځكه الله ﷻ باوجود ددينه چه محتاج ندې مشورې ته اوبيائى هم مشوره طلب كړه نومعلومه شوه چه مشوره اهم شئ دې، ((قال رسول الله ﷺ ماخاب من استخار وماندم من استشار))، اوكماقال عليه الصلاة والسلام، اوبل حكمت اظهار دعظمت اوشرافت دنوع انسانى دې چه ددوئ دپيدايش نه قبل، الله ﷻ اخبار وركوى ددوئ دپيدا كولو سُكّان القدس ملائكوته، او دخليفه لقب ئى ورته قبل دپيدايش نه وركړو، او بل حكمت پديكښې دادې چه پديكښې اشاره ده ديته چه دخيركثير لپاره شر قليل اختياركول مقتضىٰ دحكمت ده.

﴿قَالُوٓا۟ أَتَجۡعَلُ فِيهَا مَن يُفۡسِدُ فِيهَا وَيَسۡفِكُ ٱلدِّمَآءَ﴾ دا قول دملائكو بطور استفسار دې دحكمت نه لكه يومتعلم چه دخپل معلم نه دترجيح ديوقول د اقوالو لپاره استفساركوى او ندې دا قول اعتراض په الله تعالى باندې او دارنگه ندې دا قول لپاره دغيبت كولو دبنى آدم ياحسد ددوئ سره، ځكه فرشتې معصوم دى دګناه نه او اعتراض په الله ﷻ ياغيبت اوحسد كول ګناه ده. **باقى داخبره چه دوئ ته څرنګه معلومه شوه** چه بنى آدم به فسادكوى اوخون ريزى به كوى نو ددوئ لپاره ډيرصورتونه كيدى شى.

۱. ياالله ﷻ ورته اخبار ددې وركړې وو. ۲. دلوح محفوظ نه ئى معلوم كړى دى ۳. قياس ئى كړې دې په جناتو . ۴. دلفظ دخليفه نه ئى معلوم كړيدى ځكه خليفه ته ضرورت هله رازى چه فساد اوخون ريزى وى.

﴿وَنَحْنُ نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ﴾ بعضې مفسرين وائی چه دادفع دتوهم ده چه دماقبل نه پيداشو چه د ((اتجعل فيهاـــ الايه)) نه به مقصود اعتراض كول وی په الله ﷻ نوفرشتو وويل چه اعتراض اوعيب لګول په الله ﷻ ندي ((ونحن نسبح ـ الايه)) . اوبعضې مفسرين وائی چه واؤ لپاره دحال دې او پديكښې دخپل اشكال مزيد تقرير دې يعنی په داسی حال كښې چه مونږفساد، خون ريزی نه كوؤ نوهغه مخلوق چه فساد اوخون ريزی كوی په څه وجه خليفه جوړيږی اومقصود استفسار دې د ترجيح ،نه اعتراض اوغيبت كول . او **فرق په مابين دتسبيح او تقديس** كښې دادې چه تسبيح نسبت دپاكی دې الله تعالی ته په اعمالواو اقوالوسره او تقديس نسبت دپاكی په اعتقادسره دې ، اوبل فرق دادې چه تسبيح كښې صفات سلبيه دی يعنی پاكی بيانول دالله ﷻ دهرعيب نه او((بحمدك)) كښې بيان دصفات ثبوتيه دې اوپه ((نقدس)) كښې هم بيان دصفات ثبوتيه دې خوصفات ثبوتيه چونكه دوه قسمه ؤ كماقال الله تعالی ((ذی الجلال والاكرام)) نو ((بحمدك)) كښې صفات اكرام ذكرشواو په ((نقدس)) كښې صفات الجلال ذكرشو. اوحضرت شيخ رحمه الله فرمائی چه دنُسبح نه تسبيح فی الحال مراد ده او د نُقدّسُ نه نسبة دپاكی په استقبال كښې مراددې

﴿قَالَ إِنِّىٓ أَعْلَمُ مَا لَا تَعْلَمُونَ﴾ دا اجمالی جواب دې د استفسار دملائكويعنی بيشكه چه دوئ به فسادونه اوقتلونه كوی خو پدوئ كښې هغه خيردې چه دهغې علم تاسوته نشته ماته دهغې علم دې چه هغه پيداكول د انبياؤ، اولياؤ، صلحاؤ، علماؤ دی، اومقتضی دحكمت داده چه دخير كثيرلپاره دشرقليل برداشت كړې شی، اوپديكښې اشاره شوه ديته چه دالله تعالی په هركار كښې ضرورحكمت وی كه چاته معلوم وی اوكه نه وی معلوم او دحكمتونو معلومول هم ضروری ندی لپاره داعتقاد يا دعمل بلكه اعتقاد دحقوالی به كيديشی اوعمل به كيديشی اګركه علم نوی راغلې په حكمتونوباندې اګرچه علم دحكمتونوخالی نوی دفائدې نه . او((أعْلَمُ)) ياصيغه دفعل مضارع ده لكه دا ظاهره ده، ياصيغه دااسم تفضيل ده خواسم تفضيل په معنی دااسم فاعل سره دې. او دا دليل واضح دې پدې خبره چه **دملائك لپاره علم غيب كلی اوعلم محيط نشته دې** .

﴿وَعَلَّمَ ءَادَمَ ٱلْأَسْمَآءَ كُلَّهَا﴾ پدې آيت كښې بيان دهغه سببِ فضيلت دې چه هغه سبب دې لپاره دخلافت. مشهور قول دادې چه **مناط دخلافت** علم دې چه دهغی بيان شويدی په دی آيت

کښې اوحضرت شاه انورشاه صاحب رحمه الله فرمائی چه مناط خلافت ځماپه نزدیك عُبودية دې. نه علم ځکه چه مخلوق هرکله منقسم شو درې قسموته نو ابلیس خو مناظره وکړه درب سره او اعتراض ئی وکړو نوملعون شو، اوفرشتو اګرچه اعتراض ونکړو خو استفسار ئی وکړو او دا هم دشان عبودیة سره ډیرمناسبت نه لری .

اوهرچه آدم علیه السلام دې نوهرکله چه الله جل جلاله ده ته عتاب ورکړو نوده خپل رب ته هیڅ جواب ورنکړو بلکه ژړا اوطلب مغفرت ئی شروع کړو، نو دا کمال عبودیة شو، لیکن دا خو امرخفی ؤ حجت علی الخصم نه جوړیده اوعلم اظهرالاشیأ ؤ د اثبات دفضیلت لپاره نو الله تعالی ورته فضیلة العلم هم ورکړو چه دده مرتبه ښکاره شی نو اصلی مناط دخلافت لپاره عبودیة شو او علم داظهار دمرتبی لپاره دې نه دې اصل مدارخلافت . والله اعلم.

**او دا علم چه الله جل جلاله ادم علیه السلام ته ورکړې دې** نو دا یا په طریقه دوحی یا الهام سره دې یا په طریقه دپیدا کولودعلم ضروری سره دې په نفس دآدم علیه السلام کښې، اوندې په طریقه معتاده سره په مابین دعبادوکښې. نو ددې وجه نه دا تقاضانه کوی دعلم په لغت مشترك باندې په مابین دمعلم اومتعلم کښې حتی چه ددې علم نه مخکښې بل علم وی په لغت مشترك کښې او دغه شان دهغې نه مخکښې بل علم وی اوتسلسل لازم شی. او مراد د اسماؤ نه یا مسمیات دی ځکه چه اطلاق داسم په مسمی باندې هم کیږی یا اسمأ المسمیات دې، اومراد اسماؤنه دلته اسمأ دجزئیاتو ندی مراد. بلکه اسمأ داجناسو او انواعو مراد دی لکه انسان ،خر،اوښ ،آس. غر. دریاب اوملائك او دارنګه ټول لغات او آلات لکه کاسه ،سمسئ،وغیره او دهر یو منافع او فائدې اوطریقه د استعمال ئی هم ورته اوښودله . اوصرف نومونه یادول په مختلفولغاتوسره مراد ندی ځکه دا څه کمال ندې او د«کلها» نه استغراق عرفی مراد دې لکه دا په قرآن کښې په ډیرکثرت سره راځی .

﴿ثُمَّ عَرَضَهُمْ﴾ داضمیرمسمیاتو ته راجع دې په طریقه داستخدام سره ځکه ماقبل په اسم ظاهر سره داسماؤنه مرادخوداسمأ دی اوپه ضمیرسره ترینه مرادمسمیات دی، اوکه په ماقبل کښې د اسماؤنه مراد مسمیات شی نوبیا استخدام ته ضرورت نشته دې، یامسمیات د «الاسمأ»نه التزاماً معلوم شویدی،او**طریقه دعرض** داوه چه یوځیزبه ئی ورته پیش کړواو ورته به ئی وفرمایل چه ددې شی څه نوم دې؟ا وڅه ئی فائدې دی؟، اوصرف نومونه نه دی مراد.

﴿أَنْبِئُونِي﴾ دا امر د تعجیز لپاره دې یعنی مقصود ترینه اظهار دعجز د ملائکو دې او د

ایجاب لپاره ندې چه تکلیف بما لایطاق جائزشی نو استدلال دبعضُ په دی آیت سره لپاره د جواز دتکلیف بما لایطاق باطل دې .

﴿إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ﴾ په قرآن کښې په کثرت سره راځی چه شرط ذکروی اوجزائی په مابعد کښې نوی ذکر، نوبعضې اهل علم لکه سیبویه اوجمهور بصرین وائی چه جزأ محذوفه ده او ماقبل دشرط دال دې په جزأ محذوفه باندې ځکه تقدیم دجزأ په شرط باندې خلاف دې د فصاحت نه، نودلته تقدیر دعبارة دارنګه دې ((ان کنتم صاقین فانبئونی)) اونوراهل علم لکه مبرد اوکوفیان وغیره دوئ وائی چه دا ماقبل ورته جزأ ده اوتقدیم دجزأ په شرط باندې ددوئ په نیزخلاف دفصاحت نه، نه دې، نو پدې مذهب تقدیرته حاجت نشته .

**سوال** راځی چه صدق اوکذب په کلام خبری کښې راتلې شی او ماقبل کلام کښې یواستخبار دې یعنی ((اتجعل فیها من یفسدفیها)) او دا محتمل دصدق اوکذب نه دې اوبل دا کلام دې چه ((ونحن نسبح بحمدك ــــ الایه)) او دا صادق کلام دې او د ((ان کنتم صادقین)) نه خو معلومیږی عدم صدق .

**جواب** دادې چه صدق راجع دې کلام غیرمنطوق ته لکه روایت دې دابن عباس ﷺ نه چه ملائکوویلی ؤ ((لن یخلق الله تعالی خلقا اکرم علیه مناولا اعلم)) یعنی که تاسو صادق ئی پدې قول کښې نوماته خبر راکړئ د اسماؤ ددې اشیاؤ او د منافعو ددوئ .

**سوال** راځی چه انتفأ دجزأ دلیل وی په انتفأ دشرط نوهرکله چه دوئ ((انبأ )) ورنکړه نومعلومه شوه چه دوئ صادقین ندی اوچه صادقین نه شی نو کاذبین به وی اوکذب خوګناه دې اوملائك معصوم دی دګناه نه. جواب دادې چه صدق لکه څرنګه چه مقابل دکذب راځی نوغه شان کله په معنی د اصابت الی الحق (حق ته رسیدل) سره هم راځی نومعنی دصاقین داده ((ان کنتم مصیبین الی الحق فی زعمکم)) اوقرطبی اونورو مفسرینو لیکلی دی چه معنی د ((ان کنتم صاقین)) داده چه ((ان کنتم عالمین)).

﴿قَالُوا سُبْحَٰنَكَ﴾ پدیکښې اشاره ده چه مقصود زمونږ اعتراض ندې په الله تعالی باندې اونه د آدم غیبت اوتوهین مقصود دې اودا کلمه استعمالیږی لپاره داعتراف په قصور باندې

﴿إِنَّكَ أَنتَ ٱلْعَلِيمُ﴾ پدیکښې حصرد علم غیب دې په الله ﷻ پورې او ددې تعلق د ((لا

علم لنا)) سره دي .

﴿ٱلۡحَكِيمُ﴾ ددې تعلق د ((الا ما علمتنا)) سره دی ((غیب السموات)) په معنی د ((ماغاب في السموات)) سره دې اومراد ددینه ماغاب عن الخلق دې ځکه دالله تعالی نه هیڅ پټ نشته .

﴿وَأَعۡلَمُ مَا تُبۡدُونَ﴾ ددینه مراد دا کلام دې چه ((اتجعل فیهامن یفسدفیها — الایه)).

﴿وَمَا كُنتُمۡ تَكۡتُمُونَ﴾ ددینه مراد هغه کلام د ملائکو دې چه ویلی ؤ ((لن یخلق الله تعالی خلقا اکرم علیه منا ولا اعلم)) .

| |
|---|
| وَ اِذۡ قُلۡنَا لِلۡمَلٰٓئِكَةِ اسۡجُدُوۡا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوۡٓا اِلَّآ اِبۡلِيۡسَ ؕ اَبٰى |
| اوکله چې اووئیل مونږ ملائکوته سجده اوکړئ آدم ته نو سجده اوکړه ټولو مگر ابلیس[1] اونکړه، انکار ئې اوکړ |
| وَاسۡتَكۡبَرَ ۖ وَكَانَ مِنَ الۡكٰفِرِيۡنَ ۞ وَقُلۡنَا يٰٓاٰدَمُ اسۡكُنۡ اَنۡتَ وَزَوۡجُكَ الۡجَنَّةَ |
| اوتکبرئې اوکړو، اوشو دکافرانونه .اواووئیل مونږ اې آدم ! اوسیږه ته او بي بي ستا په جنت کښې |
| وَكُلَا مِنۡهَا رَغَدًا حَيۡثُ شِئۡتُمَا ۖ وَلَا تَقۡرَبَا هٰذِهِ الشَّجَرَةَ |
| اوخوراک کوئ دواړه ددینه خوراک فراخه هرځائې چې خوښ شي ستاسو .اومه نزدې کیږئ دې ونې ته |
| فَتَكُوۡنَا مِنَ الظّٰلِمِيۡنَ ۞ فَاَزَلَّهُمَا الشَّيۡطٰنُ عَنۡهَا فَاَخۡرَجَهُمَا |
| گنې شئ به دواړه تاسو خپل نقصان کونکي. نواوخویول[2] دواړه شیطان دهغه ونې په وجه اوواویستل ئې دواړه |
| مِمَّا كَانَا فِيۡهِ ۖ وَقُلۡنَا اهۡبِطُوۡا بَعۡضُكُمۡ لِبَعۡضٍ عَدُوٌّ ۚ |
| دهغه ځائې نه چې وودواړه په هغې کښې، اواووئیل مونږ کوزشئ بعضې به ستاسو دبعضو دپاره دښمنان وي |
| وَلَكُمۡ فِي الۡاَرۡضِ مُسۡتَقَرٌّ وَّمَتَاعٌ اِلٰى حِيۡنٍ ۞ |
| او ستاسو دپاره په زمکه کښې ځائې د اوسیدودې اونفع ده تریووخت پورې |

﴿وَإِذۡ قُلۡنَا لِلۡمَلَٰٓئِكَةِ ٱسۡجُدُواْ﴾ ملائکوته دسجدې حکم، لپاره د اظهار دعجز د دوئ او د آدم ﷺ دبرترۍ اوعظمت داظهار لپاره دې، سجده په **لغت** کښې په معنی دخضوع او انقیاد سره اواطاعت سره او انحنا وغیره سره رازی اوپه **عرف** کښې په معنی د ((وضع الجبهة علی

---

۱- ناری مخلوق معبود ندې بلکه دوې ستاسو دښمنان دي او معلون دي.

۲- خاکي مخلوق معبود ندې ځکه چې دوې غیب دان نه لري او دوې دهوکه شو .

الارض)) ته وائی یعنی تندئ په زمکه ایخودل ، خواه که تعظیماً وی اوکه په طور دتحیه اوسلام سره وی اوکه په طور دعبادت سره وی او **په شرع** کښې ((وضع الجبهة على الارض بقصدالعبادة ته)) وائی **دلته دسجدې نه په نزد دبعضومفسرينو، معنى لغوى** انحنأ مراد ده (مدارك عن ابن عباس ﷺ)، یاتذلل او انقیاد مراددي (روح - قرطبی)، اوپه نزد دبعضو مفسرینو سجده عرفی مراد ده خو دا په طور دتحیه دسلام سره ده نه په طور دعبادت سره او دا قسم سجده غیرالله ته په مخکنيوشريعتونوکښې جائزوه اوزمونږپه شريعت كښې حرامه اومنسوخه ده لکه نکاح دخور سره د آدم ﷺ دصلبی اولاد لپاره جائز وه، لیکن زمونږ په شريعت كښې منسوخ دی قطعاً، او دليل دنسخ لپاره هغه حديث د ابوهريرة ﷺ دي چه روایت کړې دې ترمذی وغیرہ ((عن النبی ﷺ لوکُنتُ آمراً احداً ان يسجد لاحدٍ لامرتُ المرءة ان تسجد لزوجها)) اومنتهى د اسانيدو ددې حديث شل ۲۰ صحابه ﷺ دی، اوحديث چه مروی شی دلسو ۱۰ صحابؤنه ﷺ نوهغه متواتروی بناپه قول مختار(تدريب الراوی)، نوچه شلو ۲۰ صحابؤ نه روايت وی نوهغه په طريق اولی سره متواتروی اوکه بالفرض دا حديث متواترنشی نومشهور ضرور دې، او مشهورهم کافی وی لپاره دنسخ ، بل دا چه پدې اجماع دسلفُ ده چه سجده غیرالله ته جائزنه ده، نوحاصل دادې چه قول دهغه چا باطل محض دې چه وائی سجده ادباً غیرالله ته جائزده .

او دبعضې مفسرينُ رأی داده چه لام په ((لِآدَمَ)) کښې په معنى د الى دې نو آدم قبله ده اومسجود اليه اوسجده دالله لپاره ده ((ای الی آدم فکان آدم قبلةً والسجودلله تعالی (معالم) ای اسجدوالیٰ مستقبلين وجه آدم)) (**قرطبی**).

**فائده** : چاته انحنأ کول په وخت دتحیه اوسلام کښې مکروه دی او سجده کول د ادب او احترام لپاره حرام دی اوسجده کول دعبادت په طورشرك اوكفردې.

﴿ إِلَّآ إِبْلِيسَ﴾ د االستثنأ متصل ده يامنقطع ده ځکه په باره د ابليس کښې د علماؤ اختلاف دې بعضُ ويلی دی چه دې دجنس د ملائکونه دې اوبعض ويلی دی چه دجنس ده ملائکونه، نه دې ((والتفصيل فی القرطبی)) بنأ په اول استثنأ متصل ده اوبنأ په ثانی استثنأ منقطع ده .

**سوال** راځی چه کله ابليس دملائکونه، نه ؤ نو امر خوملائکوته شوې ؤ نو دې ځرنګه

ملعون شو په مخالفت دامرسره . **جواب** دادې چه ده ته هم امرشوې ؤ لکه په سورة اعراف کښې ذکردی ((اذامرتك كان واحد جنيا مغموراً بين الصف الملائكة فطوى ذكره)) كذافى بعض التفاسير –

﴿ أَبَىٰ ﴾ ابأ دينه وائى چه په يوكاركولوقدرت لرى خومنع ترينه ؤكړى لدې وجه نه چه دغه كار كولو كښې ده ته عارمحسوسيږى.

﴿وَٱسْتَكْبَرَ﴾ استفعال په معنى د تفعل سره دې((اى تكبر)) كبر او تكبر دينه وائى چه څوك خپل ځان لوئ وګڼړى دبل چانه نو دهغه حكم نه منى په طريقه داحتقار او تسفيه (نسبت دبې وقوفئ) سره نوپه ترك دسجدې كښې آدمﷺ ته نسبت دسفاهة دې امردالله تعالى ته او اعتراض دې په الله تعالى باندې او دامعنى دتكبربيان شويده په حديث دمسلم وغيره كښې چه نبى كريم ﷺفرمايلى دى «لايدخل الجنة من كان فى قلبه مثقال حبة من خردل من كبر، فقال رجل:ان الرجل يحب ان يكون ثوبه حسناونعله حسنة،قال: ان الله جميل يحب الجمال ،الكبربطرالحق وغمط الناس،وفى رواية غمص الناس» د ((بطرالحق)) معنى ده ابطال اوتسفيه دحق او د ((غمط الناس يا غمض الناس)) معنى ده احتقار،سپكوالې.اوشيطان لعين پدې معنى تصريح وكړه كله چه ده وويل ((اناخيرمنه خلقتنى من ناروخلقته من طين))، ((أأسجدلمن خلقت طينا)) امام مالك رحمه الله ويلى دى چه اول معصيت ،حسد،اوتكبر دې چه ابليس كړيدې، او قتادة ويلى دى حسدوكړو ابليس د آدم ﷺ سره په دې باندې چه الله تعالى آدم ﷺ ته عزت اوكرامت وركړو، او ابتدأ دګناهونو تكبرؤ او بياحرص وؤ حتى چه آدم ﷺ دشجره ممنوعه نه خوړل وكړه ، بياحسدؤ. چه دآدم ﷺ خوى دخپل رورسره حسدوكړو

«ابىٰ» جمله مستأنفه ده علت دې دماقبل اودفع دتوهم ده ، توهم كيدې شو چه ابليس به پدغه وقت كښې سجده خوترك كړى وى، خو بيا به ئى په بل وقت كښې كړى وى، جواب وشوو چه اباء ئى كړيده

«واستكبر» جمله عطف دعلت په معلول دې يعنى «واستكبر» علت دې د «ابىٰ» لپاره او پدى كښې هم دفع دوهم ده، توهم كيدې شوچه دا انكاربه ئى د اجتهادى غلطى دوجه نه كړې وى يابه دده اعتقاد دا وى چه سجده كول غيرالله ته جائزنده، نو جواب ؤشو چه انكار ئى دتكبردوجه نه كړې دې

﴿وَكَانَ مِنَ ٱلْكَٰفِرِينَ﴾ دلته دوه قوله دي: يو دا چه "كان" په معنى د "صار" سره دې، بل قول دادې چه كان پخپله معنى سره دې يعنى ((كان فى علمه تعالى الازلى من الكافرين – قرطبى وائى اى كان فى علم الله تعالى انه سيكفر- لان الكافرحقيقة والمؤمن حقيقة هوالذى قدعلم الله منه الموافات)) موافات ديته وائى چه آخره خاتمه دچاپه كفرياپه ايمان شى نودغه حقيقةً كافريامؤمن دې، په كفر او ايمان كښې اعتبارخاتمې لره دې.

﴿وَقُلْنَا يَٰٓـَٔادَمُ ٱسْكُنْ أَنتَ وَزَوْجُكَ ٱلْجَنَّةَ﴾ الله ﷻ حضرت آدم ﷺ د زمكې دخلافت لپاره پيدا كړې وو خواول ئى جنت ته داخل كړو پديكښې **بيشماره حكمتونه** كيدې شى منجمله (1) دهغې نه اعزاز او اكرام دآدم ﷺ دې، ځكه چه دې خليفه دې (2) بله وجه اشاره ده دېته چه جنت د بنى آدمو آبائى وطن دې نود شيطان په اتباع سره ددينه محروم كيدل انتهائى بې غيرتى ده، (3) بل داچه په اطاعت سره جلب دنعمتونو راځى اومعصيت اگركه بلا اراده وى اودخليفه نه صادرشى خود اسالب دنعمتونودې، (۴) دجنت خصوصيت دادې چه پديكښې نعمتونه انسان ته خود په خود راځى خوچه معصيت صادرشو نونعمتونه حتى چه دبدن جامې هم دبدن نه لرې شوې نوپديې كښې انسانانوته دا سبق وخودلې شو چه خيراونعمتونه نازلويدل صرف په اطاعت سره كيږى اوپه معصيت سره دخيراونعمتونونه محروم والې راځى.

((اسكن)) دسكنى نه مشتق دې او دسكون نه ندې مشتق، ((انت)) تاكيد دې دضمير مستتر په اسكن كښې او تاكيدځكه وشوو چه صحيح شى عطف دزوجك په ضمير ځكه عطف په ضمير مرفوع متصل هله صحيح كيږى چه تاكيدئى اولاً په منفصل سره وشى

**سوال** راځى چه عطف دزوجك په ضميرمستترد ((اسكن)) د معنى په لحاظ سره صحيح نه دې ځكه ضميرمستتر فاعل د اسكن لپاره دې نوچه زوجك په هغه عطف شى نوپكارده چه دا هم فاعل شى د اسكن لپاره حالانكه دهغه فاعل ضمير دمخاطب وى نه اسم ظاهر. جواب دادې چه پديكښې اشاره ده اتحادته يعنى اشاره ده دې خبرې ته چه سكونت دزوجې بعينه سكونت دزوج دې. يا دلته تغليب دې د مخاطب په غائب. اودارنگه پديكښې اشاره ده تبعية ته يعنى زوجه تابع دزوج ده په مسكن وغيره كښې، دلته د ((زوجك)) نه مراد حضرت ((حواء)) ده او دا د آدم ﷺ د چپى پښتى نه په جنت كښې پيدا شوې ده.

روايت دې دابن عباس رضي الله عنهما اوابن مسعود رضي الله عنه نه هركله چه آدم ﷺ ته دجنت سكونت

ورکړې شو نودې یوازې متوحش ((حیران)) ؤ هم جنس ملګرې ئی نه ؤ ((ذوقی جنان ندارد بی دوست زندگانی)).

نوچه اوده شو نودچپې پښتی نه ئی حوا پیداشوه، اوده ته څه درد محسوس نشو اوبوه هم نشو، کله چه راویښ شونوحوا ئی ولیده ورته ئی وویل ((من انتِ؟)) نو حوا وویل ((امرأة خلقتُ من ضلعك لتسکن الیٰ)) (قرطبی وغیره).

دعلماؤ اختلاف دې پدیکښې چه دا جنت چه آدم ﷺ ورته داخل کړې شوې ؤ او بیا ترینه خارج کړې شو آیا دا هغه جنت دې چه دارالثواب دې اومؤمنان ورته داخلیږی اوکه باغ ؤ په زمکه کښې، راجح قول اول دې اومزید تفصیل سره ددلائل دفریقینْ نه علامه ابن قیم جوزیه په کتاب ((حادی الارواح الی بلادالافراح)) په درې فصلونوکښې کړیدې من شأ فلیراجعه . البته ددې مقام نه دا معلومه شوه چه جنت پدغه وقت کښې دارالجزأ اودارالخلد نه وو بلکه پدغه وقت کښې پکښې تکالیف شرعیه احکامات اوامر، نواهی ؤنوبنأ پدې باندې دغه خائ کښې شیطانی وساوس رسیدل یا دچا ددغه ځائ نه وتل پدیکښې څه اشکال نشته دې .

﴿وَكُلَا مِنۡهَا رَغَدًا﴾ ((کُلا)) تثنیه دکُلْ ده چه امر دې او((منها)) په معنی د فیها سره دې او ((رغداً)) مفعول مطلق د ((کُلا)) دې په اعتبار دموصوف مقدر سره ((ای کُلاکلاًرغداً)) ، او ((رغداً)) معنی داده چه ډیر او وافر او مزیدار په غیردمانع نه.

﴿حَيۡثُ شِئۡتُمَا﴾ حیث یا د مکان لپاره دې نو پدیکښې اشاره ده وسعت دمکان او انواعو د خوراك ته، یا په معنی دکیف سره دې یا په معنی دمتی سره دې نو پدیکښې وسعت دطریقی او دزمان ته اشاره شوه، یعنی په هرمکان کښې د هرې نوع نه په هره طریقه اوپه هره زمانه کښې چه تاسوخورئ نواجازت دې لیکن ﴿وَلَا تَقۡرَبَا هَٰذِهِ ٱلشَّجَرَةَ﴾ مقصود منع ده، داکل د شجره نه، خو نفی دقرب لپاره د مبالغی ده ځکه قریب کیدل سبب دې د اکل لپاره اوپه منع سره دسبب نه مبالغه وی، او **په تعین دشجره** کښې متعدد اقوال دی غنم،انګور،انجیر،ترنج، نخله، شجرالکافور،حنظل وغیره، محققین وائی چه نشته هیڅ فائده په تعین ددې شجره کښې ځکه تعین ددې ندې ذکر شوې په قرآن کښې نه په حدیث صحیحه مرفوعه کښې .

﴿فَتَكُونَا مِنَ ٱلظَّٰلِمِينَ﴾ ((فتکونا)) منصوب دې ځکه دا جواب دنهی دې ځکه تقدیر ئی

دارنگه دي ((ان تقرباتكونا)) اوحذف دنون علامه دنصب ده يا دا مجزوم دي او دا معطوف دي په (تقربا) باندي اوحذف دنون علامه دجزم ده ((الظالمين)) دظلم نه مأخوذ دي او**ظلم په اصل لغت** كښې نقصان ته ويلې شي لكه پدې قول دالله تعالى كښې .((كلتاالجنتين اتت اُكلهاولم تظلم منه شيأ)) اى لم تنقص، وكمافى قوله تعالى ((وماظلمونا)) اوپه اصطلاح دشرع كښې مخالف دامر دالله ﷻ ته ويلې كيږى خواه كه سهواً وى ياقصداً وى اويا خطأً وى او ياعمداً وى نو بنا پدې باندې دظلم اطلاق په خطا اجتهادى هم كيږى اوپه خلاف اولى هم كيږى اوپه گناه صغيره اوپه گناه كبيره اوپه كفراو شرك باندې هم كيږى نوگويا مفهوم دظلم يوكلى مشكك دې اوپه هرمقام كښې به دهغه مقام مناسب معنى اراده كوليشى ، دلته كښې د ((فتكونامن الظالمين)) مطلب دادې كچرى تاسو عمداً اوقصداً ددې ونې خوراك وكړو نوگنهگاربه شئ ليكن آدم عليه الصلاة والسلام اوحوأ نسياناً خوراك كړيدې بدليل قوله تعالى ((فنسى ولم نجدله عزما)) يا دا خوراك اجتهادى غلطى وه، نومعلومه شوه چه دوئ ظالمان په معنى دگنهگار سره ندى گرزيدلى . نو ددې آيت نه په عصمت د انبياؤ اعتراض نشى كيدې اوعصمت د انبياؤ اجماعى عقيده د امت ده ((وتفصيله فى الشفأ للقاضى عياض وكذافى التفسيرالكبير ونبراس شرح الشرح العقائدوغيرها)).

﴿فَأَزَلَّهُمَا ٱلشَّيْطَٰنُ﴾ ضمير راجع دې جنت ياشجر ته ((عنها)) ((عن)) سببيه دې ((اى بسبب اكلها)) او ((ازلّ)) د زَلّت نه مشتق دې او زلة په اصل كښې ښوئيدلوته وائى لكه يوسړې په لارې روان وى اوپه ختوكښې بې اختياره ؤخوئيږى، اوپه اصطلاح دشرع كښې ((زَلة)) نوم دهغه عمل دې چه وشى په خلاف دحكم، ليكن بغير د ارادې اوبغير دقصدكولودخلاف نه. اومعصيت ويلې كيږى خلاف كولوته قصداً وارادةً نوپه فعل د انبياؤ باندې د ((زلة)) اطلاق كيږى او دا **معصيت** ندې، دلته پدې آيت كښې ددې خبرې وضاحت كيږى چه آدم ﷺ خلاف دحكم نه قصداً ندې كړې بلكه نسياناً يې كړيدې يا دا اجتهادى غلطى وه لكه په سورة طه كښې دى ((فنسى ولم نجدله عزما)) اوعلماؤ ليكلى دى چه هركله شيطان په ډير تاكيد سره قسم وكړو نو آدم ﷺ گمان وكړو چه داسې خوځوك نشى كيدې چه په الله تعالى باندې په دروغه قسم كوى او دروغ ددينه مخكښې موجودهم نه ؤ.

او دالله ﷻ په نوم قسم په دروغه دآدم ﷺ په عقل كښې نه راتلو او دمؤمن شان داوى

چه په چا بدگمانی نه کوی او دا د آدم ﷺ نهایت زیات پاکوالې دې چه په چاگمان ددروغ نه کوی نوچه څوك تصور دمعصیت نکوی نو اراده دمعصیت خو ترینه ډیره مستبعده ده بلکه حضرت آدم ﷺ دشجرې نه خوراك په هیره سره کړیدې اوقصدنی کړې وېدی سره دحصول دخیر اوزیات تقرب چه هغه ملکیت اوخلود دې، کماقال الله تعالی ((الاان تکوناملکین اوتکونامن الخالدین)) بعضې علماً وائی چه خوراك دشجرې نه د آدم علیه السلام اجتهادی غلطی وه او اجتهادی غلطی هم معصیت نوی . او اجتهادی غلطی داسې وه چه آدم ﷺ قصد وکړو په خوراك دشجرې سره دخیر اوزیات تقرب الی الله اوتاویل ئی وکړو دنهی چه دا نهی لپاره دتنزیه ده ، یامنهی عنه مخصوص اومعینه شجره ده. اوخوراك ئی وکړو دبلې شجرې نه حالانکه هغه هم ددغه نوعې نه وه، یاورته ابلیس داسې تاویل وکړوچه نهی دخوراك دشجرة الخلد نه په وقت دابتدائی دخول کښې وه ځکه ستا معده ضعیفه وه اوته کمزورې وې نوقوی خوراك ستالپاره مُضرؤ. او اوس چه ستامعده قوی شوه نوشجرة الخلد وخوره چه خلود درته حاصل شی په جنت کښې. او ماچه شجرة الخلدونه خوړله نوځکه ترینه خاج شوم وغیره

کماقال الله تعالی ((وعصی آدم ربه)) یعنی د امرالهی نه ظاهراً مخالفت وکړو آدم ﷺ ((فغوی)) نو نامراد شو. یعنی کوم مقصد لپاره ئی چه خوراك دشجرې وکړو نوهغه مراد حاصل نشو. **سوال** وارد یږی چه ابلیس خو دجنت نه راویستلې شوې وو اوآدم ﷺ خوپه جنت کښې وو نو بیاځرنګه ئی وسوسه واچوله . **جواب** په ډیروو وجوهوسره کیدې شی (1)وسوسه خو یو معنوی قوت دې چه الله ﷻ ابلیس او دهغه زریت ته ورکړې دې نو دا د بعید او لرې ځائ نه هم کیدشی، نوګویاکښې په داسې طرز او طریقې سره یې ورسره رابطه وکړه لکه چه نن صبا په فون او موبایل باندې له یوبل سره رابطه کولې شی. (2) آدم ﷺ ئی دجنت دروازې ته رابللې دې اومکالمه ئی ورسره کړیده، (3) زمونږ شیخ غلام الله خان ﷫ به فرمایل چه دقرآن دترتیب نه داسې معلومیږی چه الله تعالی ﷻ ابلیس ته امر دخروج او آدم ﷺ ته امر دسکنی په جنت کښې وکړونو ابلیس په وقت دخارج کیدلوکښې (چه کله بستره ګول کړه) آدم ﷺ ته یې وسوسه وکړه.

﴿وَقُلْنَا اهْبِطُوا﴾ دا خطاب آدم ﷺ اوحواً ﷺ ته دې او دجمع نه مراد تثنیه ده لکه په بل آیت کښې ((قال اهبطا)) ذکر دې یا دا جمع د ذریت په اعتبارسره ده، ځکه چه اولاد ددوئ حکماً موجودۆ په ضمن ددوئ کښې. اوددې وجه نه په هغه حدیث کښې چه په هغې کښې

ذکر د محاجت مناظره د آدم ؈ اوموسی ؈ دې داسې الفاظ دی چه موسی ؈ وفرمایل «انت الذی اشقیت الناس واخرجتهم من الجنة» . بخاری ۲۹۲

﴿بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ﴾ یعنې ابلیس او ذریت دهغه ستاسو لپاره اوستاسو د اولاد لپاره دښمنان دی اوبه دې قدر تکلیف رسولو سره دده عداوت ، اوحسد نه دې ختم شوې. یا دا مراد دې چه ستاسو به اولاد کښې به دیوبل لپاره دشمنان وی. اخراج دجنت نه زمکې ته جسمانی تکلیف ورکول وو او دا روحانی تکلیف ورکول دی، ځکه د اولاد اختلاف اوعداوت به خپل مابین کښې سبب دخفګان او دغه د والدینو وی نوهرکله چه آدم ؈ اوحوا ؈ ته دوه قسمه تکلیف ملاؤشو نو بیاورته الله تعالی تسلی ورکړه اوونې فرمایل

﴿وَلَكُمْ فِي الْأَرْضِ مُسْتَقَرٌّ﴾ دا مصدر میمی دې په معنی د استقرار سره اوپه تقدیم د «لکم» کښې به مستقر باندې اشاره ده چه خلافت ارضی خاص دې انسانانو لره، یاظرف دې یعنی مکان داستقرار ﴿وَمَتَاعٌ﴾ ددینه مراد هر هغه شې دې چه دهغې نه انسان په خپله زندګی کښې فائده حاصلوی لکه اکل، شرب ،مکان، لباس وغیره

﴿إِلَىٰ حِينٍ﴾ یعنی دنیاته تاسو دلږ وقت لپاره لیږم او بیابه جنت ته راځئ خو د جنت دحصول لپاره اتباع دهدایت ضروری ده چه دهغې ذکرپه وروستنی آیت کښې شویدې «فمن تبع هدای»

| |
|---|
| فَتَلَقَّىٰ آدَمُ مِن رَّبِّهِ كَلِمَاتٍ فَتَابَ عَلَيْهِ ۚ إِنَّهُ هُوَ التَّوَّابُ |
| پس زده کړې آدم ؈ دخپل رب نه څو کلمې نورجوع ئې اوکړه په هغه باندې. بیشکه الله دېرتوبه قبلونکې دې |
| الرَّحِيمُ ۝ قُلْنَا اهْبِطُوا مِنْهَا جَمِيعًا ۖ فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُم مِّنِّي هُدًى |
| دېررحم کوونکې دې موږاووئیل چې کوزشئ ددې ځائې نه ټول. پس که کچرې راشي تاسوته خما دطرفه هدایت |
| فَمَن تَبِعَ هُدَايَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ۝ وَالَّذِينَ |
| نوچاچې تابعداري اوکړه [1] دهدایت خما نونه به وي ویره په دوئ باندې اونه به دوئ غمژن کیږي اوهغه [2] خلق چې |

۱ بشارت

۲-تخویف

| كَفَرُوْا | وَكَذَّبُوْا | بِاٰيٰتِنَآ | اُولٰٓئِكَ | اَصْحٰبُ | النَّارِ ۚ | هُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| كفر ئې كړېدې په زړهٔ سره او نسبت دردوغونې كړېدې زمونږ آيتونو ته دغه خلق دوزخ والا دي، او دوئ به | | | | | | |

| فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ۝ |
|---|
| په دې كښې همېشه وي |

﴿فَتَلَقّٰٓى اٰدَمُ﴾ تلقى په اصل كښې مخامخ كيدل لپاره دملاقات ته وائى. دلته ترينه مراد حاصلول او زده كول مراددى ﴿كَلِمٰتٍ﴾ دامفعول دتلقى دې، د كلماتُ په تعين كښې ډير اقوال دى (۱) ابن عباس‎ؓ اود ډيرو سلفونه مروى ده چه هغه كلمات دادى چه ((ربنا ظلمنا انفسنا ـ الآيه)) لكه په سورة اعراف كښې ذكردى (۲) اوابن مسعود‎ؓ نه مروى ده چه هغه كلمات دادى ((سبحانك اللهم وبحمدك وتبارك اسمك وتعالى جدك لا اله الاانت ظلمت نفسى فاغفرلى فانه لايغفرالذنوب الاانت)). اوقرطبى اوصاحب دروح المعانى وغيرهما ليكلى دى ((وقالت طائفة رأى مكتوباعلى ساق العرش ـ محمدرسول الله ـ فتشفع بذالك فهى الكلمات))..يعني دَ كلماتُ نه مراد محمد رسول الله دي - صاحب دروح المعانى وائى هركله چه اطلاق دكلمه په عيسى ؑ كيږى، نو په روح اعظم ، حبيب اكرم ﷺ باندې په طريق اولى سره كيديشى.

﴿فَتَابَ عَلَيْهِ﴾ يعنى الله ﷻ دده توبه قبوله كړه، ((تاب)) په معنى درجع سره دې نو تائب رجوع كوى دګناه نه اوالله ﷻ رجوع په رحمت سره كوى په بنده باندې، اوتوبه او دارنګه مغفرت يومفهوم كلى مشكك دې نومصاديق ئى ديوبل نه مبائن دى نوچه نسبت ئى انبياؤته وشى نو توبه دخواصو ترينه مراد وى اوتوبه دخواصو د رفع د درجاتولپاره وى نودلته ئى مطلب داشو چه د آدم ؑ درجات نوربلُندشو.

﴿قُلْنَا اهْبِطُوْا مِنْهَا جَمِيْعًا﴾ دا حكم مكررشو- (۱) يا دتاكيدلپاره. (۲) يا د دفع دتوهم لپاره توهم داسې كيدې شو چه هركله ددوئ توبه قبوله شوه نوحكم د اهباط به منسوخ وى او دوئ به بياپه جنت كښې سكونت كوى نو ((اهبطوا)) سره دغه توهم دفع شو او ددينه معلومه شوه چه اهباط د آدم ؑ په طور د سزا اوعقوبت سره نهٔ ځكه بعد د قبول دتوبې نه عقوبت اوسزا هم ختمه شى. بلكه دا حكم د اهباط دهغه وعدې دپوره كولو لپاره دې چه په ((انى جاعل فى الارض

خليفةً)) کښې شوې وه (3) حضرت الاستاذ فرمايل چه ديته مونږ اعادهٔ بُعد عهد لبيان الزيادة وايو. نو دا درحقيقت تکرار ندې بلکه د اهباط سره دوه حکمونه متعلق دی ۱- يو حکم تکوينی دې چه دهغې ذکرپه ماقبل کښې ؤشو يعنی عداوت دشيطن. نفع اخستل دزمکې دځيزونونه، ۲- اوبل حکم تشريعی دې چه هغه اتباع دهدايت ده. نو ددې ذکر دلته کيږی ﴿مِنِّیْ هُدًی﴾ کتاب اورسول ترينه مراد دی.

﴿فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ﴾ حضرتِ شيخ الهند رحمه الله فرمائی چه **فرق په مابين دخوف اوحزن** کښې دادې چه خوف هغه صدمه اوپريشانی ده چه دمصيبت واقع کيدونه قبل وی اوحزن هغه دې چه بعدوی مثلاً دمړکيدلو دخيال په وجه کومه انديښنه وی هغه خوف دې او دمريض دوفات کيدلونه بعدچه کومه صدمه وی هغه حزن دې، دلته چه دکوم خوف اوحزن نفی کړې شوې ده نوکه ددينه دنيوی خوف اوحزن مراد شی نو دا مطلب ندې چه په دنيا کښې به په نيکانوغمونه اومصيبتونه ،نه راځی بلکه مطلب ئی دادې چه څوك د هدايت مطابق چليږی نوهغوئ ته به دا انديښنه نوی چه شايد دا هدايت به حق نه وی، دشيطان دطرفه دهوکه مغالطه به وی اونه به دآدم عليه السلام حوأ دجنت په وتلوغمژن وی ځکه هدايت والؤته عنقريب جنت ملاويدونکی دې. اوکه مراد نفی دخوف اوحزن اخروی شی، نونفی دحزن خوظاهره ده، البته نفی دخوف کښې اشکال دې ځکه چه دقيامت خوف به اهل هدايت والوته هم وی نوجواب دادې چه خوف دوه قسمه دې يوهغه دې چه دخوف سبب په خائف کښې موجودوی لکه دمجرم چه د بادشاه نه خوف کيږی اوبل قسم هغه دې چه سبب دخوف لپاره رعب اوجلال دتخوّف منه وی لکه غيرمجرم چه دبادشاه نه خوف کيږی، دلته مراد نفی دقسم اول ده . نه دثانی اود دې وجه نه ئی ((لاخوف عليهم)) ويلی دی او لاخوف فيهم يا لايخافون ئی ندی ويلی

| يٰبَنِیْٓ اِسْرَآءِيْلَ اذْكُرُوْا نِعْمَتِیَ الَّتِیْٓ اَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ وَاَوْفُوْا بِعَهْدِیْٓ |
| --- |
| اې اولاد د يعقوب عليه السلام ياد کړئ (۱) ځما هغه نعمت چې ما کړېدې په تاسو باندې اوپوره کړئ وعده ځپله ځما سره |

1- دعمومي دعوت نهٔ بعد خصوصي دعوت د توحيد . بنی اسرائيلو ته پهٔ دې کښې اتهٔ اوامر او څلور نواهی دي.-

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَوْفِ | بِعَهْدِكُمْ | وَإِيَّايَ | فَارْهَبُونِ ۝ | وَآمِنُوا | بِمَا | أَنْزَلْتُ |

نو څه به پوره کړم وعده خپله د تاسو سره، او خاص خمانه ویریږئ. او ایمان راوړئ په هغه کتاب چې نازل کړېدې ما

مُصَدِّقًا لِمَا مَعَكُمْ وَلَا تَكُونُوا أَوَّلَ كَافِرٍ بِهِ وَلَا تَشْتَرُوا بِآيَاتِي

تصدیق کونکې دې د هغه کتابونوچې ستاسوسره دي اومه کیږئ اول انکارکونکي ددې نه، اومه اخلئ په آیتونو خما

ثَمَنًا قَلِيلًا وَإِيَّايَ فَاتَّقُونِ ۝ وَلَا تَلْبِسُوا الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ وَتَكْتُمُوا الْحَقَّ وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ ۝

قیمت لږ. اوخاص خمانه ویریږئ. اومه خلط کوئ حق دباطل سره اومه پټوئ حق اوحال دادې چې تاسو پوهیږئ

﴿يَابَنِي إِسْرَائِيلَ﴾ دعمومي دعوت دتوحید نه بعد دا خصوصی دعوت دې بنی اسرائیل ته څکه ((یاایهاالناس اعبدوا)) عمومي دعوت ؤ او دا خاص بنی اسرائیل ته دعوت دې او پدیکښې اته ۸ اوامر او څلور ۴ نواهي دی.

دهجرت نه بعدپه مدینه منوره کښې اول سورت بقره نازل شویدې اونبی کریم ﷺ چه مدینې ته هجرت وکړو نوپه مدینه کښې او دمدینې په ګردونواح کښې ډیر یهود آبادؤو، او پدوئ کښې علماً، پیران، سرداران، موجودؤ، نو دعامو عربو دا تأثرؤ چه بنی اسرائیل اهل کتاب اوعلماً اوپیران دی نوکه دوئ دنبی کریم ﷺ دعوت تسلیم کړو نومونږبه ئی هم تسلیم کړو، اوکه دوئ تسلیم نه کړو نو مونږبه ئی نه تسلیمؤ، نوالله ﷻ رُخ دکلام بنی اسرائیلوته وګرزاوؤ اودوئ ته ئی د ایمان دعوت ورکړو اوددې بیان درې رُخه دی: ۱- بیان نعم. چه داحسان عوض احسان وی ما تاسو سره احسانات کړیدې نوتاسو دهغی په عوض کښې دنبی کریم ﷺ دعوت تسلیم کړئ. ۲- بیان دنقم او دعذابونو چه د انکارپه وجه راغلی ؤ او راځی. ۳- بیان دخباثتونو دیهودو او پدیکښې تنبیه ده عربوته چه دا یهود، نصاری او ددې آبا او اجداد قابل دتقلیدندې.

((اسرائیل)) اسم لقبی دیعقوب ﷺ دې او ((اسراء)) په معنی دعبد دې ((ایل)) په معنی دالله دې یعنی عبدالله. اوبعضې ئی معنی صفوة الله کریده وغیره نوراقوال په کښې هم شته، او تعبیر په اسم لقبی سره ؤشو نه په اسم محضه سره لپاره دترغیب دمنلو دتوحیدفی العبادة څکه چه معنی ئی داشوه یابنی عبدالله یعنی ستاسو پلاریعقوب ﷺ دالله تعالی عبادت کولو اوپه هغې سره ئی وصیت کړې وو. کماقال الله تعالی ((اذقال لبنیه ماتعبدون من بعدی ــــ الآیه)). یعنی توحید فی العبادة ستاسو دپلار زوړ دین دې نوتاسو خو ئی ضرورتسلیم کړئ.

﴿اذْكُرُوا نِعْمَتِيَ﴾ دا اول امر دې يادولونه مراد په زړه سره يادول دی يعنی استحضار او غفلت نه کول او اداء د شکر، اوشکريه ئې ايمان دې اونعمت اسم جنس دې اوددينه مراد تمام هغه مادی اوروحانی انعامات دی چه الله ﷻ په بنی اسرائيلوباندې کړی ؤ. لکه په سورت مائده «ع ۴» کښې ذکردی ((اذجعل فيكم انبيا وجعلكم ملوكا واتاكم مالم يؤت احدا من العالمين)) و ((أَوْفُوا بِعَهْدِي)) دا دويم امر دې دلته اضافت دعهد دې ياء دمتکلم ته ،اضافت دمصدردې مفعول ته اوفاعل ئی محذوف دې اصل ئی دارنګه ؤ «بعهدكم ایای» يعنې تاسوچه کومه وعده کړې وه زماسره هغه پوره کړئ.

﴿أُوفِ بِعَهْدِكُمْ﴾ دا مجزوم دې ځکه جواب امر دې او دلته هم اضافت دعهد دې «کم» ته اضافت دې مفعول ته اوفاعل ورله مقدردې «ای بعهدی اياکم» يعنی زه به پوره کړم هغه وعده خپله چه ما له تاسوسره کړې وه، نوبنی اسرائيلو دالله ﷻ سره وعده کړې وه چه نبی آخرزمان ﷺ چه کله پيدا شی نوموږبه پرې ايمان راوړو، اوالله ﷻ ددوئ سره دا وعده کړې وه چه زه به ستاسومغفرت کوم اوجنت ته به مو داخلوم لکه په سورة مائده «ع : ۳» کښې ددې ذکردې

﴿ وَلَقَدْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَاقَ بَنِي إِسْرَائِيلَ وَبَعَثْنَا مِنْهُمُ اثْنَيْ عَشَرَ نَقِيبًا ۖ وَقَالَ اللَّهُ إِنِّي مَعَكُمْ ۖ لَئِنْ أَقَمْتُمُ الصَّلَاةَ وَآتَيْتُمُ الزَّكَاةَ وَآمَنْتُمْ بِرُسُلِي وَعَزَّرْتُمُوهُمْ وَأَقْرَضْتُمُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا لَأُكَفِّرَنَّ عَنْكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ وَلَأُدْخِلَنَّكُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ﴾

﴿ وَإِيَّايَ فَارْهَبُونِ ﴾ دا دريم امر دې او پديکښې ډير تاکيداوحصر دې ځکه چه د «ایای» لپاره عامل مقدر دې ځکه ما بعدالفا عمل نشی کولې په ماقبل کښې نود«ایایَ» عامل مقدر دې او «فارهبون» جزأ دشرط مقدرده نو تقدير دارنګه دې ((ايای ارهبوا، وان کنتم متصفين بالرهبة فارهبونی خاصةً)) او «رهبة» خوف مطلقا ته وائی ، ياخوف مع التحرز يعنی ځان ساتل دمنهياتونه او «اتقاء» خوف مع الحزم يعنی سره دهوښيارتيانه. نو واضح شوفرق په مابين د «فارهبون» او «فاتقون» کښې.

﴿ وَآمِنُوا ﴾ داڅلورم امردې. ﴿مُصَدِّقًا ﴾ دتصديق نه مراد تصديق دې په اعتقادياتو کښې لکه توحيد، رسالت، قيامت شو.

﴿وَلَا تَكُونُوٓا أَوَّلَ كَافِرٍۭ بِهِۦ﴾ دا اوله نهی ده ضمیرد جمع په «لاتکونوا» کښې اسم دې «اوّل کافر» ئې خبر دې نو سوال راځی چه مطابقت نشته په مابین د اسم دکان اوخبر دکان کښې ځکه اسم ئې ضمیر د جمع دې او خبرئې مفرددې. جواب دادې چه «اوّل» صفت دموصوف مقدر دې «ای اوّل فریق کافر» او لفظ د فریق لفظاً مفرد دې نوموصوف واقع کیدیشی دمفرد لپاره اومعنیً جمع ده، نومطابقت حاصل شو په مابین د اسم دکان اوخبردکان کښې. بیا **سوال** کیږی چه اول کفر په قرآن باندې خواهل مکه ؤ کړې ؤ نه اهل کتابو، نو دوئ ته ځرنگه «اول کافر» ویلی شوی دی، **جواب** (١) اوّلَ کافر په معنی د اشدّ کافرسره دې (٢) دا خطاب دنبی اسرائیلومشرانو یعنی علماؤ او پیرانوته دې نو ددوئ په کفرکښې اولیت په نسبت سره خپلو اتباعوته دې، یعنی شاگردان، مریدان یعنی که تاسوکفروکړئ نوتاسوبه په کفرکښې اول شئ اوستاسوشاگردان، مریدان به په تاسوپسې شی نوستاسوکفر دوچندجرم دې. (٣) یاکفرپه معنی لغوی سره دې یعنی حق پټول او دحضور ﷺ د اوصافُ او دنبوت ذکر چه په کتب سابقوو کښې ؤو د هغې پټول اول اهل کتابوکړیدې.

﴿وَلَا تَشْتَرُوا۟ بِـَٔايَٰتِى ثَمَنًا قَلِيلًا﴾ دادویمه نهی ده. **سوال** کیږی چه په لفظ داشتراء کښې قانون دادې چه بأ داخلیږی په ثمن باندې نه په مبیعه باندې نودلته داسې ویل پکارؤ «ولاتشتروا أیاتی بثمنٍ قلیل — ای لاتبیعوا». **جواب**. دا مبالغه ده په قبح دعمل ددوئ کښې چه دوئ آیاتونه ثمن اووسیله وگرزوله اوثمن قلیل ددنیائی مقصدوگرزوله، یهودویانو چه اشترأ بالدین کوله نو دا په ډیرو طریقوسره وه، یو دا چه دوئ کفراوانکارکولو د آیاتونونه لپاره دحصول دمال اوجاه . بل دا چې دوئ دنبی کریم ﷺ صفتونه چه په تورات کښې وؤ او دنبی کریم ﷺ متعلق پیشنگوئی چه په تورات کښې موجودې وې دهغې کتمان اوپه هغې کښې یې تغیراوتحریف کولولپاره ددې چه ددوئ أتباع، شاگردان، مریدان اومعتقدین چرته په نبی کریمﷺ باندې ایمان رانه وړی، ځکه چه بیا ددوئ جاه اومرتبه به ختمه شی اوهغه آمدنئ چه دوئ وصول کولې دخپل معتقدینُ نه هغه به بندشی. اودوئ په خپل اتباعُ هرکال ددراهمُ اوفصلونو او دحیواناتواودپیووغیره نه څه حصه مقررکړې وه. نو دهغوئ ایمان راوړل داحبارُ اورُهبانُ دجاه او د آمدنی ختمیدلوذریعه وه، اودهغوئ بقاً په کفرباندې ددوئ دجاه او آمدنی ذریعه وه

«ع» تیری بربادی میں ہے میری آبادی کا راز

اوبل داچه دوی به کله په احکامو دتورات کښې تحریف کولواوپه هغې به ئې رشوت اخستلو. لکه په حکم د رجم کښې يې چه تحریف کړې وو نو بنأ پدې د آیت ترجمه داشوه ((ولاتشتروابایاتی ای بکفرایاتی، بکتمان ایاتی وبتحریف ایاتی ثمناً قلیلاً)) مراد ترینه مطلق عوض دې خواه که جاه اوعزت وی اوکه مال اودولت وی، اوقلیل ئې ورته ځکه وفرمایل چه دنیا اوما فیها ټول په مقابله دآخرت کښې قلیل اوکالعدم ده او دما سبق تفصیل نه معلومه شوه چه اجرت په تعلیم دقرآن باندې دآیت مذکوره ماتحت نه راځی، ځکه پدې کښې اشترأ د ثمن ((بکتمان الآیات)) یا بتحریف الایات نده، البته دا مستقله قابل غورمسئله ده چه **آیا اجرت اخستل په تعلیم د قرآن اود دحدیث** او دارنګه په نورو طاعاتو جائزدی یانه؟ : نو داحنافو اصل مذهب دادې چه دا ندی جائز او دنورو امامانو په نزد جائزدی. لیکن بیا متاخرینو احنافو دجواز فتوی ورکړیده دضرورت دوجه نه نو اجرت اخستل رخصت دې او عزیمت نه اخستل دی. او دارنګه فقهاؤ چه رخصت ورکړیدې نو دضرورت دوجه نه ئې ورکړیدې نو چرته چه ضرورت نوی نو هلته جوازهم نشته ځکه هغه حکم چه ثابت شی دیو(علت) دوجه نه نوکله چه علت وی نوحکم به ثابت وی اوچه علت نه وی نوحکم به هم نوی.

نوفقهاؤچه په تعلیم دقرآن وغیره باندې اجرت اخستل جائز کړیدی نو دهغې علت داسې دینی ضرورت دې چه په هغې کښې خلل راتلو سره دینی نظام کښې خلل راځی، مثلاً یوکس داسې دې چه کچری دې په تعلیم یا امامت قضأ وغیره باندې اجرت نه اخلی نو دخپلو ضروریاتُ زندګی پوره کولولپاره به بل څه ذریعه طلب کوی، نوچه په بل کاروبارکښې مشغول شی نو بیا تعلیم د قرآن، امامت، قضأ وغیره نه نشی فارغ کیدې نو دا به پاتې شی نو دا اهم او ضروری منصوبه به ضائع شی، نو دا یو دینی ضزورت دې چه ددې د وجه نه اجرت اخستل جائز دی او دسلفوپه دورکښې چونکه دا ضرورت دبیت المال نه پوره کیدلو نو د اجرت اخستلوته ضرورت نه ؤ. اوپه دې دور کښې بیت المال نشته دې نوضرورت موجود دې، اود **ایصال ثواب لپاره په قرائت د قرآن اجرت** حرام دې ځکه دلته دغه ضرورت چه تفصیل ئې ذکرشو نشته دې.

اوفقهاؤ تصریح کړیده چه په اُجرت سره قرأت د قرآن هیڅ اجر اوثواب نه لری نو ایصال ثواب هم نشی کیدې. شامی ج ۱ ص ۴۷ وغیره کتابونوکښې ددې مسئلې تفصیل موجود

دي البته د اجرت او د احسان اوتصدق فرق کول ضروری دی، اومحل اوموقع شناسي ضروری ده لپاره ددې چه په حلالوباندې هحرامو حکم ونه کړي شی اوحرام ته حلال ونه ویلي شي او داخبره مبنی په حکمت اوبصیرت باندې ده.

﴿وَإِيَّٰيَ فَٱتَّقُونِ﴾ دا د مخکنی امراعاده ده .

﴿وَلَا تَلْبِسُوا۟ ٱلْحَقَّ بِٱلْبَٰطِلِ﴾ دا دریمه ۳ نهی ده ﴿وَتَكْتُمُوا۟ ٱلْحَقَّ﴾ دا عطف دې په تلبسوا باندی نو د «لا» ماتحت دې ((ای لاتکتموا الحق)) ، او دا څلورمه ۴ نهی ده اوپدې آیت کښې منع کول دیهودو دی د اضلال نه او په ماقبل آیت کښې منع وه دضلال نه. **اوفرق په مابین دتلبیس حق اوکتمان حق** کښې دادې چه تلبیس حق په نسبت سره هغه چاته دې چه هغه ته به دنبی کریم ﷺ دهغه صفاتو چه په تورات کښې بیان شوی وُخه لړشان علم وُ نو یهودیانو به دهغوئ په زړونو کښې شبهات اچول چه هغه صفات اوعلامات چه په تورات کښې ذکردی هغه پدې پیغمبر ﷺ منطبق ندی، اوکتمان حق دادې چه کوم خلق به بالکل بی خبره اوجاهلان وُ نو دهغوئ نه به ئی دنبی کریم ﷺ صفات پټول.

**فائده**: بعضې معاصرینو لیکلی دی چه «با» په بالباطل کښې لپاره دسببیت ده اومعنی داده چه مه ګډوډ کوئ حق په سبب د تاویل باطل سره ، ددې یومثال ئی داپیش کړیدې لکه جهمیه اوبعضې اشاعره وماتریدیه په نزد دصفاتو دالله تعالی نه استوأ ده په عرش باندې، اوید، وجه، ساق، قدم، وغیره دی، دوئ ددې تاویلونه کوی، او دارنګ حدیث د اثبات درفع الیدین په مانځه کښې سیوا دتکبیرتحریمه نه دهغې تاویل کوی په لاس لړې کولو سره دخپل خای نه، انتهی.

مونږ وا یوچه داخبره عظیم جرأت دې په طعن کولو باندې په اهل سنت والجماعت ،ځکه چه اشاعره وماتریدیه داهل سنت والجماعت سواد اعظم دې او داهل اسلام دعقائدو عظیم راهنمایان دی نوکه دوئ په تاویل باطل سره تلبیس حق اوکتمان حق کړي وی نوبل به داسې څوك وی چه اظهارحق به ئی کړی وی.

علامه بنوری رحمه الله په معارف السنن کښې نقل کوی ((قال شیخنا الکوثری فی تکملة الردعلی نونیة ابن القیم ۱۳۱- ۱۳۲ فاحادیث النزول مثلاً ابعادهاعن معان توجب التشبیه والنقلة موضع اتفاق بین اهل الحق سلفاً وخلفاً (ج ۴ ص ۱۳۸)) اوبیالیکی ((وامامن جعل ذلك نقلة

فقدجسّم وخالف البرهان العقلى والدليل الشرعى وضرورة الحسى.)) اوبل ځای بیالیکی ((واذاسمعت فی عبارات بعض السلف انمانؤمن بان له (لله تعالى) وجهالاكالوجوه ويدا لاكالايدى فلاتظن انهم ارادوا ان ذاته العلية منقسمة الى اجزاء وابعاض، فجزء منهايدوجزء منهاوجه غيرانه لايشابه الايدى والوجوه التى للخلق حاشاهم من ذلك وماهذاالاالتشبيه بعينه وانماارادوابذالك ان لفظ الوجه واليدقداستعمل فى معنى من المعانى وصفة من بصفات التى تليق بالذات العلية كالعظمة والقدرة غيرانهم يتورعون عن تعين تلك الصفة تهيباًمن التجهم على ذلك المقام الاقدس وانتهزالجسمة والمشبهة مثل هذه العبارة فغرروابها العوام ، ا ه، اودابن قيم رحمه الله اوابن تيميه رحمه الله)) په باره کښې ليکی ((وكلام ابن القيم فى تاليفه وكلام شيخه ابن تيميه فى عدة كتبه مضطرب جداً فى هذالصددولاريب انهمايكثران من نقول السلف واقوالهم ولكن ثم يصرحان بمايناقض اقوالهم ويحملانهافى غيرمحمل وليس هذاموضع بيانه ....ا ه)).

بیالیکي : ((ان اصل مذهب اهل السنة كلهم التفويض، واماالتاويل فانمايصاراليه عندالحاجة عندالبحث والمناظرة مع فرق الضلال من المشبهة والجسمة ، ثم هم يؤولون بمالايخالف الشرع والعقل واماالمبتدعة فتاويلاتهم تخالف الشرع ... اه)) . حاصل دادې چه تاويل دما تريديؤاو د اشاعرؤ- تاويل باطل هم ندې اوتلبيس حق اوکتمان حق هم ندې او دغه شان په مسائل اجتهاديوکښې که تاويل هرڅوك كوى داهم کتمان حق اوتلبيس حق نه دې.

﴿ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴾ دا قيد دتغليظ لپاره دې يعنې سره دعلم نه ګناه زيات جرم دې په نسبت سره هغه جرم ته چه دجهل سره وی .

| وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ وَآتُوا الزَّكَوٰةَ وَارْكَعُوا مَعَ الرَّاكِعِينَ ۝ أَتَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبِرِّ |
|---|
| اوپابندي کوئ دمانځه اوورکوئ زکوة اوركوع کوئ د رکوع کوؤنکوسره. آیاحکم کوئ تاسونوروخلقوته دنیکئ |
| وَتَنسَوْنَ أَنفُسَكُمْ وَأَنتُمْ تَتْلُونَ الْكِتَابَ ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ۝ وَاسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ |
| اوهيروئ خپل ځانونه حال داچې تاسولولئ کتاب،نوآياعقل نه لرئ تاسو .اومددحاصل کړئ په صبرکولو |
| وَالصَّلَوٰةِ ۚ وَإِنَّهَا لَكَبِيرَةٌ إِلَّا عَلَى الْخَاشِعِينَ ۝ الَّذِينَ يَظُنُّونَ |
| اومونځ کولوسره ، اويقيناًداخودرون اوګران دې مګرندې ګران په عاجزي کونکو هغه کسان چې دوئ داخيال کوی |

| اَنَّهُمۡ | مُّلٰقُوۡا | رَبِّهِمۡ | وَاَنَّهُمۡ | اِلَيۡهِ | رٰجِعُوۡنَ۝ |
|---|---|---|---|---|---|

چې بیشکه دوئ به مخامخ کیږي د رب خپل سره او بیشکه دوئ خاص هغه ته ورگرزېدونکي دي

﴿وَأَقِيمُوا الصَّلَوٰةَ﴾ دا پنځم امردي ﴿وَءَاتُوا الزَّكَوٰةَ﴾ دا شپږم امردي، دیهودُ عالمانو ته دا خبره قطعاً معلومه وه چه حضورﷺ برحق نبی دي او اٰخرالنبیین دي ﷺ خو دوئ چه ایمان نه راوړو نو دهغې یوه وجه حسدؤ چه دا نبی په بنی اسماعیل کښې ولې راغې ددې بیاز وورستو آیتونو کښې راځی. اوبله وجه ئی حُب جاه اوحب مال ؤ. دیهودو اٰبا اجداد. دشام نه یثرب «مدینه منوره» ته پدې غرض راغلی ؤچه اٰخرالنبیین ﷺ چه کله راشی نوموږ به پرې ایمان راوړو اومدد به ئی کوؤ او پدې وجه یهود د مدینې په گردونواح کښې اٰبادؤ. عام عرب اُمیان ؤ او په یهودوکښې عالمان او پیران موجودؤ نوعامو خلقو به ددوئ قدر او احترام کولو. نوپدوئ کښې دحُب جاه مرض پیداشوې ؤ.

اودارنگه ددوئ دخپلومریدانو او اتباعو نه ډیره آمدنی وه نو پدوئ کښې دحب مال مرض پیداشوې ؤ نو دا دواړه خبرې «حب مال اوحب جاه» ددوئ لپاره دایمان راوړلومانع اورکاوټ ؤ. او ددوئ سره دا خطره وه که مونږ ایمان راوړو نو زمونږ سیادت اومشری اوجاه به ختم شی اوهغه ناجائز آمدنی به ختمه شی، نوالله تعالی ددوئ ددې مرض علاج ښائی چه په مونځ کولو سره به تواضع اوخشوع پیداشی اوحب جاه به ختم شی اوپه زکوة ورکولو سره به حب مال ختم شی

﴿وَارْكَعُوا مَعَ الرَّٰكِعِينَ﴾ دا اووم۷ امر دي او **تخصیص درکوع** خکه ؤشه چه دیهودو په مونځ کښې رکوع نه وه اگرکه په اصل یهودیت کښې رکوع وه خویهودو پریخودلې وه یعنې تاسو مونځ کوئ په طریقه دحضورﷺ باندې نه په طریقه دیهودیت،او دارنگه پدیکښې اشاره ده حکم د مونځ باجماعت ته، یعنی باجماعت مونځ کوئ نوپه تاسوکښې به تواضع پیداشی اوحب جاه به ختم شی

﴿أَتَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنسَوْنَ أَنفُسَكُمْ﴾ دا زجر اوزورنه ده دیهودو عالمانو ته چه نورو خلقو ته به ئی تلقین او ترغیب ورکولو دعمل په تورات باندې، اوپه خپله به ئی عمل نه کوو او بعضې مفسرینو «معالم وغیره» ویلی دی چه کله به مشرکین مکه یا په یهودو کښې ددوئ

مسلمانان رشته داردوئ ته راغله، اودنبیﷺ په باره کښې به ئې ترینه سوال پوشیده طریقې سره وکړو نودوئ به جواب ورکووچه دې یعنی نبیﷺبرحق اوریشتنی نبی دې ایمان پرې راوړئ او په خپله ئې ایمان نه راوړو نود ((بالبر)) نه مرادعمل په تورات اوایمان په حضورﷺ دې او استفهام په ((أتأمرون)) کښې لپاره دتعجب دې یعنی دتعجب خبره داده چه تاسو نورو خلقوته دنیکی حکم کوئ اوپخپله عمل نه کوئ یا دا استفهام انکاری دې اواستفهام انکاری کله په معنی دنفی سره راځی اوکله په معنی دلاینبغی سره راځی اودلته استفهام انکاری په معنی دلاینبغی سره دې او دا استفهام په اصل کښې متوجه دې قیدته چه ((وتنسون انفسکم)) دې ځکه دا حال دې اوحال قیدوی اوپه کلام کښې نفی یا انکار متوجه کیږی قید زائدته چه دیته مدار کلام ویلې شی په علم بلاغت کښې نومطلب داشو چه ((تنسون انفسکم لاینبغی)) دې

حضرت تهانوی رحمه الله فرمائی چه د آیت مطلب دادې چه واعظ دې بې عمله نه کیږی او دا مطلب ندې چه بی عمله دِ وعظ نکوی. ﴿وَأَنتُمْ تَتْلُونَ ٱلْكِتَٰبَ﴾ دا جمله لپاره دبیان مزید قباحت ده

﴿وَٱسْتَعِينُواْ بِٱلصَّبْرِ وَٱلصَّلَوٰةِ﴾ دا اتم (۸) امردې پدیکښې یهودوته دهغوئ دروحانی بیماری علاج ښودلې شویدې ددوئ روحانی اونفسانی بیماری حب جاه اوحب مال ؤ او دا دواړه بیماری دهر انسان لپاره دومره خطرناکې اونقصانی وی چه ددینه نورې ډیرې خطرناکې بیماریٔ پیداکیږی لکه مثلاً دحب مال نه . بخل، خود غرضی، ناپ تول کښ کمی، رشوت، وغیره بیشماره مرضونه پیداکیږی او دارنګه دحب جاه نه .کبر،اعراض اوانکار،دحق نه وغیره بیشماره دینی نقصانات پیداکیږی نو دیهودیانو دا خیال ؤ کچرې مونږایمان راوړو نو زمونږ جاه به ختم شی اودغلامی زندګی به اختیاروو.

او دارنګه د اتباعُ نه به زمونږ آمدنی ختمه شی نو ایمان راوړل خودوئ ته اګرچه آسان وو خو په هغې باندې دوام ساتل اولوازمات ئې پوره کول ورته مشکل ښکاریده، نوالله تعالی ورته علاج وخودلو چه تاسو ایمان راوړئ او بیامدد او قوت حاصل کړئ دماموراتو او منهیاتو پوره کولو لپاره په صبرسره، **مراد دصبرنه** په نزد دبعضې روژه ده په قرینه د ذکر کولو دصلوة سره ځکه په صوم. صلوة سره دالله ﷻ مدد رازی،یا ترینه مراد په خواهشاتو او لذاتو باندې قابو راوستل دی،ځکه چه څوك خپل ځان په تکلف سره صبرکوی نو الله ﷻ ورته

توفیق دصبرورکوی «من تصبریصبّره الله» **صبر په اصل کښې** حبس ته وائی اومراد ترینه په شرع کښې بندول دنفس دی په طاعت باندې او دمعصیت نه نو دا کچرې طبعاً وؤ نو دا **صبر** دې اوکه په کلفت سره وو نو **تصبُر** دې اوکه پس دکلفت نه طبیعت جوړشونو **اصطبار** دې اوکه مقابله وه په صبرکښې نو **مصابره** ده، نوحاصل دا شوچه تاسوصبرکوئ نوحب مال به کم شی اومونځ کوئ نوحب جاه به کم شی نو مأمورات اومنهیات پوره کول به درته آسان شی. دا خوعلاج شو دمرض، یعنی صبر او صلوة علاج دې د ازاله دحب مال اوجاه لپاره. لیکن علاج کله دشوار وی نو دا علاج چه صبراوصلوة دې په خپله دشواردې نوددې د آسانولو لپاره هم یوطریقه پکارده نودهغې ذکروشو: ﴿وَإِنَّهَا لَكَبِيرَةٌ إِلَّا عَلَى ٱلْخَٰشِعِينَ﴾ یعنې خشوع طریقه ده لپاره دآسانولو د صبر او صلوة لیکن خشوع به څرنګه رازی نو دهغې ترتیب بیان شوچه

﴿ ٱلَّذِينَ يَظُنُّونَ﴾ اوضمیر «وانها» کښې راجع دې صلوة ته یاراجع دې استعانت بالصبر والصلوة ته اونور احتمالات پکښې هم شته او«کبیرة» په معنی دثقیلة سره دې اوخشوع په اصل کښې قلبی کیفیت اوقلبی سکون ته وائی چه دهغې آثار په بدن هم ظاهریږی چه اعضأ نامناسب حرکت نه کوی اونظرهم په مناسب ځایونولګی او «یظنون» په معنی دیوقنون سره دې،یاپه معنی دخیال کولو اواستحضارسره دې اوپه معنی دګمان سره اوظن منطقی سره ندې

﴿مُّلَٰقُوا۟ رَبِّهِمْ وَأَنَّهُمْ إِلَيْهِ رَٰجِعُونَ﴾ ملاقات اورجوع په آخرت کښې مراد ده او دصلوة والاملاقات هم مرادکیدیشی.

| يٰبَنِيٓ | اِسْرَآءِيْلَ | اذْكُرُوْا | نِعْمَتِيَ | الَّتِيٓ | اَنْعَمْتُ | عَلَيْكُمْ | وَاَنِّيْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اې اولاده [1] دیعقوب یادکړئ نعمت ځما هغه چې ماانعام کړې ووپۀ تاسوباندې اوداچې بیشکه ما | | | | | | | |
| فَضَّلْتُكُمْ | عَلَى | الْعٰلَمِيْنَ ۝ | وَاتَّقُوْا | يَوْمًا | لَّا تَجْزِيْ | | |
| تاسوتۀغوره والې درکړې وو په ټولوخلقو دزمانې ستاسو.اوویریږئ دعذاب دهغه ورځې نۀ چې نۀ بۀ شي دفع کولې | | | | | | | |
| نَفْسٌ | عَنْ | نَّفْسٍ | شَيْئًا | وَّلَا يُقْبَلُ | مِنْهَا | شَفَاعَةٌ | وَّلَا يُؤْخَذُ |
| هیڅ یو نفس دبل نفس نه هیڅ عذاب او نۀ بۀ شي قبلولې دهغه دنفس نۀ څۀ سفارش کول اونۀ بۀ شي اخیستلې | | | | | | | |
| مِنْهَا | عَدْلٌ | وَّلَا | هُمْ يُنْصَرُوْنَ ۝ | | | | |
| دهغه نۀ څۀ بدله فدیه اونۀ بۀ ددوئ مددکیدې شي | | | | | | | |

﴿يٰبَنِيٓ اِسْرَآءِيْلَ اذْكُرُوْا﴾ ددې ځای نه له، رکوع ۷- نه تر رکوع ۱۵ پورې تفصیل دې:

((اذکروا نعمتی)) اود ((ایای فارهبون)) او دبنی اسرئیلُ پنځه انواع ذکرکیږی لپاره دتفصیل ددغه اجمال. دا بیان دنوع اول دې او دا مشتمل دې په ترغیب اوترهیب باندې .پدې کښې دیهودو په آبأ او اجدادو باندې د اته ۸ نعمتونو او ددو۲ نقمتونو ذکر دې په اول کښې اجمالی طور سره دترغیب اوترهیب اعاده ده، اوبیاتفصیل دې نو ګویا دا دمخکښې ((اذکروانعمتی)) او ((ایای فارهبون)) تشریح ده.

﴿عَلَى الْعٰلَمِيْنَ﴾ نه مراد دخپلی زمانې په اقوامو باندې دفضیلت اظهار مقصود دې نو ددینه دبنی اسرائیلُ فضیلت په حضورﷺ اودده په امت باندې نه لازمیږی اوالله تعالی چه چاته فضیلت ورکوی نو دهغې لپاره څه امتیازی خوبی وی اوهغه صرف دینی خوبی وی. دنیوی اومادی ترقی د فضیلت معیارنه دې، نو **دبنی اسرائیلو دفضیلت وجه** په نورو اقوامو باندې صرف داوه چه دوئ ددین او دتوحید علمبردارۇ. په زمانه دفترت درسل کښې صرف بنی اسرائیل داسې قوم ۇ چه په مسلك دتوحید باندې پابند ۇ. باقی اکثر اقوام په شرك کښې مبتلاۇ لیکن آهسته آهسته چه کله بنی اسرائیل دتوحید نه منحرف شو نوفضیلت ئې ختم شو او ملعون شول.

---

۱- اعاده دپاره دترغیب وترهیب.

﴿ وَاتَّقُوا يَوْمًا﴾ دا ترغيب دي، تقوى په معنى دخوف سره ده او ديوماً نه «يوم الاخرة» مراد دي او عبارة په حذف دمضاف سره دي«اى عذاب يوم»، يوماً نكره ده خو دمابعد صفات نه معلوميږى چه له دي نه «يوم الاخرة» مراد ده.

﴿ لَا تَجْزِى نَفْسٌ﴾ په دنيا كښې دمجرم دنجات لپاره څلور طريقې استعماليږى ۱. ضمانت په نفس يا په مال سره ۲- سفارش كول ۳- فديه وركول ياجرمانه وركول ۴. زبردستى كول په قومى ياجماعتى زورسره، نوپدى آيت كښې ددې خبرې ذكرمقصوددې چه په آخرت كښې دمجرم دنجات دا مذكورې يوه طريقه هم پكارنه راځى اونجات اخروى صرف په ايمان او اعمال صالحه سره دي.

«لاتجزى» دطريقى اول نفى ده او د لاتجزى معنى ده «لا تنوب ولاتحتمل مما اصابها» «روح» يا په معنى دلاتغنى سره «لاتجديها نفعا»«روح»

﴿شَيْئًا﴾ مفعول به دي هيڅ شئ دحقوق نه، يامفعول مطلق دي په اعتبار دموصوف مقدرسره ((اى لاتجزى جزا شيئاً)) اى جزاً ما .

﴿وَلَا يُقْبَلُ مِنْهَا شَفَاعَةٌ﴾ دا نفى ددويمې طريقې ده او مراد نفى دشفاعت ده لپاره دكافرانو يامراد نفى دشفاعت بلا اذن ده، نو استدلال دمعتزلو پدې آيت سره لپاره دنفى دمطلق شفاعت نه صحيح كيږى .

﴿وَلَا يُؤْخَذُ مِنْهَا عَدْلٌ ﴾ دانفى ددريمې طريقى ده.

﴿وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ ﴾ دا نفى دڅلورمې طريقې ده .

| وَإِذْ نَجَّيْنَٰكُم مِّنْ ءَالِ فِرْعَوْنَ يَسُومُونَكُمْ سُوٓءَ ٱلْعَذَابِ يُذَبِّحُونَ |
|---|
| اوكله (۱) چې خلاص كړئ مونږ تاسو دفرعونيانو نه چې رسول به ئې تاسو ته سخت عذابونه ذبح كول به ئې |
| أَبْنَآءَكُمْ وَيَسْتَحْيُونَ نِسَآءَكُمْ ۚ وَفِى ذَٰلِكُم بَلَآءٌ مِّن رَّبِّكُمْ عَظِيمٌ ۝ |
| خامن ستاسو اوژوندئ به ئې پريخودلې ښځې ستاسو، او په دې كښې امتحان وو درب ستاسو نه لوئې |

۱- د بنى اسرائيلو پنځه انواع بيانول، دانوع اول دې او پدې كښې اته انعامات او دووۀ عذابونو ذكر كيږي. دا اول انعام دي.

﴿وَإِذْ نَجَّيْنَٰكُم﴾ دا بیان د انعاماتو دي او مقصود ترغیب ورکول دایمان دی چه ماپه تاسو انعامات او احسانات کړی دی، نو دهغې شکریه اداً کړئ او ایمان راوړئ.

﴿ مِّنْ ءَالِ فِرْعَوْنَ﴾ د آل نسبت چه یوشخص ته وُشی نوکله دهغه اولاد مراد وی او دیته آل نسبی ویلې شی اوکله دهغه اتباع اومسلك والا مراد وی که دهغه په اولاد کښې وی اوکه نه وی، نوددې وجه نه چه څوك ایمان نه لری، نوهغه ته آل محمد ﷺ نشی ویلې اګرکه دحضور ﷺ قریب اونسبی وی دلته د آل نه مراد اتباع دی، ځکه چه دفرعون اولادنه وو.

﴿يَسُومُونَكُم﴾ ((ای یذوقونکم)) څکول، تکلیف رسول.

﴿يُذَبِّحُونَ أَبْنَآءَكُمْ﴾ دا تفسیردې د ((سوءالعذاب)) یا ذکرالخاص بعدالعام دې ځکه چه سوء العذاب هغه ټول اعمالُ شاقۀته شامل دې چه فرعون په بنی اسرائیل مقررکړی وو.

﴿وَيَسْتَحْيُونَ نِسَآءَكُمْ﴾ یستحیون دحیات نه مأخوذدې، جوندی پریښودلوته ئی عذاب ځکه ویلی دې چه دوئ ترینه خپل خدمت اخستلو او دا دیوغیّورانسان لپاره دقتل نه زیات عذاب دې، اودبعض قول دې چه (یستحیون) دحیاً نه مأخوذ دې نو د یستحیون معنی حیاء اخستل دی، یعنی دبی حیائی کارونه به ئی ددوئ نه اخستل.

﴿وَفِي ذَٰلِكُم بَلَآءٌ﴾ بلاء په معنی د آزمایش او امتحان هم رازی اوپه معنی دَ انعام سره هم راځی نوکچرې په ((فی ذالکم)) کښې اشاره شی ذبح ته نو بلاء په معنی دَ ازمائښ دې او که په ذلکم کښې اشاره شی نجات ته نو په معنی دَ انعام سره دې.

**فائده** : **سبب د ذبح د بچوبعضې** مفسرینو دا لیکلې دې (ابن کثیرفی سورة طه) : چه بنی اسرائیلُ د اخبار دانبیاؤ له وجهِ نه په خپل مینځ کښې دا مذاکره وکړه چه الله ﷻ به زمونږپه قوم کښې یو داسې شخص پیداکړی چه دهغه په وجهِ به دفرعونیانو حکومت ختم شی نو فرعون چه کله بادشاه شو او دبنی اسرائیلو دا خبره ئی واوریده نو دخپل اقتدار دبچ کولو لپاره ئی دا منصوبه جوړه کړه چه دبنی اسرائیلو بچی ئی قتلول او دجینکونه چونکه دغه خطره نه وه او بل داچه دهغوئ نه ئی خپل خدمت اخستلونېدې وجه ئی جینکی نه قتلولې.

او بعضې مفسرینولکه قرطبی خازن وغیره ویلی دی چه فرعون خوب لیدلې وو چه دبیت المقدس نه اور راؤتلو اوپه مصرکښې دقبطیانوپه کورنوکښې داخل شو او دبنی اسرائیلو

کورنه ترینه بچ شو، معبرینو ئی دا تعبیر وکړو چه په بنی اسرائیلوکښې به داسې څوك پیداشی چه ستا حکومت به ختم کړی، نومعلومه شوه چه دکافرخوب هم کله صحیح وی اومدارك اوجلالین ویلی دی چه کاهنانو فرعون ته دغه مذکوره خبرورکړو.

وَ اِذْ فَرَقْنَا بِكُمُ الْبَحْرَ فَاَنْجَيْنٰكُمْ وَ اَغْرَقْنَآ اٰلَ فِرْعَوْنَ

اوکله[1] چې اوچولومونږستاسودبچ کولودپاره دریاب پس بچ کړئ مونږ تاسواوغرق کړل مونږتول فرعونیان

وَ اَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ ۝ وَ اِذْ وٰعَدْنَا مُوْسٰى اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ

اوتاسو کتل. اوکله[2] چې وعده اوکړه مونږ دموسی سره دڅلويښتوشپوبيا اونيولوتاسوځخې لره په خدائی سره

مِنْۢ بَعْدِهٖ وَاَنْتُمْ ظٰلِمُوْنَ ۝ ثُمَّ عَفَوْنَا عَنْكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ

روستودتللودموسی نه (کوه طورته) اوتاسوظلم کوؤنکې وئ. بیامعافي اوکړه مونږتاسوته روستوددې گناه نه

لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ۝ وَ اِذْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ وَالْفُرْقَانَ

ددې دپاره چې تاسوشکراوکړئ. اوکله[3] چې ورکړومونږموسی ته کتاب اوفرق کوؤنکې دحق اوباطل

لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ۝

دپاره ددې چې تاسوسمه لاره اومومئ

﴿وَإِذْ فَرَقْنَا بِكُمُ ٱلْبَحْرَ﴾ دا بیان د انعام ثانی دې چه هلاکت ددشمن دې یعنی دفرعون په داسې طریقه چه دوئ ورته کتل «فرقنا» په معنی «فصلنا» یعنې اوبه جدا جدا اوحصې حصې کول او«بکم» په معنی د((لانجاکم)) دې، اود«البحر» نه مراد بحرقلزم دې، حضرت موسیٰ ﷺ او هارون ﷺ چه کله فرعون ته ډیره زمانه دعوت اوتبلیغ وکړو، او د ارشاداتُ اومعجزاتو په ذریعه پدوئ اتمام حجت وُشو او د دعوت دحق سطح هغه مقام ته ورسیده چه دهغې نه بعد بیا د الله تعالی دطرفه یا د هدایت فیصله کیږی یا دهلاکت فیصله کیږی اوپه فرعونیانو باندې د دعوت څه اثر ونه شو او هدایت ورته ملاونه شو. او د مظلومانو بنی اسرائیلو جرا،

---

۱ - انعام ثاني

۲ - انعام ثالث

۳ - انعام رابع

زاري. دالله تعالى دربارته ورسيده نوپه فرعونيانوباندې دنزول دعذاب وقت راغې. نو الله تعالى موسى ﷺ ته حكم وكړو چه خپل قوم بنى اسرائيل دځان سره كړه او دشپې. هجرت وكړه. نوكله چه دوئ روان شو اوهجرت ئې شروع كړو نو دسمندر غاړې ته ورسيدل. فرعون چه خبر شو نو ددوئ په تلاش كښې په دوئ پسې دځلورويشت (۲۴۰۰۰۰۰) لاكه لښكرسره روان شو. او دسمندر كنارې ته ورسيده نو بنى اسرائيل حيران شو اوگهبراؤ شو چه د دؤ هلاكتونو په منځ كښې راگيرشو. يوغاړې ته فرعون اوبلې غاړې ته سمندر دې. نو الله تعالى وحى را وليږله او موسى ﷺ ته ئې حكم وكړو چه په خپله عصا سره سمندر اووهه، نوچه سمندرئې ووهه نو اوبه جدا جدا شوې، يعنې سيلان اوبهيدل ئې ختم شو. اودولس ۱۲ لارې پكښې جوړې شوې نوپه دې آيت كښې دغه واقعې ته اشاره ده.

﴿وَإِذْ وَٰعَدْنَا مُوسَىٰٓ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً﴾ دا بيان د انعام ثالث دې. بنى اسرائيلُ ته چه دفرعون نه نجات ملاؤشو نو دموسى ﷺ نه ئې دستورحيات طلب كړو. نوموسىٰ ﷺ الله ﷻ ته سوال وكړو. نو الله ﷻ ورته وفرمايل چه ته كوه طوركښې ځلويښت ورځې چله شه نوځه به تاته كتاب دركړم. هغه به ستاسو دستورحيات وى، چنانچه موسى ﷺ خپل وروره‍ارون ﷺ خپل خليفه اونائب مقرركړوپه بنى اسرائيلوكښې، او په خپله كوه طورته لاړ، هلته چله شو. دلته په بنى اسرائيلوكښې سامرى راپيدا شو چه منافق ؤ. اوهغه زيورات چه بنى اسرائيلُ په عاريت سره دقبطيانونه وړى وو هغه يې ارتاوكړه او وې ويل چه دا خوحرام دى. نو بنى اسرائيلو هم ارتاوكړل، او سامرى بيادغه زيورات رواغستل اوسخې ئې ترينه جوړكړو اوبنى اسرائيلوته ئې وويل چه دا ستاسوخدائى دې، دده عبادت كوئ. اوموسى ﷺ خطاشوې دې چه غرته تللې دې ((خداى خودلته راغلې دې)) نعوذبالله. نو بنى اسرائيل په عبادت دسخى كښې مبتلاشو په شرارت دسامرى سره.

أُستاذمحترم رحمه الله به فرمايل چه دغه نمونه بعينه زمونږ دملك (پاكستان) ده. حضرت الاستاذ رحمه الله ليكى: امت محمديه ميں بھى آج كى (مذہبى) اور (سياسى) سامرى موجودہيں جنہوں نے كمال عيارى سے سادہ لوح قسم كى لوگوں كوغلط راہ پرڈال ركھاہے.

﴿ثُمَّ ٱتَّخَذْتُمُ ٱلْعِجْلَ﴾ مفعول ثانى مقدر دې يعنى ((الٰهًا)) او لفظ د اتخاذ په بى حقيقت او جعلى اشياؤ كښې استعماليږى، يعنى دعجل الوهية بى حقيقة اوجعلى دې. دعجل په باره

کښې دمفسرینو دوه قوله دی: ۱- په دې کښې حقیقتاً حیاة وو، اولحم اودم ترینه جوړ شوې ؤ دهغه خاورو اچولوپه وجه چه سامری دجبرئیل علیه السلام دآس دنقش قدم دلاندې نه راغستلې وه. دا قول دمعمر اوابن عباس رضی الله عنهما دې. ۲- دا عجل حقیقةً زر ؤو، شکل ئې دسخی وو او داسی قسم سورې په کښې وو چه هوا به پکښې داخله شوه نو دسخی آواز به ترینه پیداشو، وهذا قول مجاهد، قرطبی

«ثم عفونا» دا تعین د انعام دې «لعل» په معنی د لام کئ سره دې.

﴿ وَإِذْ ءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَٰبَ وَٱلْفُرْقَانَ﴾ دا بیان د انعام رابع دې، آسمانی کتاب دامت لپاره عظیم منقبت اوروحانی نعمت وی او «فرقان» صیغه دمبالغی ده دفرق نه، یعنې دحق او باطل جدائی راوستونکې په کمال وجه سره اوعطف د «والفرقان» په «الکتاب» باندې ۱- یاعطف دیوصفت دې په بل صفت نو د تورات لپاره دوه صفتونه شو: یو «کتاباً منزلاً» اوبل «فرقاناً بین الحق والباطل» ۲- یامراد دفرقان نه معجزات دموسی علیه السلام دی چه په هغوئ سره فرق راتلو دحق او باطل په مابین کښې.

| وَإِذْ | قَالَ | مُوسَىٰ | لِقَوْمِهِۦ | يَٰقَوْمِ | إِنَّكُمْ | ظَلَمْتُمْ | أَنفُسَكُم | بِٱتِّخَاذِكُمُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوکله (۱) | چه | اووئیل | موسی | قوم خپل ته | اې قومه | خما! بیشکه تاسو | ظلم کړېدې | پهٔخپلونفسونوپهٔ سبب دنیولو ستاسو |

| ٱلْعِجْلَ | فَتُوبُوٓا۟ | إِلَىٰ | بَارِئِكُمْ | فَٱقْتُلُوٓا۟ | أَنفُسَكُمْ ط | ذَٰلِكُمْ | خَيْرٌ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| خخي لره پهٔ خدائې سره | پس توبه | اوباسئ | خپل خالق ته | نوقتل کړئ | خپل ځانونه، | داتوبه کول | ډېره غوره ده |

| لَّكُمْ | عِندَ | بَارِئِكُمْ ط | فَتَابَ | عَلَيْكُمْ ط | إِنَّهُۥ | هُوَ | ٱلتَّوَّابُ | ٱلرَّحِيمُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ستاسو دپاره | په نزد | دخالق ستاسو، | پس قبوله ئې کړه توبه | ستاسو، | بیشکه | خاص دې | ډېرتوبه قبلوونکې | اورحم کوونکې دې |

﴿وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِۦ﴾ دا بیان دانعام خامس دې چه قبول دتوبې دې چه ذکرشویدې په فتاب علیکم کښې.

﴿فَٱقْتُلُوٓا۟ أَنفُسَكُمْ﴾ پدیکښې دوه قوله دی: ۱- دا تفسیر دتوبه دې او د دوئ په حق کښې خاص طور توبه په قتل سره وه یا توبه دمرتد مطلقاپه دین موسوی کښې قتل ؤو. نومراد د

۱- انعام خامس.

((توبوا)) ، نه ((عزمواعلى التوبه)) اود ((فاقتلوا انفسكم)) نه مراد يې ځان مېپارل اوحواله كول دي قتل ته، نو دوئ ته امرشوې ؤوچه قتل كړئ بعض بعضُ لره لكه رواپتې دي چه امرشوې ؤو هغه چاته چه عبادت دعجل ئې نه ؤكړې، چه دوئ قتل كړي هغه كسان چه عبادة دعجل ئې كړې ؤو، ((فاقتلوا انفسكم)) په ظاهرمحمول دي يعنى هركس دځان پخپله قتل كړي اوكل مقتولين اويازره ( ۷۰۰۰۰۰) ؤو ۲- توبه ددوئ په ندامت سره وه اوقتل متمم (پوره كوونكې) دتوبه ؤ. لكه قصاص ،اورجم، زمونږ په ملت كښې.

﴿فَتَابَ عَلَيۡكُمۡ ﴾ دا متفرع دي په مقدرباندې ((اى تُبتم وقتلتم انفسكم فتاب عليكم))

اوخطاب په ((عليكم)) كښې مقتولين ته ندي بلكه اولاد ددوئ ته دي نو دا تذكير دانعام دې په اولاد باندې په انعام داباؤ سره اوبعضې مفسرين وائى چه هركله دبنى اسرائيلوڅه كسان قتل شو نو باقى كسانو ته سزا معاف شوه په دعا دموسى اوهارون عليهما السلام سره نو دا خطاب هغه كسانو ته دي چه ژوندي پاتى شوي ؤ اومعافى ورته شوې وه .

| وَ اِذۡ قُلۡتُمۡ يٰمُوۡسٰى لَنۡ نُّؤۡمِنَ لَكَ حَتّٰى نَرَى اللّٰهَ جَهۡرَةً |
|---|
| اوكله چې اووئيل تاسو اې موسى! هرگزمونږيقين نه كوؤپه تاباندې ترڅوچې مونږنوې ليدلې الله په ښكاره |
| فَاَخَذَتۡكُمُ الصّٰعِقَةُ وَاَنۡتُمۡ تَنۡظُرُوۡنَ ۝ ثُمَّ بَعَثۡنٰكُمۡ مِّنۡۢ بَعۡدِ مَوۡتِكُمۡ |
| پس اونيولو تاسو لره تندر او تاسوكتل . بياژوندى كړئ مونږ تاسو روستو دمرگ ستاسونه |
| لَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُوۡنَ۝ |
| دپاره ددې چې تاسو شكر اوكړئ |

﴿وَاِذۡ قُلۡتُمۡ يٰمُوۡسٰى لَنۡ نُّؤۡمِنَ لَكَ ﴾ دا بيان دانعام سادس دې اوتمهيد ذكركيږى اوبيان د انعام په ذكر دبعث بعدالموت سره كيږى، حضرت موسى عليه السلام ته چه كله تورات وركړې شو او قوم ته راغې نو د مذكورې واقعې نه بعديعنى دقبول توبه د واقعى نه بعد ئې قوم ته كتاب يعنى تورات پيش كړو ، نو پدوئ كښې بعضُ داسې ويل چه د تورات احكام مشكل دى مونږ پدې عمل نشوكولې، نوحضرت موسى عليه السلام دخپل قوم اويا ۷۰ كسه وفد دځان سره كوه

---

۱-انعام سادس يعنى بعث بعد الموت.

طورته بوتلل چه دخپل جرم یعنی عبادت عجل نه معذرت هم پیش کړی او دالله ﷻ کلام واوری دیته میقات ثانی دموسی ﷺ ویلې شی نو دوئ چه کوه طورته ورسیدل او دالله ﷻ سره همکلام شو اودالله ﷻ کلام ئې واوریدلو نو دا مطالبه ئې وکړه چه ﴿لَن نُّؤْمِنَ لَكَ حَتَّىٰ نَرَى ٱللَّهَ جَهْرَةً﴾ ((ای عیاناً))یعنی مخامخ په سترګو لیدلوسره،نوبعضې اهل علم وائی چه ((لن نؤمن)) انکارؤو د ایمان نه نودوئ پدې سره مرتدشو لدې وجه نه ورته سزا د موت ورکړې شوه او بیا په دعا دموسی ﷺ سره ژوندی شو، اوبعض وائی چه ددوئ مقصد انکار دایمان نه، نه ؤو بلکه دمطالبې دتاکید لپاره ئې دغه کلمه دجهل په وجه ویلې ده، نو مرتد ندی خو چونکه دا سخته ګستاخی دالله ﷻ او درسول وه ، نو پدې وجه ورته سزا دموت ورکړې شوه .

﴿ ٱلصَّٰعِقَةُ ﴾ بعضې وائی چه مراد ددینه موت دې اوبعضې وائی چه تندر مراد دې چه سبب دموت وګرزیدلو .

﴿وَأَنتُمْ تَنظُرُونَ﴾ یعنی نزولِ صاعقه ته، چه کله نازلیده (( یا دیوبل موت ته))، ددې آیت نه معتزلوو دلیل قائم کړیدې په امتناع د رؤیت دباری تعالی باندې ځکه په مطالبه درؤیت باندې نزول دعذاب ؤشو، **جواب** دا دې چه ددې آیت نه ثابتیږی عدم رؤیت په دنیاکښې اونه ثابتیږی امتناع درؤیت مطلقا، او د اهل السنت والجماعت مسلك دادې چه رؤیت دالله ﷻ په دنیاکښې ممکن دې خو واقع ندې، او په آخرت کښې واقع دې.

**فائده** دحضرت الشیخ رحمه الله په کلام کښې لفظ د امتناع فی الدنیا نه مراد عدم وقوع دې اومصطلح معنی مراد نده لکه دا واضح ده دمابعدعبارة دشیخ رحمه الله نه.

﴿ثُمَّ بَعَثْنَٰكُم مِّنۢ بَعْدِ مَوْتِكُمْ﴾ دا بیان د انعام دې چه بعث بعدالموت دې، او د **موت نه دلته معنی حقیقی مراد ده** یعنې اخراج دروح دبدن نه، بعضو تاویل دموت کړیدې په بیهوشئ سره اوبعضو تاویل کړیدې په جهل سره ((روح)) لیکن دا تاویل ضعیف دې اوپه دې آیت کښې دموت نه مراد موت دعقوبت دې اوموت مؤجله ندې، او بعث ددې موت نه وروسته امر خارق للعادة دې او دا معجزه ده لپاره دحضرت موسی ﷺ - ځکه حضرت موسی ﷺ دعا وکړه چه یا الله دا خلق بیاژوندی کړې، بنی اسرائیل به په ماباندې تهمت لګوی چه زمونږسرداران اومشران دې کوهِ طورته بوتلل اوهلاك دې کړل، باقی دا خبره چه دمرګ نه

ورستو چه څوك ژوندې كړې شى نو آيا هغوئ به مكلف وى اوكنه؟ بعض ۱- ويلى دى چه تكليف ترينه ساقط شو ځكه چه ددوئ ايمان اضطرارى ؤگرزيدلو ۲- اوصحيح قول دادې چه تكليف ندې ساقط ځكه چه په دنياكښې هيڅ عاقل بالغ د تكليف نه خالى ندې

| وَظَلَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْغَمَامَ وَأَنْزَلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوٰى ۖ كُلُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا |
|---|
| اوسورې كړې وؤ(۱) مونږستاسو دپاسه د وريځې او رالېگلې وؤ مونږپه تاسوترنجبين اومرغ زان، خورئ پاكيزه هغه څيزونه |
| رَزَقْنٰكُمْ ۖ وَمَا ظَلَمُوْنَا وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ۝ |
| چې دركړې دي مونږ تاسوته ، اودوئ زمونږهيڅ نقصان اونكړوليكن دوي دخپلوځانونونقصان كوؤ |

﴿وَظَلَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْغَمَامَ﴾ دا بيان دانعام سابع ۷ دې دبنى اسرائيلو اصلى وطن ملك شام ؤو، د حضرت يوسف ﷺ په زمانه كښې مصرته راغلى وو او آباد شوى ؤو

اوهركله چه فرعون تباه شو اوبنى اسرائيل مطمئن شو نو دوئ ته دجهاد .كولو حكم وشوو د عمالقؤ سره چه هغوئ په دغه وقت كښې په ملك دشام باندې قابض ؤو (ابن كثير په تفسير دسورت يٰس كښې وغيره). دا تصريح كړيده چه دجهاد حكم دتورات دنزول سره راغلې دې او قبل ددينه به په منكرينوباندې د اتمام دعوت نه بعدغيبى عذاب نازليدلو دجهاد حكم نه ؤو نو بنى اسرائيلو ته چه دجهادحكم وشو چه تاسو دعمالقؤ سره جهادوكړئ اوخپل وطن اصلى دهغوئ دتسلط نه آزاد كړئ نو دوئ پدغه اراده باندې د مصرنه روان شو اوچه دهغوئ حدودو ته قريب شو او دعمالقو زوراوقوت ئى معلوم كړو نو بى همته شول او جهاد ته د تللونه ئى انكاروكړو، نو الله ﷻ ورته ددې انكارسزا وركړه چه څلويښت ۴۰ كاله به پدې ميدان كښې سرگردان اوپريشان اوسيږى اومصركښې به خپلوكورنوته نشى تلې دغه ميدان تقريبا ۱۳- ۱۴ كلوميتر ؤ په مابين دمصر اوشام كښې اوچه دوئ به خپل وطن مصرته د تللو اراده ؤكړه نوپوره ورځ به ئى چه رفتار وكړو نو ماښام به بياپه خپل ځائ كښې ؤ چه پوره شپه به ئى رفتاروكړو نوصباح به بيا پدغه ځائ كښې ؤو دغه شان څلويښت ۴۰ كاله پريشان او سرگردان ؤو ، او ددې وجه نه دغه ميدان ته (وادى تيه) ويلى شى اوچونكه پدې ميدان كښې نه څه عمارت ؤو، نه اوبه وې، نه د خوراك څه انتظام ؤ اوقيدى ته خوراك سكاك وغيره

---

۱ - انعام سابع.

ضروریات د زندګی ورکول په کاروی، نو دوئ چه موسی ﷺ ته شکایت وکړو نو الله ﷻ
دټولو ضروریاتو بندوبست وکړو، د ګرمی ددفع کولولپاره الله ﷻ سپینه وریځه راولیږله
چه تیاره ئی نه جوړوله اوګرمی ئی دفع کوله، د «غمام» نه په دې آیت کښې سپینه وریځ مراد
ده چه دنور ګرمی اوتیزه رنړائی کموله، غمام په لغت کښې پټولوته وائی، او د ابو انتظام
داسې وشو چه الله ﷻ حکم وکړو موسی ﷺ ته چه دغه فلانې کاڼړې په خپله عصا سره ووهه
نو دهغې نه دولس ۱۲ چشمې جاری شوې، او دخوراك انتظام ئی داسې وکړو چه پدوئ به
مَن یعنی ترنجبین نازلیده دشپی، چه هغه خوږشې ؤو، او دبرف «واورې» پشان سپین ؤو
اوسلوی یعنې مرزان «بټیر» به دوئ ته جمع کیدل اونه به تختیدل، ددوئ به چه څومره
ضرورت ؤ نوهغه قدر به ئی نیول اوذبح کول به ئی اوددې غوښه لذیذه اودصحت لپاره مفیده
وی اوپه داسی وطن کښې پیداکیږی چه هلته دغنمو اووربشوفصلونه پیداکیږی اوپه میدان
تیه کښې ددې پیداکیدل خلاف عادت ؤ، اوچا ویلی دی چه دوئ ته وراته کړی مرزان راتلل
خو دا قول مرجوح اوبی سنده دې، او دوئ ته داهم ویلی شوی ؤو چه په قدر دضرورت دا
نیسئ او د آینده لپاره ئی مه جمع کوئ لیکن دوئ دحرص دوجه نه ددینه خلاف وکړو نو
غوښې سخاکیدل شروع شو اوپه حدیث کښې دیته اشاره راغلی ده «لولابنواسرائیل لم یخنز اللحم» ، اوپدې میدان کښې ددوئ دلباس انتظام بطورمعجزه داسې وشو چه ددوئ کپړې
به نه شلیدلې اونه به خیرنې کیدلې او دماشومانو په بدن به چه کومې کپړې وې نوهغه به
دبدن مطابق زیاتیدلې (قرطبی وغیره).

﴿ كُلُواْ مِن طَيِّبَٰتِ مَا رَزَقْنَٰكُمْ ﴾ شیخ رضی ﷫ قانون وضع کړې دې او هغه دا چه کله
امر حکایت وی دماضی نه نوهلته به قلنا مقدروی «ای قلنا کلو».

﴿وَمَا ظَلَمُونَا ﴾ ظلم په معنی دنقصان سره دې یعنې دوئ دالله ﷻ او دموسی ﷺ څه
نقصان ؤنکړو، مفسرینو لیکلی دی چه په دیکښې اشاره ده دیته چه دوئ منع کړې شوی ؤو
د ذخیره کولونه او دناشکری کولونه لیکن دوئ به هغه ذخیره کول نوهغه به زرسخاشو
اوچینجی به پکښې پیداشو اود من او سلوی نازلیدل کم شو

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَإِذْ | قُلْنَا | ادْخُلُوا | هَٰذِهِ | الْقَرْيَةَ | فَكُلُوا | مِنْهَا | حَيْثُ | شِئْتُمْ | رَغَدًا |
| اوكله [1] چې اووئيل مونږ داخل شئ دې ښارته نوخوراک کوئ ددې دميوږنه چرته چې ستاسو خوښه وي پريمانه | | | | | | | | | |
| وَادْخُلُوا | الْبَابَ | سُجَّدًا | وَقُولُوا | حِطَّةٌ | نَغْفِرْ | لَكُمْ | خَطَايَاكُمْ | | |
| اوداخل شئ دروازې ته سجده کوونکي او وایئ چې اوبخې مونږنواوبه بخومونږتاسوته ګناهونه ستاسو | | | | | | | | | |
| وَسَنَزِيدُ | الْمُحْسِنِينَ ۞ | | | | | | | | |
| اوخامخازيات بۀ کړوثواب دخائسته عمل کوونکو | | | | | | | | | |

﴿وَإِذْ قُلْنَا ٱدْخُلُوا۟ هَـٰذِهِ ٱلْقَرْيَةَ﴾ دا بيان دعذاب اول دې په بنی اسرائيلو باندې دحضرت شاه عبدالقادر رحمه الله قول دادې چه دا قصه هم دزمانې د وادی تيه ده چه کله دوئ دمن او سلوی مسلسل خوړلونه تنګ شو او دمعمولی خوراك مطالبه يې وکړه لکه ورستو په آيت ۶۱ کښې ذکرکيږي، نو دوئ ته د يوښارته د داخليدو حکم وشوو اوقولی اوفعلی ادب د داخليدلو ورته هم بيان شو چه تا سوکوم اشيأ غواړئ نو يوقريې ته داخل شئ اومزدوری کوئ دغه اشيأ به درته په غير د دعاء کولونه هم ملاوشی، نو بنأ پدې قول قصه غيرمرتّبه ذکرشوه او دا قول څه بعيدنه دې اوپه قرآن کښې دقصصو دمرتب ذکرکولو اهتمام نشته دې، او عام مفسرين وائی چه دا واقعه دحضرت موسیٰ عليه السلام اوهارون عليه السلام دوفات نه بعدوالا ده ، دميدان تيه په زمانه کښې حضرت هارون عليه السلام اوموسی عليه السلام وفات شو.

اوحضرت يوشع عليه السلام نبی شو او په بنی اسرائيلوکښې هغه سرکشه مشران هم ختم شوی ؤو ، د نوی نسل نوجوانان پيداشوی ؤو نو دوئ دعمالقوسره جهادوکړو اوملك شام ئی فتح کړو اود دينه بعددوئ ته دبيت المقدس د داخليدلوحکم وشو نومراد د«هذه القرية» نه بيت المقدس دې لکه دا قول راجح دې، اوخوك وائی چه مراد ترينه «اريحا» رمله ،شام ،اردن، ايليسا، دی نو دوئ ته څلور۴ خطابات وشول.

۱- ﴿ٱدْخُلُوا۟ هَـٰذِهِ ٱلْقَرْيَةَ﴾ ۲- ﴿فَكُلُوا۟ مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ رَغَدًا﴾ په فأ سره ذکرکولو کښې ديته اشاره ده چه دخول مقصداصلی ندې بلکه مقصد اصلی خوراك دې په فراخی سره او دا دواړه حکمونه تعبدی ندی ۳- ﴿وَٱدْخُلُوا۟ ٱلْبَابَ سُجَّدًا﴾ ۴- ﴿وَقُولُوا۟ حِطَّةٌ﴾ دا دواړه

1 - عذاب اول.

حکمونه تعبدي دي، **مراد دباب نه** يا 1- دروازه دښار دبيت المقدس مراد ده او د ((سجداً)) نه مراد ((انحناء)) ده اوبعضې محمول کړيدی په تواضع اوخضوع باندې 2- يا دباب نه مراد باب المسجد دې او ((سجداً)) حال مقدره دې ((اى ادخلواباب المسجدمقدرين لكم السجودوقت حصولكم فيه)) يعنی تاسو داخل شئ دغه ښارته اوپه فراخی سره خوراك کوئ او بطور شکريه نعمت دخدائ کورته داخل شئ اوسجده اوعبادت کوئ

((**وقولواحطة**)) حطة خبر د مبتداء محذوف دې ((اى مسئلتنا)) يا ((سؤالنا حطة)) يعني زمونږ درخواست دادې چه مونږته معافی دګناهونووکړه .

﴿وَسَنَزِيدُ ٱلۡمُحۡسِنِينَ﴾ د محسنين نه مراد مخلصين دی لکه په حديث جبرئيل کښې :

احسان معنی داسې بيان شوې ده ((ان تعبدالله كانك تراه)) يعنی دعفونه علاوه به دمحسنينُ په اجر اوثواب کښې به زيادت وکړو، يا دمحسنينُ نه هغه مراد دی چه عبادت دعجل ئی نه ؤکړې او نافرمانی يې نوی کړې

| فَبَدَّلَ ٱلَّذِينَ ظَلَمُواْ قَوۡلًا غَيۡرَ ٱلَّذِي قِيلَ لَهُمۡ فَأَنزَلۡنَا عَلَى ٱلَّذِينَ ظَلَمُواْ |
|---|
| پس بدله راوړه ظالمانوخبره خلاف دهغې چې دوئ ته وئيلې شوې وه نوراوليږلومونږ په ظالمانوباندې |
| رِجۡزًا مِّنَ ٱلسَّمَآءِ بِمَا كَانُواْ يَفۡسُقُونَ ۝ |
| سخت عذاب دآسمان دطرفه په سبب ددې چې دوئ نافرماني کوله |

﴿فَبَدَّلَ ٱلَّذِينَ ظَلَمُواْ قَوۡلًا غَيۡرَ ٱلَّذِي قِيلَ لَهُمۡ﴾ ((بدّل)) متعدی کيږی دوه مفعول ته يو مفعول ته بنفسه متعدی وی اوبل مفعول ته پواسطه دباء سره متعدی وی، اوهغه مفعول چه باء پرې داخله وی نوهغه به متروك وی اوهغه مفعول چه باپرې نوی داخله نوهغه به موجود وی. نودلته په کلام کښې حذف دې نو تقدير دعبارت داسې دې ((فبدل الذين ظلموا بالذى قيل لهم)) نو دا متروك دې ((قولاغيرالذى قيل لهم)) نو دا موجود دې يعنې محذوف مفعول متروك دې اومذکورمفعول موجود دې يعني ظالمانوهغه قول ترك کړوچه دوئ ته ويلې شوې ؤو . اوهغه ئی ويل شروع کړل چه دوئ ته دويلوحکم نه ؤ شوې، بني اسرائيلو ته د ((حطة)) ويلوحکم شوې ؤو ليکن دوئ دا بدل کړو او بل لفظ ئی اوئيلو، اوپه هغې کښې روايات مختلفه دی، په روايت دصحيحين کښې دادی چه دوئ ((حبة فى شعيرة)) ويلی ؤ اوپه روايت دحاکم کښې ((حنطة)) دې اوپه معالم کښې دی چه دوئ ويلی ؤ ((حطاً سمقاثا)) اى حنطة حمراء.

او نور روايات هم شته دي. او دا اختلاف درواياتو ((ان صح الجميع)) محمول دي په اختلاف د قائلين باندې ، يعنى چا يو شان قول کړيدې اوچابل شان، يا محمول دي په اختلاف دلغاتو. اولکه څرنگه چه دوئ تبديل دقول کړې ؤ نو دغه شان ئى تبديل دهغه عمل کړى ؤ چه دوئ ته ويلې شوې ؤ يعنى دسجود او انحنأ په ځائ په کوناتوخوئيدل اوسرونه ئى اوچت کړې ؤ

ليکن په آيت کښې صرف دتبديل دقول ذکردې نه دفعل ، قرطبى وائى چه تبديل دقول ادنى جرم ؤ په نسبت سره تبديل دعمل ته. نوچه کله ادنى جرم موجب د عذاب شو نومعلومه شوه چه اعلى جرم يعنى تبديل دعمل په طريقه اولى سره موجب دعذاب دې.

﴿فَأَنزَلْنَا عَلَى ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟﴾ دا وضع داسم ظاهرده په ځائ دضميرځکه ((فانزلناعليهم)) ويل په کارؤ لپاره دتاکيد اولپاره د اشارې علت دعذاب ته، يعنى سبب دعذاب لپاره ظلم ددوى ؤ.

﴿رِجْزًا مِّنَ ٱلسَّمَآءِ﴾ رجزأپه کسره سره گندگئ ته هم وائى اوعذاب ته هم ويلې شى، دلته ترينه عذاب مراد دې، او په ضمه د ((را)) سره ((رُجز)) بتانوته ويلې شى لکه ((والرُجزفاهجر)) فراء ويلى دى چه ((رجز)) سخت عذاب ته ويلى شى او ((رجس)) عذاب ته ويلى شى ځکه سين خفيف دې د زاء نه نومعلومه شوه چه رجزسخت گندگئ اوسخت عذاب ته ويلې شى په نسبت رجس ته. او مراد دعذاب نه عذاب دطاعون دې لکه په حديث دبخارى کښې دى چه طاعون يو عذاب دې چه مخکنى خلق پدې سره معذب شوى ؤو اوپه ((من السماء)) کښې اشاره ده ديته چه اسباب ددې عذاب په زمکه کښې نه ؤوبلکه آسمانى ؤو.

﴿بِمَا كَانُوا۟ يَفْسُقُونَ﴾ دې کښې استمرار ته اشاره ده يعنى دوئ په فسق مستمرؤ.

| |
|---|
| وَإِذِ ٱسْتَسْقَىٰ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِۦ فَقُلْنَا ٱضْرِب بِّعَصَاكَ ٱلْحَجَرَ ۖ فَٱنفَجَرَتْ |
| اوکله (١) چې اوبۀ طلب کړې موسى دخپل قوم دپاره نواوونيل مونږاووهه په همساخپلې سره دغه گټې لره، نورواني شوې |
| مِنْهُ ٱثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا ۖ قَدْ عَلِمَ كُلُّ أُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ ۖ كُلُوا۟ وَٱشْرَبُوا۟ |
| دهغې نۀ دولس چينې، په تحقيق سره اوپيژندلو هرې ډلې گودرخپل اووئيل مونږخوراک کوئ اوڅکل کوئ |

١ - انعام ثامن.

| مِنْ رِّزْقِ اللّٰهِ وَ لَا تَعْثَوْا فِي الْاَرْضِ مُفْسِدِيْنَ ۞ |
|---|
| درزق داللہ نۀ اومه گرزئ پۀ زمکه کښې فساد کوونکي |

﴿وَاِذِ اسْتَسْقٰى مُوسٰى﴾ دا بيان دانعام ثامن۸ دې. دا واقعه دميدان تيه ده کله چه بني اسرائيل د اوبو مطالبه وکړه دموسى ﷺ نه، نوحضرت موسى ﷺ باذن الله يوه ګټه په عصا سره ووهله نو دهغې نه دولس ۱۲ چينې راووتلې او دا واضحه معجزه وه دموسى ﷺ دګټې نه اوبه راوتل، اوپه عصا وهلوسره راوتل اوپه وقت دضرورت کښې اوپه قدر د ضرورت راوتل او بيا بندکيدل اود «الحجر» په باره کښې اقوال متعدد دي، مشهور قول دادې چه لام العهد دې اومعهود هغه حجر دې چه موسى ﷺ نه ئې جامې تختولې وې دداسې ورو کې کاڼرې نه دولس چشمې راوتل واضحه معجزه وه اوبنی اسرائيل چونکه دولس فرقې وې نو خکه دولس چينې راووتلې چه ديوبل سره جنګ جدل پيدا نشي.

﴿فَانْفَجَرَتْ﴾ مرتب دې په مقدر باندې اى فضرب «فانفجرت» بل ځائ کښې «فانبجست» دې نو انبجاس «راتو کيدل» اول دى او بيا انفجار بهيدل ورستودی.

﴿قَدْ عَلِمَ كُلُّ اُنَاسٍ﴾ د اُناس نه مراد سبط خاندان دي.

﴿وَلَا تَعْثَوْا﴾ دا د «عثی» نه مشتق دې ياد «عيث» نه مشتق دې اشد فساد ته وائی ددوارو يوه معنى ده. او ﴿مُفْسِدِيْنَ﴾ حال مؤکده دې، يا په «لاتعثو» کښې تجريد شوې دې «اى لاتسيروا» لکه دشاه عبدالقادر ﷫ د ترجمې نه معلوميږي.

| فَادْعُ | وَّاحِدٍ | عَلٰى طَعَامٍ | لَنْ نَّصْبِرَ | يٰمُوْسٰى | قُلْتُمْ | وَاِذْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوکړه | بانديې نوسوال | يوقسم خوراک | هيچرې مونږ صبر نۀ کوو پۀ | ای موسى! | تا سو | اوکله (۱) چې اووئيل |
| مِنْ بَقْلِهَا | الْاَرْضُ | تُنْۢبِتُ | مِمَّا | لَنَا | يُخْرِجْ | رَبَّكَ | لَنَا |
| دسبزئ دهغې نۀ | زمکه | چې زرغونوي | هغه څيزونۀ | مونږله | راوباسي | خپل رب نۀ چې | زمونږ دپاره |

۱- عذاب ثاني.

| قَالَ | وَبَصَلِهَا ؕ | وَعَدَسِهَا | وَفُوْمِهَا | وَ قِثَّآئِهَا |
|---|---|---|---|---|
| او دبادرنگو(ترو)دهغې نه اودداوګې دهغې نه اوددالودهغې نه اودپیازودهغې نه. اووئیل موسی | | | | |

| اَتَسْتَبْدِلُوْنَ | الَّذِیْ | هُوَ اَدْنٰی | بِالَّذِیْ | هُوَ | خَیْرٌ ؕ | اِهْبِطُوْا | مِصْرًا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| آیاتاسو اخیستل غواړئ هغه څیزچې ادنی دې په بدل د هغې کښې چې هٖ برغوره دې ، نوکوزشئ یوښارته | | | | | | | |

| فَاِنَّ | لَكُمْ | مَّا | سَاَلْتُمْ ؕ | وَ ضُرِبَتْ | عَلَیْهِمُ | الذِّلَّةُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| پس یقینًا ستاسو دپاره به په هغې ښارکښې هغه څه وي چې تاسوئې غواړئ، اواچولې شوېدې په دوئ باندې ذلت | | | | | | |

| وَالْمَسْكَنَةُ ۗ | وَبَآءُوْ | بِغَضَبٍ | مِّنَ اللّٰهِ ؕ | ذٰلِكَ | بِاَنَّهُمْ | كَانُوْا | یَكْفُرُوْنَ | بِاٰیٰتِ اللّٰهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| او فقر، اواخته شودوئ په غضب دالله سره، داددې وجې نه چې وۆ دوئ کفرئې کولوپه آیاتونودالله | | | | | | | | |

| وَ یَقْتُلُوْنَ | النَّبِیّٖنَ | بِغَیْرِ الْحَقِّ ؕ | ذٰلِكَ | بِمَا | عَصَوْا | وَّكَانُوْا | یَعْتَدُوْنَ ۟ؑ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوقتلول به ئې پیغمبران بغیر دحق نه ، داپدې وجه چې دوئ نافرمانی کوله او وۆ دوئ چې تجاوز ئې کولو | | | | | | | |

﴿وَاِذْ قُلْتُمْ یٰمُوْسٰی لَنْ نَّصْبِرَ﴾ دا بیان ددویم عذاب دې او داواقعه د وادی تیه ده چه دوئ دمن سلوی خوراك نه تنګ شو نوحضرت موسی ﷺ ته ئی درخواست وکړوچه مونږ یو قسم طعام همیشه لپاره نه خورو نوزمونږ لپاره الله ﷻ ته سوال وکړه چه مونږته دغه مذکوره اشیأ راکړی، ځکه چه دانبیاؤو دعا اقرب الی الاجابت وی، او دارنګه دعاء په واسطه دغیر سره مطلقاً اقرب الی الاجابت وی، نو دعاء د انبیاؤ خوپه طریقه اولی اقرب الی الاجابت وی او ددې وجه نه حضور ﷺ حضرت عمر رضی الله عنه ته اوفرمایل چه کله دې عمرې له تلو «اشرکنا فی دعائك» وفی الاثر «ادعونی بألسنة لم تعصونی فیها» مراد ترینه دعا په لسان الغیرسره ده (روح)

نوموسیٰ ﷺ دوئ ته اوفرمایل چه کوم اشیأ تاسو غواړئ نو دهغې دحصول لپاره د دعا کولو ضرورت نشته، یوښهر ته کوزشئ او مزدوری، زمینداری، کوئ، دغه اشیأ به درته ملاؤشی.

﴿یُخْرِجْ لَنَا﴾ مراد ترینه اظهارندې بلکه انبات اوپیداکول دی.

﴿مِنْۢ بَقْلِهَا﴾ هرقسم سبزی ته ویلی شی ﴿وَقِثَّآئِهَا﴾ بادرنګ، تره ﴿وَفُوْمِهَا﴾ اوګې ته هم وائی اوغنمو ته هم ویلې کیږی، دلته مراداوګه ده ﴿وَعَدَسِهَا﴾ هرقسم دال ﴿وَبَصَلِهَا﴾ پیاز

﴿قَالَ أَتَسْتَبْدِلُونَ الَّذِي هُوَ أَدْنَىٰ﴾ د استبدال په صله کښې چه کوم شې مدخول د با وی نوهغه زائل اومتروك وی اوکوم شې چه مدخول د بأ نه وی نوهغه حاصل وی نو دلته «الذی هو ادنی» حاصل دې او «الذی هوخیر» زائل دې، مراد د «ادنی» نه دغه امورمذکوره دی اومراد د «خیر» نه من، سلوی، دی، هغه خیرځکه دی چه څه تعب، او سترې کیدل پکښې نشته اوعمده اومفید دصحت اشیاء دی ، سوال کیږی چه بنی اسرائیلُ خو تبدیل نه وو طلب کړې بلکه انضمام د دغه نورو اشیاؤ ئې طلب کړې ؤ دمن سلوی سره، جواب دادې چه «لن نصبر» دلالت کوی چه دوئ دمن سلوی زوال طلب کړې وو.

﴿وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ وَالْمَسْكَنَةُ﴾ دا ماخوذ دې د ضرب القبه نه نو دا کنایه ده د احاطې او دشمول نه لکه قبه اوخیمه چه محیط وی په مافیها، نودغه شان ذلة اومسکنة احاطه کریده په یهودو باندې، یا ماخوذ دې د ضرب علی السکه نه «الدراهم المضروبه» په زرو باندې چه د دراهمُ مهرؤلگی نوهغې ته دراهم مضروبه ویلې شی نولکه څرنگه چه دغه مهر او نقش لازم وی د دراهم سره نو دغه شان ذلت اومسکنت لازم دې دیهودیانو سره اومراد ۱- د ذلت نه مراد باذلت باطنی دې یعنی فقردنفس اوحرص دنفس اوحریص النفس شخص ډیرذلیل وی اودمسکنت نه مراد مسکنت ظاهری دې یعنی عادت ددوئ دادې چه خپله عریبی ښکاره کوی لکه بیکاره اوزړې کپړې اغوستل اوبی کاره پیزار گرزول اگرکه مالداروی یامراد ۲- د ذلت نه جزیه او خزاج اوغلامی ده او دمسکنت نه مراد فقردې.

**سوال** موجوده دورکښې خو د اسرائیلو داسې حکومت دې چه ډیراسلامی حکومتونه اوقومونه ترینه لرزان ترسان دی او دارنگه یهودیان په مالداری کښې په ټوله دنیاکښې مشهوردی. **جواب** دادې چه د اسرائیلوحکومت هیڅ حقیقت نه لری بلکه امریکه په مشرق وسطی کښې دخپل مخصوص سیاسی مفاداتو پیش نظر یوکاغذی ډهانچه جوړه کړیده او کچرې امریکه ددوئ د امدادنه کناره کش شی نو دیهودو حکومت د یو ورځې قیام نه لری او دنورو اقوامو. لکه نصاری ، دهریه، هندوانو،مسلمانو دحکومتونوپه مقابله کښې دا وړوکې حکومت هیڅ حقیقت نه لری، خصوصاً چه دامریکه ،او برطانیه په «رحم اوکرم» او ددوئ په سهاره او اسره ددوئ قیام دې داپه حقیقت کښې دبل آیت مصداق دې لکه په سورة آل عمران کښې دی ﴿ضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ أَيْنَ مَا ثُقِفُوا إِلَّا بِحَبْلٍ مِّنَ اللَّهِ وَحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ﴾ دلته له

حبل من الله نه دا مراد دی چه دوئ به داسلامی حکومت زیر اثر وی ذمی وی یامعاهد وی او ((حبل من الناس)) نه مراد دغیر مسلم حکومت په پُشت پناهی کښې ددوئ وجود دې.

باقي ديهودوفقر اوغربت نو مراد ترینه باطنی فقراوحرص دنفس دې لکه مخکښې ذکر شواوتفسیرماجدی کښې دی چه دیهودو سیاسی محکومی اوذلت خوخیرا (یعنی دا خو هر حقیقت شناس ته معلوم دې) لیکن ددوئ دمفلسئ اوتنگدستی په باره کښې ممکنه ده چه چاته حيرت وشی اوسوال وکړی چه دوئ خوپه تموّل او مالداری کښې ضرب المثل دی. نوځرنگه تنگدست اومفلسان دی، **جواب** دادې چه دا محض دهوکه اومغالطه ده. دولت اومالداری دیهودو په اکابرو پورې محدوده ده (یعنی ددوئ نظام سرمایه دارانه نظام دې) اوپه هغې کښې عام خلق مفلس اوخواروی. اوپه دولت باندې چند افراد قابض وی اوعوام دیهودو ددنیا مفلس ترین خلق دی. اودا دیهودومحققینوخپل تحقیق اواقراردې لکه دوئ په خپل کتاب ((**جیوش انسائیکلوپیډیا**)) صفحه ۱۵۱ ج ۱۰ کښې لیکلی دی (عوام یہود دوسرے قوموں سے کہیں زیادہ غریب ہیں).

﴿وَبَآءُو﴾ دا په معنی د ((استوجبوا، استحقو)) سره دې یعنی حقدار شو دغضب دالله ﷻ

﴿يَكْفُرُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ﴾ د آيات دالله نه مراد يا معجزات دموسی ﷺ دی، یا تورات. یا بعض آیاتونه دتورات دی چه په هغې کښې بیان دصفاتو دنبی کریم ﷺ ؤو یا دتوحیدؤو او درجمؤ.

﴿بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ﴾ دا حال مؤکده دې ځکه قتل د انبیاؤ نوی مگرپه ناحقه سره وی اوذکر ددې لپاره د اظهار دمزید شناعت اوقباحت شویدې، اویا ((بغيرالحق عندهم)) مراد دې، یعنی قتل د انبیاؤ شرعاً ناحق ؤو خوعندهم، هم ناحق ؤو.

﴿ذَٰلِكَ بِمَا عَصَواْ﴾ (ذالك) کښې اشاره ده قتل دانبیاؤ ته او ((با)) سببیه ده. یعنی دقتل کولو دانبیاؤ لپاره سبب عصیان اونافرمانی وی، ځکه چه یوگناه دبلې سختې گناه لپاره سبب او ذريعه جوړیږی، لکه چه یوه ادنی نیکی داعلیٰ نیکئ لپاره ذريعه جوړیږی، او دیوې نیکئ په ذریعه سره دبلې نیکئ توفیق ملاویږی.

﴿وَكَانُوا يَعْتَدُونَ﴾ په «كانوا يكفرون» او «كانوا يعتدون» كښې استمرار ته اشاره ده يعني دوئ په كفر او اعتدا باندې مستمرؤو، كان چه په مضارع داخل شي نو د استمرار فائده كوي

| إِنَّ الَّذِينَ | آمَنُوا | وَالَّذِينَ | هَادُوا | وَالنَّصَارَى | وَالصَّابِئِينَ | مَنْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بېشکه هغه کسان | ( ) چې ايمان | ئې راوړې وي | اوهغه کسان چې | يهوديان دي | اونصارى دي | اوصائبين هرچاچې |

| آمَنَ | بِاللَّهِ | وَالْيَوْمِ الْآخِرِ | وَعَمِلَ صَالِحًا | فَلَهُمْ | أَجْرُهُمْ | عِنْدَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ايمان راوړو | لدوئ نه په الله | اوپه ورځ دآخرت باندې | اوعمل كوي نيك | نودوئ لره | ثواب دعمل ددوئ | دې به نيز د |

| رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ۝ |
|---|
| رب ددوئ او نه به وي هيڅ ويره پدوئ باندې اونه به دوئ غمژن كيږي |

﴿إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ هَادُوا﴾ دا تتمه د نوع اول د بني اسرائيلو ده، پنځه انواع دبني اسرائيلو چه بيانيږي، نو دهري نوع تتمه هم بيانيږي.

اومقصود دادې چه الله ﷻ دچا د ذات سره عداوت يامحبت نشته بلكه دارومدار ايمان اوعمل صالح دې او دارنگه پدې سره دفع دتوهم كيږي اوهغه دا چه كله د يهودو حال په ماقبل آياتونو كښې بيان شو، نوتوهم كيدې شو چه هركله پدوئ باندې ضرب د ذلت وشو اومستحق دغضب الهي شو، نو ددوئ توبه، به هم نه قبليږي، نو پدې آيت كښې ئې جواب ذكر شو.

**تركيب**: ۱- «الذين آمنوا» سره له خپلو معطوفاتو نه اسم د «إنَّ» دې، او «من آمن — الآية» ترينه بدل واقع شوې دې.

﴿فَلَهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ﴾ خبر د «ان» دې، معنى داده چه مؤمنان، يهوديان، نصارى، صابئين. يعنى چه چا ايمان راوړې دې اوعمل صالح ئې كړيدې نو ددوئ لپاره اجر ددوئ دې

**تركيب** ۲- «من آمن» شرط دې «فلهم اجرهم» بې جزا شوه، دا مجموعه خبر د «انّ» دې په حذف دعائد سره چه «منهم» دې.

**سوال** «الذين آمنو» لره «من آمن» ثابتول تحصيل دحاصل دې؟.

**جواب** ۱- بعضو ويلي دي چه د «من آمن» نه مراد ايمان نفاقي اولساني دې، يعنى

---

۱- تتمه دنوع اول

منافقین او یهود . نصاری وغیرهم چه ایمان راوړی نو قبلیږی

**جواب** ۲ حضرت شیخ رحمه الله فرمایلی دی چه «الذین آمنوا» لقب د امت محمدی ﷺ دې او «الذین هادو» لقب دامت موسوی دې او «هادو والنصاری» لقب دامت دعیسی علیه السلام دی او «والصابئین» لقب د امت د ابراهیم علیه السلام دې. ځکه په **تفسیردصابئینوکښې ډیر اقوال دی.** مشهورقول پکښې دادې چه مراد د دوئ نه عابدین دکواکب دی. او دا په دور دحضرت ابراهیم علیه السلام کښې ؤو. نو دآیت مطلب دادې چه د اجر اوثواب او دتقرب الی الله دارومدار په القابُ نه دې. بلکه په حقیقت دایمان اوعمل صالح باندې دې. او پدوئ کښې دیهودو دهغه زغم رد هم دې چه دوئ ویل چه مونږ اولاد دانبیاؤو یو. نومونږته به عذاب نشی راکولې. او جنت زمونږلپاره دې .

﴿مَنْ ءَامَنَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْآخِرِ﴾ په ایمان شرعی کښې ډیرامورد ی لکه په حدیث جبرئیل علیه السلام کښې دی «ان تومن بالله وملائکته وکتبه ـ الحدیث» . نودلته په ذکر د «بالله والیوم الاخر» باندې اکتفأ یاپدې وجه ده چه پدې کښې ذکرد (مبدأ) او (منتهی) ؤشو. نوباقی پدې کښې مندرج دی، یا ایمان بالله تعبیردې د ایمان شرعی نه لکه په سورة حجرات رکوع ۲ کښې ﴿إِنَّمَا ٱلْمُؤْمِنُونَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ﴾ دې ، اوپه ذکر د «والیوم الاخر» کښې اشاره ده دیته چه ایمان بالیوم الاخر هغه معتبر او مقبول دې چه مطابق دې داخبار دقرآن اوحدیث سره، اوندې معتبراومقبول هغه چه یهودو دخپل خواهش مطابق تصورکړیدې چه ﴿لَن يَدْخُلَ ٱلْجَنَّةَ إِلَّا مَن كَانَ هُودًا أَوْ نَصَٰرَىٰ﴾ یا ﴿لَن تَمَسَّنَا ٱلنَّارُ إِلَّآ أَيَّامًا مَّعْدُودَٰتٍ﴾ وغیرذالك.

﴿وَٱلَّذِينَ هَادُوا۟﴾ د هادو دوه معانی دی، یو توبه کول لکه «هُدنا» په سورت اعراف کښې په معنی د «تُبنا» سره دې اوبله معنی ئی یهودیت اختیارول دی، او پدیکښې نسبت نیکه د دوئ ته شویدې چه دهغه نوم (یهوذا) ؤو. اوبنی اسرائیل خو اګر چه دولس خاندانه ؤو خو نور نسلونه اکثرختم شوی ؤو. اواکثرنسل دیهوذا پاتې ؤو نوځکه ده ته نسبت کیږی.

﴿وَٱلنَّصَٰرَىٰ﴾ دا جمع دنصرانی ده اوهغه منسوب دې نصران ته او«یاء» پکښې دنسبت لپاره ده لکه رومی وغیره.

اوبعضوویلی دی چه نصاری جمع د«نصری» ده لکه «مهری مهاری»، اونصاری نوم دې

داصحابودعیسی ﷺ خکه چه دوئ نصرت کړې ؤو دهغه، او چاویلی دی چه نصرانی منسوب دې نصران یا ناصره ته اوهغه نوم دیوکلی دې په فلسطین کښې چه دبیت المقدس نه په شمال جانب تقریباً اویا ۷۰ میله لرې دې، اوحضرت عیسی ﷺ چه په بیت اللحم کښې پیداشو نوموړئی هلته بُوتلو.

﴿وَالصَّابِئِينَ﴾ دصبأ نه مأخوذ دې په معنی دمائل کیدلوسره اوصابی په عرف کښې هغه چاته ویلې شی چه دیو دین نه بل دین ته لاړشی، چاویلی دی چه دا فرقه ده، دیهودو نه، چا ویلی دی چه یوه فرقه ده، دنصاری نه، چاویلی دی عابدین دسبع سیّاراتُ دی، یاعابدین دثوابتو دی، نور متعدداقوال هم ذکر شوی دی.

| خُذُوا مَآ | الطُّورَ ط | فَوْقَكُمُ | وَرَفَعْنَا | مِيثَاقَكُمْ | أَخَذْنَا | وَإِذْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اونیسئ هغه کتاب | طورغر. | کرومونږستاسودپاسهٔ | اوپورتهٔ | ستاسونه | پخه وعده | اوکله (۱) چې مونږ واخسته |

| تَتَّقُونَ ۝ | لَعَلَّكُمْ | فِيهِ | مَا | وَاذْكُرُوا | بِقُوَّةٍ | آتَيْنَاكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې تاسوبچ شئ دعذاب نه | دپاره ددې | کښې دی | چې په هغې | اویادوئ هغه احکام | په کلکه | چې درکړېدې مونږتاسوتهٔ |

﴿ وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ ﴾ دا بیان دنوع ثانی دې، پدې کښې دموجوده بنی اسرائیلو د آباؤ اجدادو د درې ۳ خباثتونه ذکرکیږی، دا بیان دخباثت اول دې او دمیثاق نه مراد په تورات باندې دعمل کولووعده مرادده.

﴿وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّورَ﴾ حضرت موسی ﷺ چه کله دکوه طورنه راغې اوتورات ئې بنی اسرائیلوته راوړو نودوئ وویل چه دا احکامات سخت دی اوترڅوچه زمونږسره الله ﷻ خبرې نه وی کړې نومونږ دانه منو اوهرکله چه الله تعالی ددوئ سره کلام وکړو نودوئ بیاوویل چه

﴿لَن نُّؤْمِنَ لَكَ حَتَّىٰ نَرَى اللَّهَ جَهْرَةً﴾ نو پدوئ صاعقه نازله شوه او دوئ هلاك شو او بیا په دعا دموسی ﷺ سره ژوندی شو مگر بیاهم منلوته تیارنه ؤو، نو الله ﷻ په دوئ باندې کوه طور اوچت کړو اوونی فرمائل چه که دا احکامات نه منئ نو دا غربه په تاسو وغورزیږی او هلاك به شئ نودوئ دعمل کولوعهدوکړو.

1 - نوع ثانی. دبنی اسرائیلو د آباؤاجداد درې خباثتونو کښې اول خباثت.

اوس یو **سوال** راځي چه دا خو اکراه اوجبرشو حالانکه بل ځائ کښې الله تعالی فرمایی چه ((لا اکراه فی الدین)) یعنې په دین کښې زور نشته.

**جواب** دادې چه اجبار په عمل په فروعو باندی جائز دې. ابتدأ په قبول داسلام باندې مجبور کول جائزندی، البته دقبول داسلام نه بعدکه څوك داسلام ددستورحیات نه بغاوت کوی نوهغه به مجبورکولې شی او دقوت اوطاقت په ذریعه به هغه دبغاوت نه منع کولې شی.

﴿خُذُوا مَآ ءَاتَيۡنَٰكُم﴾ دلته ((قلنا)) مقدر دې، د ((خذوا)) نه مراد یا په نبی لاس سره نیول مراد دی او دا دکتاب ادب دې او یامراد ترینه عمل کول دی، یعنی عمل کوئ په دې کتاب.

او﴿بِقُوَّةٍ﴾ نه کوشش یا اخلاص مراد دې، اویاسختی سره پابندی مراد ده

﴿وَٱذۡكُرُوا مَا فِيهِ﴾ مراد تینه دکتاب درس او تعلیم تعلم مراد دې او دارنګه غور او سوچ فکرپه معانیو دکتاب کښې هم مراد کیدې شی.

﴿لَعَلَّكُمۡ تَتَّقُونَ﴾ مراد ددینه متقی جوړیدل دی، یا دعذاب دنیوی او اُخروی نه بچ کیدل مراد دی، نومعلومه شوه چه دکتاب الله علم حاصلولوسره او په هغې کښې غور او سوچ کولو سره تقوی حاصلیږی او دعذاب الهی نه بچ کیدل کیدې شی.

| ثُمَّ تَوَلَّيۡتُم مِّنۢ بَعۡدِ ذَٰلِكَ ۖ فَلَوۡلَا فَضۡلُ ٱللَّهِ عَلَيۡكُمۡ وَرَحۡمَتُهُۥ لَكُنتُم |
|---|
| بیامخ واړولوتاسوروستوددې لوظ نه ، نوکه نهٔ وې فضل دالله پهٔ تاسوباندې اورحمت دهغه نوخامخابهٔ وئ تاسو |
| مِّنَ ٱلۡخَٰسِرِينَ ۝ |
| د زیان مندو نهٔ. |

﴿ثُمَّ تَوَلَّيۡتُم﴾ دا بیان دخباثت ددوئ دې چه اعراض دې دپوره کولود وعدې نه.

﴿فَلَوۡلَا فَضۡلُ ٱللَّهِ عَلَيۡكُمۡ﴾ د وعدې ماتولونه بعدالله تعالی په تاسو باندې فوراً عذاب نازل نه کړو بلکه مزید مهلت ئې درکړو نو دا دالله ﷻ فضل اورحمت ؤو. اوکه دانه وې نو تاسو به ټول خاسرین وئ یعنی هلاك شوی به وئ.

| وَلَقَدْ | عَلِمْتُمُ | الَّذِينَ | اعْتَدَوْا | مِنْكُمْ | فِي السَّبْتِ | فَقُلْنَا |
|---|---|---|---|---|---|---|

اویه تحقیق سره معلوم دي تاسوته حال دهغه چاچې زیاتې ئې کړې وؤستاسونه په ورځ دخالی کښې نواووئیل مونږ

| لَهُمْ | كُونُوا | قِرَدَةً | خَاسِئِينَ ۞ | فَجَعَلْنَاهَا | نَكَالًا | لِمَا | بَيْنَ | يَدَيْهَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

هغوئ ته چې شئ شادوګان ذلیله　نواوګرزوله مونږ داقصه دعبرت دهغه چادپاره چې حاضروؤهلته

وَمَا خَلْفَهَا وَ مَوْعِظَةً لِلْمُتَّقِينَ ۞

اوهغه چالره چې روستو وؤ اووعظ«زجر»دپاره دمتقیانو«ددې امت»

﴿وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ الَّذِينَ اعْتَدَوْا مِنكُمْ﴾ دا نمونه دخاسر ینو ده. یوم السبت «د خالی ورځ» دیهودو لپاره متبرکه اومقدسه ورځ وه. لکه دمسلمانانولپاره ورځ دجمعې ده، نو دوئ د خالی په ورځ دښکارنه منع کړې شوی ؤو. مګر دوئ منع نه شو لکه تفصیلی واقعه په سورة اعراف کښې ذکر ده. نوالله تعالی دوئ ته عبرتناکه سزا ورکړه اوددوئ نه ئې شادوګان جوړکړل او د درې ورځونه بعدئې بیاهلاك کړل، او دا واقعه دحضرت داؤد ﷺ په زمانه کښې پیش شوې وه، او دغه بنی اسرائیل دسمندر په ساحل «ایله» نوم کلی کښې اوسیدل چه هغې ته عقبه داؤد ویلې شی، او د«اعتداء» نه مراد حیله کول دی، دښکار دماهیانو لپاره، لکه مفسرینو لیکلی دی چه دوئ به د دریاب په غاړه په ورځ دجمعې داسې کندې اوځایونه جوړکړل چه ماهیان به په کښې ونختل او بیابه ئې د اتوار په ورځ را اخستل اوکه چابه ورته وویل چه دا مه کوئ نو دوئ به ویل چه مونږ خو دهفتی په ورځ ښکارنه کوؤ

او د ﴿فِي السَّبْتِ﴾ نه مراد «فی یوم السبت» دې یا «فی حکم یوم السبت».

﴿كُونُوا قِرَدَةً﴾ دا امر دتکوین لپاره دې او «قردة» شادوګانو«بیزوګان» ته ویلې شی، او ابن کثیر رحمه الله فرمائی چه دوئ ته دا قسم سزا پدې وجه ورکړې شوه چه جزأ دجنس دعمل نه وی. یعنی چه څرنګه عمل وی نو دغسی جزأ وی، نو شادوګان «بیزوګان» په حیواناتوکښې د انسان سره په شکل کښې مشابهت لری، اوپه حقیقت کښې انسانان نه دی، نو دغه شان دحیلی والا عمل مشابهت د حق سره وی اوحق نه وی، او دارنګه شادوګان په حیواناتوکښې ډیر مشهور دی په حیله کولو سره، نوپه دې مناسبت سره دوئ ته دغه سزا ورکړې شوه

﴿فَجَعَلْنَٰهَا نَكَٰلًا﴾ «ها» ضمير راجع دي عقوبت (سزا) ته یا قصې ته اونکال هغه عذاب ته ویلې شي چه منع کړي نورخلق دارتکاب ددغه عمل نه.

﴿لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهَا وَمَا خَلْفَهَا﴾ «بين يديها» نه مراد حاضرين دي دغه عقوبت ته څکه چه کوم شي په مينځ دلاسونوکښې وي نوهغه حاضروي اود «خلفها» نه غائبين مراد دي يا د «بين يديها» نه مراد خواو شا نزدې کلي دي. او د «ماخلفها» نه مراد قرى بعيده يعنې لرې کلي دي. يا موجودين پدغه زمانه کښې او بعد زمانه کښې راتلونکي مراددي

﴿لِّلْمُتَّقِينَ﴾ نه امت محمديه ﷺ مراد دي لکه ابن کثير دحضرت ابوهريرة رضي الله عنه نه روايت کړيدی «لاترتکبوا ما ارتکبت اليهود فتستحلوا محارم الله بادنیٰ الحيل»

| |
|---|
| وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِۦٓ إِنَّ ٱللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تَذْبَحُوا۟ بَقَرَةً ۖ قَالُوٓا۟ |
| اوکله[۱] چې اووئيل موسى خپل قوم ته بيشکه الله امرکوي تاسوته چې ذبح کړئ يو غوا. دوئ اووئيل |
| أَتَتَّخِذُنَا هُزُوًا ۖ قَالَ أَعُوذُ بِٱللَّهِ أَنْ أَكُونَ مِنَ ٱلْجَٰهِلِينَ ۝ |
| چې آيا ته مونږ سره ټوقې کوې ، هغه اووئيل پناه نيسم په الله سره لدې نه چې شم څه دجاهلانو نه |

﴿وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِۦٓ إِنَّ ٱللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تَذْبَحُوا۟ بَقَرَةً﴾ دا بيان ددويم خباثت دې يعنې ټال مټول په حکم پوره کولو دالله ﷻ کښې چه هغه ذبح دبقرې وه، **پديکښې دمفسرينو درې قوله دي** (۱)- دا سره دمابعدنه چه «واذقتلتم نفساً» دې يوه قصه ده اوهغه دقصې اوله حصه ده اومؤخره ذکرشويده، دلته دقصې اخيره حصه ده او مقدمه ذکرشويده اوقصه غير مرتبّه ذکرشوه، يولدې وجه نه چه په قرآن پاك کښې عموماً دقصو دترتيب رعايت نه وي څکه قصې دقرآن پاك دعبرت حاصلولوليپاره ذکرکيږي اوقصه برائ قصه نه وي. اوبل لدې وجه نه غيرمرتبه شويده چه اشاره شي ددوئ دوه خباثتونوته، چه يوخباثت ټال مټول کول ؤو په ذبح دبقرې کښې اوبل خباثت قتل دنفس وو. اوکه قصه مرتبه ذکرشوې وې نو دادواړوخباثتونو نه مستقل طورسره اشاره نه راتله. (۲)- دحضرت شيخ الشيوخ مولاناحسين على رحمه الله رائې «لکه چه دمدارك نه هم معلوميږي داده» چه دا دوه مستقلې واقعې دي. يوه واقعه د ذبح

۱- بيان ددويم خباثت.

دبقرې ده او دا لپاره دتوهين د معبود ددوئ ده، يعني پديکې تنبيه ده چه داسې حيوان چه د ذبح لپاره وی او دسقی (اوبه خور) اويوې لپاره وی نوهغه معبود نشی کيدې، اوبله واقعه دقتل دنفس مستقله واقعه ده اوتعلق ئی نشته دې دذبح دبقرې سره، اوپدې باندې يوه قرينه داده چه دلته په ((اذ)) سره مستقله واقعه ذکر کيږی لکه دا ټول واقعات چه په ((اذ)) سره ذکر دی هره يوه مستقله واقعه ده. دويمه قرينه داده چه تقديم ددې واقعې د ذبح نه معلوميږی چه دا مستقله واقعه ده، اوبل دليل داهم دې کچرې ذبح دبقرې دَ قاتل دمعلوملولپاره شی نو پدې سره خوبه دبنی اسرائيلو په زړونوکښې دبقرې تعظيم نور هم زيات شی حالانکه مفسرينو حکمت د ذبح دبقرې، لپاره دتوهين دمعبود ويلې دې اومفسرينو چه ددې لپاره کوم روايات نقل کړی دی اوهغه دا چه ذبح دبقرې د معلومولو د قاتل لپاره وه، نو ددغه رواياتو متعلق ابن کثيرليکلی دی چه : ((الظاهر انهاماخوة من کتب بنی اسرائيل وهی مما يجوز نقلهاولکن لاتُصدّق ولاتکذّب فلهذا لايعتمدعليهاالاماوافق الحق عندناوالله اعلم))

**سوال** کيږی چه د وروسته عبارت ((فقلنااضربوه ببعضها)) نه معلوميږی چه په بقرې سره ضرب دمقتول وشو نوهغه جوندې شو ، **جواب** پديکښ دا تصريح نشته چه ضمير بقره نه راجع دې، لکه توجيه به وروستو ذکرشی انشأ الله تعالی.

(۳) - تفسير قرطبی اوصاحب دروح المعانی يوه توجيه دا ذکرکړيده چه امر د ذبح اولاً شويدې لپاره دتوهين دمعبود ددوئ اوکله چه بقره حاصله شوه اوذبح شوه نو واقعه دقتل واقع شوه نو وويلی شو چه ((فقلنا اضربوه ببعضها — الايه)) ((بقره)) په اصل لغت کښې شلولو د زمکې ته وائی اوغوايه هم په کروندې کولوسره زمکه شلوی، اکثرو مفسرينوويلی دی چه بقرةٌ نوم د مؤنث (غوا) دې او (ثور) نوم دمذکر(غوايه) دې، اوبعضې ويلی دی چه بقره اسم جنس دې اودلته ترينه مراد مذکر يعنی غوايه دې په قرينه داوصافو سره.

﴿ أَتَتَّخِذُنَا هُزُوًا ﴾ بقره دبنی اسرائيلوپه نزد مقدس حيوان ؤو نوځکه دوئ تعجب وکړو د ذبح ددې او دائی خيال ؤکړو چه موسی ﷺ به زمونږسره ټوقې کوی.

﴿أَعُوذُ بِاللَّهِ أَنْ أَكُونَ مِنَ الْجَاهِلِينَ﴾ دا رد دقول ددوئ دې په ډير اَوْ کَدْ وجهې سره چه (۱) تعوذ بالله دې او(۲) ان اکون دې (۳) الجاهلين دې، او جهل کول دا يوفعل دې په خلاف د طريقې لائق دکولو سره، نو دلته اطلاق د اسم دسبب دې چه جهل دې په مسبب باندې چه

استهزأ ده، نو تعوذ د سبب نه مستلزم وی تعوذ لره د مسبب نه.

| |
|---|
| قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَّنَا مَا هِيَ ؕ قَالَ |
| دوئ اووئيل چې دعا اوغواړه مونږ دپاره دخپل رب نه چې بيان كړي مونږ ته چې څۀ عمردې دغوا، اووئيل موسى |
| إِنَّهُ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا فَارِضٌ وَّ لَا بِكْرٌ ؕ عَوَانٌۢ بَيْنَ ذٰلِكَ ؕ |
| بيشكه الله فرمائ چې داداسې غواده چې نده ډيره زړه (بوډۍ) اونۀ خالص څوانۀ، ميانه حاله ده په مينځ ددې كښې |
| فَافْعَلُوْا مَا تُؤْمَرُوْنَ ﴿۶۸﴾ قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ |
| نو اوكړئ هغه كار چې تاسوتۀ ئې حكم كيدېشي . دوئ اووئيل دعا اوغواړه مونږ لره دخپل رب نه چې بيانكړی |
| لَّنَا مَا لَوْنُهَا ؕ قَالَ إِنَّهُ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ صَفْرَآءُ ۙ |
| مونږ تۀ چې څه دې رنګ ددې غوا ، وئيل (موسى) چې بيشكه الله فرمائ چې بيشكه داغوا ده زيړه |
| فَاقِعٌ لَّوْنُهَا تَسُرُّ النّٰظِرِيْنَ ﴿۶۹﴾ قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ |
| ښۀ تيزدې رنګ (زيړوالئ) ددې خوشحالوي كتونكولره اووئيل دوئ دعااوغواړه مونږ لره دخپل رب نه |
| يُبَيِّنْ لَّنَا مَا هِيَ ۙ إِنَّ الْبَقَرَ تَشٰبَهَ عَلَيْنَا ؕ وَ إِنَّآ |
| چې بيان كړي مونږ لره چې څۀ دې صفت (دعمل) ددې غوا بيشكه داغواګانې وده شوي ده په مونږ باندې، او بيشكه مونږ |
| إِنْ شَآءَ اللّٰهُ لَمُهْتَدُوْنَ ﴿۷۰﴾ قَالَ إِنَّهُ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ |
| انشاءالله ضروربالضرورلارموندنكي يوخپل مقصدتۀ اووئيل موسى بيشكه الله فرمائ چې دا داسې غواده |
| لَّا ذَلُوْلٌ تُثِيْرُ الْاَرْضَ وَلَا تَسْقِي الْحَرْثَ ۚ مُسَلَّمَةٌ لَّا شِيَةَ فِيْهَا ؕ |
| چې نۀ ده جوتې چې اړوی زمكې اونۀ ده اَرتې چې اوبۀ كوي فصل ، روغه اوبې عيبه ده نښته هيڅ داغ پدې كښې |
| قَالُوا الْـٰٔنَ جِئْتَ بِالْحَقِّ ؕ فَذَبَحُوْهَا وَمَا كَادُوْا يَفْعَلُوْنَ ﴿۷۱﴾ |
| او وئيل دوئ چې اوس دې راوړو بيان پوره ، نو ذبح ئې كړه اونۀ وو دوئ نزدې چې داكار ئې كړې وې |

﴿ قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَّنَا مَا هِيَ ﴾ دا بيان دخباثت ددوئ دې، يعنى دحكم الهى په پوره كولو كښې تال متال ، ليت او لعل كول، د ابن عباس رضي الله عنهما نه مرفوعاً روايت دې چه دوئ ته امرشوې ؤو د ذبح دمطلق بقرې نو كه دوئ هرقسم بقره ذبح كړې وې نو كافى به وې، ليكن دوئ په خپل ځان سختى وكړه نو الله تعالى پدوئ باندې سختى وكړه، په ((ماهى)) سره تپوس

د جنس او ماهيت مختصه نه کيږي. ليکن دلته مراد تپوس دعمر دي، ځکه ماهيت اوجنس دبقرې دوئ ته معلوم ؤو.

﴿ لَا فَارِضٌ ﴾ بوډئ، ډير عمروالا، ځکه دا مشتق دې د ((فرض)) نه او فرض قطع ته ويلې شي او دا هم دخپل عمرنه قطع شوې وي يا ډيرکلونه ئې قطع کړي وي ﴿ بِكْرٌ ﴾ کچه خوانه. نوې ځوانه ((عوان)) درميانه عمروالا ﴿بَيْنَ ذَٰلِكَ﴾ دا تاکيد دعوانٌ دي

﴿فَافْعَلُوا مَا تُؤْمَرُونَ﴾ دا تجديد اوتکرار د امر دتاکيد لپاره دې او د ((ماتؤمرون)) نه مراد ذبح دبقره ده. او((ما)) موصوله ده يامصدريه ده ((اى فافعلوا امركم، اى مأمورَ كم))

﴿قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّن لَّنَا مَا لَوْنُهَا﴾ کله چه د بقرې دعمرمتعلق ددوئ اطمينان حاصل شو نواوس د رنګ متعلق سوال کوي. ((صفراء)) زيړه ده، حسن بصری اوسعيدبن جبير ﷺ نه روايت دې چه ښکرې اوسوې ئې زيړې وې ((فاقع)) فاقع خالص زيړته وائی او دا صفت راځی دصفرا او دَ صفر لپاره، لکه حالكٌ وصف راځي داسود لپاره، ويلی شی اصفر فاقعٌ اسود حالكٌ او فاقع صفت دبقرې دې اوتذکيرئې په اعتبارد مسند اليه (فاعل) سره دې.

﴿تَسُرُّ النَّاظِرِينَ﴾ دا هم صفت دبقرې دې او دسرور نه مراد لذت اوخوند حاصلول دی يعنې داسې خائسته ده چه په کتلوسره ورته سرور اولذّت حاصليږي. او((فاقع)) مفرد ذکرشو نو په ديکښې دوام ته اشاره ده او ((تسرُّ)) په صيغه دفعل سره ذکرشو نوپديکښې تجددته اشاره ده چه دا سرور، نوې نوې پيداکيږي. ((وفى القرطبى قال على ﷺ من لبس نعلىً جلداصفرقلّ همه لان الله تعالى يقول صفراء فاقع لونها تسرالنظرين حكاهُ عنه الثعلبى ونهى ابن الزبير ومحمد بن ابى كثير عن لباس النعال السود لانها تُهِمُّ ـــ آه ))

﴿قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ﴾ دا دويم سوال دصفت دعمل متعلق دې په قرينه دجواب سره.

﴿إِنَّ الْبَقَرَ تَشَابَهَ﴾ دابيان د باعث دسوال دې يعنی باعث دسوال، په مونږباندې تشابه ده ځکه ((عوانٌ اوصفراً)) خو ډيرې دی نو زمونږ لپاره تعين ګکار دې او قرطبی ويلی دی چه په مخونو دغواپانوکښې تشابه دَ يوبل سره ډيروی اولدې وجه نه په حديث دحذيفه بن يمان ﷺ

کښې دفتنو تشبيه يې د وجوهو دبقرې سره ورکړيده.

((عن حذيفة عن النبی ﷺ انه ذکرفِتناً کقطع اليل تأتی کوجوه البقريريداهايشبه بعضهابعضا ووجوه البقرتتشابه ولذالك قالت بنواسرائيل ان البقرتشبه علينا)).

﴿وَإِنَّآ إِن شَآءَ ٱللَّهُ لَمُهۡتَدُونَ﴾ ((لمهتدون)) د ((انّا)) سره متعلق دې او((إنّا)) سره د ((لمهتدون)) نه جواب د شرط دې چه انشأ الله دې اومفعول د ان شأ الله محذوف دې ((ای ان شأ الله هدايتنا))، اوبعضې لکه مبر دوائی چه جواب محذوف دې او دا مذکورپه هغې دال دې او مراد د((مهتدون)) نه رسيدل دی موندلو دهغه غوا ته چه د ذبح امرئی شويدې يا رسيدل دی حکمت ددې ذبح کولوته او د دې نه معلوميږی چه په مخکښې تيرشوی جوابونو ورکولوسره ددوئ ضد اوعنادکم شوې ؤو، اوصلاحيت دقبول حق پکښې پيداشوې ؤو، نومعلومه شوه چه کله کله دچا د اشکالاتو ازاله کول سبب دهدايت دهغه گرزيدې شی، اوپه حديث کښې دی کچرې دوئ ان شأ الله نوې ويلې نو دوئ به هدايت نوې موندلې بقرې ته ابداً.

﴿قَالَ إِنَّهُۥ يَقُولُ﴾ داد دې آخری سوال جواب دې ﴿ذَلُولٌ﴾ جوتی ته وائی ((تثيرالارض)) کښې صفت مفسره دې ﴿وَلَا تَسۡقِى ٱلۡحَرۡثَ﴾ يعنی ارتی نه ده چه په ارټ چلولوسره فصلونو ته اوبه ورکوی ﴿مُسَلَّمَةٌ﴾ بی عيبه ده ﴿لَّا شِيَةَ فِيهَا﴾ مخالف رنگ او داغ په کښې نشته

﴿جِئۡتَ بِٱلۡحَقِّ﴾ بعضوويلی دی چه (الحق) مقابل دباطل دې نو ماقبل ته يې باطل ويلی دی او دا کفر دې ليکن دا قول ضعيف دې او صحيح خبره دا ده چه د ((باالحق)) نه مراد بالتفصيل الحق دې يعنی اوس دې پوره تفصيل مونږته وکړو ﴿فَذَبَحُوهَا﴾ دا متفرع دې په مقدر باندې ((ای طلبوها واشتروها، فذبحوها)) . **په رواياتوکښې ذکردی** چه دغه مخصوصه بقره صرف دَ يو کس سره وه چه دهغه پلار وفات شوې ؤو او دې دخپلې مور ډيرخدمتگار او تابعدار ؤو ، نوالله ﷻ ده ته ددغه نيك عمل صله په دنياکښې داسې ورکړه چه دغه غوا په دومره ډيرقيمت خرڅه شوه چه دهغې څرمن ئی ورته د روپونه ډکه کړه او ورئی کړه ورته. مزيد روايات په درمنثوراوتفسيرمظهری وغيره کښې دی خو دا اکثر اسرائيلات دی

﴿وَمَا كَادُواْ يَفۡعَلُونَ﴾ د ((يفعلون)) نه مراد فعل د ذبح دې او ((ماکادوا)) فعل منفيه دې

لکه دا اصح مذهب دي «كما في الكافية وغيرها»، يعنى قريب نه ؤو دوئ په زمانه ماضى كښې دوجه دكثرت دسوالاتو اوتفتيش نه چه ذبح ئى كړې وې خو اوس ئى ذبح كړه په توفيق دالله ﷻ سره.

| وَإِذْ قَتَلْتُمْ نَفْسًا فَادَّارَأْتُمْ فِيهَا ۖ وَاللَّهُ مُخْرِجٌ مَّا كُنتُمْ تَكْتُمُونَ ﴿٧٢﴾ |
|---|
| اوكله (١) چې قتل كړو تاسويو سړي نومختلف شوئ پۀ هغه كښې اوالله ظاهرولوهغه چې تاسوپټولو |
| فَقُلْنَا اضْرِبُوهُ بِبَعْضِهَا ۚ كَذَٰلِكَ يُحْيِي اللَّهُ الْمَوْتَىٰ وَيُرِيكُمْ |
| نواووئيل مونږاووهئ دې مړي لره په بعضې حصه ددې، دغسې ژوندي كوى الله مړي اوښائ تاسوته |
| آيَاتِهِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴿٧٣﴾ |
| نښې دقدرت خپل ددې دپاره چې غور اوكړئ |

﴿وَإِذْ قَتَلْتُمْ نَفْسًا﴾ دا ذكر د دريم خباثت ددوئ دې يعنى قتل دنفس او دا دقصې اوله حصه ده بنا په قول مشهورباندې، او ددويم قول مطابق دا مستقله واقعه ده **اوپه سبب دقتل** كښې دوه قوله مشهوردى : **اول** دا چه په بنى اسرائيلوكښې ديوسړى لوروه ډيره خائسته او دهغه وراره ترينه مطالبه دنكاح كړې وه اوده انكاروكړو. نو هغه وراره دا خپل تره قتل كړو، ددې تائيد ديوحديث نه راغلې دې . «اول فتنة بنى اسرائيل كانت فى النساء» (**مشكوة**).

**دويم** قول دادې چه يوكس په بنى اسرائيلوكښې مالدارؤو او وارث ئى صرف يو وراره وو نور څوك نه ؤو اوهغه فقيرؤو او دهغه جلدى وه چه دا تره مې زرمړشى اوزه ترينه ميراث قبض كړم، ليكن دهغه زندګى اوږده شوه، نوشيطان ورله وراره ته دا چل وخوده چه دا تره دې فلانى كلى سره نزدې قتل كړه اوته په هغوئ دقتل دعوه وكړه نو دهغوئ نه به ديت هم وصول كړې اوميراث به هم درته پاتې شى، نوده دغه شان كاروكړو اوپه كلى والو باندې يې دعوىٰ وكړه، نو بنى اسرائيل دقاتل دمعلومولوپاره حضرت موسى ؑ ته خواست وكړو اوموسى ؑ دعا وكړه نوالله ﷻ ورته اوفرمائل چه تاسو بقره ذبح كړئ اودهغې په عضودامړې ووهئ نو دې به جوندې شى اوخپل قاتل به ؤښائى، نو دوئ دغه كار وكړو ، نو مړې جوندې شو او خپل قاتل ئى وخودلو ، نوهغه قصاص كړې شواو ددغه وقت نه دا حكم جارى شوچه قاتل به

١ - دريم خباثت.

دميراث نه محروم وی.

مفسرینولیکلی دی چه په مابین دقتل دنفس او دذبح د بقرې کښې څلوېښت کاله ؤو نو چه دا دواړه یوه واقعه شي نوپه دې کښې دا اشکالات دی : (۱) دمیت لاش بی ګور او بی کفن طویله زمانه پاتی کیدل بې حرمتی ده اودقرین قیاس نه مخالف ده . (۲) دومره طویله زمانه بې جان جسم متعفن یعنی بدبویه نه کیدل اونه خرابیدل هم دقرین قیاس نه مخالف دی (۳) په دیکښې تعظیم دبقرې راځی چه ددوئ معبودؤو ،حالانکه حکمت په ذبح دبقرې کښې توهین دمعبود ددوئ ؤو ،اوبناپه قول ثانی باندې چه واقعه دقتل علیحده واقعه شي نودغه اشکالات هم نه راځی اوقرینه پرې هم شته دې: ۱- چه تقدیم دَ ذبح دې، او۲- چه دَ قتل دَ نفس په (اِذ) سره ذکر دې، او په (اِذ) سره مستقله واقعه ذکر کیږی (کما مرّ فی صفحه ۱۷۶) . او دقول مشهور مبنی هغه روایات دی چه دهغې متعلق ابن کثیروائی چه دا اسرائیلات دی ((لانصدق ولانکذب)) ، د قبیلې نه دی، اوبنا په قول ثالث باندې چه صاحب دروح المعانی اوقرطبی ذکر کړې دې چه اول بنی اسرائیلوته د ذبح دبقرې امرشوې ؤو اوبنی اسرائیلو په دیکښې ټال مټول کړو . اوکله چه دوئ بقره واخیسته نو واقعه دقتل هم پیښه شوه نو امر ورته وشو په ضرب سره نو بنأ په دې قول اول دوه اشکالاته نه راځی، نودریم اشکال واردیږی چه په دې کښې تعظیم دبقرې راځی. اوممکن دې جواب ددې اشکالاتونه پدیشان سره چه لاش طویله زمانه غیرمتعفن پاتې کیدل دا معجزه وه ، اوبې ګوراوبې کفن طویله زمانه پاتی کیدل کیدې شی چه دهغوئ شرع کښې جائز وی . اوجوندی کیدل دمړی په ضرب دعضو دبقرې دا هم معجزه ده او په معجزه لیدلو سره به ددوئ عقیده په رسالت دموسی ﷺ کلکه اومضبوطه شي، نوپه شك کښې به نه واقع کیږی اودبقرې تعظیم به ئی هم د زړه نه زائل شي ، ځکه چه کله ایمان په توحید او رسالت محکم شي نو شرك اوتعظیم دمعبود باطل زائل شي .

﴿فَادّٰرَءۡتُمۡ فِیۡهَا﴾ دا په اصل کښې ((تدارأتم)) ؤو نو تأ په دال سره بدله شوه او دال په دال کښې مدغم شو اوپه ابتدأ کښې همزه راوړې شوه نو ((اِدّٰرأ تم)) شو او دا مأخوذ د ((دَرأ)) نه دې په معنی ددفع سره یعنی هر یو دا کار دخپل زان نه دفع کولو او په بل باندې ئی اچوؤ مراد ترینه اختلاف دې .

﴿وَاللّٰهُ مُخۡرِجٌ﴾ په معنی دمُظهرسره دی ﴿فَقُلۡنَا اضۡرِبُوۡهُ بِبَعۡضِهَا﴾ ضمیر د ((اضربوه)) راجع

دې نفس ته او هغه مؤنث معنوی دې، نو ضمير د مذکورو ته هم راجع کيدې شي يا ضمر راجع دې مقتول ته او «بعضها» ضميربقره ته راجع دې اوپه تعين د «بعضها» کښې ډير اقوال دی څوك وائی چه لسان دې څوك وائی ذَنب (لکۍ) يا فخذوغيره اقوال دی، خو دتعين لپاره څه دليل نشته نو دوئ دغه ميّت په بعض اجزأ دبقرې سره وواهه نو هغه جوندې شو بعد لدې نه چه څلويښت کاله پروت ؤو، او صاحب د روح المعانی وغيره ويلی دی چا چه دا قول کړيدې چه دوئ په طلب د بقرې کښې څلويښت کاله تيرکړيدی نوهغوئ وائی چه دا ضرب په قبرباندې ؤو بعد د دفن نه او زمونږ دشيخ ﷫ دتوجيه په بنأ باندې دواړه ضميرونه نفس ته راجع دی، «معناه اضربوالنفس القتيلة ببعض نفسها کاليدونحوها» اوپدې توجيه کښې څه استبعاد نشته ځکه چه هرکله احيأ دميت په ضرب د اجزأ د بقرې سره کيدې شي نو په ضرب د اجزأ دقتيل سره هم کيدې شي اوددې په مقابل کښې صحيح او يقينی روايت هم نشته دې بلکه اسرائيلات دی. نو په دې احتمال باندې قول کول مستبعد نه دی.

﴿ كَذَٰلِكَ يُحْيِ ٱللَّهُ ٱلْمَوْتَىٰ ﴾ دا جمله معترضه ده چه ددې واقعې دعبرت د اظهار لپاره ذکر شوې ده، په «کذلك» کښې کاف لپاره دتشبيه دې او «ذلك» اشاره ده جوندی کولو ددغه قتيل ته نو دا مشبه به ده او «يحيی الله الموتی» مشبه دې. يعنی لکه څرنګه چه الله ﷻ قدرت لری په جوندی کولو ددغه يو نفس نو دغه شان قدرت لری په جوندی کولو دهر نفس.

**فائده**: پدې سورت کښې دوه وارې دبعث بعدالموت په دنيا کښې خلاف عادت، ذکر وشو يو وارې هغه چه بنی اسرائيل په کوه طور کښې مړه شو، او بيا په درخواست د موسی ﷺ سره جوندی شول چه دهغې ذکر په آيت ۵۲ کښې وشو، اوبل وارې دلته ذکرشو او فرق په مابين ددې دواړو کښې دادې چه په اول کښې موت عارضی غيرمؤجل ؤو او حيات اصلی ؤ او پدې کښې برعکس دې يعنی موت اصلی او جوندی کيدل عرضی او وقتی دی.

| ثُمَّ قَسَتْ قُلُوبُكُم مِّنۢ بَعْدِ ذَٰلِكَ فَهِيَ كَٱلْحِجَارَةِ أَوْ أَشَدُّ قَسْوَةً ۚ |
| --- |
| بيا سخت شو زړونه ستاسو روستو ددې نه پس دا زړونه ستاسو پشان دکاڼو سخت دي بلکه دکاڼو نه هم زيات سخت دي |
| وَإِنَّ مِنَ ٱلْحِجَارَةِ لَمَا يَتَفَجَّرُ مِنْهُ ٱلْأَنْهَٰرُ ۚ وَإِنَّ مِنْهَا لَمَا |
| ځکه چې بيشکه بعضې دکاڼو نه خامخا هغه دي چه بهيږي دهغې نه ولې او بيشکه بعضې دهغې نه هغه دي |

| يَشَّقَّقُ فَيَخْرُجُ مِنْهُ الْمَآءُ ؕ وَاِنَّ مِنْهَا لَمَا يَهْبِطُ مِنْ خَشْيَةِ اللّٰهِ ؕ |
|---|
| چې اوچوي نوراوزي دهغې نه اوبه ، اوبيشکه بعضې دهغې نه خامخاهغه دي چې رارغړی دوجې دَ ويرې دالله نه |
| وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ۝ |
| اونهٔ دې الله بې خبره دهغه عملونونهٔ چه تاسوئې کوئ |

﴿ثُمَّ قَسَتْ قُلُوبُكُم﴾ دا ((ثم)) لپاره د استبعاد دې ((ثم)) په څلورو معانيوکښې استعماليږی :(۱) استبعاديه. چه مابعد د (ثم) په نزد دعقل صحيح باندې محال وی، لکه پدې آيت کښې (۲) تراخي زمانی (۳) تراخي رتبی لکه ((ثم استوی الی السمآء)) (۴) تراخي ذکری لکه ((ثم قلناللملائکة اسجدوا)) (الاعراف)

﴿ أَوْ أَشَدُّ قَسْوَةً ﴾ په اوکښې متعدد اقوال دی : (۱) لپاره دشك دې اوشك راجع دې غير دالله ﷻ ته. (لاستحالته عليه تعالى) (۲) په معنى د واوسره دې . (۳) په معنى دبل سره دې (۴) د ابهام لپاره دې. (۵) د اباحت لپاره دې (۶) دتخيرلپاره دې (۷) دتنويع لپاره دې يعنې بعضې قلوب پشان دحجارۇ دی اوبعض دهغې نه هم زيات سخت دی او راجح دا احتمال ۷ او۳ دې په قرينه دمابعدسره چه ﴿وَإِنَّ مِنَ ٱلْحِجَارَةِ ـ الايه﴾ ځکه دا په منزله ددليل دې چه **کاڼړی په درې قسمه دی** : ۱- يوهغه کاڼړې چه ۈچوی اوډيرې اوبه ترينه راوزی لکه هغه کاڼړی چه موسیٰ ﷺ په عصاباندې وهلې ۈو او دولس چشمې ترينه بهيدلې وې . (۲) دويم هغه کاڼړې چه ۈچوی اولګې اوبه ترينه راوزی.(۳) دريم قسم هغه دې چه دالله دويرې نه وه غورزيږی، او د بنی اسرائيلوپه زړونوکښې دا مذکور هيڅ قسم اثرنه ۈو. نو دوئ زيات سخت شو دکاڼړونه اوکوم زړونه چه زيات سخت نه وی نوهغه مشابه وی يا د اول قسم کاڼړی سره يادويم سره يادريم سره او**ددې تشريح** بعضې مفسرينو داسی کړيده چه : اول ۱- قسم زړونه د انبياؤ دی چه دهغوئ فيضان ډيرزيات اوعام وی اودويم ۲- قسم زړونه داولياؤ او ابرارو اومتّقين دی چه ددوئ نه هم خلق مستفيدشی اودريم ۳- قسم زړونه عامة المؤمنين دی.

اوبعضې مفسرينو **داسې تشريح کړيده** چه هغه زړونه چه سخت نه وی نو دمواعظو دقرآن اوحديث نه متآثرشی . نو(۱) په سترګوکښې اوښکی راشی په کثرت سره نووبهيږی. اوبعضی (۲) سترګی صرف لوندې شی ۈنه بهيږی اوبعضی (۳) زړونه متأثرشی ګوياکښې زړه

وژاړی اوصورت د ژړاپه سترګوکښې راشی خولوندې نه شی، اوپه چاکښې چه دادرې واړه حالات پیدانه شی نو هغه اشد قسوة دې

(۱) عن ابن عمر رضی الله عنه ان رسول الله ﷺ قال لاتکثروالکلام بغیرذکرالله فان کثرة الکلام بغیرذکرالله قسوة القلب وان ابعدالناس من الله القلب القاسی (ترمذی).

۲- روی البزازعن انس رضی الله عنه مرفوعا اربع من الشقاء جمودالعین وقساوة القلب وطول الامل والحرص علی الدنیا. (ابن کثیر).

**ترجمه** : (۱) رسول لله ﷺ فرمایلی دی ډیرې خبرې مکوئ په غیر د ذکر دالله تعالی نه خکه ډیرې خبرې کول په غیر د ذکر دالله ﷻ نه سخت والې د زړه دې او ډیر لرې په انسانانوکښې دالله ﷻ نه سخت زړه والا وی.

**ترجمه** . (۲) څلورڅیزونه دبدبختی نښه ده (۱) وچوالې دسترګو. (۲) سخت والې دزړه (۳) اوږد امید کول. (۴) د دنیا حرص کول.

فائده　جماداتوته هم الله تعالی یوقسم شعور ورکړیدې چه هغې ته شعور بسیط ویلې شی او ددغه شعور په وجه جمادات دخوف ،خوشحالی ،محبت، بُغض وغیره اغراضو ادراک کولې شی، او سلام کول دکانړی په رسول الله ﷺ اوجړیدل د اسطوانه حنّانه اوخوزیدل دجبل احد وغیره بی شماره واقعات ددې شاهددی.

﴿وَمَا ٱللَّهُ بِغَٰفِلٍ عَمَّا تَعۡمَلُونَ﴾ دا وعیددې چه ستاسو د بدو اعمالونه الله ﷻ خبردې او سزا به درکړی

ددې پورې نوع ثانی ختم شوه، ددینه بعد ددې نوع ثانی تتمه ذکرکیږی اوپدې کښې دیهودو پنځه جماعتونه «ولې» په اعتبار دخباثتونوسره ذکرکیږی : (۱) احبار . رهبان یعنی دیهودعلماً سوء اوپیران چه قصداً ئی په تورات کښې تحریف کولو (۲)منافقین په یهودوکښې (۳) جاهلان او ان پړه امیان چه د احبارو او رهبانوپه من ګهړت اودروغ قصوئی عقیده کلکه وه (۴) هغه علماء چه په تحریری طوربه ئی دتورات تحریف کولو (۵) هغه صاحبزادګان اوپیرزادګان چه په خپلو آباؤ اجدادوئی ناز ؤ.

| يَسْمَعُوْنَ | مِّنْهُمْ | فَرِيْقٌ | كَانَ | وَقَدْ | لَكُمْ | يُّؤْمِنُوْا | اَنْ | اَفَتَطْمَعُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

آیانوطمع لرئ (۱) تاسوچې دوئ به اومني خبره ستاسواوحال داچې وه يوه ډله ددوئ نه اوريدلوبهٔ ئې

| يَعْلَمُوْنَ ۞ | وَهُمْ | عَقَلُوْهُ | مَا | بَعْدِ | مِنْۢ | يُحَرِّفُوْنَهٗ | ثُمَّ | كَلٰمَ اللّٰهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

کلام دالله اوبيابهٔ ئې بدلولې معنې روستو دهغې نهٔ چې پوهه شوي وؤدهغې پهٔ مراد باندې اودوئ پوهيدل چې داګناه ده»

﴿ أَفَتَطْمَعُون ﴾ همزه لپاره داستفهام انکاری ده معنی ئی نهی ده، يعنی طمع مکوئ، او خطاب حضور ﷺ اومؤمنينُ ته دې اوفأ د عطف لپاره ده اودلته کښې مدخول دهمزه چه معطوف عليه دفأ عاطفه دې هغه محذوف دې چه تقدير دعبارت دارنګه کيږی : «اتدعوهم الى الايمان او الى الحق فتطمعون».

﴿لَكُم﴾ ای لبيانكم، لدعوتكم. ﴿وَقَدْ كَانَ فَرِيقٌ مِّنْهُمْ يَسْمَعُونَ كَلَامَ اللَّهِ﴾ لفظ دكان يا مستعمل دې لپاره دحال يعنی اوس په دوئ کښې داسې فرقه شته چه تحريف کوی يا کان د ماضی لپاره دې يعنې ددوئ په اسلافو کښې داسې خلق وُو، **پدې آيت کښې بيان د فريق اول کيږی دپنځه جماعتونونه** :

(۱) مراد د «فريق» نه هغه دی چه موجودؤو په زمانه درسول الله ﷺ کښې او د «کلام الله» نه مراد تورات دې اودوئ په تورات کښې تحريف کړې ؤو ، چه صفات درسول الله ﷺ ئی پټ کړې ؤو او دارنګه نوربعض احکامات هم لکه حکم درجم .

(۲) مراد د «فريق» نه هغه اويا (۷۰) کسان دی چه کوهِ طور ته تلی وؤ دَ موسی عليه السلام سره. نو «کان» په معنی دَ ماضی سره دې او مراد دَ کلام نه هغه کلام دې چه په کوه طورکښې دوئ اوريدلې ؤو . اوتحريف ئی په کښې کړې ؤو. چه دوئ ويل چه مونږه ته په آخرکښې الله تعالی داسې اوفرمايل چه که عمل په احکامو دتورات باندې تاسوته مشکل وی نوخير دې عمل پرې مکوئ.

مشهوره داده چه اويا ۷۰ کسان چه کوه طورته تلی ؤو موسی ﷺ سره هغوئ دالله تعالی کلام آوريدلې ؤو ليکن قرطبی وائی دا قول ضعيف دې او دوئ چه کلام دالله تعالی آوريدلې

۱- تتمه دنوع ثانی دبنی اسرائيلو د پنځه جماعتونو ذکر ، داول جماعت ذکر .... محرفين.

دي نو دا يې په واسطه دموسى عليه السلام سره اوريدلي دي ورنه نو بيا خو تخصيص دكليم الله په موسى عليه السلام پورې نه صحيح كيږي اوپدې كښې چه روايت د ابن عباس رضي الله عنه ذكرشويدې نو هغه باطل دي

﴿ ثُمَّ يُحَرِّفُونَهُ ﴾ دا دتحريف نه مأخوذ دي اوتحريف تغيراوردوبدل ته وائى اوتحريف په دوقسمه دي يوتحريف معنوى دې دا هغه دې چه معنى ئى بدله شى اولفظ نه وى بدل شوې. اوبل تحريف لفظى دې او دا هغه دې چه لفظ هم بدل شى اوپه كتب سابقۀ كښې تحريف معنوى بالاتفاق واقع شويدې اوهرچه تحريف لفظى دې نو دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما او نورو اهل علمٌ قول دادې چه تحريف لفظى ندې واقع بلكه صرف تحريف معنوى واقع وۀ، او د اكثروا اهل علمو قول دادې چه تحريف لفظى پكښې هم واقع شوې وۀ. اوپه قرآن عظيم الشان كښې تحريف لفظى څوك نشى كولې. ((انانحن نزلناالذكر وانالہ لحافظون)).

اوهرچه دې تحريف معنوى نوهغه دادې چه بيان كړې شى مراد دالله جل جلاله په يوآيت سره موافق دخواهشاتو خپلو . مخالف د رأى دسلفو صالحينو او مخالف دقواعدو عربيونه نو تحريف معنوى په قرآن كښې واقع كيدې شى او دا په كثرت سره په كتابونو دشيعه ګانو كښې او دارنګه دنوروفرقو ضالۀ كښې موجود دې، يو مثال دا دې چه دموجوده دور بعضى مدعيان دعلم ددې آيت ((قل انما انا بشرمثلكم)) داسې معنى كوى چه د ((انا)) لپاره خبر محذوف دې اوتقدير داسې دې : ((انما انا، انا بشرمثلكم)).

| وَإِذَا لَقُوا الَّذِينَ آمَنُوا قَالُوا آمَنَّا ۚ وَإِذَا خَلَا بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ |
|---|
| اوكله (۱) چې دوئ ملاوشي مؤمنانوسره وائ چې مونږمومنان يو، اوكله چې يوازې شي بعضې دبعضوسره |
| قَالُوا أَتُحَدِّثُونَهُم بِمَا فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ لِيُحَاجُّوكُم |
| نو وائ ورتۀ هغوئ آيا تاسوخبروئ دامؤمنان په هغې چې ظاهركړيدې الله تاسوته ددې دپاره چې دليل بۀ اونيسي پۀ تاسو |
| بِهِ عِندَ رَبِّكُمْ ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٧٦﴾ |
| پۀ هغې سره پۀ نيزدرب ستاسو، آياعقل نۀ لرئ |

۱- دويم جماعت منافقين

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَوَلَا | يَعْلَمُوْنَ | اَنَّ اللّٰهَ | يَعْلَمُ | مَا يُسِرُّوْنَ | وَمَا | يُعْلِنُوْنَ ۝ |
| آيا دوئ دومره نۀ پوهيږي چې بيشكه الله عالم دې په هغې چې دوئ پټوي اوپۀ هغه څۀ چې دوئ ښكاره كوي | | | | | | |
| وَمِنْهُمْ | اُمِّيُّوْنَ | لَا يَعْلَمُوْنَ | الْكِتٰبَ | اِلَّآ | اَمَانِيَّ | وَاِنْ هُمْ |
| وبعضې (۱) پۀ دوئ كښې اميان دي نۀ پوهيږي پۀ كتاب سوى ددروغو ارزوګانو اوقصونۀ اونۀ دي دوئ | | | | | | |
| اِلَّا | يَظُنُّوْنَ ۝ | فَوَيْلٌ | لِّلَّذِيْنَ | يَكْتُبُوْنَ الْكِتٰبَ | بِاَيْدِيْهِمْ | ثُمَّ يَقُوْلُوْنَ |
| مګر اټكل كوي (بې دليله) پس هلاكت دې (۲) هغه كسانولره چې ليكى كتاب پۀ خپلولاسونوسره، اوبيا وائ | | | | | | |
| هٰذَا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ | لِيَشْتَرُوْا بِهٖ | ثَمَنًا | قَلِيْلًا | فَوَيْلٌ | لَّهُمْ | مِّمَّا كَتَبَتْ |
| چې دا دالله دطرفه دي چې واخلى پدې سره پيسې لږې، پس هلاكت دې دوئ لره د وجې دهغې نۀ چه ليكى | | | | | | |
| اَيْدِيْهِمْ | وَوَيْلٌ | لَّهُمْ | مِّمَّا | يَكْسِبُوْنَ ۝ | | |
| لاسونۀ ددوئ اوهلاكت دې دوئ لره دوجې دهغې (مال) نۀ چې دوئ ګټى پدې | | | | | | |

﴿وَإِذَا لَقُوا۟ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾ دا د **دويم جماعت بيان دي**.

﴿وَإِذَا خَلَا بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ﴾ د اول بعض نه مراد اتباع دى، او د دويم بعض نه مراد متبوعين اومشران دى. ﴿فَتَحَ ٱللَّهُ﴾ مراد ددينه ظاهرول او بيانول دى. يعنى آيا تاسو خبروئ مؤمنان په هغه باندې چه الله ﷻ تاسوته په تورات كښې بيان كړى دى، اوظاهر كړى ئى دى چه هغه اوصاف درسول الله ﷺ دى.

﴿لِيُحَآجُّوكُم﴾. لام په معنى دلام كئ سره يا لام العاقبة سره دې يعنى ددې خبرې عاقبت او انجام دادې چه مؤمنان به په تاسو حجت قائم كړى چه ستاسو په كتاب كښې ستاسو داقرار مطابق دحضور صلى الله عليه وسلم دصفاتو او دهغه درسالت دحقيقة ذكرموجود دې نوتاسو ولې ايمان نه راوړى؟، او ((ليحاجوكم)) صيغه د باب مفاعله د مغالبې لپاره ده. يعنى غلبه

---

۱ - دريم جماعت، بې تعليمه مريدان.

۲ - څلورم جماعت دمال او زر دپاره احكام بدلوونكى.

په حجت کښې. او د کفارو د طرفه هيڅ حجت نشته خوليکن د دوئ جګړې ته ئې حجت مجازا ويلې دی

﴿عِندَ رَبِّكُمْ﴾ دا په معنی د «فی کتاب ربکم، وحکم ربکم» سره دې «کانه قیل ليحاجوکم بکونه فی کتابه ای يقولوا: انه مذکورفی کتابه الذی آمنتم به» . «روح».

﴿أَفَلَا تَعْقِلُونَ﴾ ای اتحدثونهم فلاتعقلون.

﴿أَوَلَا يَعْلَمُونَ﴾ دا زجر دې او تحميق د دوئ دې يعنې هغه ذات چه پټ او ښکاره هرڅه باندې عالم دې نو د هغه نه ستاسو دا خبرې چرته پټيدی شی. نو الله ﷻ به ئې بيا په ذريعه د وحی سره مسلمانانو ته ښکاره کړی، نو هغوئ به په تاسو حجت قائم کړی.

﴿وَمِنْهُمْ أُمِّيُّونَ﴾ دا **د دريم جماعت** ذکر دې اُمیّ (ان پړ) ته وائی ځکه د اُمی معنی ده منسوب مور ته او انسان چه د موره پيداشی نو پدغه وخت کښې په ليکلو اولو ستلو نه پوهيږی او دا صفت دعامو انسانانو لره قبيح دې ليکن دنبی کريم ﷺ لپاره مدح ده چه باوجود د عدم قدرت نه په ليکلو او لوستلوئی دتمام عالم تمام طبقات ته دعلم نور ورسولو. «يعلمهم الکتب والحکمة ويزکيهم».

﴿إِلَّا أَمَانِيَّ﴾ د امنيةٌ جمع ده. هغه ارزوګانې چه هيڅ حقيقت نه لری لکه ((لن يدخل الجنة الامن کان هوداً اونصاری)) يا ((لن تمسناالنارالاايامامعدودة)) او هغه من ګهړت قصې چه عوامو دروغ جوړې کړې وې يابناوټی پيرانو جوړې کړې وې او عوامو ته پرې دهوکه ورکوی چه زمونږ نه بيعت وکړئ نو مونځ. روژه معاف تيرشوی ګناه معاف او د آينده پير ذمه وار. پير کامل به ئې په قيامت کښې دلاسه ونيسی او د پل صراط نه به ئې سيده جنت ته ورسوی وغيره.

﴿وَإِنْ هُمْ﴾ ای ماهم ﴿إِلَّا يَظُنُّونَ﴾ مرا د ظن نه وهم پرستی ده.

﴿فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ يَكْتُبُونَ الْكِتَابَ﴾ دا **بيان د څلورم جماعت** دې يعنې هغه علمأ د يهودو چه د مال ګټلو لپاره ئې په احکامو کښې تبديل کولو. او پخپل لاس به ئې د تورات نسخې وليکلې او د حضور ﷺ نعت او د توحيد بيان ئې ترينه لرې کړو او په عوامو کښې ئې دا شائع کړې . د «ويل» ډير معانی راځی. مشهوره معنی ئې هلاکت دې «ويلٌ» مبتدأ نکره ده . ليکن

په دعا خیر او دعا شر کښې نکره مبتدأ واقع کیدیشی

﴿ بِأَيْدِيهِمْ ﴾ ذکر ددې . یو د دفع دتوهم دمجاز لپاره دې او بل دیته اشاره ده چه دا دوئ د خپل طرفه جوړ کړی دی، نازل نه دی دطرفه دالله ﷻ نه.

﴿ثَمَنًا قَلِيلًا ﴾ دثمن نه مراد عوض دې خواه که نقدي وی او که جنس وی اوقلیل ئی ورته ځکه ویلیدی چه فانی دی اولږې دی په قیاس سره ثواب د آخرت ته

﴿فَوَيْلٌ لَّهُم مِّمَّا كَتَبَتْ أَيْدِيهِمْ﴾ فاء لپاره دتفصیل ده او دا تفصیل دې لپاره ددې قول «فویل للذین یکتبون ــ الایه» یعنې ثبوت د «ویل» دوئ لره لوجه دکتابت نه دې اوبل لوجه د هغه مال نه دې چه دوئ ګټلې وو په تحریف سره. یعنې ددوئ کسب اوعمل هم سبب دهلاکت دې اوګټلې شوې مال یې هم سبب دهلاکت دې، په هره حرامه طریقه مال ګټل دغه حکم لری او «من» په «مما» کښې اجلیه دې او «ما» مصدریه دې یعنی په وجه د لیکلو د دروغو سره

| وَقَالُوا | لَن | تَمَسَّنَا | النَّارُ | إِلَّا | أَيَّامًا | مَّعْدُودَةً ۚ | قُلْ | أَتَّخَذْتُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اووائ دوي(۱) چې هیچرې بهٔ اونهٔ رسي مونږ تهٔ اورمګر یو څوورځې شمارلې شوې، ته ورتهٔ اووایهٔ آیا اخیستي ده تاسو | | | | | | | | |

| عِندَ اللَّهِ | عَهْدًا | فَلَن | يُخْلِفَ | اللَّهُ | عَهْدَهُ ۖ | أَمْ | تَقُولُونَ | عَلَى اللَّهِ | مَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| دالله نهٔ وعده نو بیا هیچرې خلاف نه کوي الله دوعدې خپلې نه بلکه جوړوئ تاسو پهٔ الله باندې هغه خبرې | | | | | | | | | |

| لَا تَعْلَمُونَ ۝ |
|---|
| چې تاسو پرې علم نهٔ لرئ |

﴿وَقَالُوا لَن تَمَسَّنَا النَّارُ إِلَّا أَيَّامًا مَّعْدُودَةً﴾دا بیان دپنځم جماعت دې.دهغه صاحبزادګانو پیرزادګانو بیان دې چه عوام ئی په دهوکه کښې اچولی ؤو او ویل به ئی چه مونږ دپیغمبرانو اولاد یو او زمونږ نسل پاك دې نو ددې وجه نه به الله ﷻ ددوئ مؤاخذه نه کوی او دمشرانو په طفیل به دوئ معاف کولیشی اوکه چرې مونږته سزا ملاویږی نوهغه به لږې ورځې وی، «ایامامعدودة» (۱) خلویښت ورځی چه ددوئ آوباء او اجدادو دسخی عبادت کړې ؤو

۱- پنځم جماعت . پیران او صاحبزادګان.

(۲) اوو ۷ ورځې چه ايام دهفتې دی. (۳) موده دعمر دانسان. (۴) يعنې زمونږ دين منسوخ ندې او مونږ مؤمنان يونو په قدر دمعصيت عذاب به راکولې شی.

﴿قُلْ أَتَّخَذْتُمْ عِندَ ٱللَّهِ عَهْدًا﴾ دا ديهوديانو دمذکورې دعوې رد دې يعنې آيا دجهنم نه دمحفوظ کيدلولپاره تاسو دالله ﷻ نه وعده اخستې ده، نوکه چرې داسې وی نوبياخو ﴿فَلَن يُخْلِفَ ٱللَّهُ عَهْدَهُۥٓ﴾ ليکن داسې نه ده ﴿أَمْ تَقُولُونَ﴾ ((اى بل تقولون)) او دابن مسعود ﷺ او د ابن عباس ﷺ نه روايت دې چه مراد دعهدنه عهد دتوحيد دې ((اى هل قلتم لااله الاالله)) نوکه داسې وی نو موحد خوالله ﷻ دائماً نه عذابوی ليکن داسې هم نه ده ((بَلْ تَقُوْلُوْنَ عَلَى اللهِ مَا لاَ تَعْلَمُوْنَ)) اى صحته ............... چه دوئ هغه من گهړت ،موضوعی روايت پيش کوی ((ان الله عهدالى يعقوب ان لايعذب بنيه الاتحلة القسم)).

| بَلَىٰ | مَنْ | كَسَبَ | سَيِّئَةً | وَّ اَحَاطَتْ | بِهٖ | خَطِيْٓئَتُهٗ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دغسې نهٔ ده(۱) | بلکه خبره داسې ده څوک | چې اوکړي | گناه (شرک) | اواحاطه اوکړي | پده | گناه دده(دمرگ پورې) |

| فَاُولٰٓئِكَ | اَصْحٰبُ النَّارِ | هُمْ | فِيْهَا | خٰلِدُوْنَ | وَالَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نودغه | خاوندان داوردي. | دوئ | بهٔ پهٔ هغې | کښې همېشه وي . | اوهغه کسان(۲) چې | ايمان ئې راوړي وی |

| وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ | اُولٰٓئِكَ | اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ | هُمْ | فِيْهَا | خٰلِدُوْنَ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوعملونه کوي نيک | نودغه خلق | خاوندان دجنت دی، | دوئ | بهٔ پهٔ هغې کښې | همېشه وي |

﴿بَلَىٰ مَن كَسَبَ﴾ ((بلى)) حرف ايجاب دې دماقبل نفی او دمابعد اثبات کوی، يعنی تاسو چه وائی چه ((لن تمسنا النار)) نو داسې نه ده بلکه تاسوته به رسی اور، قانون داسې دې چه ﴿مَن كَسَبَ سَيِّئَةً ـ الايه﴾ . نومعلومه شو چه کاسب بنده دې .

﴿فَأُو۟لَـٰٓئِكَ أَصْحَـٰبُ ٱلنَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَـٰلِدُونَ﴾ . ددې نه معتزله ثابتوی چه مرتکب دگناه

---

۱ تخويف

۲ بشارت

کبیره به همیشه جهنمی وی او اهل سنت والجماعت وایي چه مؤمن اګر که مرتکب د ګناه کبیره وی خودې به مخلد فی النار نه وی «من قال لااله الله ثم مات علی ذالك دخل الجنة» «مشکوة».

**جواب** ددې آیة نه دادې چه مراد د «سیئة» شرك دې «وهوالمروی عن ابن عباس ومجاهد رضی الله تعالی عنهما». او د «احاطت به خطیئته» مطلب دا دې چه خاتمه یې په شرك باندې وشی او ممکنه ده چه د «سیئة» نه مطلق معصیت مرادشی اود «احاطت به خطیئته» نه مراد دادې چه دده نه دنیکئ تمامې لارې بندې شی او ګناهونه داسې غلبه وکړی چه هیڅ نیکی پاتې نشی حتی چه ایمان هم مفقود شی.

﴿وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ﴾ دا بشارت دې دمؤمن لپاره صاحب د روح المعانی وایئ چه عطف د «عملوالصالحات» په « آمنوا» دلیل ددې خبرې دې چه اعمال اجزأ دنفسِ ایمان لپاره ندی، بلکه ایمان بسیط دې. او دویمه خبره داده چه د کفارو دوعید بیانولو لپاره فأ استعمال شوې ده «فاولئك اصحب النار» اود مؤمنانو دبشارت لپاره فأ نده استعمال شوې نو په دې کښې اشاره ده چه د کفاروخلود فی النار دهغوئ دبدواعمالو نتیجه ده او د اهل جنتُ خلود په جنت کښې محض د الله ﷻ مهربانی اولطف اوکرم دې.

**دې ځائ پورې بیان دنوع ثانی دبنی اسرائیلوختم شو نواوس بیان دنوع ثالث شروع شو.**

| |
|---|
| وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَ بَنِيٓ إِسْرَٰٓءِيلَ لَا تَعْبُدُونَ إِلَّا ٱللَّهَ قف |
| اوکله (۱) چې واخیسته مونږ کلکه وعده دبنی اسرائیلونهٔ چې تاسو بهٔ عبادت نه کوئ مګرد الله بهٔ کوئ |
| وَبِٱلْوَٰلِدَيْنِ إِحْسَانًا وَذِي ٱلْقُرْبَىٰ وَٱلْيَتَٰمَىٰ وَٱلْمَسَٰكِينِ وَقُولُواْ لِلنَّاسِ |
| اودموراوپلارسره بهٔ احسان «نیکړه» کوئ اودخپلوانوسره هم اودیتیمانوسره او د مسکینانوسره اووائي ټولوخلقونهٔ |
| حُسْنًا وَأَقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُواْ ٱلزَّكَوٰةَ ثُمَّ تَوَلَّيْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا مِّنكُمْ وَأَنتُم |
| بنهٔ خبره اوقائموئ مونځ اوورکوئ زکوة،بیا(۲) مخ واړولو تاسو د وعدې نهٔ مګرلږکسان ستاسونهٔ اوتاسوهمیشه |

۱ - نوع ثالث . دموجوده بنی اسرائیلو خباثتونه.

۲ - اول خباثت.

مُّعْرِضُوْنَ ۞ وَ اِذْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَكُمْ لَا تَسْفِكُوْنَ دِمَآءَكُمْ

مخ گرزونکي يئ. اوکله [1] چې واخيسته مونږ کلکه وعده ستاسونه چې نهٔ به تويوئ ويني ديوبل(په ناحقه)

وَلَا تُخْرِجُوْنَ اَنْفُسَكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ ثُمَّ اَقْرَرْتُمْ وَاَنْتُمْ تَشْهَدُوْنَ۞

اونهٔ به اوباسئ تاسويوبل لره دکوروونوخپلونهٔ بياقراراوکړوتاسواوتاسوگواهي کوئ

**نوع ثالث** : ﴿وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَ بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ﴾ پدې کښې دنزول د قرآن په وقت کښې دموجودو بنی اسرائيلوخباثتونه بيانيږی يعنی خباثتونه ستاسو په آباء او اجدادو پورې منحصر نه ؤو تاسوهم دهغوئ په نقش قدم روان يئ، دموجوده بنی اسرائيلو اول خباثت نقض عهدؤو. دحضرت موسی ﷺ په وساطت سره ديهودونه په تورات کښې چه عهد اخستې شوې ؤو نوپه هغې کښې اول عهد دتوحيدؤو.

«لاَ تَعْبُدُوْنَ اِلاَّاللَّهَ» دا په ظاهرکښې نفی ده او مراد ترينه نهی ده، يعنی عبادت مکوئ مگر د يوالله کوئ، اودويم عهد د دوئ نه د احسان اخستې شوې ؤو دوالدينوسره اود ذوی القربی او يتامی او مساکين سره.

﴿إِحْسَانًا﴾ دا مفعول مطلق دفعل محذوف دې «ای احسنوا» ، او دريم عهد ددوئ نه دا اخستې شوې ؤو چه ﴿وَقُولُواْ لِلنَّاسِ حُسْنًا﴾ «ای قولواقولاًحسناً» او «قولوا قولاً ذاحُسنٍ» او ددې په تفسيرکښې متعدد اقوال دی : (۱) قول د ((لااله الاالله)) اود دې امرکول (۲) ((امربالمعروف نهی عن المنکر)) (۳) دحضورﷺ دصفاتُ او درسالت په باره کښې رشتيا ويل. (۴) مهذبه گفتگو ، نرمې خبرې اوخاسته جواب ورکول.

رُوِیَ مسلم والترمذی عن ابن ذرؓ عن النبی ﷺ انه قال لاتحقرَن من المعروف شيئاًوان لم تجدفالق اخاك بوجهٍ منطلقٍ «ابن کثير»

﴿ثُمَّ تَوَلَّيْتُمْ﴾ دا بيان داول خباثت دې يعنې نقض العهد، بنی اسرائيلو خپله وعده او لوظ پوره نه کړو او د توحيدنه يې مخ واړولو اوشرك يې اختيارکړو چه حضرت عزيرﷺ ته ئ

1 - دويم خباثت

ابن الله يعنې دخداي ﷻ نائب وه ويل او دغسې نورو بزګانوته هم او دارنګه يې انسانی حقوق پايمال کړل او دمونځ ،زکوٰة پروائی ؤنه ساتله.

﴿وَأَنتُم مُّعْرِضُونَ﴾ يعنې اعراض کول ستاسو عادت قديمه دې

﴿وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ لَا تَسْفِكُونَ دِمَآءَكُمْ﴾ دا بيان ددويم خباثت دې دبنی اسرائيلونه

«**مواثيق اربعه**» يعنې څلوروعدې اخستې شوې وې (۱) يوبل مه قتلوئ (۲) يوبل د کورنو نه، کلونه مه اوباسئ، څوك مه جلاوطن کوئ، دا دواړه وعدې صراحةً مذکورې دی (۳) دچا سره مدد په ګناه اوظلم او زياتی کښې مکوئ (۴) اوکه په تاسوکښې يعنی يهود بنی قريظه او بنی نضيرکښې څوك قيدشو نو تاسو ټول به مشترکه طورسره دهغه قيدی آزادولو لپاره فديه جمع کوئ اوورکوئ به اوداوه حکمونه معلوميږی دمابعدنه ضمناً

﴿لاَتَسْفِكُوْنَ دِمَاءَكُمْ﴾ د يوبل وينيې ترينه مراد دی.

﴿وَلَا تُخْرِجُونَ أَنفُسَكُم﴾ د يوبل ويستل اوجلاوطن کول ترينه مراددی.

| ثُمَّ أَنتُمْ هَٰؤُلَآءِ تَقْتُلُونَ أَنفُسَكُمْ وَتُخْرِجُونَ فَرِيقًا مِّنكُم مِّن دِيَارِهِمْ تَظَاهَرُونَ |
|---|
| بياتاسواې يهودو قتلوئ يوبل لره اواوباسئ تاسويوفرقه ستاسودکورونودهغوئ نه ، مددکوئ تاسوديوبل سره |
| عَلَيْهِم بِالْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ط وَإِن يَأْتُوكُمْ أُسَارَىٰ |
| دهغوئ په مقابله کښې په ګناه کولواوظلم کولوسره ، اوکه راشي تاسو ته قيديان |
| تُفَادُوهُمْ وَهُوَ مُحَرَّمٌ عَلَيْكُمْ إِخْرَاجُهُمْ ط |
| نوتاسوفديه (جرمانه) ورکوئ دهغوئ دخلاصولودپاره آو حال دادې چې حرام دې په تاسوباندې ويستل د هغوئ |
| أَفَتُؤْمِنُونَ بِبَعْضِ الْكِتَابِ وَتَكْفُرُونَ بِبَعْضٍ ج فَمَا جَزَآءُ مَن يَفْعَلُ |
| نوآياتاسوايمان راوړئ په بعضې حصې دکتاب او کفر کوئ په بعضې دهغې، پس نه ده سزادهغه چاچې کوي |
| ذَٰلِكَ مِنكُمْ إِلَّا خِزْيٌ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا ج وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يُرَدُّونَ إِلَىٰ أَشَدِّ الْعَذَابِ ط |
| داسې کار له تاسو نه مګررسوائ په ژوند ددنيا کښې، او په ورځ دقيامت به دوئ اورسولې شی سخت عذاب ته |
| وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴿۸۵﴾ |
| اوندې الله بې خبره دهغه عملونونه چې تاسوئې کوئ |

﴿ثُمَّ أَنتُمْ هَٰٓؤُلَآءِ تَقْتُلُونَ أَنفُسَكُمْ﴾ دا د اولې وعدې دخلاف ورزی ذکر دې، د حضور ﷺ په زمانه کښې په مدینه منوره کښې دوه مشهورې قبیلې ((**اوس او خزرج**)) د ډیرې زمانې نه خپل مینځ کښې دشمنان ؤو، په مدینه اوپه اطرافو دمدینې کښې یهودیان د اقلیت په حیث سره آبادؤو، ددوئ دوه قبیلې بنی قریظه بن نضیرمشهور دی، اقلیت چونکه همیشه د اکثریت تابع وی نو ددې وجه نه بنی قریظه د اوس قبیلې ملګری اوحلیفان ؤو اوبنی نضیر دخزرج قبیلې ملګری اوحلیفان ؤو.

نو داوس اوخزرج په مینځ کښې به چه کله قتل او قتال کیده نوبنی قریظه اوبنی نضیربه هم په خپل مینځ کښې دخپلوحلیفانو په وجه جنګیدل، او یوبل به ئې قتلول، پدې آیت کښې دیته اشاره ده او دغه شان چه هغوئ به یوبل جلاوطن کول، نویهودوبه دهغوئ په تبع سره یو بل جلاوطن کول، اوکه هغوئ به ظلم زیاتې کولو نوهرې فرقې دیهودو به دخپل حلیف تعاون په ظلم اوزیاتی کښې کولو، لیکن که چرې دیهودو په هره یوه فرقه کښې به چه څوك قید شو نو دواړوفریقینو به فدیه جمع کوله اوقیدی به ئې آزادولو نو چه دوئ ته به وه ویلې شوچه داسی ولې کوئ؟ نو دوئ به وه ویل چه دا مونږته حکم دې د الله تعالی، نوځکه ئې کوو. نو الله تعالی فرمائی چه دغه نورهم دالله تعالی احکام دی، نوهغه ولې نه منئ؟ نومعلومه شوچه دا یوحکم منل صرف ددې وجه نه دې چه ستا سو رواج اومزاج اوخواهش سره موافق دې نو دا درحقیقت د رواج اوخواهش اتباع ده، او دحکم الهی اتباع نه ده..

﴿ ثُمَّ أَنتُمْ﴾((انتم))مبتدأ ده او﴿هٰؤُلَآءِ ﴾ منصوب محلاًدې په اعنی سره ، یا دا منادیٰ ده اوحرف ندأ مقدره ده ای (یاهٰؤلاء) او((تقتلون)) خبردې او د ((انفسکم)) نه مراد ((اخوانکم)) دې

﴿وَتُخْرِجُونَ فَرِيقًا مِّنكُم مِّن دِيَٰرِهِمْ﴾ داد دویمې وعدې خلاف ورزی ده.

﴿تَظَٰهَرُونَ﴾ دا د دریمې وعدې خلاف ورزی ده، اوجمله د((تظاهرون)) په محل دنصب کښې ده، حال دې دضمیرد ((تخرجون)) نه، او په اصل کښې تتظاهرون ؤو، یوه تأ حذف شویده تخفیفاً. او په یو قرائت کښې په تشدیدسره دې، ادغام دیوتأ په بله کښې شویدې

﴿بِٱلْإِثْمِ وَٱلْعُدْوَٰنِ﴾ ((اثم)) حقوق الله ته راجع دې او ((عدوان)) حقوق العباد ته راجع دې

﴿وَإِن يَأْتُوكُمْ أُسَٰرَىٰ﴾ ((اساری)) جمع د آسری اوآسری جمع د اسیر ده نو اساری جمع الجمع شو. اوبعضې وائی چه أساری جمع داسیر ده، نو دا څلورم حکم دې چه یهودو پدې باندی عمل کولو.

﴿تُفَٰدُوهُمْ﴾ تاسو به قیدیان آزادول په ورکولو دفدیه سره﴿وَهُوَ﴾ضمیرشان دې مبتدأ ده

﴿مُحَرَّمٌ عَلَيْكُمْ﴾ خبر مقدم دې ﴿إِخْرَاجُهُمْ﴾ مبتدأ مؤخره ده ((ای اخراجهم محرم علیکم)) او دا جمله مفسره دضمیرشان ده، او خبر دهغه دې او دا مجموعه بیا جمله حالیه ده حال دې دضمیرد ((تُخرجون)) نه، اوکه څوك **سوال** ؤکړی چه لکه اخراج چه حرام دې نودارنګه قتل اوتظاهربالاثم والعدوان هم حرام دې، نوتخصیص د اخراج په محرم سره ولې ؤشو ؟

**جواب** (١) حرمت د اخراج په نسبت سره قتل ته ادنی ؤو، نوتوهم کیدې شو چه دا به حرام نوی نو ددې وجه نه تصریح وشوه په حرمت داخراج باندې (٢) مقصود ددې کلام نه چونکه ذم اوتوبیخ دې په جنایاتو دَ دوئ او په تناقض د افعالو دَ دوئ نو چه دوئ دَ یوبل اخراج کوی نو دَ دینه معلومیږی چه دا ددوئ په نزد څه ګناه نه ده اوکله چه فدیه ورکوی اوقیدی آزادوی نو ددینه معلومیږی چه دغه اخراج ګناه ؤو، نوفعل د اخراج دفعل دفدیه سره متناقص دې خو هله چه اخراج حرام شی، نوددې وجه نه تصریح ؤشوه په ((وهو محرم علیهم)) باندې.

﴿أَفَتُؤْمِنُونَ بِبَعْضِ ٱلْكِتَٰبِ وَتَكْفُرُونَ بِبَعْضٍ﴾. استفهام انکاری په معنی د لاینبغی سره دې او مراد دایمان اوکفرنه ایمان عملی اوکفرعملی دې اوکفراعتقادی ندې مراد ځکه چه قتل او اخراج وغیره اعمال دی، اوپه عمل دمعصیت سره کفرنه لازمیږی په نزد داهل سنت والجماعت باندې.

﴿فَمَا جَزَآءُ مَن يَفْعَلُ ذَٰلِكَ مِنكُمْ إِلَّا خِزْىٌ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا﴾ ((ذلك)) اشاره ده ایمان بالبعض اوکفر بالبعض ته. یا اشاره ده قتل. تظاهر. وغیرهما ته او جزأ مطلق بدلې ته ویلې شی، خیر وی اوکه شر ((خزی)) شرمندګی او رسوائی، په مصیبت کښې ګرفتارکیدلوته وائ نو دَیهودو په دنیاکښې رسوائی دا وه چه جلاوطن کول د بنی نضیر دمدینی نه. او بیا دخیبرنه او قتلول دبنی قریظه. اوغلامان اووینځی کول دښځواواولادونو ددوئ

﴿ وَيَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ يُرَدُّونَ إِلَىٰٓ أَشَدِّ ٱلْعَذَابِ﴾ «يردون» د «رد» نه ماخوذ دې واپس كيدل مخكينى حالت ته «رد» ويلې شى لكه «﴿فَرَدَدْنَٰهُ إِلَىٰٓ أُمِّهِۦ﴾» «القصص ١٣».

**سوال**: دلته خوپه مخكنى حالت كښې چه دنيا ده اشدالعذاب نه ؤو نو څنګه وئيلې شو «يُردون»؟ **جواب**: «يُرَدُّون» په معنى د «يصيرون» سره دې او «رد» په معنى دنفس صيرورة سره هم رازى، نودلته په معنى دنفس صيرورة سره دې، او معنى د واپسئ پكښې مراد نده. يا دا چه دوئ به په دنياكښې په يوقسم عذاب كښې اوپه آخرت كښې به په بل قسم اشدعذاب كښې وى ليكن جنس دعذاب خو يودې.

امام رازى رحمه الله **سوال** كړيدې چه څرنګه به شى عذاب ديهوويانو اشد دعذاب د دهرى نه چه منكردې دوجود دبارى تعالى نه ځكه هغه كافر چه ذات د الله تعالى منى او په هغه باندې ايمان لرى هغه به څرنګه دعذاب دكافر مشرك يا دهرى نه زيات شى.

**جواب** دا دې چه دلته مراد د اشد نه په نسبت سره عذاب ددنياته دې او دا ځكه اشد دې چه ددې انقضأ اوختميدل نشته دې په خلاف دعذاب ددنيا نه او يامراد د اشد نه اشدپه نسبت سره هغه چاته دې چه دغه مذكورعصيان او نافرمانى ئې نه وى كړى.

| أُولَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ ٱشْتَرَوُا۟ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا بِٱلْءَاخِرَةِ ۖ فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ ٱلْعَذَابُ |
|---|
| داهغه [1] خلق دي چي اخيستلې ئې دې ژوندددنيا په مقابله دآخرت كښې، نونۀ به شى سپكولې ددوئ نه عذاب |
| وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ ﴿٨٦﴾ |
| او نۀ به ددوئ مدد كولې شي |

﴿فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ ٱلْعَذَابُ﴾ تخفيف سپكول اوكمول دعذاب. يا په بعضې اوقاتو كښې دعذاب نه چتى وركول وغيره ته شامل دې، **سوال**: په حديث كښې خوپه باره دابوطالب كښې راغليدى چه «اهون عذاباً» **جواب**: دآيت مراد دادې چه دكافر لپاره چه كوم قسم عذاب دابتدأ نه مقرروى نوپه هغې كښې به تخفيف نه كيږى نو د ابوطالب لپاره چه كوم قسم عذاب مقرر دې نوپه هغې كښې تخفيف نه رازى اګركه دا عذاب دنورو كفارودعذاب په نسبت سره خفيف دې

١ - تتمه دنوع ثالث

| وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ وَقَفَّيْنَا مِنْۢ بَعْدِهٖ بِالرُّسُلِ ۡ وَاٰتَيْنَا |
|---|
| اوبه تحقيق سره[1] ورکړې وو مونږ موسى ته كتاب اوپرله پسې ليږلي وو مونږ روستو ده نه رسولان، اوورکړې وې مونږ |
| عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنٰتِ وَاَيَّدْنٰهُ بِرُوْحِ الْقُدُسِ ۭ اَفَكُلَّمَا جَاۗءَكُمْ |
| عيسى خوئې دمريم ته ښكاره معجزات اوقوي كړې وو مونږ ده لره په روح پاک سره، پس هركله چې راوړوبه تاسو ته |
| رَسُوْلٌۢ بِمَا لَا تَهْوٰٓى اَنْفُسُكُمُ اسْتَكْبَرْتُمْ ۚ فَفَرِيْقًا كَذَّبْتُمْ ۡ |
| رسول هغه حكم چې نه به خوښولو ستاسونفسونو، نو تاسو به تكبر اوكړو، نو يو ډلې ته به تاسو نسبت ددروغو اوكړو |
| وَفَرِيْقًا تَقْتُلُوْنَ ۝ وَقَالُوْا قُلُوْبُنَا غُلْفٌ ۭ بَلْ |
| اويوډله به تاسو قتلوله اووائي دوئ[2] چې زمونږ پۀ په زړونو غلافونه (پردې) دي، بلكه |
| لَّعَنَهُمُ اللّٰهُ بِكُفْرِهِمْ فَقَلِيْلًا مَّا يُؤْمِنُوْنَ ۝ |
| لعنت كړېدې الله پدوئ په سبب دكفر ددوئ نو پس لږ غوندې دوئ ايمان راوړي |

﴿وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَٰبَ﴾ دا بيان دنوعِ رابعِ دې دانواعُ دبنى اسرائيلونه، ددې خلاصه داده چه احكام منل خو دركنار، ستاسو مشرانو به انبيأ ﷺ قتلول او دهغوئ تكذيب به ئې كولو، د (الكتب) نه مراد تورات دې.

﴿وَقَفَّيْنَا مِنۢ بَعْدِهِۦ﴾ ((ياء)) د قفّينا په اصل كښې واو دې ((اصله قفونا)) نو چه باب تفعيل ترينه جوړشو نوواؤ رابع شو، نوبدل شوپه ((ياء)) سره او دا د ((قفا)) نه مأخوذ دې، او قفاء دسر وروستنئ حصې (څټ) ته وائي، اوتقفيه (باب تفعيل) يوشى په بل پسې راويستلوته وائى نو د ((قفينا)) معنى دا شوه چه روستو راليږلى ؤو مونږ، نوذكرد ((من بعده)) په ظاهركښې مستدرك كيږي، ليكن جواب دادې چه د ((قفينا)) نه مراد وروستوالي په اعتبار داتبّاع سره دې، اود ((من بعده)) نه مراد بعديت او وروستووالي په اعتبار دزمانې سره دې يعنى روستو دموسى ﷺ دزمانې نه ترعيسى ﷺ پورې چه څومره انبيأ عليهم السلام راغلى ؤو نو

1 - څلورم نوع دبنى اسرائيلو ، احكام منل خودركنار ستاسو مشرانو بـه انبيـاء عليـهم السـلام قتلول اودهغوئ تكذيب بۀ ئې كولو.

2 - تتمه دنوع رابع.

هغوئ تابع دتورات ؤو اوخلقو ته يې دعوت د اتباع دتورات ورکولو او تجديد دملت دموسى ﷺ يې کولو او دا څکه چه په هره زمانه کښې به بنى اسرائيل خلاف ورزى کوله او دعوى ئې کوله د ايمان په تورات اوپه موسى ﷺ باندې.

نو **سوال** واردیږی چه هرکله دغه انبياؤسره مستقل کتاب اوشريعت نه ؤو نو اطلاق د رُسل په دوئ څرنګ وشو. حالانکه رسول خوهغه دې چه هغه سره کتاب جديد يا شرع جديده وى.

**جواب** دا دې چه جديدعام دې چه دغه کتاب ياشرع په خپله جديد وى ياپه نسبت سره قوم آخر، قوم جديد ته. وى کما هو المصرح فى کلام القوم، او د زمانې دموسى ﷺ نه د زمانې دعيسى ﷺ پورې چه انبيأ عليهم السلام راغليدى نوهغه څلورزره (۴۰۰۰) دى، اوپه بل روايت کښې اويازره (۷۰۰۰۰) دى دا ټول په شريعت دموسى ﷺ ؤو چه په هغوئ کښې دا انبياء عليهم السلام هم دى: يوشع ﷺ، شموئيل ﷺ، شمعون ﷺ، داؤد ﷺ، سليمان ﷺ شعيب ﷺ ارميأ ﷺ عزير ﷺ حزقيل ﷺ الياس ﷺ اليسع ﷺ يونس ﷺ زکريا ﷺ يحيى ﷺ وغيرهم.

﴿وَءَاتَيْنَا عِيسَى ٱبْنَ مَرْيَمَ ٱلْبَيِّنَٰتِ﴾ په بنى اسرائيلو کښې آخرى نبى حضرت عيسى ﷺ ؤ او ده ته نوې کتاب اوشريعت ورکړې شوې ؤو، اويهودو دده ډيرمخالفت کولو، نوځکه ورته الله ﷻ واضح معجزات ورکړل اوتائيدورته په روح القدس سره وکړو، «بينه» هغه اموردى چه په خپله واضحه وى اوبل شې واضح کوى، اومراد ترينه هغه معجزات دعيسى دى چه ذکرئې په قرآن پاک کښې شوې دې «احياء الموتىٰ، ابرأ الاکمه والابرص» وغيره اوچا ويلى دى چه مراد د دينه انجيل دې. او **لفظ دعيسى** ياعربى دې مشتق دې دعيس نه هغه بياض چه مخلوط وى ورسره سرخ والې. او راجحه قول دادې چه دا لفظ عبرانى دې اصل ئى «السيوع» ؤ په معنى دسيد، مبارك. يامخلص سره. **اومريم** عبرانى لفظ دې په معنى د خادم سره، ځکه مور ددې دا نذرکړې وه دخدمت دبيت المقدس لپاره «روح» **اواضافت دعيسى ﷺ مورته** ؤشو اګرکه شرعاً اوعرفاً نسبت پلارته کيږى او دارنګه دمورنوم ئى هم ذکرشواوسره ددينه چه دښځونوم ذکرکول نامناسب دى، نو دا لپاره درد په يهودوباندې چه دوئ به ويل چه دعيسى ﷺ لپاره اب دې او دارنګه لپاره د رد په نصارى ؤچه دوئ ورته ابن الله وائې.

﴿بِرُوحِ ٱلْقُدُسِ﴾ «قدس» اسم دالله تعالى دې نو اضافت دروح، قدس ته لپاره دتعظيم

اوتشريف دي ياقدس په معنى دمقدس سره دې، نو اضافت دموصوف دي صفت ته اومراد
ترينه اول [۱] جبرئيل ﷺ دې او تائيد دجبرئيل ﷺ خو د ټولوانبياؤ سره ؤو ليکن دعيسى
ﷺ سره ئى خصوصى تائيدات ؤو، (۱) بشارت ورکول مور دده ته (۲) نفخ دجبرئيل سره
پيداشو (۳) تربيت ئى ورته وکړو (۴) چرته به عيسى ﷺ تللو نو جبرئيل ﷺ به ورسره ؤو (۵)
ديهودويانو قتلولونه ئى ورته حفاظت وکړو او آسمان ته ئى پورته کړو

**دويم** [۲]: مراد د دينه اسم اعظم دې چه عيسى به په هغې مړى ژوندى کول، **دويم** [۳]:
يامراد ددينه انجيل دې لکه اطلاق دروح په قرآن شويدې کمافى سورة النحل ((يُنَزِّلُ الْمَلَائِكَةَ
بِالرُّوْحِ)) ، (آيت : ۲)، حم شورىٰ ((وَكَذٰلِكَ اَوْحَيْنَا اِلَيْكَ رُوْحًا ـــ)) (۵۲).

﴿أَفَكُلَّمَا جَآءَكُمْ رَسُولٌۢ بِمَا لَا تَهْوَىٰٓ﴾ همزه لپاره دتوبيخ ده او اصل محل دهمزه
استکبرتم دې مقدم شويده لوجه دتقاضا دصدرات نه ((جاءکم)) جأ متعدى بنفسه هم راځى
اومتعدي په حرف سره هم راځى لکه ويلى کيږى جئته،وجئت اليه ،او بأ په ((بما لاتهوى)) کښې
د تعدية ده يعنى، هرکله به چه راؤړل تاسوته رسول هغه حکمونه چه ستاسونفسونونه پسند
کول نو

﴿اسْتَكْبَرْتُمْ﴾ دا محل دهمزې دې لپاره دتوبيخ . يعنې حکمونه راؤړل دپيغمبرموجب
ددې ؤو چه ((آمنتم وشكرتم)) ليکن تاسوعکس وکړو چه ((استكبرتم وكذبتم)) ياهمزه په
((افكلما)) کښې داخل ده په مقدر باندې چه هغه معطوف عليه دفأ دې نو تقديردارنګه دې
((افعلتم مافعلتم فكلما)) ياتقدير دارنګه دې ((ءاستكبرتم فكلما)) نو بعد والا استكبرتم مفسّر دې
دمقدرلپاره.

﴿فَفَرِيقًا كَذَّبْتُمْ وَفَرِيقًا تَقْتُلُونَ﴾ دا اثر دتکبردې.

حضرت شيخ رحمه الله په حواله دتفسير کبير ليکى : دخدائ پيغمبر به پيغام توحيد راؤړو
اوپيغام توحيد د رهبان سوء اوعلمأ سوء د دروغو پيرانو اوغلط کارملايانو. او ددنياپرست
سرمايه دارانو. نوابانو. لپاره پيغام دَ موت ؤو . چه په توحيدمنلوسره شکراني ددوئ به
بندې شى دعوامونه، او دعوامونه به ددوئ دبناوټى تقدس اومصنوعى اقتدار اثرختم شى.
اوپه يهودو کښې دا طبقې موجودې وې نو ددې وجه نه به چه کله هم يوپيغمبر راتلو نو دوئ
به هغه دخپل ځان لپاره خطره ګڼړله نومخالفت اوتکذيب به ئى کولو، اوکه وس به ئى

ورسیدو نوهغه به یې قتلولو او دا ددوئ انتهائی خباثت اوسنګدلی وه .

﴿وَقَالُوا قُلُوبُنَا غُلْفٌ﴾ دادنوع رابع تتمه ده اودامقوله دموجوده یهودیانوده، دلته دوه قرائته دی (۱) اول سکون دلام سره، اوداجمع داغلف ده اغلفُ هغه ته وائی چه غلاف ترینه چاپیره وی یعنی زمونږزړونه په پردوکښې دی اوستادعوت اووعظ پرې اثرنکوی. (۲) دویم قرائت د «غُلُفٌ» دې په ضمه دلام سره او دا جمع دغلاف ده یعنی زمونږ زړونه دعلم لوخی دی، اوډك دی دعلم اوحکمت نه مونږته دمحمد ﷺ او دقرآن دعلومو ضرورت نشته دې.

﴿بَل لَّعَنَهُمُ اللَّهُ﴾ «بل» د اضراب لپاره دې یعنی ایمان نه دنفرت وجه دغه نده چه دوئ بیان کړله بلکه وجه ئی لعنت دې او ددوئ په زړونو دلعنت پردې لګیدلی دی، په سبب دکفر ددوئ سره.

﴿فَقَلِيلًا مَّا يُؤْمِنُونَ﴾ «قلیلاً» یاصفت درجالاً مقدر لپاره دې او «ما» زائده لپاره دتاکید دقلت دې چه ترجمه ئی په پښتوکښې (غوندې) ده «ای یؤمنون رجالا قلیلا منهم» او دا هغه رجال دی چه ضداوعناد نه کوی . یا «قلیلا » صفت د ایمانًا دې چه هغه مفعول مطلق دَ «یؤمنون» دې «ای یؤمنون ایمانًا قلیلاً»، اوایمان قلیل چونکه په شرع کښې منظور ندې بلکه په شرع کښې معتبر ایمان بجمیع ماجاء به النبی دې نو دا کنایه شوه دعدم ایمان نه .

| |
|---|
| وَلَمَّا جَآءَهُمْ كِتٰبٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ ۙ وَكَانُوْا |
| اوکله[1] چې راغلودوئ ته کتاب دطرفه دالله نهٔ تصدیق کوونکې دهغه کتابونو چې ددوئ سره دی، او وو دوئ |
| مِنْ قَبْلُ يَسْتَفْتِحُوْنَ عَلَى الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۚ فَلَمَّا جَآءَهُمْ مَّا |
| مخکښې ددېنه چې خبرئې ورکولو(دآخری نبی دراتلو) کافرانودعربوتهٔ، پس هرکله چې راغلودوئ تهٔ هغه نبی |
| عَرَفُوْا كَفَرُوْا بِهٖ ۡ فَلَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ۝ |
| چې دوئ پیژندلې وو نوکفرئې اوکړو پهٔ هغه باندې، پس لعنت دالله دې په کافرانوباندې |

---

۱ نوع خامس . ستاسو مشرانو د مخکښې انبیاء کرام علیهم السلام تکذیب کولو اوتاسو سره دعلم نه د آخری نبی ﷺ تکذیب کوئ.

﴿وَلَمَّا جَآءَهُمْ كِتَٰبٌ مِّنْ عِندِ ٱللَّهِ﴾ دا **بيان دنوع خامس** دبنی اسرائیلو دې. یعنی ستاسو مشرانو د مخکنو انبیاؤ تکذیب کړو او تاسو باوجود دَ علم نه د آخری نبی ﷺ تکذیب کوئ، د «کتابٌ» نه مراد قرآن دې او تنوین په کښې دتعظیم لپاره دې.

﴿مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ﴾ دا صفت ثانی دکتاب دې اوصفت اول ورته «من عندالله» دې او د «لمامعهم» نه مراد تورات دې. یعنې قرآن تصدیق دتورات کوی په مسئله د توحید او رد دشرک کښې او په مسئله درسالت کښې او دارنګه په نوروبعض احکاماتوکښې.

﴿وَكَانُواْ مِن قَبْلُ﴾ «قبلُ» مبنی په ضمې سره دې اومضاف الیه ئې مقدردې «ای قبل مجیئه» یعنې مخکښې دراتلو دحضور ﷺ نه.

﴿يَسْتَفْتِحُونَ عَلَى ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ﴾ ددې دوه ترجمې دی : (۱) «یستفتحون» په معنی دیفتحون سره دې، ځکه دباب استفعال یوخصوصیت، موافقت دمجرد سره دې لکه استقر په معنی دقرّ سره او دفتح معنی ښودل، خبرول ، ظاهرول دی، لکه په «بمافتح الله علیکم» نو دیستفتحون معنی داده چه یهودویانوبه ددینه مخکښې کفارو اومشرکینوته خبرورکولو چه په عربوکښې آخرالنبیین، پیدا کیدونکې اوظاهریدونکې دې چه په هغه به کتاب نازلیږی نو اوس هغه رسول اوکتاب چه دوئ خبرورکوو راغې خودوئ دضددوجهې نه ایمان نه راوړی .
دا مذکوره ترجمه حضرت تهانوی رحمه الله اونورحضراتو لیکلی ده .

(۲) حضرت شیخ الهند ، شاه ولی الله اونورو اکابرو دا ترجمه لیکلی ده چه فتح او مدد به ئې غوښتلو دالله تعالی نه په حق دنبی ﷺ سره د کافرانو اُمیینو په مقابله کښې. شاه ولی رحمه الله لیکی : «تعریض است بآن قصه که یهود خیبرباغطفان جنگ می کردند وهزیمت می یافتند آخردعاکردند بحق محمدنبی اُمی که خروج او در آخرالزمان موعود است ما را تصرف ده بعد ازآن فتح یافتند».

تفسیرقرطبی لیکی - قال ابن عباس رضی الله عنهما کانت یهودخیبرقاتل غطفان فلماالتقواهزمت یهود فعاذت یهودبهذا الدعاء وقالوا اناننسئلك بحق النبی الامی الذی وعدتناان تخرجه لنافی آخرالزمان الاتنصرناعلیهم : قال فکانوا اذاالتقوا دعوا بهذاالدعاء فهزموا غطفان فلمابُعث النبی ﷺ کفروا فانزل الله تعالی (ولما جائهم ــ الایه) دُرمنثورلیکلی دی واخرج ابونعیم فی الدلائل — من طریق الکلبی عن ابی

صالح عن ابن عباس قال كان يهود اهل المدينة قبل قدوم النبیﷺ اذاقاتلوامن يليهم من مشركی العرب من اسدوغطفان وجهينة وعذرة يستفتحون عليهم ويستنصرون يدعون عليهم باسم نبی ﷺ فيقولون اللهم ربنا انصرنا عليهم باسم نبيك وبكتابك الذی تنزل عليه الذی وعدتناانك باعثه فی آخرالزمان ـ دمخکنی روایت په باره کښې لیکلی ، واخرج الحاكم والبيهقی فی الدلائل بسندٍ ضعيف عن ابن عباس رضی الله تعالی عنه (( كانت يهود خيبر ـــ الخ) ابن کثیر لیکلی دی چه ((يستنصرون بخروج النبی ﷺ)).

په بل روایت کښې دی چه «يستنصرون بمجيئه ﷺ» او خازن، مدارك، درمنثور وغیره داسې روایت ذکرکړې دې چه (قد اظل زمان نبی يخرج بتصديق ماقلنا فنقتلكم معه قتل عادٍ وارم)

ددینه علاوه متعدد روایات په دُرمنثوروغیره کښې موجوددی په دغه مجموعی روایاتو کښې دبعضو نه معلومیږی چه د «يستفتحون» معنی داده چه فتح اومدد غوښتل په دعا کولو سره په حق دنبی ﷺ اوپه توسل دنبی ﷺ سره اودبعضې نه معلومیږی چه د «يستفتحون» معنی طلب دفتحې دې په سبب دخروج اوظهور دنبی پاكﷺ سره، داول قسم روایاتونه **توسل په ذات دنبی ﷺ** سره معلومیږی اودويم قسم روایات په توسل دلالت نه کوی نوکه دواړه قسمه روایات ثابت وی (لعدم المنافات بينهما) نو پدې سره استدلال په جواز دتوسل بالذات کیدې شی ځکه په آیت کښې ئی ذکر اشارةً ؤشو اوپه روایاتوکښې ئی صراحتاً ذکروشو نورو آیاتونو تشریح دقرآن کړیده، نو دې ته استدلال بالقرآن ویل صحیح دی . اوشرائع دمن قبلناچه نقل شی په قرآن اوحدیث کښې اورد یې ونشی نو دا زمونږلپاره حجت وی، او دلته کښې ئی ردندې شوې بلکې دخپل قول سابق نه په خلاف کولوئی ذم بیان شوې دې نومعلومه شوه چه قول سابق (توسل بالنبی) مذموم نه ؤو، بلکه دهغې نه خلاف کول اوضداً، عناداً، انکارکول مذموم دی.

**تنبیه** جواز دتوسل دجمهورو اهل علمُ دمتفقه مسلك مطابق دې اوشيخ الاسلام حافظ ابن تیمیه رحمه الله هم دتاویل سره دتوسل بالذوات دجواز قائل دې كما هو مصرّح فی كتابه ((اقتضاء الصراالمستقيم)) ، نوقائلین دجواز دتوسل ته (اهل بدعت) یابدعتیان ویل د افراط نه خالی نه دی.

﴿فَلَمَّا جَآءَهُم مَّا عَرَفُواْ كَفَرُواْ بِهِۦ﴾ «فلما» د اول «لما» اعاده ده نو «كفروا» د دواړو

جواب دي يا جواب د «لما» اول لپاره محذوف دي چه «انکروه» دي . د «ماعرفوا» نه مراد کتاب اورسول دي او «کفروا» نه «کفرعنادی» مراد دي

﴿فَلَعْنَةُ ٱللَّهِ عَلَى ٱلْكَٰفِرِينَ﴾ دا وضع داسم ظاهرده په موضع دضمير باندې لپاره دتصريح پدې باندې چه علت د لعنت لپاره کفر ددوئ دې

| بِئْسَمَا | اشْتَرَوْا | بِهٖٓ | أَنفُسَهُمْ | أَن يَكْفُرُوا | بِمَآ | أَنزَلَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ډيربد دې ( هغه خيزچې خرڅ کړېدی دوئ په هغې سره نفسونه خپل چې هغه کفردې په هغه کتاب چې نازل کړېدې | | | | | | |
| اللّٰهُ بَغْيًا أَن يُنَزِّلَ اللّٰهُ مِن فَضْلِهٖ عَلٰى مَن يَشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ۚ فَبَآءُو | | | | | | |
| الله د وجې د ضدنه پدې چې نازلوي الله دفضل خپل نه په هغه چاچې اوغواړي دبندګانوخپلونه. نواخته شودوئ | | | | | | |
| بِغَضَبٍ عَلٰى غَضَبٍ ۚ وَلِلْكٰفِرِينَ عَذَابٌ مُّهِينٌ ۝ | | | | | | |
| په يو غضب دپاسه دبل غضب، اودې کافرانودپاره عذاب ذليله کوونکې | | | | | | |

﴿بِئْسَمَا ٱشْتَرَوْا بِهِۦٓ أَنفُسَهُمْ﴾ اشتروا په معنی د«باعوا» سره دې يعنې دکوم شی په عوض کنبې چه دوئ خپل نفسونه خرڅ کړل اودکوم کار لپاره چه دوئ خپل ځان وقف کړو هغه ډيربد دې، دا دنوع خامس تتمه ده.[1]

﴿أَن يَكْفُرُوا﴾ دا مخصوص بالذم دې ﴿بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ﴾ نه مرادقرآن دې ﴿بَغْيًا﴾ دا د «ان يکفروا» لپاره مفعول له اوعلت دې د﴿مِن فَضْلِهِۦ﴾ نه مراد وحی اونبوت دې او﴿عَلَىٰ مَن يَشَآءُ﴾ نه مراد حضورﷺ دې، مطلب دادې چه اهل کتابو د قرآن نه انکار، دغلط فهمی په بنياد ندې کړې بلکه انکارئې محض دبغض اوحسد په بنا کړيدې ځکه چه ددوئ دا خيال ؤو چه آخری نبیﷺ به زمونږ په خاندان کنبې پيداکيږی اوهغه په بنی اسماعيلوکنبې پيداشو نودوئ ضداوحسدوکړو.

﴿فَبَآءُو بِغَضَبٍ عَلَىٰ غَضَبٍ﴾ «علی» په معنی د«مع» دې ياپه معنی د «بعد» دې يعنی

---

۱- تتمه دنوع خامس.

دوئ مستحق شو ديوغضب سره د بل غضب نه. د اول غضب نه مراد انكار دي د توحيد اورسالت او دقرآن نه او د دويم غضب نه مراد ضداوحسد دي

﴿وَلِلْكَٰفِرِينَ عَذَابٌ مُّهِينٌ﴾ په اسم ظاهر ذكركولو كښې تصريح ده په علت د عذاب چه كفر دي او «مهين» خكه ذكرشوچه ددوئ دكفرلپاره سبب بغى اوحسد ؤو او دا پيداكيږي دتكبر نه او د متكبرسزا اهانت مناسب دي. اولام په «وللكفرين» كښې لپاره داختصاص دي. معنى داده چه عذاب مهين خاص دي په كافرانو پورې او مؤمنانو ته چه په جهنم كښې عذاب ملاويږي هغه د تطهير لپاره دي او د اهانت لپاره ندي. نو استدلال د خوارجو په دې آيت سره باطل شو چه دوئ وايي چه لام لپاره د اختصاص دي. نومعلومه شوه چه عذاب په كافرانو پورې مختص دي او عاصى له خو عذاب وركولې شى نومعلومه شوه چه دې كافر دي. وجه دجواب دغه مذكوره ده

| وَإِذَا | قِيلَ | لَهُمْ | آمِنُوا | بِمَا | أَنزَلَ | اللَّهُ | قَالُوا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

اوكله چه (۱) اوونيلى شي دوئ ته چي تاسو ايمان راوړئ په هغه كتاب(قرآن)چي نازل كړېدي الله نووائ

| نُؤْمِنُ | بِمَا | أُنزِلَ | عَلَيْنَا | وَيَكْفُرُونَ | بِمَا | وَرَاءَهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|

چي مونږ ايمان راوړو پهٔ هغه كتاب چي نازل كړې شوېدي پهٔ مونږ اودوئ كفركوي پهٔ ماسوى دهغې

| وَهُوَ | الْحَقُّ | مُصَدِّقًا | لِّمَا | مَعَهُمْ ط | قُلْ | فَلِمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|

حال داچي هغه حق (۲) دي تصديق كوونكي دي (۳) د هغه كتاب چي دوئ سره دي، ته ورته اووايه پس بيا ولې (۴)

| تَقْتُلُونَ | أَنبِيَاءَ | اللَّهِ | مِن | قَبْلُ | إِن كُنتُم | مُّؤْمِنِينَ |
|---|---|---|---|---|---|---|

قتلول تاسو انبياء دالله مخكښې ددېنه كچرې يئ تاسوايمان راوړنكي په خپل كتاب باندې

﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ آمِنُوا بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ﴾ دا د يهودو ديو باطل قول ترديد دي په پنځه وجوه

---

۱ دانواع خمسنو نه بعد ديهوديانو دباطل قول رد ، په پنځه وجوهاتو سره

۲ - وجه اوله د ترديد

۳ - وجه ثاني دترديد

۴ - وجه ثالثه د ترديد

سره. يعني دوئ نه کله چه د ايمان بالقرآن دعوت ورکړې شي نو دوئ وائی چه زمونږ په خپل کتاب (تورات) باندې ايمان دې اوهرڅوك په خپل دين اوکتاب باندې وی (موسی بدين خود عيسى بدين خود)

﴿وَهُوَ ٱلْحَقُّ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَهُمْ﴾ دا د رد وجه اوله اودويمه ده. يعنی که چرې دوئ په دې خپله دعوی کښې رښتينی وی نوپه قرآن به ئی ضرور ايمان راوړو ځکه دا حق دې او دمخکنو کتابونو مصدق دې په اصولو ددين کښې. نوچه دوئ دقرآن نه انکارکوی نو دحق نه ئی انکاروکړو اود مخکنيو کتابونونه ئی انکاروکړو

﴿قُلْ فَلِمَ تَقْتُلُونَ أَنۢبِيَآءَ ٱللَّهِ﴾ دا دريمه وجه د رد ده يعنې که چرې ستاسوپه خپل کتاب باندې ايمان وې نوتاسو انبيأ ولې قتلول «تقتلون» مضارع ده ۱- خومعنی ئی ماضی ده ۲- يا دا مضارع لپاره د استمرارده ځکه چه کوم صفت چالره په طريقه د لزوم اوعادت سره ثابت وی نوهلته تعبيرپه مضارع سره کيدې شی ۳- يامضارع لپاره دحکايت د ماضيه ده ۴ يانسبه دوئ ته يعنی موجوده بنی اسرائيل ته مجازأ دې ځکه دوئ راضی وو په فعل د آباؤ خپلو

| وَلَقَدْ | جَآءَكُم | مُّوسَىٰ | بِٱلْبَيِّنَٰتِ | ثُمَّ | ٱتَّخَذْتُمُ | ٱلْعِجْلَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوپهٔ تحقيق سره(۱) راغلې وؤتاسوتهٔ موسی په ښکاره معجزوسره. بيا تاسونيولې ووځخې (په عبادت سره) | | | | | | |

| مِنۢ بَعْدِهِۦ وَأَنتُمْ ظَٰلِمُونَ ۝ |
|---|
| روستودتلودهغه نهٔ او تاسوظلم کوونکي يئ |

﴿وَلَقَدْ جَآءَكُم مُّوسَىٰ بِٱلْبَيِّنَٰتِ ثُمَّ ٱتَّخَذْتُمُ ٱلْعِجْلَ مِنۢ بَعْدِهِۦ وَأَنتُمْ ظَٰلِمُونَ﴾ دا څلورمه وجه د رد ده. يعنی که چرې ستاسوپه خپل کتاب باندې ايمان وې نو تاسو دسخی عبادت ولې کولو. نومعلومه شوه چه ستاسوپه خپل کتاب ايمان نشته دې

| وَإِذْ | أَخَذْنَا | مِيثَٰقَكُمْ | وَرَفَعْنَا | فَوْقَكُمُ | ٱلطُّورَ ط | خُذُوا۟ مَآ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| او کله (۲) چې واخيسته مونږ کلکه وعده ستاسونهٔ او اوچت کړو مونږ ستاسودپاسه طورغر. اونيسئ هغه | | | | | | |

---

۱- وجه رابعه.

۲- پنځمه وجه.

| وَ أُشْرِبُوا | وَعَصَيْنَا | سَمِعْنَا | قَالُوا | وَاسْمَعُوا | بِقُوَّةٍ | آتَيْنَاكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چي مونږ درکړېدي تاسو ته په قوت سره او واورئ، دوئ اوونيل واورېدو مونږ اونهٔ منو مونږ. او څکولې شوې وز | | | | | | |
| بِئْسَمَا | قُلْ | بِكُفْرِهِمْ | الْعِجْلَ | فِي قُلُوبِهِمُ | | |
| په زړونو ددوئ کښې محبت دخخي په وجهٔ دکفر ددوئ سره ،تهٔ اووايهٔ چې ډيربددې هغه څيز | | | | | | |
| مُؤْمِنِينَ | إِنْ كُنْتُمْ | إِيمَانُكُمْ | بِهِ | يَأْمُرُكُمْ | | |
| چې پهٔ هغې باندې تاسوته امر کوي ستاسو ايمان ، که يئ تاسو ايمان والا | | | | | | |

﴿وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ﴾ دا پنځه وجه د رد ده يعنی په تاسو باندې طور غرخو ددې وجه نه اوچت کړی شوې ؤو چه تاسو خپل کتاب نه منلو.

﴿سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا﴾ **سوال** : که چرې د «سمعنا» نه سماع قبول مراد وی نو هغه د «عصينا» سره مناقض ده نو ځرنگه به دواړه جمع شی او که «سمعنا» صرف په معنی د آوريدلو سره وی نو صرف آوريدل په غير قبول نه دافع دعذاب «کوه طور راغورزيدل» نشی کيدې.

**جواب** ۱- «سمعنا» يی په هغه وخت کښې ويلی دی چه کله کوه طور ددوئ په سر باندې اوچت شو او «عصينا» ئی بيا په هغه وخت کښې ويلی دی چه کوه طور ترينه لرې کړې شو. يعنی اول ئی وعده وکړه دقبولو نوبيائی روستوترينه خلاف وکړو او «واو» دجمع مطلق لپاره دې نو دا ضروری نده چه دواړوقولونه به ئی په وخت واحدکښې کړی وې ۲- يائی «سمعنا» په ژبه ويلی دی او «عصينا» ئی په ژبان حال سره ويلی دی، جواب اول زيات صحيح دی والله سبحانه وتعالی اعلم.

﴿وَأُشْرِبُوا فِي قُلُوبِهِمُ الْعِجْلَ﴾ دا علت دعصيان دې او اشراب «څښکول» خلط کول د مائع دی دجامد سره اومجازاً ئی اطلاق کيږی په خلط کولو ديو رنگ دبل سره، لکه ويلې شی «بياضٌ مُشربٌ بحمرةٍ» اوعجل خوحيوان دې نو دده اشراب په دواړومعانيوسره نشی کيدې نو لهذا دلته مضاف مقدر دې «ای حُبُّ العجل» او ذکر د «فی قلوبهم» لپاره دبيان دمکان د اشراب دې او دا مفيد دمبالغې دې يعنې محبت دعجل ئی په زړه کښې خلط شوې دې دبدن تمام اعضاؤ ته ئی سرايت کړيدې

﴿قُلْ بِئْسَمَا يَأْمُرُكُم بِهِۦٓ إِيمَـٰنُكُمْ﴾ ايمان دعمل صالح لپاره سبب دي نوددې وجه نه ايمان نه نى امر ويلى دى لكه صلوة سبب دې دمنع كيدلو دفواحشونه نوصلوة ته نى ناهى. ويلى دى ((ان الصلاة تنهى)) اومخصوص بالذم دبئس لپاره محذوف دې چه هغه **قتل الانبيا يا عصيان** دې او دا تهكم دې اورد دې .دعوى ددوئ يعنى ايمان خو دنيك اعمالوحكم كوى او تاسوته ستاسو ايمان دقتل دانبياؤ او دعصيان د انبياؤحكم وكړو نودا ډير بدايمان دې او ايمان خو بد نه وى، نومعلومه شوه چه ستاسو ايمان نشته دې.

| قُلْ | إِنْ | كَانَتْ | لَكُمُ الدَّارُ | الْآخِرَةُ | عِندَ اللَّهِ | خَالِصَةً |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ته ورته اووايه(۱) | که | چرې وى | ستاسو لپاره كور | دآخرت (جنت) | په نيزدالله | خالص يوازې ستاسو |

| مِّن دُونِ النَّاسِ | فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ | إِن كُنتُمْ | صَادِقِينَ ۝ |
|---|---|---|---|
| پۀ غېر(دشركت) دنوروخلقونۀ | نو تاسو اوغواړئ مرگ | كه يئ تاسو | رېښتوني. |

﴿قُلْ إِن كَانَتْ لَكُمُ ٱلدَّارُ ٱلْـَٔاخِرَةُ عِندَ ٱللَّهِ خَالِصَةً﴾ - ((دارالأخرة)) اسم د ((كانت)) لپاره دې او خبر ورته ۱- يا ((خالصة)) دې او ((لكم)) يا د ((كانت)) سره متعلق دې يا د ((خالصة)) سره- ۲- ياخبر د ((كان)) لپاره ((لكم)) دې او ((عندالله)) ظرف دې او ((خالصة)) حال دې ۳- خبرد ((كان)) لپاره ((عندالله)) دې او ((خالصة)) حال دې، او د ((دارالآخرة)) نه مراد جنت دې، صاحب دروح المعانى وائى چه دا رد دې دبلې دعوې د يهودو بعد د رد كولو د دعوې د ايمان ددوئ نه په ما انزل باندې ((نؤمن بماانزل علينا)) او دعامو مفسرينو دكلام نه معلوميږى چه تعلق ددې د ماقبل سره دې چه: تاسو اې يهودو ! په دلائلُ او بحث مباحثې سره قائل نه شوئ، نو راشئ يوه بله آسانه طريقه تاسو ته پيش كؤو، نو صادق (رېښتنى) اوكاذب (دروغژن) به په آسانه طريقې سره معلوم شى او هغه طريقه داده چه : ﴿فَتَمَنَّوُا۟ ٱلْمَوْتَ﴾ او پدې كښې هم دوه توجهين دى : ۱- عامو تفاسيروكښې داسې ده چه كه تاسو رېښتنى ئئ پدې كښې چه جنت ستاسو لپاره دې يقينا نوتمنا دمرگ وكړئ، يعنى موت وغواړئ ځكه چه كوم شې ديومحبوب شى دحصول ذريعه اوسبب وى نو دهغې د ذريعې طلب ضرورى وى، اگركه دا ذريعه فى نفسه مكروه اوترخه وى، نوچه جنت تاسولره يقيناً دې اوجنت ته درسيدلو ذريعه

۱- يهوديانو ته دمباهلې چېلنج.

خوموت دې نو تاسو دموت سوال وکړئ، ليکن مونږ دا پيشين ګوئی کوو چه تاسودموت تمنا هرګزنه کوئ نومعلومه شوه چه تاسوپه خپله دعوی کښې کاذب اودروغژن يئ ۲. د ابن عباس رضي الله عنه نه مروی دی چه مراد ددينه مباهله ده اوپدی آيت کښې دعوت دمباهلې دې يهودوته لکه سورة الجمعه کښې ددې ذکردې ﴿قُلْ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ هَادُوا إِنْ زَعَمْتُمْ أَنَّكُمْ أَوْلِيَاءُ لِلّٰهِ مِنْ دُونِ النَّاسِ فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ﴾ او ابن کثيروائی چه په دې آيت کښې هم دا متعين ده چه مراد ترينه دُعا على وجه المباهله ده نو حضور ﷺ دعوت دمباهلې يهودوته هم ورکړې دې لکه پدې آيت کښې او دارنګه په سورت جمعه کښې اونصاری ته ئې هم ورکړې دې لکه په سورة آل عمران کښې، ابن کثيرپه اول توجيه باندې اعتراض کوی : ۱. نشته ملازمه په مابين دوجود دصلاح اوتمنی دموت کښې يعنی دا څه ضروری نه ده چه صالح وی نوهغه به موت غواړی ځکه ډير صالحان داسې دی چه تمنی دموت نه کوی بلکه طويل عمر غواړی لپاره د ازدياد دخير او د رفع د درجاتولکه په حديث کښې راغليدی چه «خيركم من طال عمره وحسن عمله» ۲- که دغسې ملازمه شی نو يهود به مسلمانانوته ووائی چه تاسوخوجنتيان ئی نوتاسوولې مرګ نه غواړئ . ۳ - صحيح حديث دې چه : «لايتمن احدكم الموت ولايدع به» نوچه نبی کريم ﷺ تمنی دموت منع کړيده نو بيا دوئ ته څرنګه دعوت ورکوی. صاحب دروح المعانی وائی چه دلته يهوديانوته چه دکوم موت دعوت ورکړې شوې دې نو دهغې منع په حديث کښې نده راغلې اوپه حديث کښې چه منع راغليده نو تمنا اوسوال دهغه موت دې چه ( لضرنزل به) وی، نو دهغې دعوت ندې ورکړې شوې، او د اول اودويم اعتراض جواب دکلام دبعضو مفسرينونه معلوميږی چه مسلمانانو خپل نجات محض دمسلمان خاندان يانسب اونسلی تقدس باندې ندې بناکړې لکه چه يهودو داسې کړی دی بلکه مسلمانان خپل نجات اودخول جنت ته صرف په ايمان اواعمال صالحوباندې بناکړيدې اوسره دخوف ددينه چه دا زمونږ ايمان او اعمال به دحشرپه امتحان کښې دمعيار مطابق وی اوکه نه به وی؟ نو ددې وجه نه دوئ تمنا دموت نه کوی اوطول عمر دزيادت دخير او رفع درجاتو لپاره غواړی. بل دا چه دا مطالبه د هريهودی اوهرې زمانی لپاره نده. بلکه دا صرف په هغه معاندينو يهودو پورې مخصوصه ده چه دنبی ﷺ په زمانه کښې موجودوو . صرح به الروح عن ابن عمر. ليکن راجح توجيه د ابن عباس رضي الله عنه ده، ابن کثيرمتعينه کړيده ځکه په هغې باندې هيڅ سوال نه راځی والله اعلم

وَلَنْ يَّتَمَنَّوْهُ اَبَدًاۢ بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِالظّٰلِمِيْنَ۝

او هرګز دوئ نه غواړي مرګ هيڅکله په وجه دهغه عملونو چې مخکښې ليږلی دی لاسونو ددوئ. اوالله عالم دې په ظالمانو

وَلَتَجِدَنَّهُمْ اَحْرَصَ النَّاسِ عَلٰى حَيٰوةٍ ۚ وَ مِنَ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا ۚ

اوخامخا به اوومومې ته دوئ لره ډيرحرصناک دخلقونه په ژوند ددنيا. اودمشرکانونه هم زيات.

يَوَدُّ اَحَدُهُمْ لَوْ يُعَمَّرُ اَلْفَ سَنَةٍ ۚ وَمَا هُوَ بِمُزَحْزِحِهٖ مِنَ الْعَذَابِ

غواړي هريوددوئ نه چې عمرورته ورکړې شی زرکاله ، او ندې دغه عمربچ کوونکې دوئ لره دعذاب نه

اَنْ يُّعَمَّرَ ؕ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِمَا يَعْمَلُوْنَ۝

که عمرورکړې شی. اوالله ليدونکې دې په هغه عملونوچې دوئ ئې کوي

﴿وَلَن يَتَمَنَّوْهُ أَبَدًا﴾ دا پيشين ګوئی ده چه لکه دا يهود فی الحال تمنانه کوی نو دا رنګه په استقبال کښې هم دوئ ديته ندی تيار.

﴿بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ﴾ مراد ددينه هغه اعمال دی چه موجب دجهنم دی لکه تکذيب او انکار دحضورﷺ او دقرآن اوتحريف په کتاب الله کښې.

﴿وَلَتَجِدَنَّهُمْ أَحْرَصَ النَّاسِ﴾ دا ترقی ده دماقبل نه يعنی تمنا دموت خو درکنار. بلکه دوئ په ټولوخلقوکښې زيات حرص کونکی دی په زندګی د دنيا باندې او محبت دزندګی او نفرت دموت نه اګر چه يوطبعی څيز دې اوپدې څوك ملامت کول ندی پکارخو ديهودو حبّ دنيا دطبعی حدودو نه تجاوزکړې وو او دنيا پرستی ئی مقصود اصلی ګرزولې ود. چنانچه تفسير ماجدی ديهودوقول په حواله د ‹‹**جيوش انسائيکلوپيډيا**›› نه نقل کړې دې چه ‹‹دنيوی زندګی لوئ نعمت دې. معصيت به برداشت کيږی خوموت به نه برداشت کيږی ››وغيره. اوپه (لتجدنّ) کښې خطاب حضورﷺ ته دې او وجدان په معنی دعلم سره دې نودوه مفعوله غواړی مفعول اول ورله ‹‹هم›› دې اومفعول ثانی ئی‹‹احرص الناس›› دې اولام په ‹‹الناس›› کښې لپاره دجنس دې

﴿وَمِنَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا﴾ من حيث المعنی عطف په الناس دې ‹‹ای احرص من الناس ومن الذين اشرکوا›› اومراد ‹‹الذين اشرکوا›› نه يا مجوس دی. چه ددوئ تحيه او دعا داسې وه

عشْ الف سنة ، عش الف نیروز،، یا ترینه مراد مشرکین عرب بت پرستان دی. چه منکردي دبعث بعدالموت نه او دیهودو حرص دهغوئ نه څکه زیات ؤچه هغوئ خو دبعث نه منکرؤو نو دعذاب اُخروی قائل نه ؤو اویهود دبعث بعدالموت قائل ؤو. او دخپلي غلطي عقیدي ورته علم ؤو او دحق انکارئی دضد او تعصب دوجه نه کولو نو دوئ ته علم ؤو چه دمرګ سره زمونږ عذاب شروع کیدونکي دي نو څکه دوئ دطول حیاة متمنی ؤو

**تنبیه** ،،ومن الذین اشرکوا،، چه عطف شی په ،،الناس،، باندي نوبیاوقف په ،،اشرکوا،، دي اوپه ،،علی حیاة،، باندي وقف نشته دي، لیکن مفسرینو،املاء مامن به الرحمن، لیکلی دی چه دلته دا احتمال هم شته دي چه ،،ومن الذین اشرکوا،، دما بعدسره متعلق شی نو تقدیر به دارنګه شی ،،ومن الذین اشرکوا قوم یود احدهم لو یعمر،، نو ،قوم، مبتدأ موصوف ،،یوذ۔ الایه،، ئی صفت ،،من الذین، خبر مقدم، نو بیا به وقف په ،،علی حیٰوة،، باندي شی او په ،،ومن الذین اشرکوا،، کښي وقف نشته دي، نوځکه په نسخو دقرآن کښي دلته او دغسي په نورو داسي ځایونو کښي په حاشیه باندي لیکلی وی ،،معانقه،،،اوپه صلب کښي ئی دوقف نشان په علی ،،حیٰوة،، اوپه ،،اشرکو،، لګولي وی چه پدي کښ اشاره ده چه وقف په اول هم کیدیشی اوپه ثانی هم کیدشی، او دبعضي علماؤ نه منقول دی چه په معانقه کښي وقف په اول کښي اوپه دویم کښي کیدیشی خو اولی داسي ده چه په نصف اول دقرآن کښي وقف په موضوع ثانی کښي وشی اوپه نصف دویم دقرآن کښي وقف په اول کښ ؤشی اودا من حیث المعنی راجع ده

﴿لَوْ يُعَمَّرُ أَلْفَ سَنَةٍ﴾ دا ،،لو،، مصدریه دي ،،ای عُمرَالفَ سنةٍ،،دلولپاره اقسام کثیره دی. مشهور دهغي نه دادی : ۱- مصدریه ۲- تمنائیه ۳- شرطیه۴- استمراریه ۵- استدلالیه. ددي نه علاوه نور هم علماؤ دعربیة لیکلی دی او مذکور دی په شروح دمختصرالمعانی کښي. تفسیر ماجدی کښي وائی چه د تطویل عمرچه عجیب نظیرئی په دي دورکښي په یورپ ممالکو کښي قائم کیږی اوقسم قسم تدبیرونه اونسخي ددي لپاره ایجادکیږی نوپدي تولو کښي زیات پیش . پیش صرف یهودی، ډاکټران اواهل سائنس دی .

﴿وَمَا هُوَ بِمُزَحْزِحِهِ مِنَ الْعَذَابِ أَن يُعَمَّرَ﴾ ،ما، نافیه ده او ،،هو،، اسم ددي دي او ،،بمزحزحه،، ورته خبر دي او ،،ان یعمر،، بیان د ،،هو،، دي ،،ای ماالعمربمزحزحه من العذاب،، یعنی عمرکه لږ وی اوکه زیات وی خو پدي سره نجات دعذاب نه . نهٔ میلاویږی. بلکه نجات په ایمان اوعمل صالح سره دي.

| قُلْ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيْلَ فَإِنَّهٗ نَزَّلَهٗ عَلٰى قَلْبِكَ بِإِذْنِ اللّٰهِ |
|---|
| اووایه نه (۱) څوک چې وی دښمن د جبریل، پس بیشکه ده داقران راوړې دې په زړۀ ستاباندې په حکم دالله سره (۱) |
| مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَهُدًى وَّ بُشْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ ۝ مَنْ كَانَ |
| تصدیق کوونکې (۲) دهغې کتابونو چې د دې نۀ مخکښې دي اوهدایت(۱) اوزیری(۲) دمومنانودپاره څوک چې وي(۱) |
| عَدُوًّا لِّلّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَرُسُلِهٖ وَجِبْرِيْلَ وَمِيْكٰلَ فَإِنَّ اللّٰهَ عَدُوٌّ لِّلْكٰفِرِيْنَ ۝ |
| دښمن دالله اوملائکودالله اودرسولانو اودجبریل اودمیکائیل نوبیشکه الله دښمن دې دَ کافرانو |

﴿قُلْ مَن كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيلَ﴾ دا په اخیرکښې د دعوی توحید په باره کښې دیهودو درې شبهو جوابونه ذکرکیږی، دا د ؛ **ولې شبهې جواب دې** : شبهه دا وه چه وحی (چه اهم اوبنیادی حصه دهغې توحید دې) راوړنکې فرشته جبریل ﷺ دې او هغه زمونږ دشمن دې ځکه هغه زمونږ رازونه حضرت محمد ﷺ ته وائی او دارنګه د قحط سالی پیغام راوړی اوبخت نصر چه په بیت المقدس ئی حمله وکړه نو جبرئیل دَ دغه ظالم مدد کړې وو، او یهودیان یې تهس نهس کړی وو اوبیت المقدس ئی بربا دکړې وو ((فی الروح قال عراقی لم اقف له علی سنده)) اوکه چرې پیغام توحید بلې فرشتی یا میکایل ﷺ راوړې وې نو مونږ به منلې وې. **نوجواب** راغې چه دجبریل ﷺ سره ددشمنۍ هیڅ جواز نشته دې ((من کان)) شرط دې اوجزاء ورلره مقدر ده ((ای فلاوجه له ، فلا انصاف له)). یا ((فعداوته باطل)) او ددې محذوف جزاء لپاره پنځه علتونه ذکرشویدی اول علت ﴿فَإِنَّهُۥ نَزَّلَهُۥ عَلَىٰ قَلْبِكَ بِإِذْنِ ٱللَّهِ﴾ یعنی جبریل ﷺ دا وحی په خپله مرضی نده راوړې بلکه دالله تعالی په حکم ئی نازل کړیدې، دویم علت

۱ - دتوحید متعلق دیهودیانو درې شبهات اودهغې جوابونه . داول شبهې جواب.
۲ - اوله وجه دجواب
۳ - دویمه وجه
۴ - دریمه وجه
۵ - خلورمه وجه
۶ - پنځمه وجه

﴿مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ﴾ يعنی دا وحی څه نوې اونا آشنا خبره خونه ده. بلکه دا دمخکنی کتابونو د اصولی مضامينو تصديق کونکې دې، دريم علت ﴿وَهُدًى﴾ يعنې دا قرآن توحيد اوهدايت دې نو دهدايت سره عداوت کول هيڅ جوازنه لری، څلورم علت ﴿وَبُشْرَىٰ﴾ يعنې دا قرآن خو بشارت دې نو ددې سره عداوت ندې پکار. پنځم علت ﴿مَنْ كَانَ عَدُوًّا ـ الايه﴾ يعنې دجبريل ﷺ سره دعداوت انجام دادې چه دا درحقيقت عداوت دې دالله تعالی او دټولوملائکوسره اوڅوك چه عداوت کوی دالله تعالی اودده ملائکوسره نوالله تعالی هم دهغوئ سره عداوت کوی اوداسې عذاب ورله ورکوی چه کوم دشمن ته ورکوی

﴿فَإِنَّ اللَّهَ عَدُوٌّ لِّلْكَافِرِينَ﴾ داوضع د اسم ظاهرده په ځائ دضمير باندې اوتخصيص د **جبريل اوميکائيل** - ۱- يا لپاره داظهار دشرافت ددې دواړودې په نورو ملايکو ۲- يا ددې وجه نه دې چه ددې دواړو ملايکو ذکر يهودو کړې وُو.

| وَلَقَدْ أَنزَلْنَا إِلَيْكَ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ ۖ وَمَا يَكْفُرُ بِهَا إِلَّا الْفَاسِقُونَ ۝ |
|---|
| اوپه تحقيق سره (۱) نازل کړی دی مونږ تاته آياتونه ښکاره،اوانکارنه کوي دَدې نه مگرنافرمان خلق |
| أَوَكُلَّمَا عَاهَدُوا عَهْدًا نَّبَذَهُ فَرِيقٌ مِّنْهُم ۚ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ۝ |
| آيا اوهروخت(۲) چې وعده اوکړي دوئ يو وعده نوماتهٔ کړي هغه يوه ډله ددوئ نه. بلکه ډېر ددوئ ايمان نه لري |

﴿وَلَقَدْ أَنزَلْنَا﴾ دا زجراول دې يهودوته په انکار دقرآن سره ﴿أَوَكُلَّمَا عَاهَدُوا﴾ دا زجر ثانی دې ((ای اينکرون فسقهم و کلماعٰهدوا)) يعنې ددوئ په خپل کتاب باندې مخلصانه ايمان نشته دې. صرف زبانی اقرارمنافقانه طورباندې ايمان وُو، نو چه د چا دخبث باطن دا حال وی نو هغه به څرنگه په قرآن باندې ايمان راوړی.

---

۱ زجر اول

۲ دويم زجر

وَلَمَّا جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ

اوهركله ( ) چه راغلو دوئ ته رسول دطرفه دالله نه تصديق كوونكې دهغه كتابونو چې ددوئ سره دي

نَبَذَ فَرِيْقٌ مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ ۙ كِتٰبَ اللّٰهِ وَرَآءَ ظُهُوْرِهِمْ كَاَنَّهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝

نو او غورزولو يوې ډلې داهل كتابو. كتاب دالله روستو دشاګانو خپلونه لكه ګويا چې دوئ نه پوهيږي.

﴿وَلَمَّا جَآءَهُمْ رَسُولٌ مِّنْ عِندِ ٱللَّهِ﴾ داددويمې شبهې جواب دې. شبه داوه چه مونږ مسئله دتوحيدڅكه نه منو چه حضرت سليمان ﷷ جليل القدر پيغمبرؤو اوهغه عمل دسحر او دجادوكړيدې اوپه سحراوجادوكښې استعانت دغيرالله نه وى. نومعلومه شوه چه استعانت دغيرالله نه جايز دې نوستا دعوى چه (استعانت مافوق الاسباب) خاص دې په الله تعالى پورې چه دا دعوى مذكوره ده په فاتحه كښې په ((اياك نعبدوا واياك نستعين)) سره اوپه سورة بقره كښې په ((ياايهاالناس اعبدواربكم)) سره، صحيح نشوه. اوتقرير دشبهِ ثالثهِ چه جواب ئې په مابعد كښې رازى هم پدې طرزسره دې. خوهلته نسبت دسحر ملايكوته دې اودلته سليمان ﷷ ته دې. حاصل دجواب ددې شبهې دادې چه سحر خو كفر دې نو نسبت كول دَ سحر سليمان عليه السلام ته غلط دى. حضرت الشيخ رحمه الله فرمائى چه لكه څرنګه چه يهوديانو دخپلو شركيه عقايدو داثبات لپاره دا دعوى وكړه چه حضرت سليمان ﷷ سحراوجادوكړې ؤو نودغه شان موجوده دور كښې شرك پسند او بدعت نواز خلق دخالص توحيداوسنت په مقابله كښې من ګهړت قصې ، بى سنده كتابونه ،بزرګانِ دين ته منسوب كوى چه مثلا دا قصيده غوثيه ده منسوبه دشيخ عبدالقادر جيلانى ﷫ ته، اودا قصيده نعمانيه ده منسوبه ده امام ابوحنيفة ته، او دا بهجة الاسرار دې وغيره وغيره .څكه دروغ خبره خومنلې نه شى ترڅوچه نسبت ئى ونه شى يوبزرګ اومسلّم شخصيت ته، نوحضرت الشيخ ﷫ فرمائى چه كه دصريح نصوص په مقابله كښې دغه شان عبارات پيش كړې شو. اونسبت ئى ؤشو يوبزرګ اومسلم شخصيت ته : ۱- نوددغه نسبت نه به صاف انكار كولې شى لكه دلته وويلې شو ﴿ وَمَا كَفَرَ سُلَيْمَٰنُ ﴾ لكه څرنګه چه كذّابُ.وضاعُ خلقُ خود ساخته خبرې حضور ﷺ ته منسوب كړيدى چه ديته احاديث موضوعى ويلې شى.نودغه شان

۱-د دويمې شبهې جواب.

د توحید اوسنت غدارانو من گهړت خرافات بزرگان دین ته منسوب کړیدی. نولهذا ددې نسبت نه به انکارکولې شی او ۲ - کچرې ددغه عباراتو نسبت بزرگانو طرفته په صحت سره ثابت شی نو بیا به ئې تاویل کولې شی او داسې محمل به ورته بیانولې شی چه هغه دقواعدشرعیو سره مطابق وی ۳- اوکه چرې پدغه الفاظوکښې دتاویل گنجایش نه وُو نو بیابه داسې ویلې شی چه دا کلمات اوعبارات دده نه په حالت دغلبه حال کښې صادرشوی دی چه پدې کښې هغه معذورؤو، بهر حال دقواعدشرعیو خلاف به دچا قول قابل قبول نه وی خواه هرڅومره لوئ ولی یا امام وی.

﴿وَلَمَّا جَآءَهُمْ رَسُولٌ﴾ دا تنوین لپاره تفخیم اودتعظیم دې ﴿مِّنْ عِندِ اللَّهِ﴾ دا صفت دې لپاره دتعظیم په «رسول» کښې تعظیم ذاتی وُو اوپه «من عند الله» کښې تعظیم دې په اضافت الی الله سره. ﴿مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ﴾ دا هم صفت دې لپاره دتعظیم اوپه دیکښې تعظیم اوتفخیم علمی دې ﴿نَبَذَ فَرِيقٌ مِّنَ الَّذِينَ أُوتُوا﴾ دا جواب د «لما» دې اوپه ذکر دفریق کښې اشاره ده دیته چه په اهل کتابوکښې څه کوم متعصب نه وُو نوهغوئ ایمان راوړې وُو ﴿كِتَابَ اللَّهِ﴾ دا مفعول د «نبذ» لپاره دې ا ومراد دکتاب الله نه تورات دې او مراد د دینه چه کتاب الله ئې شاته وغورزولو، ظاهری معنی نه ده مراد څکه چه دوئ دخپل کتاب درس اوتدریس هم کولو اوپه سروزرو اوسپینوزرو اوریښموکښې یې انغښتلو بلکه مراد دادې چه دکتاب الله حلال اوحرام ئې حلال حرام نه گڼړل اوپه هغې ئې عمل نه کولو نوگویاکښې ترک عمل شاته غورزول دی اگرچه ظاهری ادب اواحترام وی.

| وَاتَّبَعُوا مَا تَتْلُوا الشَّيَاطِينُ عَلَىٰ مُلْكِ سُلَيْمَانَ ۖ وَمَا كَفَرَ سُلَيْمَانُ |
|---|
| اوتابع شودوئ د هغه څه چې لوستل به شیطانانو په زمانهٔ دبادشاهئ د سلیمان کښې. اوکفرنهٔ وُو کړې سلیمان |
| وَلَٰكِنَّ الشَّيَاطِينَ كَفَرُوا يُعَلِّمُونَ النَّاسَ السِّحْرَ وَمَا أُنزِلَ |
| لیکن شیطانانو کفرکوؤ چې خودلو بهٔ ئې خلقوتهٔ جادواو(تابع شو دوئ) دهغه څه چې نازل کړې شوی وُو |
| عَلَى الْمَلَكَيْنِ بِبَابِلَ هَارُوتَ وَمَارُوتَ ۚ وَمَا يُعَلِّمَانِ مِنْ أَحَدٍ |
| پهٔ دوهٔ ملائکوباندې په بابل ښار کښې چې هاروت اوماروت وُو اودوئ دواړوبهٔ خودنه نه کوله هیچاته |
| حَتَّىٰ يَقُولَا إِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ فَلَا تَكْفُرْ ۖ |
| ترڅوچې دابهٔ ئې ورتهٔ نه وُو وئیلې چې بیشکه مونږ ستاسودپاره امتحان یونوکفرمه کوه پهٔ جادوکولو سره |

فَيَتَعَلَّمُوْنَ مِنْهُمَا مَا يُفَرِّقُوْنَ بِهٖ بَيْنَ الْمَرْءِ وَزَوْجِهٖ ط

نو بس دوئ به زده کولو ددې دوارو ملائکو نه هغه څه چې جدائي به ئ راوستله په هغې سره په مينځ دخاوند او ښځې کښې

وَمَا هُمْ بِضَآرِّيْنَ بِهٖ مِنْ اَحَدٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ط وَيَتَعَلَّمُوْنَ مَا

او نه وو دوئ نقصان اوضرر رسونکي په دې سره هيچاته مګر په اذن دالله سره. او زده کولو به دوئ هغه څه

يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ ط وَلَقَدْ عَلِمُوْا

چې نقصان به ئې ورکولو دوئ ته او نفع به ئې نه ورکوله دوئ ته او يقينًا تحقيق سره دوئ عالمان وو په دې

لَمَنِ اشْتَرٰىهُ مَا لَهٗ فِي الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ قف وَلَبِئْسَ

چې خامخا چاچې واخيسته سحر په بدل دکتاب الله کښې نو نه به وي دهٔ لره په آخرت کښې هيڅ حصه. او خامخا ډېر بد دی

مَا شَرَوْا بِهٖٓ اَنْفُسَهُمْ ط لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ۝ وَلَوْ اَنَّهُمْ اٰمَنُوْا

هغه څه چې دوي خرڅ کړي دي په هغې سره نفسونه خپل، که دوئ پوهيدلې او که چرې دوئ ايمان راوړې وې

وَاتَّقَوْا لَمَثُوْبَةٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ خَيْرٌ ط

او خان ئې ساتلې وې دکفر او جادونه نو خامخا هغه بدله (چه ميلاويګی) د طرفه د الله نه هغه ډېره غوره ده

لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ۝

که دوئ پوهيدلې

﴿وَٱتَّبَعُوا۟ مَا تَتْلُوا۟ ٱلشَّيَٰطِينُ﴾ يعني يهوديانو کتاب الله پريخود او اتباع ئی دهغه سحر او جادو وکړه چه شياطينو به لوستل. تفسير کبير. قرطبی په روايت دسدی سره نقل کړی دی چه يهودو اول معارضه دحضور ﷺ سره په تورات سره وکړه. نوچه هغه موافق ؤو دقرآن سره په بيان دتوحيد کښې. نو دوئ تورات هم پريخود اومقابله ئی په جادو سره شروع کړه لکه په موجوده دورکښې بعضې خلق دقرآن داستدلال په مقابله کښې من ګهړت قصې. بې سنده اقوال نقل کوی.

«تتلوا» دتلاوت نه ماخوذ دي يا د «تلوَ» نه چه په معنی د اتباع سره دې او مراد د «شياطين» نه ياجنی دی لکه دا قول د اکثرو دې او يا ترينه مراد انسی شياطين دی. او دا زيات ظاهر دې ځکه تعليم ورکول انسانانو ته عادةً انسان کوی ﴿عَلَىٰ مُلْكِ سُلَيْمَٰنَ﴾ مضاف بکښې

مقدر دي ، اى على عهدملك سليمٰن، يعني په زمانه دبادشاهى دسليمان ﷺ کښې. **ابن جرير وغيره** په روايت دقتادة رحمه الله نقل کوى چه دحضرت سليمان ﷺ په زمانه کښې شياطينو يو کتاب تيار کړو چه په هغې کښې جادو او کفر اوشرك ؤو اوپه خلقو کښې ئى دهغې نشر او اشاعت وکړو اوخلقو ددې تعليم اوتعلم شروع کړو، نوحضرت سليمان ﷺ ته چه هرکله د دې خبرې علم وشو نوهغه شياطين قيدکړل اوکتابونه ئى ضبط کړل او دخپل تخت دلاندې ئى دفن کړل اودسحر چرچه ختمه شوه. بياچه کله سليمان ﷺ وفات شو نو جنّاتو بياهغه کتابونه راوويستل اوخلقوته ئى دا مشهوره کړه چه دا دحضرت سليمان ﷺ مخصوصې نوشتې او دهغه علمى خزانې دى اوپدې سحراوجادوسره دهغه حکومت چليده اوجن اوانس اوهوا دهغه تابع وه او دبعضې کتابونو په ابتدأ کښې په طور دخطبه الحاقيه سره يې داسې عبارات ؤلګول چه ،،هذاماکتب آصف بن برخياللملك سليمان بن داؤد من ذخائر كنوزالعلم،، او غه کتابونه اونوشتې دحضورﷺ د زمانې يهوديانوته رسيدلې وې جادو او سحر پدې وجه ددوئ سره زيات ؤو ،،وماکفرسليمان،، مراد نفى د سحرده يعنې سحرنه ؤوکړې سليمان ﷺ خکه يهودو نسبت دسحرکړې ؤو سليمان ﷺ ته خو چونکه دا سحرکفرؤو نوځکه نفى دکفر وشوه. شاه عبدالعزيز رحمه الله فرمائى چه دجادو ديارلس ١٣ قسمونه دى او د ټولوخلاصه استعانت دغيرالله نه او استمداد د ارواح خبيثونه دې يعنې خلاصه دسحرکفراوشرك دې

حضرت شيخ الشيوخ رحمه الله فرمائى چه **په کومو وظائفوکښې استمداد دغيرالله** نه وى نو دغه هم سحر دې او حرام دې او په هغې چه کوم آثار عجيبه مرتب کيږى نوپه هغې دهوکه کيدل نه دى پکار ځکه ترتب د آثارو تکوينى امر دې اوحرمت تشريعى امر دې. شاه عبد العزيز رحمه الله فرمائى چه د **جادو ګر سزا قتل** دې او دقتل نه بعد به نه په هغه دجنازې مونځ کولې شى او نه به دمسلمانانوپه قبرستان کښې خخولې شى. البته که چرې ساحر دخپل سحرنه توبه کوى نوتوبه ئى قبليدېشى.

﴿وَمَآ أُنزِلَ عَلَى ٱلْمَلَكَيْنِ﴾ دا د دويمې شبهې جواب دې، تقرير دشبهې په مثل دتقرير دشبهې ثانى دې. اوحاصل دجواب دادې چه فرشتو اجازت دسحر ندې ورکړې بلکه دا ئى ويلى دى چه ﴿فَلَا تَكْفُرْ﴾ لفظ د ،،ما،، په ما أُنزل کښې په نزد دبعضو مفسرينو نافيه دې او دا عطف دې په ،،وماکفرسليمن،، باندې ،،اى ما کفرسليمٰن وما أُنزل على الملكين،، او مراد د

،،ملكين،، نه جبريل اوميكايل عليهم السلام دی، ځکه يهودو ويلی ؤو چه په جبريل ﷺ اوميكايل ﷺ باندې سحرنازل شوې دې. نو الله تعالی ئی رد وکړو چه پدوئ سحرنه ؤ نازل شوي نو اصل عبارة داسې دې ((وما كفرسليمٰن ومااُنزل على الملكين ولكن الشيطين كفروا يعلمون الناس السحرببابل)) او ،،هاروت،، او ،،ماروت،، بدل دې دشياطين نه. قرطبی دې تركيب ته اصح ويليدی اوصاحب دروح المعانی وائی ((والعجب ماقاله الامام القرطبی – الخ )).

او **مخکښې** بياليکی ((لاينبغی لمؤمن حَمَلَ كلام الله وهوفی اعلى مراتب البلاغة والفصاحة على ماهوادنى من ذلك وماهوالامسخ لكتاب الله ــ الخ)) او راجح په نزد دجمهورومفسرينو دادې چه ،،ما،، موصوله دې په معنی د ،،الذی،، سره او دا عطف دې ۱- ياپه ،،ما تتلو،، باندې نو تقرير دعبارة دارنګه دې ((واتبعواماتتلوالشيٰطين ــ الايه واتبعوا مااى الذى انزل على ملكين)) ۲- يا عطف دې په ،،السحر،، باندې ((اى يعلمون الناس السحر ومانزل على الملكين)) . پدې دواړو تقديرينو باندې لفظ د ،،ما،، په موضع دنصب كښې دې ۳- او چا ويلی دی چه په موضوع دجر كښې دې عطف دې په ،،ملك سليمان،، باندې. تقديردارنګه دې ((على عهدملك سليمن وعلى عهدالذى انزل على الملكين)) .اود ،،اُنزل،، نه مراد وحی نده بلکه د الهام په ذريعه تعليم مراد دې او،،ملكين،، په فتحې دلام سره دې يعنی دوه فرشتې مراددی او ﴿هَـٰرُوتَ وَمَـٰرُوتَ﴾ بدل دې دملكين نه لكه دا قول اصح دې عندالمفسرين.

**دآيت په تفسيراوشان نزول** كښې بعضې مفسرينواسرائيلی روايات ذكركړيدی چه هغه په صحيح معتبرسند سره نه دی ثابت. بلکه هغه قصه چه مشهوره ده نو په نزد د محققينو خلاف شرع اوغلطه ده او دآيت حل اوتشريح پدغه قصه موقوف هم ندې. نودلته **ددوو خبرو بيان** پكاردې ۱- يود آيت صحيح تفسيراوصحيح حل ۲- اوبل ددغه غلطې قصې رد. نو دامر اول تشريح داسې ده چه : يوزمانه چه د هغې پوره تعين په تحقيق سره معلوم ندې او صاحب د روح المعانی وائی چه ويلی شوی دی چه دغه زمانه د ادريس ﷺ ده. نوپدغه زمانه كښې په توله دنيا كښې اوخصوصاً په بابل كښې (چه دا د زمكې دكوفې نه ده اوپدغه زمانه كښې د عراق دار الخلافه بابل ؤو) دسحراو جادو ډيره چرچه وه نوچه دسحر عجيب اوغريب تاثير به خلقو ؤليدو نو ساحران اوجادو ګران به ئی نيكان ګنړل او د انبياء دمعجزاتو او دجادوګرو دجادو فرق مشكل شو نو دساحراو دنبی فرق هم مشكل شو او خلقو دجادوګرانو په جادو

باندې دمعجزې گمان کولو لکه پدې دورکښې بعضِ خلق (مسمریزم) پوخ کړی اوپه هغې چه عجیب غریب آثارمرتب کیږی نوهغې ته کرامت وائی او دولایت اودغوث ،قطب. دعوه کوی نو الله ﷻ ددغې داشتباه درفع کولوپاره په بابل کښې دوه فرشتې راؤلیږلې چه دجادو او دمعجزې فرق ظاهرکړی چه دنبی او دساحر امتیاز راشی، **باقی دا خبره** چه دا کار د انبیاؤ نه ولې وانه خیستې شو. **نوجواب** دادې چه یود دې وجه نه چه مقصود خو دانبیاؤ او د جادوگرو په مینځ کښې امتیازکول ؤو نو انبیأ یوفریق ؤو نوحَکَمْ بل څوك مناسب ؤو. اوبل ددې وجهِ نه چه امتیاز دَ معجزې او دجادوچه په کوم عمل سره راځی نوپه هغې کښې دا خطره وه چه ددې دوجهِ نه خلق په فتنه اوگمراهئ کښې واقع نه شی لکه چه دغسې ؤشوو او د انبیاؤ دبعثت مقصدصرف هدایت وی اودوئ مظهرِدهدایت وی نو ددې وجهِ نه د انبیأ دشان سره هغه عمل مناسب نه ؤو چه په هغې باندې مفسده مرتب کیږی . اوپه خلاف دملائکو. ځکه چه دوئ په تکوینی خدماتومسلط دی اوپه تکوینیاتوکښې بعضې امور دتشریعیاتوخلاف وی لکه تربیت دمُضراو زهریله حیواناتو چه تشریعاً ددوئ دقتل حکم دې، اوتکویناً ملائکوته دتربیت حکم دې . نوهرکله چه دا دواړه فرشتې راغلې اوخلقو ته ئی دجا دواو دمعجزې فرق بیانول شروع کړل اوظاهره ده چه فرق اوتمیز هله راتلې شی چه دسحرڅه بعض اصول اوفروع ظاهرکړیشی نو دوئ به چه دا اصول فروع چاته بیانول نو بطوراحتیاط ئی دا التزام وکړو چه دسحر د اصولُ اوفروعُ خودلونه مخکښې به ئی ورته ویل ﴿إِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ فَلَا تَكْفُرْ﴾ یعنی الله تعالی زمونږپه ذریعه دبندگانو آزمایش کوی نو تاسو چرته دسحر د اصولو او دفروعو زده کولوپه وجه کفرعملی یا اعتقادی اختیارنه کړئ، لیکن یهودوبه ترینه جادو زده کړو اوعمل به ئی پرې شروع کړو اوپه جادوکښې ناکاره جادو هغه ؤو چه دښځې اوخاوند جدائی به ئی راوستله لکه دطویل حدیث په ذیل کښې داسې راغلیدی چه ابلیس دهغه شیطان سره محبت کوی چه دښځې اوخاوند په مابین کښې تفریق راولی، نودوئ به دغه قسم جادو زده کولو . اوددې مثال دادې چه یوعالم چاته ووائی دوه روپئ په بدله دیوې روپئ کښې اخستل ربوا او سود دې اوحرام دی نوهغه په ځائ دمنع کیدلو ربوا شروع کړی، یا یو مدرس خپل شاگردانو ته په دوران ددرس کښې دحکماؤ په باره کښې دمعتزلو مذهب بیان کړی اوبیائی بطلان ثابت کړی، لیکن شاگرد دغه باطل مذهب اختیارکړی نوظاهره ده چه دلته غلطی د شاگرد ده نه داستاذ. دا تشریح اوحل دآیت شو،باقی پاتی شو**امرِدویم**،بیان دهغې دادې چه

بعضي مفسرينو دلته يو عجيبه غريبه قصه په مختلف سندونو او مختلف الفاظوسره ليکلي ده
منجمله دهغې نه داده چه د انسانانو عملونه به آسمان ته ختل نوفرشتوبه په دوئ تشنيع او اعتراض کولو چه دا انسانان ولې دالله ﷻ نافرماني کوي، نوالله تعالى ورته وويل چه ددوئ سره نفس امّاره بالسوء لګيدلي دې او خواهشات ورسره دی نوځکه ترينه ګناه صادريږي اوکه دتاسو سره دا ولږي نوتاسونه به هم بيا ګناه صادره شي، نو دوئ وويل چه که زمونږسره خواهشات اوشهوت ولګيږي نومونږبه بيا هم دالله تعالى نافرماني ؤنه کړو «سبحانك ماكان ينبغي لناذالك» نو دوئ دوه فرشتې داسې منتخب کړې چه هغه په دوئ کښې ډيرې افضلې وې چه هغه هاروت اوماروت وو نودا زمکې ته راغلې او دوئ ته نفس اوخواهش ورکړې شو نودوئ به دخلقوفيصلې کولې اوچه مابنام به شو نواسم اعظم به يې وايه او آسمان ته به وختلې، نويوه مياشت هم نه وه پوره شوې چه دوئ په يوه ښځه باندې عاشقان شول چه دهغې نوم زهره ؤو اوکنجرئ وه او دهغې نه يې مطالبه ؤکړه دخواهش پوره کولو نو هغې ورته وويل چه ستاسو خواهش به زه هله پوره کوم چه ځما په دين کښې داخل شئ اوشراب وسکئ اوقتل بلاحق وکړئ، نو دوئ اول شراب وسکل اوبيا يې زهره نه خپل خواهش پوره کړو ، يو سړي وليدلې نوهغه ئې قتل کړو نو بيا زهره دوئ نه اسم اعظم زده کړو نوچه ئې ولوستلونو آسمان ته وختله اوستورې ترينه جوړشو او دا فرشتې ندمې شوې په دې خپل کار باندې، نواختيارورله ورکړې شو په مابين د عذاب ددنيا او د آخرت کښې نو دوئ عذاب ددنيا اختيارکړو په عذاب دآخرت اوپه بابل ښارکښې په يوکوهی کښې آويزان دی اوعذاب ورته ورکوليشی اوپدغه حال کښې ئی خلقوته سحر زده کولو ، محققينو ليکلی دی چه دا قصه په سندصحيحه سره نه ده ثابته اومخالفه ده د اصولو دشرع نه ځکه دفرشتوپه باره کښې دا اجماعي عقيده ده چه «لايعصون الله»

او امام رازی، شهاب عراقی نه نقل کړيدی که څوك دهاروت اوماروت په باره کښې دغه مذکوره عقيده ولری نودا شخص کافر باالله العظيم دې اوبل دا چه دوئ په عذاب کښې مبتلا دی نوبيا ورته څرنګه فرصت ملاويده چه خلقوته تعليم دسحر ورکړی، بله داچه زهره خوخرابه او ګنده ښځه وه او د اسم اعظم دتاثيرلپاره طهارت ظاهٰری او باطنی ضروری دې، بل داچه زهره خو په آسمان کښې هغه ستورې دې چه د آدم ؑ نه هم مخکښې پيدا شوې دې داسې نه چه دښځی دمسخ کيدلونه بعدجوړشويدې وغيرذالك من الوجوه

﴿وَمَا يُعَلِّمَانِ مِنْ أَحَدٍ﴾ ضمير راجع دي دواړو فرشتو ته. **سوال** راځي چه د شان د ملايکو نه خو تعليم د سحر بعيد دي؟ **جواب** دادي چه دا تعليم بطور انذار دي نو «يُعلّمان» په معنی د يُعلّمان سره دي لکه يو فقيه عالم چاته ووائی خبردار چاچه دوه روپۍ د يو روپۍ په عوض کښې واخستې نو ده ربوا وکړه نو آوريدونکي دغه شان ناجايز عمل شروع کړی حالانکه فقيه عالم ورته تعليم نه ورکوی بلکه انذار کوی.

﴿إِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ﴾ يعنی دا زمونږ اعلام انذار يو امتحان دي ﴿فَلَا تَكْفُرْ﴾ يعنی اعتقاد د حقوالی د سحر کفر دي ليکن د دي باوجود به دوئ سحرزده کولو او خاصکر هغه سحر چه به ډير مضرؤو او په هغې سره به دوئ تفريق د ښځي او خاوند راوستلو ﴿إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ﴾ يعني په هرشی کښي خواه که خيروی او که شروی تاثير اچونکي الله تعالی دي.

﴿وَلَقَدْ عَلِمُوا لَمَنِ اشْتَرَاهُ﴾ ای اخذ السحر بدل كتاب الله

﴿لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ﴾ «لو» شرطيه دي او جزا ورله مقدر ده «ای لو کانو يعلمون ما اخذو السحر بدل كتاب الله» يا «لو» تمنائيه دي او په دواړو تقديرو سره معلوميږی چه د دوئ علم نشته . نو **سوال** راځی چه منافات راغي دد ي قول سره چه «ولقد علموا». **جواب** دادي چه هر کله دوئ په خپل علم باندې عمل ونکړو نو دوئ جاهلان وګرزولي شو .

| يَآيُّهَا | الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | لَا | تَقُوْلُوْا | رَاعِنَا | وَقُوْلُوا | انْظُرْنَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اي | مؤمنانو | : | مه واياسئ تاسي | | راعنا «لفظ» | او وايئ | انظرنا «لفظ» |
| وَاسْمَعُوْا ط وَ لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ اَلِيْمٌ | | | | | | | |
| او واورئ خبره په قبول سره او كافرانو لره عذاب دردناك دي | | | | | | | |

﴿يَآيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقُولُوا رَاعِنَا﴾ د يهود و يانو د شبهاتو د ازالې نه بعد تنبيه ذکر کيږی د دوئ د غداری. يهوديان به د نبي پاك ﷺ مجلس ته راتلل نو د خبرو اترو په مينځ کښي به نی نبی کريم ﷺ ته «راعنا» لفظ ويلو نو ظاهری معنی خوئی داوه چه په خبرو کښي زمونږ لحاظ وکړه. يعنی مونږ پوه کړه. او دا «راعنا» د رعايت نه مشتق دي نو صحابه کرامو هم دغه لفظ ويل شروع کړل. پدې خيال چه دا يهود خو اهل علم دی او دا کلمه وائی نو دا به کلمه د

د ب وی او مستحسنه کلمه به وی. یهودیانو خو فاسده معنی قصد کړې وه لکه په مابعد کښې بیښیږی (ان شأ الله) او دصحابه کرامو صحیح معنی اراده وه نو هرکله چه یهودیانو دصحابو کرامونه دا کلمه واوریده. نو دوئ به ویل چه مونږ به محمد ﷺ ته پټ کنځل کول اودوئ ورته ښکاره کنځل کوی. اوخنداګانې به ئی کولې نوسعدبن معاذ ﷺ پدوئ باندې پوهه شوځکه هغه ددوئ په ژبه پوهیدلو نودوئ ته ئی وویل ((لعنة الله علیکم)) که چرې ما داکلمه بیا ستاسونه واوریدله نوزه به ستاسې سټ ووهم. نویهودیانو وویل ((اولستم تقولوها)) یعنی دا کلمه خوتاسوهم وائی نو دا حکم نازل شو ((لاتقولواراعنا)) یعنی ((راعنا)) مه وایئ ځکه چه پدې کښې احتمال دمعنی فاسدې دې. صاحب دقرطبی لیکی چه ددینه دوه مسئلې معلومې شوې اول اجتناب دهغه الفاظونه چه محتمل دمعنی فاسدې وی. دویم سد د ذرائع یعنی داسې یوکار یا لفظ چه اګرکه فی نفسه جایزوی خوچه دې ذریعه ګرزی دیوحرام لپاره نو ددغه کار ترک ضروری دې. هرچه **بیان دمعنی فاسدې** دې په ((راعنا)) کښې نو دهغې ډیر وجوه دی **اوله وجه** داده چه دا د ((رعونت)) نه مشتق شی په معنی د کم عقلتیا

**دویمه وجه** داده چه دغه معنی په سریانی ژبه کښې ده او الف په آخرکښې د ندأ لپاره دې نو دا توهین درسول الله ﷺ دې چه کفردې. **دریمه وجه** ئی داده چه دوئ اراده کوله پدې سره دمعنی دشپونکی (چرواها) اوعین لره یې کسره اشباعی ورکوله یعنی (معاذلله) ته دګډو. بیزو. او اوښانو راعی ئی او د انسانانو تربیت ستاکار نه دې او دا معنی هم بې ادبی او کفردې. **اوڅلورمه وجه** داده چه دا درعایت نه مشتق دې خو رعایت په معنی دحفاظت اونګهبانئ کولوسره دې یعنی دتکلیفونواومصیبتونونه حفاظت کونکې. اوداصفت مختصه دالله تعالی دې نونبی صلی الله علیه وسلم ته ئی ثابتول شرك دې. نوبهرحال ((راعنا)) کلمه موهومه ده پدې سره یا توهین د نبی کریم صلی الله علیه وسلم راتلو یا موهومه د شرك ده نوځکه ترینه منع وشوه.

﴿وَقُولُوا انظُرْنَا﴾ دا په معنی دمهلت او تاخیرسره هم رازی اوپه معنی دفکر او توجه سره هم راځی ﴿وَاسْمَعُوا﴾ مراد ددینه اطاعت اوقبول دې.

مَا يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ وَلَا الْمُشْرِكِينَ أَن يُنَزَّلَ عَلَيْكُم مِّنْ خَيْرٍ مِّن رَّبِّكُمْ ط

نه غواړی کافران د اهل کتابونه اونه مشرکان (داخبره) چه نازل کړې شی په تاسې باندې څه خیر دطرفه درب ستاسونه

| وَاللّٰهُ يَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ۗ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ۝ |
|---|
| او الله پاك خاص كوي په رحمت خپل سره هغه چا لره چه ئې وغواړي، او الله خاوند د لوئ فضل دي |

﴿مَا يَوَدُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ﴾ يعني يهود، نصارى چه په تاسو كښې كوم افعال اواقوال او داسې نور اشياء رائج كول غواړي، نو دا ستاسو دخيرخواهئ په جذبه نه كوي بلكه دنقصان رسولو په وجه يې كوي.

﴿وَلَا الْمُشْرِكِيْنَ﴾ دا عطف دي په «اهل الكتب» باندې مقصود دادي چه دكفر دا دوه قسمونه دي. يو كتابي بل غيركتابي

﴿مِّنْ خَيْرٍ﴾ مراد وحي دقرآن، يا هر خيركه ديني وي اوكه دنيوي وي، مراددي

| مَا نَنْسَخْ مِنْ اٰيَةٍ اَوْ نُنْسِهَا نَاْتِ بِخَيْرٍ مِّنْهَآ اَوْ مِثْلِهَا ۗ اَلَمْ تَعْلَمْ |
|---|
| هغه چه منسوخ كړو مونږ يو آيت اويا يې هيركړوستاسه نو راوړو مونږ غوره د هغې نه او يا په شان دهغې. آيا ته نه پوهيږې |
| اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝ اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۗ |
| چه بې شكه الله پاك په هر څه باندې قادر دي. آيا ته نه پوهيږې چه بې شكه الله پاك لره بادشاهي د آسمانونو او ځمكې ده |
| وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ۝ |
| او نشته تاسو لره بغير دَ الله نه هيڅ دوست او مددګار. |

﴿مَا نَنْسَخْ مِنْ اٰيَةٍ﴾ لفظ د «راعنا» منسوخ شو نو دهغې په ځاى «انظرنا» راغې نو دا دهغې مثل بلكه خيردې له هغې نه، يهوديانو اومشركينو دا اعتراض وكړو چه كه دا قرآن د الله تعالى كلام وې نوپدې كښې به نسخ نه راتلې ځكه ددوئ په زعم كښې نسخ په كتاب الله كښې نشى راتلې ځكه دا دلالت كوي په ناخبرئ دالله تعالى باندې «العياذ بالله» چه كله يو حكم اوكله بل راځي. نو دا آيت نازل شو لپاره دجواب يعني كوم حكم چه مونږ منسوخ كړو نو هغه دحكمت اومصلحت مطابق وي، لكه طبيب چه يو مريض ته دوائى بدلوى نودا دنفع دمريض لپاره وي.

اونسخ په لغت كښې په معنى د ازالې سره راځي لكه «فينسخ الله ما يلقى الشيطان ـ الآيه» او په معنى د منتقل كولو سره هم راځي لكه «انا كنا نستنسخ ما كنتم تعملون» اوپه

اصطلاح داصولو کښې بیان د مدة الحکم دې چه ظاهر دهغه حکم دوام وی او محل دنسخ به هغه کلام انشائی وی چه صلاحیت لری دتبدیل، نونسخ په کلام خبری صرفه کښې نشی راتلې او دارنگه په اعتقاد یاتو کښې نسخ نشی راتلې او اهل اصول **دنسخ تقسیمات** کوی **اول تقسیم** دادې چه نسخ په څلورقسمه ده ۱- نسخ دکتاب الله په کتاب الله سره ۲- نسخ دسنت په سنت سره او۳- نسخ دکتاب الله په سنت سره ۴- اونسخ دسنت په کتاب الله سره، اوپدې کښې اختلاف دشافعی رحمه الله دې

**دویم تقسیم** ۱- نسخ دلفظ اومعنی دواړو چه دیته انساء ویلی کیږی – ۲- نسخ دلفظ سره دبقاً دحکم نه لکه ((الشیخ والشیخة اذازنیافارجموهمانکالامن الله والله عزیزحکیم)) دلفظ منسوخ کیدلو معنی داده چه تلاوة ئی په مونځ کښې نه وی کافی دجواز الصلوة لپاره ۳- نسخ دحکم فقط لکه آیاتونه دعفوې په نزد دقدماؤ منسوخ دی په آیت دقتال سره

**دریم تقسیم** دادې چه نسخ به یا د ذات دحکم وی اویاد وصف وی لکه تقییددمطلق دکتاب الله نو په خبر متواترسره نسخ ذاتی دکتاب الله راتلې شی اوپه خبرمشهورسره تقیید دمطلق دکتاب الله راتلې شی اوپه خبرواحد سره بیان دکتاب الله کیدیشی پس په نزد دمقدمینو هرکله چه نسخ تغییرفی الجمله ته ویلې شی خواه که نسخ د ذات دحکم وی اوکه تغیر دوصف وی نو بناپدې **دمتقدمینوپه نزدمنسوخات** زیات دی پنځه سوه ۵۰۰ ته رسی اوپه نزددمتاخرینو نسخ بیان دانتهأ دمدې دعمل دنص ته ویلې شی نومنسوخات کم دی

نوجلال الدین سیوطی رحمه الله دمنسوخاتو لپاره توجیهات کړی دی نو په هغې کښې بیې شل منسوخ منلی دی، او د باقی منسوخاتو داسې توجیه کیدیشی چه دنسخ نه بچ شی اوشاه ولی الله دهلوی رحمه الله په هغه شلو ۲۰ کښې هم توجیهات کړیدی اوڅلورئی منسوخ ویلیدی او زمونږ شیخ الشیوخ رحمه الله فرمائی چه پدغه څلوروکښې هم داسې توجیه ممکنه ده چه دنسخ نه بچ شی اودغه شان شاه انورشاه کشمیری رحمه الله په فیض الباری صفحه ۲۸۲ جلد۳ کښې وائی ((اقول انه ثبت عندی بالاستقرأ انه مامن آیة الاوهی محکمة فی بعض الجزئیات))

لیکن ددې تحقیق مقصود هرگز دانه دې چه دنسخ نه انکار دې بلکه دمنسوخ داسې تاویل کول دی چه په بعض جزئیاتوکښې ئی حکم باقی شی د ((ما ننسخ)) لفظ دما منصوب محلاً دې په ((ننسخ)) سره او دا ماموصوله دې متضمن دې معنی دشرط لره او ((ننسخ)) په دې سره مجزوم دې . ((اوننسها)) هم مجزوم دې عطف دې په ((ننسخ)) باندې او ((من آیة)) منصوب

محلاً بنابر تميزدې دمامبهمه لپاره او «ثات» ورته جزاده اودنسخ معنى داده چه حکم ئې منسوخ شي اوتلاوت ئې پاتې وي اود «ننسها» معنى داده چه حکم ئې هم ختم شي اوتلاوت ئې هم ختم شي دايې مشهوره معنى ده اونورتاويلات ئې هم شته دې

﴿بِخَيْرٍ مِّنْهَآ أَوْ مِثْلِهَآ﴾ خيريت اومثليت ياپه اعتبار دثواب سره دې ياپه اعتباردمصلحت سره دې ياپه اعتبارآسانى سره دې.

﴿إِنَّ ٱللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ نوپه خيراومثل راوړلوباندې هم قادردې

﴿لَهُۥ مُلْكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ﴾ نو د احکامو دنسخ اختيار بل چاته نشته دې چه حکم الهي په خپل رائ اوعقل سره منسوخ کړي.

| أَمْ تُرِيدُونَ أَن تَسْـَٔلُوا۟ رَسُولَكُمْ كَمَا سُئِلَ مُوسَىٰ مِن قَبْلُ ۗ وَمَن يَتَبَدَّلِ |
|---|
| آيا تاسو اراده لرئ چه تپوسونه وکړئ د رسول خپل نه لکه چه تپوسونه شوي وو دموسى نه مخکې . اوچا چه واخستو |
| ٱلْكُفْرَ بِٱلْإِيمَٰنِ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ ٱلسَّبِيلِ ۝ |
| کفر په بدل دَ ايمان کښې نو په تحقيق سره ده غلطه کړه نيغه لاره. |

﴿أَمْ تُرِيدُونَ أَن تَسْـَٔلُوا۟ رَسُولَكُمْ﴾ دا زجر دې يهوديانوته اوخطاب يهوديانوته دې اومراد دَ «ان تسئلوا» نه سوال په «راعنا» سره دې او دارنګه نور داسې سوالونه چه موجب دګستاخى اودخفه کولو دحضورﷺ دى اوپه ذکرد«رسولکم» کښې اشاره ده عموم بعثت دحضورﷺ ته

﴿كَمَا سُئِلَ مُوسَىٰ﴾ يعنې ستاسومشرانو دحضرت موسى عليه السلام نه ګستاخانه سوالات کړي ؤو اوتاسو دحضورﷺ نه ګستاخانه سوالات کول غواړئ

﴿وَمَن يَتَبَدَّلِ ٱلْكُفْرَ﴾ يعنې کفرواخلي په بدله دايمان کښې

| وَدَّ كَثِيرٌ مِّنْ أَهْلِ ٱلْكِتَٰبِ لَوْ يَرُدُّونَكُم مِّنۢ بَعْدِ إِيمَٰنِكُمْ كُفَّارًا حَسَدًا مِّنْ |
|---|
| غواړي ډير اهل کتاب چه واړوي تاسې وروسته د ايمان ستاسو نه، کفر کونکي . له وجه د حسد نه چه پيدا دي |
| عِندِ أَنفُسِهِم مِّنۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ ٱلْحَقُّ ۖ فَٱعْفُوا۟ وَٱصْفَحُوا۟ |
| له د نفسونو ددوئ نه. وروسته له دې نه چه ښکاره شوې دې دوئ ته حق، پس معافى کوئ تاسې او بې پرواه شئ |

حَتّٰى يَأْتِيَ اللّٰهُ بِأَمْرِهٖ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝ وَ اَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ

ترڅو پورې چه راولیږي الله پاك امرخپل. بیشکه الله پاك په هر یو شی باندې قادر دې او پابندی کوئ د مونځ

وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ ۭ وَمَا تُقَدِّمُوْا لِاَنْفُسِكُمْ مِّنْ خَيْرٍ تَجِدُوْهُ

او ورکوئ زکوة. اوهغه څه چه تاسو یې مخکښې ولیږئ د خپلو ځانونو لپاره څه نیك عمل. وبه مونډئ هغه

عِنْدَ اللّٰهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ۝

په نزد د الله پاك . بیشکه الله پاك په هغه څه چه تاسو یې کوئ لیدونکي دې

﴿وَدَّ كَثِيرٌ مِّنْ أَهْلِ ٱلْكِتَٰبِ﴾ دا بل زجر دې یهودوته

﴿لَوْ يَرُدُّونَكُم﴾ دا ((لو)) تمنائیه دې ﴿حَسَدًا﴾ دا مفعول دې د ((ودّ)) لپاره

﴿فَٱعْفُوا۟ وَٱصْفَحُوا۟﴾ یعنی مقابله دحسد دحاسدینو پدې صفاتوسره وکړئ چه عفو ده . اوصفح ده . او اقامة دصلوة دې . او ایتأ زکوة دې . فرق په مابین دعفو او صفح کښې دادې چه د ((فاعفوا)) معنی داده چه په جرم باندې گرفت ،سزا، سب اوشتم ، وغیره مکوئ او د ((واصفحوا)) معنی داده چه دزړه درگزروکړئ اود زړنه اثرات زائل کړئ .

﴿حَتَّىٰ يَأْتِيَ ٱللَّهُ بِأَمْرِهِۦٓ﴾مراد امردجهاددې بعضې حضراتوویلی دی چه دعفواوصفح آیاتونه منسوخ دی په آیت دسیف سره لیکن دې آیت ته منسوخ ویل په اصطلاح داهل اصولو سره صحیح نه دی.ځکه منسوخ په اصطلاح داصولو کښې هغه دې چه غایه ورسره نوی ذکر.اودلته ورسره غایه ذکرشوې ده. بله وجه داده چه پدې کښې تعلیم د اخلاقو دې په مقابله دحسد دحاسدینو کښې اوپه وخت ددعوت ورکولو کښې دوئ ته نو دا منافی نه دې دحکم دقتال سره نو منسوخ کولوته نی حاجت نشته.

وَقَالُوْا لَنْ يَّدْخُلَ الْجَنَّةَ اِلَّا مَنْ كَانَ هُوْدًا اَوْ نَصٰرٰى ۭ تِلْكَ اَمَانِيُّهُمْ ۭ

اووائی دوئ : چې هرگزبه نۀ داخلیږي جنت ته مگرهغه څوک چې یهودي وي یا نصراني.داآرزوگانې ددوئ دی

[1] خاتمه د بحث دتوحید او دپنځه شکوؤ بیان د اوله شکوه ده

| قُلْ هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۱۱۱﴾ بَلٰى ۚ مَنْ أَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ |
|---|
| ته ورته اووایه راوړئ خپل یقیني دلیل که چرې تاسو رښتوني یئ . بلکه چاچې تابع کړو خان خپل خاص الله لره |
| وَهُوَ مُحْسِنٌ فَلَهٗٓ أَجْرُهٗ عِنْدَ رَبِّهٖ ۠ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ |
| اودې نیک عمل کوونکې وی نوده لره اجرددې دې په نیزدرب ددهٔ، اونهٔ بهٔ وي هیڅ ویره پدوئ باندې اونهٔ به دوئ |
| يَحْزَنُوْنَ ﴿۱۱۲﴾ وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ لَيْسَتِ النَّصٰرٰى عَلٰى شَيْءٍ ۠ وَّقَالَتِ النَّصٰرٰى لَيْسَتِ الْيَهُوْدُ |
| غمژن وي . اووائ یهودیان(۱)چه ندي نصاری پهٔ څهٔ دین صحیح، اووائ نصاریٰ چې ندي یهودیان |
| عَلٰى شَيْءٍ ۙ وَّهُمْ يَتْلُوْنَ الْكِتٰبَ ۭ كَذٰلِكَ قَالَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ مِثْلَ قَوْلِهِمْ ۚ |
| پهٔ څهٔ دین صحیح ،اوحال دادې چې دوئ لولي کتاب، دغه شان اووئیل هغو چې جاهلان دې پشان دوینا ددوئ |
| فَاللّٰهُ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ﴿۱۱۳﴾ |
| پس الله بهٔ (عملي)فیصله اوکړي پهٔ مینځ ددوئ کښې په ورځ دقیامت پهٔ هغه څهٔ کښې چې دوئ پهٔ هغې کښې اختلاف کولو. |

د اهل کتابو دسوالاتو او دزجرونو ذکرکولونه بعد دپنځه شکوو ذکردې، څکه چه دوئ پروپیګنډې شروع کړې وې یوه پروپیګنډه داوه چه یهودو وویل چه زمونږ نه علاوه بل څوک جنت ته نشی داخلیدلې اودغه شان پروپیګنډه نصاریٰ ؤهم کوله.

﴿وَقَالُوا لَن يَدْخُلَ ٱلْجَنَّةَ﴾ دا اوله شکوه ده اود دوئ پروپیګنډه ده.

﴿تِلْكَ أَمَانِيُّهُمْ﴾ دا رد دې ددعوی ددوئ «امانی» جمع د اُمنیةٌ ده او اُمنیه بی بنیاد اوبې اصل امیدته ویلې شی او «رجاء» هغه امیدته ویلې شی چه أصل اوبنیادورله موجودوی مثلاً صحیح او دسنت مطابق عمل کول او دثواب امیدلرل دا «رجاء» ده اوعمل نه کول یاغلط عمل کول او دثواب امیدلرل دا اُمنیه ده ، شعر :

ترجواالنجاة ولم تسلک مسالکها ‌ ‌ ‌ ‌ ان السفینة لاتسلک علی الیبس

نوځکه باری تعالی ورته فرمائی :

﴿قُلْ هَاتُواْ بُرْهَـٰنَكُمْ إِن كُنتُمْ صَـٰدِقِينَ ۝ بَلَىٰ مَنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُۥ لِلَّهِ﴾ «بلی» لپاره دنفی دزعم د دوئ او د اثبات دمقابل د دوئ دې، یعنی چه دوئ دا زعم کوي چه بل څوک به

---

۱ - دویمه شکوه.

جنت ته نه داخليږی نو ددې خبرې نفی کيږی چه دا غلطه ده، بلکه هغه څوك به جنت ته داخليږی چه ددې قانون ماتحت وی «من اسلم وجهه» ددې دوه توجيه دی ۱- چه «من اسلم وجهه» نه مراد ايمان دې ځکه وجه کنايه ده د ذات نه او د اسلم نه مراد ځان خالص کول دی الله ﷻ ته چه شرك ونکړی ،فلم يشرك به (روح) اود ﴿وَهُوَ مُحۡسِنٞ﴾ نه مراد اعمال صالحه دی يعنی داخبره ثابته ده چه څوك ايمان راوړی اوعمل صالح کوی نو ﴿فَلَهُۥٓ أَجۡرُهُۥ﴾ ۲- «من اسلم وجهه» په معنی د «اخلص دينه لله» سره دې «وهومحسن» په معنی د «اتبع الرسول» سره دې ځکه **دعمل دقبوليت لپاره دوه شرطونه** دی : **اول** دا چه خالص دالله ﷻ لپاره وی، **دويم** دا چه موافق وی دشريعت سره، ځکه چه په کوم عمل کښې چه اخلاص نه وی نوهغه مردود وی لکه عمل د ريا کارانو او دارنګه چه په عمل کښې اتباع سنة نه وی نوهغه هم مردود وی لقوله ﷺ «من احدث فی امرناهذا ماليس منه فهورد» ،لفظ د «من» مفرد دې لفظاً اوجمع دې معنی، نوضمير دمفرد او دجمع داوړو راجاع کيدل ورته صحيح دی .

﴿وَقَالَتِ ٱلۡيَهُودُ لَيۡسَتِ ٱلنَّصَٰرَىٰ﴾ دادويمه شکوه ده، يهوديانو نصاریٰ ته د کفر او ضلالت نسبت کولو، نو پدې تکفيراوتضليل سره د انجيل تکذيب راتلو،نو دا نسبت ځکه غلط شو او دارنګه نصاری ؤ تکفيراوتضليل ديهوديانوکولو او پديکښې تکذيب د تورات کيدلو نوځکه دا نسبت غلط شو.

﴿عَلَىٰ شَيۡءٖ﴾ «ای علی دين صحيح» ،اونصاری اګرچه کافر دی، او دارنګه يهود په وجه د انکار درسالت دسيّدالکونين ﷺ سره کافر دی نو دوئ هريوفی الحقيقت په دين صحيحه ندی، نو دا خبره چه «ليست النصاری علی دين صحيح» يا «ليست اليهودعلی دين صحيح» اګرچه پدې لحاظ سره صحيح ده، ليکن مراد ددوئ تعريض په يوبل په وجه دانکار دنبوت دسيد الکونين سره نه دې، بلکه مراد انکار د اصل دين ديوبل نه دې، چه پدې سره انکار دتورات او انجيل نه راځی.

﴿وَهُمۡ يَتۡلُونَ ٱلۡكِتَٰبَ﴾ يعنې هره فرقه خپل خپل کتاب لولی اوپه هريوکتاب کښې دبل کتاب تصديق دې نه چه تکذيب دې، انجيل تصديق کونکې دتورات دې نه تکذيب کونکې اودغسې تورات تصديق کونکې دانجيل دې خو دوئ خبره اُلټه کړيده.

﴿ٱلَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ﴾ مشركين عرب ترينه مراد دی او دارنګه اتباع دهر هغه مذهب چه بنیاد يې آسماني کتاب نه وي.

﴿فَٱللَّهُ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ﴾ عملي فيصله مراد ده، ځکه چه قولي فيصله په دنيا کښې شوې ده

وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن مَّنَعَ مَسَٰجِدَ ٱللَّهِ أَن يُذْكَرَ فِيهَا

اوڅوک دي[1] لوئ ظالم دهغه نه چې منع کوي دالله دجماعتونونه يعنی ددې نه چې يادکړېشی په هغې کښې

ٱسْمُهُۥ وَسَعَىٰ فِى خَرَابِهَآ ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ مَا كَانَ لَهُمْ أَن يَدْخُلُوهَآ

نوم دالله خاص. اوکوشش کوي په خرابولو دهغې کښې، دغه کسان نه ده لائقه دوئ لره چې داخل شي مسجدونوته

إِلَّا خَآئِفِينَ ۚ لَهُمْ فِى ٱلدُّنْيَا خِزْىٌ وَلَهُمْ فِى ٱلْءَاخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ ۝ وَلِلَّهِ ٱلْمَشْرِقُ

مګرویره کونکي، دوئ لره په دنيا کښې ذلت دې اودوئ دپاره په آخرت کښې عذاب لوئ دې. اوخاص الله لره مشرق

وَٱلْمَغْرِبُ ۚ فَأَيْنَمَا تُوَلُّوا۟ فَثَمَّ وَجْهُ ٱللَّهِ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ ۝

اومغرب دې. نوپس کوم طرفته چې تاسوګرزوئ خپل مخ نوهلته[2] دې ذات دالله، بيشکه الله فراخ فضل والا دې اوعالم دې

﴿وَمَنْ أَظْلَمُ﴾ دا دريمه شکوه ده اواستفهام انکاري دې په معنی دنفي سره ((ای لا احد اظلم))، دلته **سوال** راځی چه بل مقام کښې دی ((ومن اظلم ممن کتم شهادة عنده من الله)) اوپه بل مقام کښې دی چه ((ومن اظلم ممن افترى على الكذب الخ وغيرذالك)).

نو د هريوبه معلومه شوه چه دا لوئ ظالم دې اوبل وړوکې ظالم دې، نوتناقض راغې **جواب** ۱- اسم تفضيل په خپله معنی سره يعنی زيادت على الغيرلپاره نه دې بلکه په معنی د مبالغې سره دې اوفرق په مابين دتفضيل او د مبالغې کښې دا دې چه معنی د زيادت خو په دواړو کښې ده ليکن په اسم تفضيل کښې زيادت به غير معتبر وی نوپه مقابل کښې قلت راځی او په مبالغه کښې زيادت في نفسه معتبروی نوپه مقابل کښې ئی زيادت راتلې شی لکه ((يُضل به کثيراً ويهدی به کثيراً))، **جواب**: ۲- اسم تفضيل په خپله معنی سره دې خو

1 - دريمه شکوه.
2 - دويمه ترجمه (نو هلته قبله ده)

زیادت به افرادو دخپلې نوع معتبر دې مثلاً په منع کونکوکښې لوئ ظالم هغه دې چه منع کړی خلو د مساجد الله نه. نوروکې ظالم هغه شو چه منع کونکې دې دغیر دمساجد الله نه لکه چه حلره دخپل کورنه منع کړی او دارنگه په کاتمینُ دشهادت کښې لوئ ظالم هغه دې چه کتمان دشهادت من عندالله وکړی اوچه کتمان دشهادت من عند غیرالله وکړی نودغه وړوکې ظالم دې علی هذا القیاس

﴿مِمَّن مَّنَعَ مَسَٰجِدَ ٱللَّهِ﴾ دا مبدل منه دې او دنحو دقانون مطابق دا په حکم دتنحیه اودترك کښې وی

﴿أَن يُذۡكَرَ فِيهَا ٱسۡمُهُۥ﴾ دا ترینه بدل اشتمال دې اومقصود بالحکم دې او مراد د «ان یذکرفیها اسمه» نه خالصةً دې یعنې دهغه چانه بل لوئ ظالم نشته دې چه منع کړی خلق دخالص ذکراوبیان دتوحید دالله ﷻ نه په مساجدوکښې ځکه مساجد بیوت الله دی اوبناء ئی شویده لپاره دخالص عبادت او ذکر دالله ﷻ نو ددینه منع کونکې ډیرلوئ ظالم دې **بعضې مفسرینو دبعضې روایاتو** په بنا باندې تخصیص کړې دې چه مراد نصاری دی چه دبخت نصرپه تعاون سره ئی یهود دبیت المقدس نه اوباسل اوبیت المقدس ئی وران کړې ؤو او چا ویلی دی چه مراد ددینه مشرکین مکه دی چه دوئ منع کړل مؤمنان په کال دحدیبیه باندې دمسجدحرام نه لیکن بهتره خبره داده چه دا آیت په خپل عموم باندې دې لکه صیغه دجمع یعنی مساجد کښې دیته اشاره ده اوهرهغه څوك ترینه مراد دی چه مسجد خراب کړی برابره خبره ده که په نړولو سره وی او که په منع کولو سره دحق بیانولونه یاغیرشرعی افعال اوبدعاتُ کولو سره وی

﴿أُوْلَٰٓئِكَ مَا كَانَ لَهُمۡ أَن يَدۡخُلُوهَآ إِلَّا خَآئِفِينَۚ﴾ پدې کښې دوه توجیه دی ١ داجمله خبریه په معنی د انشاء ده اوپدې کښې بیان د آدب المساجد دې چه مسجدونه بیوت الله دی نو چه دیته داخلیږئ نودالله ﷻ عظمت اوخوف په زړه کښې نړئ ٢ جمله خبریه په خپله معنی ده او داپیشنگوئی ده چه یووقت به داسې راشی چه مسجد حرام اونور مساجدبه دمؤمنانو په قبضه کښې راشی، نوکه مشرکان اومنافقان دیته راځی نوپه خوف سره به راځی

﴿وَلِلَّهِ ٱلۡمَشۡرِقُ وَٱلۡمَغۡرِبُۚ﴾ دا متعلق دې د «ومن اظلم ممن منع مسجدالله» سره اوتسلی ده مؤمنانو لره یعنې که مشرکانو تاسو دعبادت نه په یوځائ کښې منع کړئ نومشرق اومغرب

يعني تمام عالم صرف دالله ﷻ ملكيت دي نوبل ځاۍ دالله ﷻ عبادت كوئ

﴿فَأَيْنَمَا تُوَلُّوا﴾ ۱ - لفظ د «اينما» يا مفعول فيه ظرف مكان دي او «تُولوا» په معنی د فعلتم فعل التولي الى القبلة سره دي، نو معنی داده چه په هرمكان كښې چه تاسو فعل دتوليه وكړئ يعني مخ قبلې ته وگرزوئ نو «فَثَمَّ وَجْهُ اللّهِ» . ۲- يا لفظ د «اينما» مفعول دي دتولوا لپاره نو معنی داده چه هرجهت ته تاسومخ وگرزوئ په مونځ كښې نو«فَثَمَّ وَجْهُ اللّهِ» «وجه» يا په معنی د ذات ده يعنی هرځاۍ كښې ذات دالله ﷻ موجود دي او يا په معنی دجهت القبلة سره، يعنی هرځاۍ ته چه تاسومخ وگرزئ نودغه قبله ده. او داحكم عامه ندي بلكه داپه حق دهغه چاكښې دي چه اشتباه راغلی وی په هغوئ دجهت دقبلې نو دوئ تحریٰ وكړی نو هر جهت ته چه مونځ وكړی نوصحيح دي يا دا محمول دي په نوافلو باندې په حالت دسيركښې يامحمول دي په حالت دخوف باندې چه تفصيل ئې فقهاؤكړيدي.

| وَقَالُوا اتَّخَذَ اللّهُ وَلَدًا ۙ سُبْحٰنَهٗ ۭ بَلْ لَّهٗ مَا |
|---|
| اوواي(۱) دوئ چې نيولې دي الله اولاد. هغه لره پاكي ده ، بلكه دَ هغه دي هرهغه څۀ |
| فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ كُلٌّ لَّهٗ قٰنِتُوْنَ ۝ بَدِيْعُ |
| چې پۀ آسمانونوكښې دي اوپۀ زمكه كښې دي، ټول دهغه دحكم تابعداردي . نوې پيدا كونكې (بغيرنمونې نۀ) |
| السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ وَاِذَا قَضٰٓى اَمْرًا فَاِنَّمَا يَقُوْلُ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ ۝ |
| دآسمانونواودزمكې دې اوكله چې اراده اوكړي ديوكارنوصرف دا ورته وائ چې اوشه نو هغه اوشي. |

﴿وَقَالُوا اتَّخَذَ اللّهُ وَلَدًا﴾ دا څلورمه شكوه ده اوفاعل د قالوا لپاره مشركين عرب هم كيدې شی څكه دوئ ويل چه «الملائكة بنات الله» اويهودهم كيديشی څكه دوئ ويل «عزيرابن الله» اونصاری هم كيديشی څكه دوئ ويل «المسيح ابن الله» اوپه لفظ د «اتخذ» كښې اشاره ده چه ددوئ مراد حقيقي ابنية نه ؤو بلكه مراد دادې چه الله تعالی ځان له نائب گرزوليدې لكه «ابن» چه نائب د«اب» وی، نومشركانودالله ﷻ نيك بندگانوته دالله ﷻ نائب ويل چه دوئ مشكلات لرې كوی اوحاجتونه اوضرورتونه پوره كوی اوپه هرڅه علم لری او دتمامو

---

۱ - څلورمه شكوه.

حالاتو نه واقف اوخبردار دی او د هر چاسوال زاری آوری اومددکوی.

﴿سُبۡحَٰنَهُۥ﴾ دا رد دې د زعم دمشرکانو ((ای سبحوالله سبحاناً)) یعني الله پاك وګنړئ دَ ولد او دَ نائب نه. کلمه دسبحانه فائده کوی تنزیه سره دتعجب دمقابل نه

﴿بَل لَّهُۥ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾ یعنی الله ﷻ د ولد حقیقی نه هم منزه دې او د ولدحکمی (نائب) نه هم منزه دې، دولدحقیقی نه څکه منزه دې چه ولدحقیقی هم جنس وی د پلار لپاره اوماسوی الله که آسمانونو والادی اوکه زمکو والا دی، نو دا ټول مخلوق اومملوك دالله ﷻ دی اومخلوق دخالق هم جنس نشی کیدې اومملوك دمالك حقیقی هم جنس نه شی کیدې نوحقیقی ولد نشی کیدې، او دارنګه غیرهمجنس ولد ګرزول لوئ عیب دې لکه دیو انسان لپاره خرپاسپې ولدوګرزولې شی یا ورله پلاروګرزولی شی نودا خو لوئ عار اوعیب دې اوالله ﷻ دهرعیب نه مبرا دې اود ولدحکمی یعنی نائب نه څکه منزه دې چه ولدحکمی نائب ته ویلې شی اوالله ﷻ تکوینیات چاته ندی حواله کړی ، بلکه دا چه نائب هغه څوك مقررکوی چه محتاج وی نائب ته، اوالله ﷻ داحتیاج نه منزه دې.

﴿كُلٌّ لَّهُۥ قَٰنِتُونَ﴾ دقنوت ډیرې معانی دی طاعت ،سکوت ،خضوع ،انقیاد،اخلاص وغیره نورې ډیرې معانی هم دی، دلته په معنی دتابعداری سره دې او تابعداری په دوه قسمه ده یو په امورشرعیؤکښې ده چه هغې ته قنوت دصالحینو اوملائکوویلې شی، دویم تابعداری په امورو تکوینیؤ کښې ده چه هغې ته قنوت تکوینی ویلې شی، په دویم قسم قنوت کښې ټول مخلوقات داخل دی په خلاف داول نه.

﴿بَدِيعُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾ بدیع فعیل بمعنی الفاعل ((ای مبدع السموت والارض)) بدع ایجادبغیر دمثل سابقه اوبغیر دنقشه ته وائ اولفظ دبدعت شرعی هم ددینه جوړشوې دې.

﴿وَإِذَا قَضَىٰٓ أَمۡرًا﴾ قضاپه ډیرومعانیوسره راځی چه رجع دټولواتمام الشئ قولاً یافعلاً ته ده اواطلاق یی کیږی مجازاً په معنی د ارادې سره، دلته په معنی دارادې سره دې.

﴿فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُۥ كُن فَيَكُونُ﴾ دا دواړه فعلونه دکان تامه نه دی ((اَیْ اَحْدِثْ فَیُحْدِثُ)) **اوپه کن کښې دوه احتماله دی** یو دا چه داکنایه ده دسرعت ایجادنه بغیردلفظ نه یعنی لفظ دکن

ويل نشته دي بلکه مراد دادي چه کله الله ﷻ اراده وکړي د يو امر نو هغه کيږي او هغه مراد ؛ ارادي نه نشي وروسته کيدي او دا رايه دا کثر اشاعرؤ ده. اوامام رازی رحمه الله په تفسير کبير کښې پدې اصرار کړيدې. **دويم احتمال** اوقول چه هغه دماتريديؤ قول دي دادي چه لفظ د کن شته دي لکه دظاهرنص دقرآن نه معلوميږي نو پدې باندې دوه شبهې کيږي **اول** دا چه مکوّن که موجودوی نوهغه ته امر د «کُنْ» کول تحصيل دحاصل دې اوکه معدوم وی نوخطاب ورته نشي کيدې ځکه معدوم ته خطاب نه کيږي. **جواب** دادې چه مکوّن په علم دالله ﷻ کښې شته دي نوخطاب ورته صحيح دې اوپه خارج کښې معدوم دي نوتحصيل دحاصل نه راځی او ددې تفصيل دادې چه امر اوخطاب دوه قسمه دې **اول** امر تکوينی دې او دا دمتعلقاتو د**صفت** اراده نه دي او**دويم** امرتشريعی دې او دا دمتعلقاتُ دصفت کلام نه دې پس امرتکوينی متوجه کيږی معدوم ته ځکه مراد ترينه«جعل الشئ موجوداً» دي او دارنګه متوجه کيږی هغه موجودته چه مقصود ترينه تغيراو تبدل وی ديوحالت نه بل حالت ته لکه ((ان مثل عيسى عندالله كمثل آدم خلقه من تراب ثم قال له كن فيكون)) يعنی تراب ته ئی وويل چه متغيرشه دصفت ترابية نه صفت دبشريت ته، نو د اامرتکوينی موجودته نه متوجه کيږی ځکه لازميږی، تحصيل دحاصل، مګرکه مقصود ترينه تغيراو تبديل وی نو بيا تحصيل دحاصل نه لازميږی او امرتشريعی متوجه کيږی موجود ته اوصرف هغه موجودته چه عاقل وی نوغيرعاقل ته نه متوجه کيږی نومعدوم ته خوپه طريقه اولی سره نه متوجه کيږی او مخاطب پدې سره چه وی نوهغه ته مکلف ويلې شی او امرتشريعی ته امرتکليفی هم ويلې شی نو پدې کښې چه امرچا ته متوجه کيږی نو دهغه لکه څرنګه ۱- وجود په علم د آمرکښې ضرورری دې نودغه شان ئی وجود۲- په خارج کښې ضروری دې ۳- اوعاقل کيدل ئی هم ضروری دی په خلاف د امر تکوينی نه چه هلته دمامور وجودپه علم د آمرکښې ضروری دې. نه په خارج کښې بلکه په خارج کښې ئی عدم ضروری دې

**دويمه شبه** داده چه لفظ د «کُنْ» که چرې قديم وی نو قدم دمکوّناتو راغې اوکه حادث وی نو د ده لپاره به بل لفظ کن پکار وی اوهغه به هم حادث وی نو دهغه لپاره به بل وی دغه شان تسلسل به راشی. **جواب** دادې چه لفظ کن ياقديم دې خو تعلق ئی دمکوّناتو سره حادث دي نو قدم دمکوّناتونه لازميږی لکه دقدم دصفتِ قدرت نه قدم دمقدوراتو نه لازميږی اودقدم دعلم نه قدم دمعلوماتو نه لازميږی وهکذا، يا تعلق د «کن» دمکوّن سره اګرکه قديم دې خوپه

سرهٔ دوجود سره به زمانه حادثه کنبي نو بياهم قدم دمکوناتونه لازميږي . يا **جواب** دادي چه کړ حادث دی خوکن به بل کن سره ندي موجودبلکه په غيردکن نه موجود دي نو هيڅ اشکال سته دی او دصاحب دروح المعانی تحقيق دادي چه (کن) امر محمول دي په حقيقت باندي خو مراد ندی سره کلام ازلی قديم دي نه لفظ حادث ځکه چه محال دي قيام دلفظ مرتب په ذات دالله جلاله پوري

وَقَالَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ لَوْلَا يُكَلِّمُنَا اللّٰهُ اَوْ تَاْتِيْنَآ اٰيَةٌ ؕ كَذٰلِكَ

او وويل هغه کسان چی نه پوهيږي ولي خبري نه کوي زمونږ سره الله يا ولي نه راځي مونږ ته پوښنه(معجزه). دغسي

قَالَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ مِّثْلَ قَوْلِهِمْ ؕ تَشَابَهَتْ قُلُوْبُهُمْ ؕ قَدْ

وويل هغه کسانوچي مخکښي وو ددوئ نه. په مثل دويناددوئ. يوشان دي زړونه ددوئ (اودهغوئ)پهٔ تحقيق سره

بَيَّنَّا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ ﴿۱۱۸﴾

بيان کړيدي (يعنی ښکاره کړيدي) مونږډيري نښې د پاره دهغه قوم چي يقين کوي

﴿وَقَالَ ٱلَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ﴾ دا پنځمه شکوه ده او دا قدح کول دی ددوئ دطرفه په رسالت باندې لکه مخکښې قدح اوجرح وه په توحيد باندې نو دا جرح ده په رسالت باندې اومراد د «الذين لايعلمون» نه مشرکين عرب دی یاعام دی. يهودو اونصاری ته هم شامل دې. ځکه دوئ هم دمشرکين عربُ پشان معاندانه سوالات کول لکه ويل به مشرکانو ((فليأ تنابآية كما ارسل الاولون)) انبياء رکوع ۱- اوويل به اهل کتابو ((يسئلك اهل الكتب ان تنزل عليهم كتابامن السماء)) باقی دا چه مشرکين خولايعلمون دی. ليکن اهل کتابوته «لايعلمون» ويل ددوئ دجاهلانه حرکاتو اوجاهلانه اعمالوپه وجه دی.

﴿لَوْلَا يُكَلِّمُنَا ٱللَّهُ﴾ يعنی براه راست کلام دفرشتو سره يا په واسطه دفرشتوسره لکه د انبياؤ سره چه کلام کيږی. او دکلام نه مراد احکامات دی. يعنی مونږته دې پخپله احکامات راکړي بغير دتوسط درسول نه يا مراد دکلام نه دادې چه الله جلاله دې مونږته بالذات يا په واسطه دملك سره اووائی چه حضرت محمد ﷺ زمارسول دې.

---

۱- پنځمه شکوه دمکرنه

﴿ أَوْ تَأْتِيْنَآ ءَايَةٌ ﴾ مراد ترينه معجزات مقترحه دی يعني هغه معجزات چه دوئ غوښتل

﴿مِثْلَ قَوْلِهِمْ ﴾ مثليت په مطالبه بطورعناد کښې مراد دې.

﴿تَشَابَهَتْ قُلُوْبُهُمْ﴾ مشابهت په کفر اوحسداو عنادکښې مراد دې نوالله ﷻ ددوئ داول سوال جواب نه ذکرکوی ځکه دغه محض حماقت ؤو اوددويم سوال جواب ذکرکوی

﴿قَدْ بَيَّنَّا الْاٰيٰتِ﴾ يعنی د اثبات توحيداورسالة لپاره خو يو دليل ندې بلکه څوڅودلائل مونږبيان کړيدی خوددينه نفع هغه څوك اخستې شی ((لِقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ)) چه ضدنه کوی او ديقين اواطمينان حاصلولو په نيت سره واوری اويقين اومعرفت طلب کوی.

| |
|---|
| إِنَّآ أَرْسَلْنٰكَ بِالْحَقِّ بَشِيْرًا وَّ نَذِيْرًا ۙ وَّ لَا تُسْـَٔلُ |
| بېشکه مونږ ته(۱) ليږلی ئې په حق دين درکولوسره، زېرې ورکوونکې اوويرونکې، اوستانه به تپوس نشي کېدې |
| عَنْ أَصْحٰبِ الْجَحِيْمِ ۝ وَلَنْ تَرْضٰى عَنْكَ الْيَهُوْدُ وَلَا النَّصٰرٰى حَتّٰى تَتَّبِعَ |
| په باره ددوزخ والو کښې . اوهرګزنه راضي کيږي دستانه(۲)يهوديان اونه نصاری ترڅوپورې چې ته تابع نشې |
| مِلَّتَهُمْ ؕ قُلْ إِنَّ هُدَى اللّٰهِ هُوَ الْهُدٰى ؕ وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ |
| ددين دهغوي ، ته ورته اووايه چې بېشکه دين دالله همدغه نيغه لاره ده ، اوکه بالفرض ته تابعداري اوکړې |
| أَهْوَآءَهُمْ بَعْدَ الَّذِيْ جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ ۙ مَا لَكَ مِنَ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ۝ |
| دخواهشاتوددوئ بعددهغې نه چې تاته راغلې دي علم دقران، نونشته تالره د الله نه څوك بچ کوونکې دوست اونه مددګار |

﴿ إِنَّآ أَرْسَلْنٰكَ ﴾ دا تسلی ده حضور ﷺ ته چونکه دا مخکښې شکوه د رسالت متعلق وه نو ځکه تسلی ذکرکيږی.

﴿بِالْحَقِّ﴾ جارمجراوربه موضع دحال کښې دې او حال يا دفاعل نه دې چه (نا) دې او يا دمفعول نه دې چه (ك) دې اوحق په معنی د محقاً سره دې يعني ته برحق رسول ئې ياته هادی

۱ - حضور نبی کریم ﷺ ته تسلی.

۲ - زجرا وتنبيه نبی کریم ﷺ ته.

:حق نی یا د بالحق نه مراد قرآن دي

﴿بَشِيرًا وَنَذِيرًا﴾ دا دوه طريقې دی د رسول ددعوت لپاره يعنې ستا منصبی فرض دعوت ورکول دی په بيان دبشارت دنيوی، اخروی اوپه بيان دتخويف دنيوی او اخروی سره اوکله چه ته خپل فرض منصبی پوره کړې نو بيا ستا ذمه فارغ ده اوکه څوك دکفر په وجه جهنم ته لاړشی نو دهغې تپوس به ستا نه نه کيږی.

﴿وَلَن تَرْضَىٰ﴾ نبی ﷺ به دټولو کفارو او داهل کتابو داسې غمخواری او دلسوزی کوله چه موجب دسخت مشقت اوپريشانی به وه ډير ملاطفت او نرمی به ئی ورسره کوله چه شايدکه دوئ هدايت قبول کړی، نو الله ﷻ حضور ﷺ ته تنبيه او زجر ذکرکوی چه ددوئ سره نرمی او په دوئ دل سوزی اوغمخواری هيڅ فائده نه کوی او دوئ ستانه ترهغه پورې نه راضی کيږی تر څو چه ته دَ دوئ دملت اوطريقو تابع شوې نه ئی او که چرې بالفرض ته ددوئ د طريقو تابع شی نو بيائی سزاداده چه: ((مالك من الله ــ الايه)).

﴿قُلْ إِنَّ هُدَى ٱللَّهِ هُوَ ٱلْهُدَىٰ﴾ د ((هدی الله)) نه مراد دين اسلام دې او ((هو)) ضمير فصل دې راوړې شويدې لپاره ددلالت په حصرباندې او((الهدی)) خبر معرف باللام دې لپاره د افادې د حصر ، او دلته مسند مقصور دې په مسنداليه پورې يعنی د((الهدی)) نه حقانيت اوصدق مراد دې، يعنی حقانيت اوصداقت منحصر دې په اسلام پورې اومتجاوزنه دې ترينه غير ته چه يهوديت اونصرانية وغيره ملتونه دی، بيضاوی وائی چه په ديکښې رد دې دمطالبې ديهودو اونصاری ؤ چه دوئ ويل نبی ﷺ ته چه زمونږسره متحد شه او زمونږ ملت قبول کړه، او دا دليل دې په دې خبره باندې چه دمسلمان دغيرمسلم سره داسې اتحاد حرام دې چه دهغوئ ددين باطل اتباع وکړې شی.

﴿وَلَئِنِ ٱتَّبَعْتَ أَهْوَآءَهُم﴾ چونکه يهودو او نصاری ؤپه خپل اصل دين کښې تحريف کړې ؤو او دخپلو خواهشاتُ مطابق ئی ګرزولې ؤو، نوځکه تعبيرپه ((اهوائهم)) سره وشو او په ((ملتهم)) سره ونشو.

﴿بَعْدَ ٱلَّذِى جَآءَكَ مِنَ ٱلْعِلْمِ ۙ مَا لَكَ﴾ ((من العلم)) بيان دې د ((ماجاءك)) او ((ما جاءك)) خو قرآن دې نومعلومهٔ شوه چه قرآن علم دې، نو ددې وجه نه امام احمد رحمه الله دليل نيولې دې چه

**قرآن مخلوق نه دې** ځکه دا علم دالله ﷻ دې اوعلم صفت دالله ﷻ دې نوځوك چه ووائی چه دا مخلوق دې نو هغه کافردې.

| اَلَّذِیْنَ | اٰتَیْنٰهُمُ | الْكِتٰبَ | یَتْلُوْنَهٗ | حَقَّ | تِلَاوَتِهٖ ط | اُولٰٓىِٕكَ | یُؤْمِنُوْنَ بِهٖ ط |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هغه کسان چې ورکړېدې مونږ هغوئ ته کتاب لولي هغه په حق لوستلودهغې سره. دغه کسان ایمان لري په دې باندې | | | | | | | |

| وَ مَنْ یَّكْفُرْ بِهٖ فَاُولٰٓىِٕكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ۝ |
|---|
| ا وچاچې کفرا وکړو پدې باندې نودغه کسان خاص تاوانیان دي. |

﴿اَلَّذِیْنَ اٰتَیْنٰهُمُ الْكِتٰبَ﴾ دا په دعوی دتوحید باندې دلیل نقلی دې دمؤمنینو سابقینو نه اوموصول لپاره دعهد دې اومعهود پدې سره هغه اهل کتاب دی چه ایمان ئی راوړې ؤو لکه عبدالله بن سلام ﷺ وغیره شو.

﴿یَتْلُوْنَهٗ حَقَّ تِلَاوَتِهٖ﴾ دا یا خبر دې لپاره د«الذین» او «اولئك یؤمنون به» ورله خبر بعد خبر دې یا دا حال دې او «یتلون» یامشتق دې د«تلوّ» نه په معنی د اتباع سره یعنی هغه اهل کتاب چه دخپل کتاب حق اتباع یې کوله، یامشتق دې دتلاوة نه په معنی دقرائت سره . یعنی چه خپل کتاب لولی په حق لوستلوسره اوحق لوستل دادی چه تحریف پکښې نه کوی

ابن کثیرد عمر ﷺ نه نقل کړی دی چه حق لوستل دادی چه دجنت ذکر راشی په کتاب کښې نو دوئ جنت غواړی اوچه دجهنم ذکر راشی نو دوئ ترینه پناه غواړی او د ابن مسعود ﷺ نه روایت دې چه حق لوستل دادی چه حلال ئی حلال ګڼړی اوحرام ئی حرام ګڼړی اوتلاوت هغه شان کوی چه نازل کړیدې الله ﷻ اوتحریف پکښې نه کوی.

﴿اُولٰٓىِٕكَ یُؤْمِنُوْنَ بِهٖ﴾ دبعضې مفسرینورایه ده چه ضمیرد «به» راجع دې کتاب ته مطلب نی دادې چه هغه اهل کتاب چه خپل کتاب لره لولی په حق لوستلوسره نوصرف هم دغه ایمان راوړی په خپل کتاب اوچه څوك پکښې تحریف کوی نو دوئ ایمان نه لری په خپل کتاب اګر که دعوی کوی. خو پدې تقریرباندې داولې جملې چه «یتلونه حق تلاوته» ده او ددویمې جملې چه «اولئك یؤمنون به» ده مطلب به یوشی اوتاکید به شی نو بهتره داسې ده چه ضمیرد «به» راجع شی حضور ﷺ ته اومطلب ئی دادې چه هغه اهل کتاب چه خپل کتاب لولی په حق لوستلوسره اوتحریف پکښې نه کوی نودغه خلق ایمان په حضور ﷺ اوپه قرآن هم راوړی اوڅوك چه کفروکړی په رسول پاك ﷺ اوقرآن باندې نوحقیقت کښې دغه خلق په خساره کښې

| |
|---|
| يٰبَنِيٓ اِسۡرَاۤءِيۡلَ اذۡكُرُوۡا نِعۡمَتِيَ الَّتِيۡٓ اَنۡعَمۡتُ عَلَيۡكُمۡ وَاَنِّيۡ فَضَّلۡتُكُمۡ |
| اي اولاده دیعقوب (1) یاد کړئ نعمت ځما هغه چه ما انعام(سود) کړېدې پۀتاسو او داچې ما تاسو غوره کړي وئ |
| عَلَى الۡعٰلَمِيۡنَ ۝ وَاتَّقُوۡا يَوۡمًا لَّا تَجۡزِيۡ نَفۡسٌ عَنۡ نَّفۡسٍ شَيۡـًٔا |
| په نورو خلقو اوویریږئ دعذاب دهغه ورځې نۀ چې نۀ بۀ شي دفع کولې هیڅ یو نفس دبل نفس نه هیڅ عذاب |
| وَّلَا يُقۡبَلُ مِنۡهَا عَدۡلٌ وَّلَا تَنۡفَعُهَا شَفَاعَةٌ وَّلَا هُمۡ يُنۡصَرُوۡنَ ۝ |
| اونۀ بۀ شي قبلولې دهغه څۀ فدیه(جرمانه) اونفع بۀ نشي ورکولې هغه تۀ څۀ سفارش اونۀ بۀ ددوئ مدد کېدیشي |

﴿یٰبَنِیٓ اِسۡرَاۤءِیۡلَ -الایه﴾ ، ددې تشریح مخکښې ذکرشویده.

| |
|---|
| وَ اِذِ ابۡتَلٰٓى اِبۡرٰهٖمَ رَبُّهٗ بِكَلِمٰتٍ فَاَتَمَّهُنَّ ؕ |
| اوکله(2) چې امتحان اوکړوۀ ابراهیم باندې رب ددۀ پۀ یوڅوخبروسره نو ده پوره کړې هغه |
| قَالَ اِنِّيۡ جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ اِمَامًا ؕ قَالَ وَمِنۡ ذُرِّيَّتِيۡ ؕ |
| نو اوفرمائیل الله چې بېشکه څه گرزوم تالره دپاره دخلکو پېشوا ، اووئیل ابراهیم او داولادځما نه هم پېشوایان اوگرزوه |
| قَالَ لَا يَنَالُ عَهۡدِي الظّٰلِمِيۡنَ ۝ |
| اوفرمائیل الله نۀ رسي عهد(اقراردنبوت) ځما ظالمانو تۀ |

﴿وَاِذِ ابۡتَلٰٓى اِبۡرٰهٖمَ﴾ داپه حصه اولی دسورت کښې دویم مضمون دې یعنی بیان درسالت ومایتعلق بها دا حصه ددې ځائی نه شروع ده اوپه ﴿وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الۡمُتَّقُوۡنَ﴾ ع ٢٢ آیة ١٧٧ باندې ختم شوې ده پدې حصه کښې ١- یوتمهید دې ٢- بل دلائل داثبات دَ رسالت. په مسلماتودیهودو او نصاری ؤ اومشرکین عرب سره ٣- اوبل په رسالت باندې دشبهاتوجوابونه دی بیا دپیغام رسالت یعنی دتوحید اعاده په دلائل عقلیۇسره ده.

دنزول قرآ ن په وخت کښې په عربو کښې په مذهبی لحاظ سره درې فرقې معروفې اومشهورې وې ١- مشرکین عرب ٢- یهود ٣- نصاری، دې درې واړه فرقوبه خپل ځان نسلی

1 - په خاتمه د بحث دتوحید اوبنی اسرائیلو ته بیا یاد دهاني.

2 - تمهید ، حقانیت د حضور نبی کریم ﷺ ته ، دویم مضمون . درسالت ومابتعلق بها

اومشهورې وې ۱- مشركين عرب ۲- يهود ۳- نصارى، دې درې واړه فرقوبه خپل ځان نسلي اوروحاني اعتبارسره دحضرت ابراهيم ﷺ سره منسلك كولو، مشركين عربُ به ځان ته ابراهيميان ويل اودحضرت ابراهيم ﷺ دمتبع والى مدعيان ؤو، اوبعضې افعال دملت ابراهيمي به ئې پابندى سره كول لكه حج، قرباني، ختنه، وغيره او دحضرت ابراهيم ﷺ او داسماعيل ﷺ په محبت كښې ئې دومره غلوكړې وه چه په بيت الله كښې ئې د ابراهيم ﷺ او داسماعيل ﷺ بت اېښودلې ؤو اودهغې عبادت به ئې كولو اودغه شان يهوداونصارى ؤ دا دعوى كوله چه مونږ ابراهيميان يو، او ددې وجه نه بل ځائ كښې الله ﷻ ددئ ردكوى ﴿مَا كَانَ إِبْرَٰهِيمُ يَهُودِيًّا وَلَا نَصْرَانِيًّا﴾ددينه علاوه ديهودو اونصارى ؤپه نزدحضرت اسحاق ﷺ اوحضرت يعقوب ﷺمسلم شخصيتونه ؤواودغه شان ديهودو په نزدموسى ﷺ اودنصارى ؤ په نزحضرت عيسى ﷺ مسلم ؤو نومخاطبينُ ته ددغه مسلم شخصياتو دتصديقاتوپه رڼا كښې داثبات د رسالت لپاره دوه دليلونه پيش كړې شو. ۱- **اول** دا چه حضوراقدس حضرت محمد ﷺ هغه نبى دې چه دده لپاره حضرت ابراهيم ﷺ اوحضرت اسماعيل ﷺ دعاكړې وه

﴿رَبَّنَا وَٱبْعَثْ فِيهِمْ رَسُولًا﴾ او په يو روايت كښې داسې راغلى دى چه : «**وقد روى خالدبن معدان ،ان نفراً من اصحاب النبى ﷺ قالوا له يارسول الله اخبرناعن نفسک : قال نعم انا دعوة ابى ابراهيم وبشرى عيسى**» «قرطبى» اوپه بعضو رواياتوكښې : «**انا دعوة ابى ابراهيم ورؤويا امّى**» دې ۲- **دويم** دليل دحضور ﷺ درسالت لپاره دادې چه دحضور ﷺ ملت هغه ملت دې چه هغه دحضرت ابراهيم ﷺ اود دغه مذكورو مسلم شخصياتو ملت ؤو اوحضرت ابراهيم ﷺ اوحضرت يعقوب ﷺ ددغه ملت وصيت كړې . ﴿وَمَن يَرْغَبُ عَن مِّلَّةِ إِبْرَٰهِـۧمَ﴾ .

﴿وَإِذِ ٱبْتَلَىٰٓ إِبْرَٰهِـۧمَ رَبُّهُۥ بِكَلِمَٰتٍ﴾ دا تمهيد دې اوپديكښې دحضرت ابراهيم ﷺ دشان عظمت بيانيږى چه دې يو همه گيرشخصيت ؤ او دټولوخلقُ مذهبى. روحانى پيشواهم ؤو او دعربُ اويهودو اونصارى ؤ نسل ددوئ سره منسلك دې او دټولو روحانى اوجسمانى پلار دې. د «اذ» لپاره عامل ۱- يامقدر دې چه «**اذكر**» دې ۲- او يا ورله عامل «**جاعلک**» دې چه ورستو ذكر دې او دا راجح قول دې.

﴿ٱبْتَلَىٰ﴾ دبلاءً نه ماخوذ دې امتحان او ازمايش ته وائى اوالله ﷻ چه دبندگانونه

امتحان اخلی نو دا ددې لپاره چه بندګانو ته حقیقت الحال ظاهرشی، ځکه چه الله ﷻ ته خو هر څه حقیقت الحال معلوم دې، او ابتلاء دالله ﷻ دطرفه کله په امور اختیاریو سره وی لکه اوامر ، نواهی لکه عبادات فرض کول اوحرامونه منع کول اوکله په امور تکوینیۇ غیر اختیاریۇ سره وی لکه مالی ،بدنی ،تکلیفونه، یا دمخالفینودطرفه اذیتونه، په اول قسم کښې صبر علی الطاعات اوصبرعن المعاصی مطلوب وی، اوپه دویم قسم کښې صبرعلی البلایا مطلوب وی او دحضرت ابراهیم ﷺ ابتلاء په دواړوقسمونوسره شوې ده.

﴿إِبْرَاهِيمَ﴾ بعضې مفسرین لکه ماوردی وغیره وائی چه دا لفظ ماخوذ دې د «اب رحیم» نه اوپدې لفظ کښې عربی اوسریانی دواړه لغات متفق دی.

﴿رَبُّهُ﴾ فاعل دې او «ابراهیم» مفعول مقدم شوې دې اوتقدیم دمفعول شویدې یو داهتمام شان لوجه نه اوبل ددې لپار ه چه اضمارقبل الذکرلفظاً او ورُتبةً رانه شی او ﴿كَلِمَاتٍ﴾ جمع دکلمةٌ ده اومراد ددینه نحوی کلمې نه دی چه هغه «لفظ وضع لمعنی مفردٍ» دی، بلکه مراد ددینه هغه اُمور او اعمال دی چه دهغې امرشوې ؤوحضرت ابراهیم ﷺ ته او پدې کښې دمفسرینو متعدد اقوال دی : بعضې وائی چه ددینه مراد مناسك دحج دی، بعضی وائی چه ددینه مراد هغه لس سنتونه دی چه دهغې ذکر په حدیث دمسلم او ابوداؤد کښې شوې دې : ۱- بریتونه قینچی کول ۲- مضمضه۳- استنشاق۴- مسواك ۵- فرق یعنی دسر دوینښتوپه منیځ کښې لارجوړول ۶- دنامه لاندې وینښته خرئیل ۷- ختنه ۸- دترخونه وینښته ویستل ۹- استنجاء په اوبوسره کول ۱۰- نوکونه پریکول، اوبعضې مفسرین وائی چه مراد ددینه هغه صفات دی چه ذکرشوی دی په سورة توبه آیة ۱۱۲ کښې اوپه سورة المؤمنون آیة ۱ تر ۹ پورې اوپه سورة المعارج آیة ۲۲ تر ۳۴ پورې اوپه سورة احزاب آیة ۳۵ کښې لیکن زیات راجح قول دا معلومیږی چه صاحب دالبحرالمحیط ، ص : ۳۷۵ ذکرکړیدې دوئ لیکی «العاشرهی مابتلاه به فی ماله ولده ونفسه فسلم ماله للضیفان وولده للقربان ،ونفسه للنیران، وقلبهٗ للرحمن فاتخذه الله خلیلاً ـــ آه»

ددې آیت نه دا خبره معلومیږی چه مرتبه د امامت اواعزازواکرام دابتلاء اومجاهدات برداشت کولونه بعدحاصلیږی

﴿فَأَتَمَّهُنَّ﴾ د اتمام نه مراد پوره کول دی دالله ﷻ دمرضی مطابق.

﴿قَالَ إِنِّي جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ إِمَامًا﴾ امام مقتداء او«من یؤتم به» ته ویلې شی. انسان وی او که غیرانسان، نولاري ته هم امام ویلې شی کمافی سورة حجر ۷۹ ((وَإِنَّهُمَا لَبِإِمَامٍ مُّبِينٍ)). اولوح محفوظ ته هم ویلې شی کمافی سورة «یٰسن» ، ((وَكُلَّ شَيْءٍ أَحْصَيْنَاهُ فِي إِمَامٍ مُّبِينٍ)) او نیك او صالح انسان ته هم ویلې شی اوغیرصالح ته هم ویلې شی. اوپه نبی اوخلیفه اوامام الصلوة ئی هم اطلاق کیږی، اودلته ترینه نبی مقتدا مراد دې چنانچه دحضرت ابراهیم ﷺ نه بعدانبیاء چه څومره مبعوث شویدی نوهغوئ ټول دحضرت ابراهیم ﷺ پیروی کونکی ؤو

﴿قَالَ وَمِن ذُرِّيَّتِي﴾ عامل د «من ذریتی» لپاره مقدردې : ((ای اجعل من ذریتی اماما فی کل عصر)). یا دا عطف تلقین دې، عطف تلقین دیته وائی چه متکلم خپل کلام دبل چاپه کلام باندې عطف کړی، لکه په حدیث کښې راغلیدی ، ((رحم الله المحلقین ،قالواوالمقصرین)، نودلته والمقصرین چه کلام دصحابؤ دې عطف دې په «المحلقین» باندې چه کلام درسول ﷺ دې نو دلته «ذریتی» عطف دې په «کاف» باندې په «جاعلك» کښې اوچونکه په اولاد کښې نیکان بدان، دواړه قسمونه موجود ؤو لکه په سورة صفّ کښې دی ((ومن ذریتهامحسن وظالم لنفسه مبین)) نو ددې وجه نه الله ﷻ ارشاد اوفرمایه چه : ﴿قَالَ لَا يَنَالُ عَهْدِي الظَّالِمِينَ﴾ یعنې دا عهده د امامت به ظالمانو ته نه ملاویږی مراد د «عهدې» نه امامت او نبوت دې او تعبیرترینه په «**عهدی**» سره وشولپاره ددې چه اشاره شی چه دا دالله ﷻ هغه امانت دې چه صرف هغه چاته به ملاویږی چه الله ﷻ ئی وغواړی، او دظالم اطلاق په عام ګناهګارهم کیږی اوپه مشرك هم کیږی دلته راجحه معنی اوله ده، اوددینه استدلال شویدې چه **نبی معصوم** وی څکه چه ددې آیت نه صراحة معلومه شوه چه ظالم اوګناهګارته عهده د امامت اونبوت نه ملاویږی نومعلومه شوه چه دنبوت سره معصیت او ظلم نشی جمع کیدې، اوکه څوك **سوال** وکړی چه دحضرت یونس ﷺ په حق کښې راغلیدی «انی کنت من الظلمین» ، نودلته څرنګه نبوت دظلم اومعصیت سره جمع شو؟ **جواب** دادې چه دظلم اومعصیت لپاره مختلف درجات دی، او دهرچا مرتبه جداجدا وی، نو دلته دظلم اومعصیت نه حقیقی معنی مراد نده بلکه معمولی لغزش ؤو، چه د انبیاؤ دعالی شان سره مناسب نه ؤو، نوتعبیرترینه په ظلم او معصیت سره وشو. حضرت شاه عبدالقادر ﷫ فرمائی چه بنی اسرائیل پدې مغرور ؤو چه مونږ اولاد

دابراهیم علیه السلام یو ، او الله تعالی د ابراهیم علیه السلام سره وعده کړې ده چه بزرګی اونبوت به ستاپه خاندان کښې وی، نو الله ﷻ فرمائی چه دغه وعده د ابراهیم علیه السلام دهغه اولادسره ده چه نیک اوصالح وی

حضرت الاستاذ دخپل شیخ رحمه الله توجیه دارنګه بیانوی چه الله ﷻ اوفرمایل چه زه تالره امام ګرزوم، خلق به په دین کښې ستا اقتداء کوی اوفائده به اخلی نو ابراهیم علیه السلام عرض وکړو چه زماپه اولادکښې به هم څوک فائده حاصله کړی ! نو الله ﷻ اوفرمایل چه چا انابت وکړو اوضد اوتعصب ئی ونکړو هغه به فائده حاصله کړی. قال ومن ینتفع مِن ذریتی ((قال لاینال عهدی الظلمین)) ای بالنفع لمن عاند.

| |
|---|
| وَاِذْ جَعَلْنَا الْبَيْتَ مَثَابَةً لِّلنَّاسِ وَ اَمْنًا ۭ وَاتَّخِذُوْا |
| اوکله چې اوګرزولو مونږ کوردالله ځائې دثواب دخلقودپاره اوځائې دامن . (اووئیل مونږ)اونیسئ |
| مِنْ مَّقَامِ اِبْرٰهٖمَ مُصَلًّى ۭ وَعَهِدْنَآ اِلٰٓى اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ اَنْ طَهِّرَا بَيْتِىَ |
| دَ مقام ابراهیم سره ځائې دمونځ، اوحکم اوکړو مونږ ابراهیم اواسماعیل ته چې پاک ساتئ کورځما |
| لِلطَّاۗىِٕفِيْنَ وَالْعٰكِفِيْنَ وَالرُّكَّعِ السُّجُوْدِ ۝ |
| دپاره دطواف کوونکو اواعتکاف کوونکو اورکوع اوسجده کوونکو. |

﴿وَإِذْ جَعَلْنَا ٱلْبَيْتَ مَثَابَةً لِّلنَّاسِ وَأَمْنًا﴾ پدې کښې دبیت الله دعظمت بیان دې ((مثابة)) مصدر میمی دې دثوب په معنی سره ،او دثوب لغوی معنی داده : دیوشی خپل حالت اصلی یاحالة مقصوده ته رجوع ، راغب داسې لیکی ((رجوع الشئ الی الحالة الأولی التی کان علیهااوالی الحالة المقدرة المقصودة)) او لدې وجه نه جامې ته ((ثوب)) ویلې شی چه پدیکښې رجوع ده حالت مقصوده ته، دلته د((مثابة)) **دوه تفسیره منقول دی** : یومعنی ئی داده چه ځائ درجوع ، یعنی زړه مورشوې نه وی نو بیا بیاورته واپس کیدل غواړی او دا معنی د ابن عباس رضی الله عنه او امام مجاهد رحمه الله نه منقوله ده، او دویمه معنی ئی ده ((مجمع)) یعنې ځائ دجمع کیدلو او دا دحضرت قتاده رحمه الله نه منقوله ده، او ((تاء)) پکښې دمبالغې اوکثرت لپاره ده.

صاحب دبیضاوی وغیره د ((مثابة)) معنی موضع الثواب کړیده یعنی ځائ د ډیر ثواب ګټلو په عباداتو سره ((وامنا)) په معنی د ((مأمن)) یعنی ځائ دامن سره دې چه انسانانو اوحیواناتو

او اشجارو دهرشی لپاره ځایٔ د امن دې

﴿ وَٱتَّخِذُوا ﴾ دا خطاب امت دحضورﷺ ته دې.

﴿مِن مَّقَامِ إِبْرَٰهِـۧمَ﴾ «من» لپاره دتبعیض دې یاپه معنی د«فی» سره دې یازائد دې. مقام ابراهیم هغه ګټه ده چه حضرت ابراهیم ﷺ دخانه کعبې دجوړ ولو په وقت کښې به په هغې باندې ولاړؤو او دهغوئ دقدمونونشان پرې موجود دې. او د ابن عباس ﷛ نه مروی دی چه مراد دمقام ابراهیم نه ټول مواقف دحج دې، او دمصلی نه مراد ځائ د دعاء دې. او دمجاهد او نخعی نه مروی دی چه مراد دمقام ابراهیم نه کل حرم دې.

﴿مُصَلًّى﴾ ددې نه مراد ځائ دمونځ یاځائ د دعاء دې ځکه صلوة په معنی د دعاء سره راځی اومراد دمونځ نه هغه دوه رکعتۀ دی چه بعددطواف نه کولې شی، داحناف اومالکیه ؤ په نزد واجب دی او دشوافع په نزدسنت دی.

﴿وَعَهِدْنَا﴾ دلفظ دعهد صله چه الی راشی نوپه معنی دوصیت سره وی، او دوصیت نه دلته مراد تاکیدی امردې.

﴿ أَن طَهِّرَا بَيْتِيَ﴾ **دپاکی نه مراد** پاکی دمعنوی اواعتقادی نجاست نه مراد ده یعنی بیت الله دالله ﷻ په ذکر اوتوحید اوعباداتو سره آباد لرئ اوهرقسم شرکیاتو اوبتانونه (چه معنوی نجاست دې) ئی پاك ساتئ نو امر ددوام اوثبات لپاره دې، یا امر داحداث لپاره دې یعنې بیت الله پاك کړئ دبُتانونه لکه چه دا قول مروی دې دحضرت مجاهد اوعطاء اومقاتل رحمهم الله نه چه بیت الله آبادوُو په زمانه دنوح ﷺ کښې او پدې کښې تصاویر اوبتان دصالحینُ ؤو څه زمانه بعد بیا دهغې عبادت شروع شو نو امروکړو الله ﷻ دهغې دتطهیر «روح»

اودتطهیرنه ظاهری تطهیرهم ضمناً مراد کیدیشی اومطلب دآیت دادې چه بیت الله دهرقسم ظاهری اوباطنی نجاستونونه پاك ساتئ

﴿لِلطَّآئِفِينَ وَٱلْعَٰكِفِينَ﴾ «لام» لپاره دتعلیل دې، دا بیان د غایه دتعمیر دبیت الله دې «عاکف» په معنی دمعتکف دې، یامقیم په مکه کښې.

﴿وَٱلرُّكَّعِ﴾ جمع تکسیرد «راکعٌ» ده لکه نُصر جمع تکسیر د «ناصرٌ» ده

﴿اَلسُّجُود﴾ جمع تکسیر د «ساجدٌ» ده لکه نصورجمع تکسیرد «ناصرٌ» ده.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاِذْ | قَالَ | اِبْرٰهٖمُ | رَبِّ اجْعَلْ | هٰذَا | بَلَدًا | اٰمِنًا | وَّارْزُقْ | اَهْلَهٗ | |
| اوکله چې اووئیل ابراهیم اې ربه ځما اوګرزوه دا ځائې ښاردامن والا اوروزي ورکړه اوسیدونکو ددېته | | | | | | | | | |
| مِنَ | الثَّمَرٰتِ | مَنْ | اٰمَنَ | مِنْهُمْ | بِاللّٰهِ | وَ الْيَوْمِ | الْاٰخِرِ ؕ | قَالَ | |
| دهرقسم میوؤ نه هغه چاته چې ایمان لري ددوئ نه په الله باندې اوپه ورځ دآخرت باندې، اوفرمائیل الله | | | | | | | | | |
| وَمَنْ كَفَرَ | فَاُمَتِّعُهٗ | قَلِيْلًا | ثُمَّ | اَضْطَرُّهٗۤ | اِلٰى عَذَابِ | النَّارِ ؕ | وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ۝ | | |
| او چاچې کفرا وکړونونفع به اورسوم هغه ته لږه موده بیابه ئې جبراً اوبلم عذاب دَ اورته، اوډېربدځائې دورتللودې دااور | | | | | | | | | |
| وَاِذْ | يَرْفَعُ | اِبْرٰهٖمُ | الْقَوَاعِدَ | مِنَ الْبَيْتِ | وَاِسْمٰعِيْلُ ؕ | رَبَّنَا | تَقَبَّلْ | مِنَّا ؕ | |
| اوکله چې اوچتول ابراهیم بنیادونه دبیت الله او اسماعیل نودواړووئیل اې ربه زمونږ ، ته قبول کړې زمونږنه داخدمت | | | | | | | | | |
| اِنَّكَ | اَنْتَ | السَّمِيْعُ | الْعَلِيْمُ ۝ | رَبَّنَا | وَاجْعَلْنَا | مُسْلِمَيْنِ | لَكَ | | |
| بېشکه صرف هم ته هرڅهٔ آوریدنکې، اوپهٔ هرڅهٔ پوهیدونکې ئې. اې ربهٔ زمونږ، اوګرزوه مونږتابعدار تاله | | | | | | | | | |
| وَمِنْ ذُرِّيَّتِنَآ | اُمَّةً | مُّسْلِمَةً | لَّكَ ۪ | وَ اَرِنَا | مَنَاسِكَنَا | وَتُبْ | عَلَيْنَا ۚ | اِنَّكَ | |
| اوداولادزمونږنهٔ یوډله تابعدارتاله، اوراوښایه مونږته افعال دحج زمونږ اومهرباني اوکړه په مونږ، بېشکه خاص ته | | | | | | | | | |
| اَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ۝ | | | | | | | | | |
| توبهٔ قبلونکې رحم کوؤنکې ئې | | | | | | | | | |

﴿وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهٖمُ﴾ دتمهید نه بعد دحضرت ابراهیم ﷺ ددعاګانو ذکرکیږي چه په هغې کښې یې یوه دعا په حق دنبی کریم ﷺ کښې کړیده.

﴿هٰذَا بَلَدًا اٰمِنًا﴾ په سورة ابراهیم آیة ٣٥ کښې «هذالبلدآمنا» دې یعنی بلد معرفه ذکرشویده چه مقصود ترینه صرف د«آمناً» سوال دې، اودلته بلداً نکره ده ځکه مقصود د «بلداً» اود«آمناً» دواړو سوال دې، نو ددې وجه داده چه دا دعا دمکې د آبادی او دجرهم قوم

١ - دحضرت ابراهیم ﷺ اوله دعا.

راتلونه قبل شوې ده نو دلته دوه سوالونه مقصود ؤو یو دا چه دا وادی غیر ذرع بلد اوښار جوړشی او دویم دا چه امن والاوی، نوبیاچه کله جرهم قوم آباد شواومکه ښارشو نو بیا ابراهیم ﷺ صرف دامن لپاره دعاؤ وکړه اووئی ویل ((هذا البلد آمنا))، اوچونکه لوئ نعمت او ډیرضروری امر امن دې نوځکه ابراهیم ﷺ د امن لپاره سوال اول کړیدې. او الله ﷻ په اهل مکه باندې دخپل انعام د اظهارلپاره د امن ذکرکړیدې ((قرية آمنة مطمئنة. وهذا البلد الامين)). ((أمن)) صیغه داسم فاعل (ذی کذا) ده لکه لابن، تامر یعني امن والا چه هیڅ جابر پرې دقیامته پورې قبضه نشی کولې اود ،خسف او ،زلزلو اونورو دنیوی عذابونونه بچ وی

**فائده** قرطبی وغیره اختلاف ذکرکړیدې چه آیا مکه په دعا دابراهیم ﷺ سره حرم ګرزیدلې دې اوکه قبل ددعا دابراهیم ﷺ نه هم داتحریم ؤو، دواړوطرفینُ ته دلائل شته دې خو راجح داده چه دا حرمت مخکښ موجودؤو په دلیل دحدیث دصحیحینُ سره ((ان هذاالبلد حرّمه الله تعالی یوم خلق السموات والارض ــ الحدیث)). البته په دعا د ابراهیم ﷺ سره ددې حکم تجدید او اظهار فرضیت وشو نو ددواړو قولینُ تطبیق کیدې شی. ﴿وَٱرْزُقْ أَهْلَهُۥ﴾ دا دابراهیم ﷺ ددعاء دویمه حصه ده، چونکه مکه په ((وادغیرذی ذرع)) کښې واقع ده نو دمعاش څه ذریعه نه وه نوخلق ورته نه راتلې اګرکه امن والاوی نوددې وجه نه حضرت ابراهیم ﷺ دا دعا وغوښته چه دخلقو سکونت دلته آسان شی. ﴿مَنْ ءَامَنَ مِنْهُم﴾ دا بدل بعض دې د ((اهله))، نه چونکه حضرت ابراهیم ﷺ دا فیصله واوریده چه ؏((لاینال عهدی الظلمین)) نو دا خیال ئی وکړو چه شاید د روحانی نعمت په شان بهٔ دنیوی نعمت هم په فرمان بردارو پورې خاص وی، نوځکه ئی **تخصیص دایمان** والووکړو ﴿قَالَ وَمَن كَفَرَ﴾ یعنې په رزق کښې تخصیص په فرمان برداری پورې نشته دې. ((ومن کفر)) ۱- یاعطف دې په مقدر باندې، تقدیر دعبارت داسې دې ((اَرزقُ من اٰمن وارزقُ من کفر)) او بنا پدې تقدیر ((فامتعه)) عطف دې په ((وارزق مَن کفر)) باندې ۲- یا ((من کفر)) شرط دې او ((فامتعه)) ورله جزاء ده، اوبناپه هرتقدیرسره ((من کفر)) ماضی په معنی دمضارع سره ده. ﴿ثُمَّ أَضْطَرُّهُۥٓ﴾ اضطرار(په زوربوتلل) په طریقه ددیکوورکولوسره اوشړلوسره جهنم ته دی.

﴿وَإِذْ يَرْفَعُ إِبْرَٰهِـۧمُ ٱلْقَوَاعِدَ﴾ قواعدجمع دقاعدةٌ ده، بنیادته ویلې شی او پدې کښې

**دوه قولونه** دی **اول** دا چه بنیادونه ابراهیم ﷺ وضع کړی ؤو او بیائی دیوالونه اوچت کړل، **دویم قول** دادې چه بنیادونه مخکښې موجودؤو او ابراهیم ﷺ په هغې دیوالونه اوچت کړل خکه اوله بناء دبیت الله ملائکوکړیده لکه ددې آیت نه ظاهراً معلومیږی چه کعبه مخکښې جوړه شوې وه خو بیا نړیدلې وه نو ابراهیم ﷺ دیوالونه پورته کړل.

مؤرخین وائی چه **بناء دکعبې لس وارې شویده** : ۱- اول ملائکو د آدم ﷺ دپیدایش نه دوه زره ۲۰۰۰ کاله قبل کړې وه ۲- دویم وار آدم ﷺ «رواه البیهقی» ۳- دریم وار بعضې خامنو د آدم ﷺ، چاویلی دی چه شیث ﷺ . ۴- ابراهیم ﷺ ۵- عمالقؤ ۶- جرهم ۷- قصی بن کلاب ۸- قریش مکه چه عمر دحضور ﷺ ۲۵ کال ؤو ۹- عبدالله بن زبیر په سنه ۶۵ کښې، ۱۰- حجاج بن یوسف په سنه۷۴ کښې.

﴿وَإِسۡمَـٰعِيلُ﴾ عطف دې په ابراهیم باندې، **سوال** کیږی چه دلته «یرفعان» ولې ونه ویلې شو، **جواب** دادې چه اصل آبادی ابراهیم ﷺ کوله او اسماعیل ﷺ ورسره تعاون کولو نوځکه په طریقه دعطف سره ذکرشو.

﴿رَبَّنَا تَقَبَّلۡ مِنَّآ﴾ دا حال دې د **ابراهیم اواسمعیل** نه په تقدیر د «یقولان» سره ، «ربنا» منادی ده او دهغې حرف نداء مقدر دې او «تقبل» باب تفعل دې او دباب تفعل یوخاصیت تکلف دې، یعنی دبیت الله خدمت کماحقه مونږندې کړې نوته ئی محض په خپل فضل سره قبول کړه.

﴿إِنَّكَ أَنتَ ٱلسَّمِيعُ ٱلۡعَلِيمُ﴾ دلته «انّ» اوجمله اسمیه دتاکید لپاره دی او «انت» ضمیرفصل دې او «السمیع العلیم» خبرمعرفه راوړل لپاره ددلالت دې په حصرباندې چه ددې نه ددوئ دواړوقوت دیقین اوپختگی دایمان معلومیږی.

﴿رَبَّنَا وَٱجۡعَلۡنَا مُسۡلِمَيۡنِ﴾ مراد ددینه دوام اوثبات دې په دین اسلام اوتوحیدباندې.

﴿وَمِن ذُرِّيَّتِنَآ﴾ «من» تبعیضیه ددې وجه نه ذکرشو چه د «**لاینال عهدی الظلمین**» نه معلومه شوه چه ټول اولاد ئی مسلمانان نشی کیدی.

﴿وَأَرِنَامَنَاسِكَنَا﴾ دلته «أرِ» صیغه د امر(برائی دعا) ده، درؤیت قلبی (علم) نه ماخوذ دې

(نا) ئی مفعول اول دي او(مناسکنا) ئی مفعول ثانی دې، مناسك جمع منسك ده په لغت کښې هرهغه ځائ ته ویلی شی چه انسان هغې ته په تلو راتلوسره عادت شی، اوپه شرع کښې هرهغه ځائ ته ویلې شی چه په هغې کښې تقرب الی الله په عمل صالح سره کیدې شی لکه ذبح،طواف ، سعی وغیره، نودلته ترینه مراد افعال دحج دی.

﴿وَتُبْ عَلَيْنَآ﴾ دا توبه دخواصو توبه ده چه درفع د درجاتُ لپاره وی، توبه دعوامونده مراد چه درفع د ذنب لپاره وی

| رَبَّنَا وَابْعَثْ فِيهِمْ رَسُولًا مِّنْهُمْ يَتْلُوا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِكَ وَيُعَلِّمُهُمُ |
|---|
| اي (۱) ربهٔ زمونږ اوليږه پدوئ کښې رسول دجنس ددوئ نه چې لولي پدوئ باندې آياتونهٔ ستااوزده کوي دوئ ته |
| الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَيُزَكِّيهِمْ ۭ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۧ |
| کتاب(قران ) اوسنت اوپاکوي دوي لره ، بېشکه خاص تهٔ زورآورخاوند دحکمت ئې |

﴿رَبَّنَا وَابْعَثْ فِيهِمْ رَسُولاً﴾ دا دحضرت ابراهیم ﷺ اوحضرت اسماعیل ﷺ دویمه دعاء ده په حق دنبی کریم ﷺ کښې اوظاهره ده چه دا دعاء به هله پوره کیدې شی چه دحضرت اسماعیل ﷺ په اولادکښې دمذکوره صفاتوحامل رسول مبعوث شی، لهذا د اسحاق ﷺ په اولاد کښې پیداکیدونکی انبیاؤ سره دا دعانشی پوره کیدې ځکه چه په ذریتنا کښې د (نا) نه مراد حضرت ابراهیم ﷺ اوحضرت اسماعیل ﷺ مراد دی، ځکه چه دبناء کعبه په وخت کښې صرف دوئ دواړه موجودؤو .

((**روی الامام احمد رحمه الله شارح السنة عن العرباض عن رسول الله ﷺ انه قال ساخبرکم باول امری انا دعوة ابراهیم، بشارة عیسی ورؤیا امی التی راءت حین وضعتنی**)) (روح)

اودلفظ د((منهم)) نه دا واضحه شوه چه دا امت مسلمه چونکه انسانان دی اوخاکی اوبشر دی او بنی آدم دی نولهذا په دوئ کښې چه کوم نبی پیدا کیږی نو هغه به هم بشر او خاکی بنی آدم وی.ددینه بعد **درسول یوځوصفات** ذکرکیږی اول صفت یې ((**یتلواعلیهمْ ـ الایه**)) دې یعنی امت ته الفاظ دکتاب الله بغیر دځه کمی بیشی نه زده کوی. دویم صفت ﴿وَيُعَلِّمُهُمُ

۱ - دحضرت ابراهیم ﷺ دویمه دعا ، اول دلیل درسالت.

﴿الْكِتٰبَ﴾ ددينه مراد معانی دکتاب الله دی ځکه چه د الفاظو ذکرپه «يتلوا» کښې راغليدې دريم صفت ﴿وَالْحِكْمَةَ﴾ دې. ددې په تفسيرکښې ډيرې معانی ليکلی شوې دی راجح پکښې قول دقتاده اوحسن دې چه مراد ددينه سنت رسول ﷺ دې او دا مروی دې دامام شافعی رحمه الله نه يا ترينه مراد احکامات اوفقه فی الدين ده، اوڅلورم صفت ﴿وَيُزَكِّيهِمْ﴾ دې، ددينه مراد پاکول دی دکفر او دشرك دنجاستونونه، او د بدو اخلاقونه، ددې صفاتو ذکرکولونه يوه خبره دا معلومه شوه چه درسول پاك ﷺ رسالت عام دې اودې مبعوث دې تمام اقواموا دطبقاتوته په خلاف دانبياء سابقينُ نه چه هغوئ به مبعوث کيدل مخصوص طبقاتُ اومخصوص اقواموته اودحضورﷺ بعثت عام دې تمام طبقاتو او اقواموله اوحضورﷺ دټولولپاره خواه که هغه قُراء وی «**يتلوعليهم**» او خواه که علماء وی «**يعلمهم الكتب**» او خواه که اُمراء او سلاطين يا تجاروی «**والحكمة**» خواه که پيرانْ وی «**ويزكيهم**» نوحضورﷺ دټولومعلم دې. شعر:

**نګارمن که به مکتب نه رفت وخط نه نوشت بغمزه مسئله اموزصد مدرس شد**

او**دويمه خبره** دصفاتوذکرکولونه دامعلومه شوه چه منکرين حديث چه کومه مغالطه ورکوی چه حديث ته ضرورت نشته ځکه چه رسول اللهﷺ قاصدته وائی اوقاصد خوصرف خط رسوی. او تشريح نه کوی بلکه تشريح هغه څوك کوی چه هغه ته خط ليږلی شوې وی نو دقرآن دتفسيراوتشريح لپاره حديثو ته ضرورت نشته، نوددې صفاتو ذکرکولونه ددې مغالطې جواب واضح شو چه حضورﷺ داسې رسول دې چه امت به دده نه الفاظ دکتاب الله هم زده کوی اومعانی دکتاب الله به ترينه هم زده کوی او دا په غير دحديث نه نشی کيدې او دارنګه نور احکامات به هم ترينه زده کوی او دا بعينه حديث دې، نو درحقيقت منکر دحديث نه منکر دقرآن دې، ددې مضمون آياتونه لږ بعد په آيت ۱۵۱ اوپه سورت آل عمران آية ۱۶۴ او په سورة جمعه کښې هم راغلی دی، خودلته «يزکيهم» ورستو ذکرشوې دې او پدغه نورو آياتونوکښې «يزکيهم» مخکښې ذکرشوې دې او «يعلمهم» ورستوذکرشوې دې نو**ددې وجه** داده چه تعليم ذريعه ده لپاره دتزکيه اوتزکيه اوعمل **اهم** امراومقصود دې دتعليم نه. نوپدې آية کښې داصل ترتيب رعايت شوې دې چه تعليم مخکښې دې په عمل اوتزکيه اوعمل ورستودې، اوپه دغه نورو آياتوکښې د اهميت اومقصوديت لحاظ کړې شوې دې نو تزکيه

اوعمل ئې مخکښې ذکر کړېدی.

| وَ مَنْ يَّرْغَبُ عَنْ مِّلَّةِ اِبْرٰهِيْمَ اِلَّا مَنْ سَفِهَ نَفْسَهٗ ؕ |
|---|
| او مخ (۱) نهٔ آړوي ددين د ابراهيم نهٔ مګر هغه څوک چې کم عقل کړې وي او بې قوف کړې وي نفس خپل |
| وَ لَقَدِ اصْطَفَيْنٰهُ فِي الدُّنْيَا ۚ وَ اِنَّهٗ فِي الْاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ۝ |
| اوپه تحقيق سره مونږ غوره کړې وؤده لره پهٔ دنيا کښې، اوبېشکه دې بهٔ پهٔ آخرت کښې خامخا دنيکانونهٔ وی |
| اِذْ قَالَ لَهٗ رَبُّهٗۤ اَسْلِمْ ۙ قَالَ اَسْلَمْتُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ۝ |
| کله چې اووئيل دهٔ تهٔ رب ددهٔ تابعداري کوه څمادحکمونو.اووئيل دهٔ چې څه تابعداريم درب العالمين |
| وَوَصّٰى بِهَاۤ اِبْرٰهٖمُ بَنِيْهِ وَيَعْقُوْبُ ؕ يٰبَنِيَّ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰى |
| اووصيت اوکړوېدغه ملت سره ابراهيم خپلوځامنوتهٔ اويعقوب هم، چې اې ځامنو بېشکه الله غوره کړېدې |
| لَكُمُ الدِّيْنَ فَلَا تَمُوْتُنَّ اِلَّا وَ اَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ۝ؕ |
| ستاسو دپاره دين اسلام نوهرګزدې تاسوتهٔ مرګ رانشي مګرپداسې حال کښې چې تاسو مسلمان يئ |

﴿وَمَن يَرْغَبُ عَن مِّلَّةِ إِبْرَاهِيمَ﴾ نفی ده په قرينه داستثناء سره او پدې آيت کښې ترغيب ذکر کيږی اتباع دحضور ﷺ ته اودليل په رسالت ذکر کيږی چه دحضور ﷺ رسالت حق دې او دده اتباع وکړئ ځکه دده ملت، ملت ابراهيمی دې او دملت ابراهيمی نه اعراض او انکار حماقت دې.

﴿إِلَّا مَن سَفِهَ نَفْسَهُ﴾ «سفه» په اصل کښې خفت ته وائی «ومنه زمام سفيه ای خفيف» مبرد اوثعلب وائی چه سفه بکسرالفاء متعدی دې نو«**نفسه**» منصوب دې بنا برمفعولية اوهرچه دې سفُه بالضم نوهغه لازمی دې، اوبعضو ويلی دی چه سفه بالکسر لازمی دې او «**نفسه**» منصوب بنزع الخافض دې «ای فی نفسه» يا ددې وجه نه چه سفه متضمن دې معنی دجهل لره « **ای جهل نفسه ، اوجعلهامهانةً ذليلة** » يعنې دملت ابراهيمی نه هغه څوك اعراض کوی چه خپل ځان يې خوار او ذليل کړې وی په اتباع دخواهشاتواو په ارتکاب دشرك اوبدعت سره.

---

۱- دويم دليل درسالت اوترغيب دايمان په حضور نبی کريم ﷺ.

﴿وَلَقَدِ ٱصْطَفَيْنَٰهُ فِى ٱلدُّنْيَا﴾ ای اخترناه ﴿وَإِنَّهُۥ فِى ٱلْءَاخِرَةِ لَمِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ﴾ ((صالحین))
په معنی دفائزین بالمرادسره دې اوپه معنی دنیك عمل کولوسره نه دې ځکه دعمل کولو
ځائی دنیا ده او آخرت ځائ دبدلې دې نه دعمل کولو، او(فی الاخرة) دصالحین سره متعلق
دې، مطلب دادې چه ملت ابراهیمی داسې ملت دې چه ددې په وجه سره الله ﷻ ابراهیم ﷺ
ته په دنیا کښې غوره والې ورکړې دې اوپه آخرت کښې ددې په وجه فائزگرزیدلې دې

﴿ أَسْلِمْ ﴾ په معنی دتفویض او سپارلو او حواله کولوسره دې. یعنی الله ﷻ ته خپل
ځان حواله کړه اوصرف دهغه نه امید ساته اوصرف دهغه نه خپل حاجتونه غواړه یا په معنی د
((اخلص)) سره دې، یعنی خپل عبادت خالص دالله ﷻ لپاره کړه نوحضرت ابراهیم ﷺ وویل
چه ((اسلمتُ ......... الایه))

﴿وَوَصَّىٰ بِهَآ ﴾ ((بها)) ضمیر راجع دې ملت اسلامیه ته ﴿بَنِيهِ ﴾ ځامن د ابراهیم ﷺ اته ۸
وو (قرطبی) سیوطی ﷫ وائی دولس ۱۲ وو اولونړه ئی نه وې
﴿يَٰبَنِىَّ﴾ دا تفصیل دوصیت دې ﴿ ٱلدِّينَ ﴾ لام دعهد دې دین اسلام مراد دې
﴿ فَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنتُم مُّسْلِمُونَ﴾ مراد پدې سره دوام او ثبات (کلکوالې) دې په دین
اسلام کښې، پدې کښې یهودو او نصاری اومشرکینو ته تنبیه ده چه تاسو دخپلو اسلافو
کرامو،آباؤ او اجدادو حال واورئ چه هغوئ دتوحید څومره قدر پابند او دشرك نه څومره قدر
متنفرؤو چه دمرگ په وخت کښې دتوحید وصیت وکړو اوستاسو دعوه ده چه مونږ دغه بزگان
منو، نو بیاتوحیدولې پرېږدئ.

| أَمْ كُنتُمْ شُهَدَآءَ إِذْ حَضَرَ يَعْقُوبَ ٱلْمَوْتُ إِذْ قَالَ لِبَنِيهِ مَا تَعْبُدُونَ |
| --- |
| آیاوئ تاسو حاضر کله چې نزدې شو یعقوب ته مرگ ، کله چې اووئیل هغه خپلوځامنوته ، دچاعبادت بهٔ کوئ تاسو |
| مِنۢ بَعْدِى ۖ قَالُوا۟ نَعْبُدُ إِلَٰهَكَ وَإِلَٰهَ ءَابَآئِكَ إِبْرَٰهِۦمَ |
| ځمانهٔ روستو ، نواووئیل هغوئ چې عبادت به کوؤ مونږدمعبودستااودمعبوددپلارنیکه ستاچې ابراهیم دې |
| وَإِسْمَٰعِيلَ وَإِسْحَٰقَ إِلَٰهًا وَٰحِدًا وَنَحْنُ لَهُۥ مُسْلِمُونَ ۝ تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ |
| اواسماعیل اواسحاق دې دهغه یومعبود ، اومونږخاص دالله فرمانبرداریو ، دایوډله وه چې په تحقیق سره تیره شوېده مخکښې |

| كَسَبْتُمْ | مَّا | وَ لَكُمْ | مَا | كَسَبَتْ | لَهَا |
|---|---|---|---|---|---|

صرف دهغوئ دپاره دی هغه عملونو چې هغوئ کړي وۇ اوتاسولره په بدله دهغه عملونو وي چې تاسو کړي وي

وَلَا تُسْـَٔلُوْنَ عَمَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ۝

اوتاسونه بۀ تپوس نشي کولې دهغه عملونو چې هغوئ کول

﴿ أَمْ كُنتُمْ شُهَدَآءَ ﴾ يهوديانو حضور ﷺ ته وويل چه زمونږ نيکه حضرت يعقوب ؑ چه کله وفات کيده نوخپل اولادته ئې ديهوديت وصيت کړې دې نوځکه مونږيهوديت نه پريږدو . نو پدې آيت کښې پدوئ باندې رد مقصود دې - «ام» منقطعة دې په معنی د «بل» اضرابيه سره دې او «همزه» استفهاميه ده او استفهام انکاری په معنی دنفی سره دې. يعنی تاسو «ای موجوده حاضرو يهودو» حاضرنوئ نوځرنګه دغه قول کوئ. يا«ام» متصله دې اواستفهام تقريری دې اود «كنتم» نه مراد اسلاف ديهودو دی،يعنې ستاسوآباء اجداد خوموجودؤو چه کله يعقوب ؑ په وقت دموت کښې وصيت کولو نوهغه داسلام او دتوحيدوصيت کړې دې

﴿ إِذْ حَضَرَ يَعْقُوبَ ٱلْمَوْتُ﴾ **سوال** کيږی چه په وخت دحضور دموت کښې خوخبرې نشی کيدې نو بيائی ځرنګه وصيت وکړو؟ **جواب** : «حَضَرَ» په معنی د**قرب** سره دې يامراد دموت نه اسباب الموة يعنې مرض الموة وغيره دی. ﴿إِذْ قَالَ لِبَنِيهِ﴾ داده ﴿إِذْحَضَرَ﴾ نه بدل دې

﴿إِلَٰهًا وَٰحِدًا﴾ د «الهک» نه بدل دې چه دتاکيداو احتمال تعدد قطع کولولپاره ذکر شوې دې.

﴿تِلْكَ أُمَّةٌ ﴾ په «تلک» سره ابراهيم ؑ اودهغه اولادته اشاره ده، **پدې آيت کښې زجر دې يهودوته** او ددوئ ديوې شبهې جواب دې، دوئ ويل چه زمونږ نيکونه «آباء او اجداد» نيکان تيرشوی دی اوهغوئ زمونږلپاره ګټه کړې ده، لهذا زمونږ بخشش به کيږی نو الله ﷻ جواب ورکوی چه بيشك ستاسو آباء او اجداد نيکان ؤو، خوهغوئ دخپل ځان لپاره ګټه کړې ده او دهغوئ اعمال به هغوئ ته فائده ورکوی او تاسو پخپله نيك اعمال وکړئ نوتاسوته به هغه فائده درکړی، اوستاسونه به قبراوقيامت کښې دخپلو اعمالواوايمان تپوس کيږی چه تاسو اعمال صالحه کړيدی اوکه نه؟ او دا تپوس به درنه، نه کيږی چه ستاسو آباؤ او اجدادو نيك اعمال کړی دی اوکه نه؟

وَقَالُوا كُونُوا هُودًا أَوْ نَصٰرٰى تَهْتَدُوا ۗ قُلْ بَلْ مِلَّةَ إِبْرٰهِمَ

ودوی وائی شئ یهودیان یانصاری نولارېئ اوموموئ. نه وزنه اووایه بلکه مونږتابع یوملت دابراهیم

حَنِيفًا ۗ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ۝ قُولُوٓا آمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَآ

چې مخ اړونکی وو د هرباطل نه حق ته. اونه وو دشرک کوونکو نه اووایئ تاسو چې ایمان راوړی دی مونږ په الله او په هغه څه

أُنْزِلَ إِلَيْنَا وَمَآ أُنْزِلَ إِلَىٰٓ إِبْرٰهِمَ وَإِسْمٰعِيلَ وَإِسْحٰقَ وَيَعْقُوبَ

چې نازل کړې شوي دي مونږته اوپه هغه څه چې نازل کړې شوي دي ابراهیم او اسماعیل او اسحاق او یعقوب ته

وَالْأَسْبَاطِ وَمَآ أُوتِيَ مُوسٰى وَعِيسٰى وَمَآ أُوتِيَ النَّبِيُّونَ

او اولاد د هغه ته او هغه چې ورکړې شوي دي موسی او عیسی ته او هغه څه چې ورکړې شوې وو نورانبیاء کرامو ته

مِنْ رَّبِّهِمْ ۚ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ ۖ وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ ۝

د طرفه د رب د دوئ نه . فرق نه کوو مونږ په مینځ د هیڅ یو کښې د دوئ نه او مونږ صرف د الله فرمان بردار یو

﴿وَقَالُوا كُونُوا هُودًا أَوْ نَصَارَىٰ﴾ دا شکوه او زجر ذکر کیږی د یهودو او نصاری وَنه په دعوت ورکولو د دوئ دین محرّف ته . او کلمه د «او» د تخیر لپاره نده بلکه د تقسیم او تفصیل د قائلین لپاره ده یعنې یهودیان وائی چه تاسو یهودیان شئ او نصاری وائ چه تاسو نصاری شئ نو د حق لار او جنت لار به ومومئ

﴿قُلْ بَلْ مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ﴾ دا جواب د دغه مذکور شکوې دې او «ملة» منصوب دې په فعل مقدر سره «ای بل نتّبع ملة» او «حنیفًا» حال دې د ابراهم نه او دا مضاف الیه د ملّة دې چه مفعول به ده، او نحویانو تصریح کړیده چه کوم ځائ حذف د مضاف او اقامة د مضاف الیه په مقام د هغه صحیح وی نو د غه شان مضاف الیه د مفعول نه حال صحیح کیږی . او **د حنیف ډیرې معانی** کړې شوی دی. **یوه معنی** ده مائل د باطل نه حق ته. ځکه حنیف د حنف نه ماخوذ دې او حنف میل ته ویلې شی ومنه رجلٌ حنفاء ورجُلٌ احنف وهوالذی تمیل قدماه. **یوه بله معنی** د حنیف ده مستقیم یعنی کلك او نیغ په توحید باندې. او کله اعوج ته حنیف تفاؤلاً ویلې شی لکه لدیغ ته سلیم تفاؤلاً ویلې شویدی. او د مجاهد نه روایت دې چه حنیف په معنی د مخلص سره دې او د ربیع نه روایت دې چه حنیف په معنی د متبع (تابعدار) سره دې او ابن قیم رحمه الله وائی چه د حنیف معنی ده (المُقبل علی الله والمعرض عماسواه).

﴿وَمَا كَانَ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ﴾ یا مشرکین عرب مراددی یعني ددوئ هم خیال نه ؤو یا دمشرکین نه مراد یهود او نصاری دی، ځکه دوئ هم مشرکان دی.

﴿قُولُوٓاْ ءَامَنَّا﴾ یهودو اونصاریٰ ؤ دا پروپیگنډه کوله چه تاسو عیسی ﷺ اوعزیر ﷺ نه منئ ځکه تاسوهغوئ ته ابن الله نه وایئی لکه په موجوده دورکښې بعض جاهلان وائی چه تاسو زیارتونه نه منئ، اولیاء نه منئ ، زیارتونه اواولیاء منل ددوئ په خیال کښې دادی چه دشرکیاتو او بدعاتو ارتکاب وشی، **جواب** راغې چه مونږ ټول آسمانی کتابونه منو اوټول انبیاء منو اوفرق نه کؤ په مابین ددوئ کښې په ایمان کښې، خوخبره داده چه ﴿وَنَحْنُ لَهُۥ مُسْلِمُونَ﴾ عبادت صرف دالله ﷻ کوو سرټیټی صرف الله ﷻ ته کوو، «الاسباط» اولا ده دیعقوب ﷺ دعرب خاندانونوته قبائل ویلې شی اوبنی اسرائیلو هغې ته اسباط ویلی شی.

فَإِنْ ءَامَنُواْ بِمِثْلِ مَآ ءَامَنتُم بِهِۦ فَقَدِ ٱهْتَدَواْ ۖ

پس که چرې دوئ ایمان راوړو په مثل دَ ایمان ستاسې نو په تحقیق سره دوئ سمه لار اومندله

وَّإِن تَوَلَّوْاْ فَإِنَّمَا هُمْ فِى شِقَاقٍ ۖ

اوکه دوئ مخ وګرزولو نو پس خبره داده بله نده چه همدوئ په سخت ضد کښې دی

فَسَيَكْفِيكَهُمُ ٱللَّهُ ۚ وَهُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ ﴿١٣٧﴾

پس خامخابه کافی شی تالره دَهغوئ دشر نه الله پاك، اوهغه هرڅه اوريدونکې او په هرڅه پوهيدونکې دې.

صِبْغَةَ ٱللَّهِ ۖ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ ٱللَّهِ صِبْغَةً ۖ

«وایئ تاسو» چه قبول کریدې مونږ رنګ د الله پاك. اود چا رنګ ښائسته دې دَ الله د رنګ نه،

وَنَحْنُ لَهُۥ عَٰبِدُونَ ﴿١٣٨﴾

اومونږ صرف دَ هغه عبادت کوونکی یو.

﴿فَإِنْ ءَامَنُواْ بِمِثْلِ مَآ ءَامَنتُم بِهِۦ فَقَدِ ٱهْتَدَواْ﴾ ددعوت دحق نه بعد فرمائی چه که یهود او نصاری ؤ او دارنګه تمامو خلقودصحابؤ دایمان پشان ایمان راوړو نودوئ ته به هدایت ملاؤشی. پدې آیت کښې الله ﷻ ایمان دصحابه کرامو ﷺ معیار دایمان دامت ګرزولې دې،

وکه خوك **سوال** وکړی چه لفظ دمثل خودلالت کوی پدې خبره چه الله ﷻ او درسولانو او کتابونو مثل شته اوپه هغې چه خوك ایمان راوړی نوهدایت به مومی حالانکه نه مثل شته دې او نه دغه ایمان هدایت دې، بلکه ضلالت دې، **جواب** دادې چه بعضې وائی چه لفظ دمثل زائد دې ((ای فان آمنوابما آمنتم به)) . بعضې وائی په ((**بما**)) کښې ((باء)) زائده ده او((ما)) مصدریه دې مدخول ئی په تاویل دمصدر ګرزولی دې او دا صفت د ((ایمانا)) مقدر لپاره دې نو تقدیر دعبارت داسې دې . ((فان آمنواایماناً مثل ایمانك)) .

﴿فِي شِقَاقٍ﴾ شقاق مقابل د وفاق دې ضد او دشمنی اوجګړې ته وائی.

﴿فَسَيَكْفِيكَهُمُ ٱللَّهُ﴾ لفظ د ((الله)) فاعل دې او ((کاف)) ضمیر دمخاطب تعبیر دې دحضور ﷺ د ذات نه دا مفعول اول دې او((هم)) ورله مفعول ثانی دې، معنی داده چه عنقریب به کافی شی الله ﷻ تالره دشر ددوئ نه یعنی ستا حفاظت اونګهبانی به کوی دشر ددوئ نه اوستا لپاره به ددوئ په مقابله کښې الله کافی شی.

﴿صِبْغَةَ ٱللَّهِ﴾ دا منصوب دې په فعل مقدرسره ((ای قولو قبلنا صبغة الله)) . یا ((صبغنا اللهُ صبغةً)) یعنی الله ﷻ مونږته رنګ راکړې دې یا ((**اصبغوا**)) صبغة الله یعنې دالله ﷻ په رنګ یعنی دین سره خپل ځان رنګ کړئ چه آثار ددین ستاسوپه ظاهرکښې هم ښکاره شی شعر:

هیچ محتاجی نه ئی ګلګونه ترک کن ګلګونه تو ګلګونه

دابن عباس ﷺ نه روایت دې چه په نصارئ کښې به بچی پیداشو اووه ۷ ورځې به ئی وشوې نوهغه به ئی په هغه رنګ کښې غوپه کړو چه هغه رنګ ته معمودیه ویلې شی اوویل به ئی چه اوس ته خالص نصرانی شوې، اودیته به دوئ تطهیرویل اوپه اسلام کښې ددې تطهیرلپاره عقیقه اوختنه کول دی.

﴿وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ ٱللَّهِ صِبْغَةً﴾ یعنې دالله ﷻ رنګ نه، چه فطری دین اوخالص توحید دې بل خائسته رنګ اودین نشته دې.

﴿وَنَحْنُ لَهُۥ عَـٰبِدُونَ﴾ دا جمله تفسیر دصبغة الله دې.

قُلْ أَتُحَآجُّونَنَا فِي اللهِ وَهُوَ رَبُّنَا

او وایه به آیا تاسو جګړه کوئ زمونږ سره په دین د الله کښې (چه یهودیت حق دې) او حال دا چه هغه زمونږ رب

وَرَبُّكُمْ ۚ وَلَنَآ أَعْمَالُنَا وَلَكُمْ أَعْمَالُكُمْ ۚ وَنَحْنُ لَهٗ

او ستاسي رب دې اومونږ لره زمونږ عملونه دی او تاسې لره ستاسې عملونه دی. اومونږ الله لره

مُخْلِصُونَ ۝ أَمْ تَقُولُونَ إِنَّ إِبْرٰهِمَ وَإِسْمٰعِيلَ وَإِسْحٰقَ وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطَ

خلص کوونکی دعبادت یو آیاتاسووایئ چې بېشکه ابراهیم او اسماعیل او اسحاق او یعقوب اوددهٔ اولاد

كَانُوا هُودًا أَوْ نَصٰرٰى ۗ قُلْ ءَأَنْتُمْ أَعْلَمُ أَمِ اللهُ ۗ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ

یهودیان وو یانصاری. ته ورته اووایه آیا تاسو خه پوهیږئ د هغه په حال که الله. او څوک دې زیات ظالم دهغه چانه

كَتَمَ شَهَادَةً عِنْدَهٗ مِنَ اللهِ ۗ وَمَا اللهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ۝

چې پټوي علم دحق چې وی ده سره . دطرفه دالله نهٔ. اونهٔ دې الله بې خبره دهغه عملونونهٔ چې تاسوئې کوئ

تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ ۚ لَهَا مَا كَسَبَتْ

دغه.یوډله وه چې په تحقیق سره مخکښې تیره شوېده. خاص ده هغوئ دپاره وۀ هغه عملونه چې هغوئ کړي وو

وَلَكُمْ مَّا كَسَبْتُمْ ۚ وَلَا تُسْئَلُونَ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ۝

أو تاسولره بهبدله ده، هغه عملونو وی چې تاسو کړي وی او تپوس بهٔ نشی کېدې ستاسونهٔ د هغه عملونو چې هغوئ به کول

﴿قُلْ أَتُحَآجُّونَنَا فِي ٱللَّهِ﴾ دا زجر دې، دیهودیانو دعوه وه چه ((نحن ابناء الله واحباؤه))، نو دا ددوئ یوبله پروپیګنده وه چه څوك محبوب دالله ﷻ جوړیدل غواړی نوهغه دې یهودی شی. نو الله ﷻ فرمائی ((اتحاجوننا فی الله)) ای فی التقرب الی الله.

﴿وَهُوَ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ﴾ نو پدې خبره کښې خو مونږ اوتاسو یوشان یو نو پدې سره خو تاسو زیات قریب الله ﷻ ته نشئ کیدې

﴿وَلَنَآ أَعْمَـٰلُنَا وَلَكُمْ أَعْمَـٰلُكُمْ﴾ معامله دقرب الی الله په اعمالوسره ده او زمونږلپاره عملونه دی چه په هغې کښې دشرکت خلط نشته اوستاسو لپاره ستاسوعملونه دی چه په هغې کښې قبائح اوشرکیات دی نوڅرنګه تاسو زیات قریب یئ الله ﷻ ته

﴿وَنَحْنُ لَهُۥ مُخْلِصُونَ﴾ يعنی زمونږ په عملونو کښې شرک نشته دې خالص توحيد دې

﴿أَمْ تَقُولُونَ إِنَّ إِبْرَٰهِـۧمَ﴾ دا شکوه ده . يهودو اونصاریٰ چه هرکله د هرقسم دلائلو نه لاجواب کړې شو اوورته وويلې شو چه که چرې توحيد معيارحق وی نو مونږموحدين يو . نه تاسو - او که اتباع معيار دَ حق وه نو مونږ په تمامو انبياؤ ايمان راوړو او دهغوئ پيغام دَتوحيد منو نوهرکله چه دوئ سره هيڅ جواب نه ؤو نو دا غلطه پروپيګنډه ئی شروع کړه چه تمام انبياء سابقين يهوديان ؤو ، اونصاریٰ به ووئيل چه ټول انبياء سابقين نصاریٰ ؤو . نو الله ﷻ په دوئ ردکوی ﴿قُلْ ءَأَنتُمْ أَعْلَمُ أَمِ ٱللَّهُ﴾ يعنې ستاسوعلم دالله ﷻ دعلم نه څه زيات خوندې چه الله ﷻ فرمائی چه انبياء سابقين يهوديان اونصاریٰ نه ؤو اوتاسو وائئ چه هغوئ يهوداو نصاری ؤو.

﴿وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن كَتَمَ شَهَـٰدَةً عِندَهُۥ مِنَ ٱللَّهِ﴾ دا وعيد دې دوئ ته «من الله» متعلق دې دحاصلةً مقدرسره ، يهودو اونصاری ؤ ته علم حاصل ؤو په واسطه دتورات اوانجيل سره چه انبياء سابقين يهود اونصاری نه ؤو ، او«شهادةً» په معنی دعلم حق سره مفعول ثانی د «كتم» دې اومفعول اول ئی محذوف دې ((ای كتم الناس شهادةً)) او ((عنده من الله)) دواړه صفتونه دشهادةً دی. ﴿وَمَا ٱللَّهُ بِغَـٰفِلٍ﴾ داهم وعيد دې.

﴿تِلْكَ أُمَّةٌ﴾ يهودچونکه پدې خبره ډيرمغرورؤو چه زمونږ آباء او اجداد نيکان اوبزرګان تيرشوی دی نولهذا دهغوئ په وجه به زمونږ بخشش خامخا کيږی نو ددې زعم د رد لپاره دا مضمون دوباره ذکرشو دتاکيدلپاره.

**اوله پاره ختمه شوه ولله الحمد اولاً وآخراً**

سَيَقُولُ السُّفَهَآءُ مِنَ النَّاسِ مَا وَلّٰهُمْ عَنْ قِبْلَتِهِمُ الَّتِيْ كَانُوْا عَلَيْهَا ۭ قُلْ

زر ژر (به) چه وايي به بې وقوفان خلق څه ځيزواړول دوئ لره دقبلې ددوئ نه هغه چې وؤ دوئ په هغې، ته ورته اووايه

لِّلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ ۭ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَاۗءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ؁

چې خاص الله لره دي مشرق او مغرب، چلوي په نيغه لارهغه څوک چې خوښ ئې شي

﴿سَيَقُولُ ٱلسُّفَهَآءُ﴾ د اثباتِ رسالت نه بعد دهغه شبهاتو جوابونه ذكركيږي چه دغه شبهات وارديږي په اثبات رسالت باندې، **اوله شبه** په باره دتحويل دقبله كښې ده چه كله حضورﷺ مدينې ته هجرت وكړونوشپاړس «۱۲» يا اوولس «۱۷» مياشتې ئې بيت المقدس ته مونځ كولو، ددينه بعد بيا خانه كعبې ته دمونځ كولوحكم وشو نو مخالفينو اعتراضات شروع كړل چه بيت المقدس خو د تمامو انبياؤ عليهم السلام قبله وه نو دا چه ئې پريخودله نو دې پيغمبر ندې، نو ددې سوال جواب ذكركيږي، او **دتحويل قبله خلور علتونه** ذكركيږي. چه دوه اجمالي اودوه تفصيلي دي:

اول علت اجمالي دې ﴿قُل لِّلَّهِ ٱلْمَشْرِقُ وَٱلْمَغْرِبُ﴾

دويم علت تفصيلي دې: ﴿وَمَا جَعَلْنَا ٱلْقِبْلَةَ ٱلَّتِى كُنتَ عَلَيْهَآ إِلَّا لِنَعْلَمَ﴾ الايه.

اودريم علت بيا اجمالي دې: ﴿وَإِنَّ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَـٰبَ لَيَعْلَمُونَ أَنَّهُ ٱلْحَقُّ﴾ الايه.

اوخلورم علت بيا تفصيلي دې. ﴿لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ حُجَّةٌ﴾ الايه.

اوپه «سيقول» كښې دمفسرينو دوه رائ دى بعضې وائى چه «س» لپاره دتاكيددې اومضارع په معنى دماضى سره ده اوددوئ خيال دادې چه دا آيت دتحويل قبلې نه «فول وجهك شطرالمسجدالحرام» نه بعد نازل شويدې يعنى امر دتحويل وشو اوبيا دمخالفينو دطرفه اعتراض وشو نو بيا دانازل شوچه «سيقول السفها ــ الايه».

اودجمهورومفسرينورائى داده چه «س» لپاره د استقبال دې اومضارع په خپله معنى سره ده اودا آيت دتحويلِ قبلې نه مخكښې نازل شويدې، اومخكښې نازلولوكښې حكمت يودادې چه دا يوپيشين گوئى ده چه بالكل صحيح ثابته شوه نودادرسالت يومستقل دليل

---

۱- په رسالت اوله شبه.

شو، بل حکمت په کښې داهم دي چه دمخالفينو دسوال علم به مخکښې حاصل شی نو دجواب تياري به اول وشی نودمخالفينودسوال کولوپه وخت کښې به دجواب ورکولو پريشاني او انتظارنه وی .

﴿مِنَ ٱلنَّاسِ﴾بيان دسفهاؤ دي، بعضې حضراتو ددينه منافقين مرادکړی دی اوبعضې حضراتو ترينه اهل کتاب مرادکړي دی، اوبعضو حضراتو ترينه مشرکين مکه مرادکړيدی. او زياته صحيح خبرده داده چه ټول ورنه مراددی اودرې واړه فرقی اعتراض کوی اګر چه د اعتراض نوعيت دهر يو بدل دي، منافقين داسې سوال کوی چه د ارسول خوپه تذبذب اوحيرانتياکښې دي چه کله بيت المقدس ته مونځ کوی اوکله بيت الله ته نودې څرنګه رسول کيدې شی ، او اهل کتاب داسې اعتراض کوی چه بيت المقدس خو دتمام انبياؤ قبله ده نوچه ته دتمام انبياؤ دقبلې مخالفت کوی نوته څرنګه رسول ئی. اومشرکين مکه داسې اعتراض کوی چه تاخو زمونږ د آباؤ او اجدادو دين پريخودو اوبيا دې د آباؤ او اجدادو قبله پريخوده بيت المقدس ته دې مونځ شروع کړو ليکن هغې مزه درنه کړه او د آباؤ او اجدادو قبلې ته واپس شوې نو دغسې به د آباؤ او اجددو دين ته واپس کيږې .

﴿مَا وَلَّىٰهُمْ﴾ ماپه معنی د ((ای شئ )) سره دې او((هم)) ضميرحضور ﷺ اوصحابؤته راجع دې او د ((قبلة)) نه مرادبيت المقدس دې ﴿ٱلَّتِى كَانُواْ عَلَيْهَا﴾ يعنی شپاړس ۱۲يا اوولس ۱۷ مياشتې ئی هغې ته مونځ کړې وو ﴿قُل لِّلَّهِ ٱلْمَشْرِقُ وَٱلْمَغْرِبُ﴾ د اول جواب دې دسوال په ذکر دعلت اجمالی سره يعنې مشرق، مغرب اودارنګه تمام جهات دالله تعالی په ملکيت کښې دی اومونږ دالله تعالی غلامان اوبندګان يو نوچه هغه راته کوم جهت ته دمخ کولوحکم کوی نومونږبه هغه جهت ته مخ ګرزؤو اوپه مونږ ه دا اعتراض کول چه تاسو کله يوجهت ته مخ کوئ اوکله بل جهت ته نودا اعتراض بې وقوفی ده لکه غلام اونوکرته مالك کله حکم کوی چه مشرق ته لاړشه اوکله ورته حکم کوی چه مغرب ته لاړشه نوپه ده باندې دا اعتراض کول چه ته خوکله مشرق ته روان ئی اوکله مغرب ته روان ئی بې وقوفی ده .

| وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَٰكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِّتَكُونُواْ شُهَدَآءَ عَلَى ٱلنَّاسِ وَيَكُونَ ٱلرَّسُولُ |
|---|
| اودغسې ګرزولي يئ مونږ تاسوامت غوره ددې دپاره چې شئ تاسوګواهي ورکونکي په خلقواوشي پيغمبر |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عَلَيۡكُمۡ | شَهِيۡدًا ؕ | وَمَا | جَعَلۡنَا | الۡقِبۡلَةَ | الَّتِىۡ | كُنۡتَ عَلَيۡهَاۤ | اِلَّا |

بۀ تاسو گواهي ورکونکې اونه ده مقرر کړې مونږ هغه قبله چه ته وې په هغې باندې مخکښې مګرددې دپاره

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لِنَعۡلَمَ | مَنۡ | يَّتَّبِعُ | الرَّسُوۡلَ | مِمَّنۡ | يَّنۡقَلِبُ | عَلٰى عَقِبَيۡهِ ؕ | وَاِنۡ | كَانَتۡ |

چې مونږ بېل کړو هغه څوک چې تابعداري کوي درسولﷺ د هغه چانه چه واپس روان وي په پوندوخپلو. اوبه تحقيق سره

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَكَبِيۡرَةً | اِلَّا عَلَى | الَّذِيۡنَ | هَدَى | اللّٰهُ ؕ | وَمَا | كَانَ اللّٰهُ | لِيُضِيۡعَ |

د قبله بدلول خامخا گران دي. مګرګران ندي په هغه چاچه هدايت ورته کړيوي الله، اوندي الله چې ضائع کړي اوبربادکړي

اِيۡمَانَكُمۡ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوۡفٌ رَّحِيۡمٌ ۝

ايمان يعنى مونخونه ستاسو. بېشکه الله په خلقو ډېر مهربان اورحم کوونکې دې

﴿وَكَذٰلِكَ جَعَلۡنٰكُمۡ اُمَّةً وَّسَطًا﴾ پدې کښې ذکر دلوئ شان ددې امت دې، لفظ د «كذلك» بعضې مفسرين دتشبيه لپاره وائی، صاحب دقرطبی فرمائی «وكما ان الكعبة وسط الارض كذالك جعلناكم امة وسطاً اى جعلناكم دون الانبيأ وفوق الامم» اوصاحب دروح المعانی وائی «كثيرا ما يقصد بها تثبت مابعدها» يعنی «كذلك» نه مراد تشبيه نه ده بلکه تقويت اوتاکيد د مابعد کلام مقصود دې يعنې ستاسو امة وسطاكيدل مؤكدحكم دې، حضرت الاستاذ دخپل شيخ رحمه الله اصطلاح نقل کوی چه دا «كاف» لبيان الكمال دې يعنې وسطيت د دې امت په کمال درجه کښې دې، يا دا مطلب چه دا ځما کمال دې چه تاسو مې بهترين امت ګرزولی يئ دغه شان په نورو متعددو ځايونو کښې راغلی دی لکه : ﴿وَكَذٰلِكَ اَنۡزَلۡنٰهُ حُكۡمًا عَرَبِيًّا﴾ الرعد، نو دلته هم كاف لبيان الكمال دې اود «امة وسطا» معنى ده «خيارا عدولا» دا معنى د ابوسعيدخدری رضی الله عنه نه مرفوعاً نقل دې «ترمذی، مسنداحمد» اوغوره ته وسط ځکه وائی چه «خير الاموراوساطها، احمدالاشيأ اوسطها» ځکه په **انسان کښې درې قوتونه دی** : ۱- قوة علمی ۲- قوة غضبی ۳- قوة شهوانی اوپه هريوکښې درې ۳ مرتبې دی : افراط، تفريط، توسط يعنی اعتدال . په قوة علمی کښې افراط درجې ته جربزه ويلې شی يعنی عقل په هرځائ کښې چلول خواه که محل اولاردعقل وی يانه وی لکه حقيقت د ذات دباری تعالی چه وراء العقل دې. اوتفريط درجې ته بلادت اوغباوت ويلې شی دا دواړه درجې مذمومې دی اودتوسط درجې ته حکمت ويلې شی او په قوة غضبی کښې افراط درجې ته «تهوّر» ويلې شی او تفريط

درجې ته ((جُبن)) ویلې شی. او دتوسط درجې ته ((شجاعت)) ویلې شی اوپه قوة شهوانی کښې د افراط درجې ته ((فجور)) ویلې شی اود تفریط درجې ته ((خمول)) ویلې شی اودتوسط درجې ته ((عفت)) ویلې شی نوچه دَ درې واړو قوتونو توسط درجې جمع شی یعنی حکمت،شجاعت، عفت، نو ددینه عدالت جوړشی، نوددې وجه نه غوره ته وسط ویلې شی.

﴿لِتَكُونُوا شُهَدَآءَ عَلَى ٱلنَّاسِ﴾ د شهداء نه مراد شهادت په دنیاکښې هم دې چه دا امتیان دیومرده په حق کښې دا شهادت وکړی چه دا ښه سړې وو نو دهغه لپاره جنت واجب شو اوکه په ده داسې شهادت وکړی چه ډیر بد سړې ؤو نو دده لپاره جهنم واجب شو. لکه په صحیح حدیث کښې دغسې راغلیدی او ددغه حدیث په آخرکښې دی چه ((انتم شهدأ الله فی الارض)) اوپه آخرت کښې هم شهادت ددې امت دې لپاره د انبیأ علیهم السلام لکه داپه صحیح حدیث کښې ثابت دی چه د انبیاؤ سابقینو امتیان چه کله انکاروکړی او ووائی چه مونږته انبیاؤ تبلیغ نه دې کړې او انبیأ به دعوه کوی چه مونږ تبلیغ کړیدې نو د انبیأ علیهم السلام لپاره به گواهی دا مت کوی ((فیُجاء بکم فتشهدون)) صحیح البخاری صفحه ۱۰۹۲ جلد۴.

﴿وَيَكُونَ ٱلرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا﴾ یعنې نبی کریم ﷺ به دخپل امت د صداقت گواهی وکړی ځکه چه مخکنوامتونو جرحه ((اعتراض)) کړې وه چه تاسوخوموجود نه وئ نوتاسو څرنگه گواهی کوئ. نو د دې وجې نه مشاهد دتزکیه پکارشو. **ددې آیت نه اهل بدعت ثابتوی** چه نبی ﷺ حاضر اوناظر دې ځکه نبی کریم ﷺ ته یې شهید او شاهد ویلیدې اوشاهداوگواه هغه څوك وی چه حاضر او ناظر وی.

**جوابونه ددې استدلال** : (۱) د شاهد او شهید معنی گواه نده بلکه شاه عبدالقادر دهلوی ﷫ په سورة مزمل کښې د ((شاهدًا)) ترجمه داسې کړیده : ((بتلانے والا)) او جامع البیان د ((اناارسلناك شاهداً)) ((سورة فتح : ۸)) داسې تفسیرکړیدې: ((شاهداً بالوحدانیة)) یعنې توحید بیانونکې.

(۲) د شاهد لپاره ضروری نه ده چه واقعې ته دې حاضر وی لکه حضرت خزیمه ﷺ چه دنبی کریم ﷺ لپاره شهادت کړې وو او دارنگه په سورة یوسف کښې ((وشهدشاهدٌ)) راغلې دې حالانکه دې حاضرنه ؤو واقعې ته. اوپه هدایه ((ج ۳ ص ۱۵۷)) کښې دی ((انمایجوزللشاهدان

يشهد بالاشتهار وذلك بالتواتر اواخبارمن يثق به».

اوامام راغب ليکلی دی الشهادة قول صادرعن علمٍ حصل بمشاهدة بصيرة اوبصر»

(۳) شهيد په معنی دگواه نه دي بلکه په معنی دنگرانی کونکی سره دي يعنی نبی ﷺ ستاسو نگرانی کوی چه دَ دين نه واپس نه شئ.

(۴) جمهورو مفسرينو ليکلی دی اوپه صحيح حديث کښې وارد شويدی چه کله دمخکنوا انبياؤ عليهم السلام امتيان انکار وکړی په ورځ دقيامت او ووائی چه «ماجائنامن نذير» نو د انبيأ عليه السلام نه چه مدعيان ددې خبرې ؟ چه مونږپيغام الهی رسولې دې. به گواهان طلب کړيشی نوهغوئ به ووائی زمونږ گواهان امت محمدی ﷺ دی، نو دا امت به په حق دانبياؤکښې گواهی وکړی نو پدې امت باندې به دکفارو دطرفه جرحه وشی چه تاسوخوموجودنه وئ نوځرنگه په مونږگواهی کوئ نو دا امت به جواب ورکړی چه مونږته دالله تعالی له طرفه په ذريعه درسول الله ﷺ اوپه ذريعه دقرآن سره ددې علم حاصل دې چه الله تعالی په قرآن کښې فرمايلی دې «ولقد ارسلنا نوحا الی قومه فقال يقوم اعبدوالله ـــــ الايه».
نوبيابه ددې جرح دانسداد لپاره به حضور ﷺ راؤبللې شی اوسوال به ترينه وکړيشی دگواهئ په باره کښې نونبی کريم ﷺ به دخپل امت د تزکيه او ددوئ دشهادت قابل قبول والی تصديق اوتزکيه وکړی، نودلته دشهادت نه تزکيه دامت اوتصديق ددې امت مراد دې په گواهئ کښې

(۵) که بالفرض شهيد په معنی دحاضر او ناظر سره شی نو بيا به صرف حضور ﷺ حاضر او ناظرنه وی بلکه ټول امت محمديه ﷺ به حاضر او ناظر وی ځکه د امت په حق کښې هم لفظ د «شهداء» راغليدې بلکه پدې صورت کښې به د امت مرتبه دنبی کريم ﷺ دمرتبې نه زياته بُلنده شی ځکه نبی کريم ﷺ به صرف خپل امت ته حاضر اوناظر شی اوامت به ئې تمامو امتونوته حاضر او ناظر شی.

(٦) که دشهيدمعنی حاضر اوناظر شی نو د نوروآيتونو سره به ئې تعارض راشی ځکه سورة منافقون ددې نه بعد نازل شويدې ځکه بناپه ارجح قول باندې داده چه په غزوه تبوک کښې منافقينو دا خبره کړې وه «لئن رجعناالی المدينة ليخرجن الاعزمنهاالاذل» الايه . نوچه کله صحابی (حضرت زيد ﷺ) دا خبره نبی کريم ﷺ ته ورسوله نونبی کريم ﷺ دوئ را وبلل

او دوئ انکاروکړو اوقسمونه ئی وکړل نونبی ﷺ ددوئ تصدیق وکړو اود زید رضی الله عنه تکذیب یې وکړو نو پدې باندې سورة منافقون نازل شو. دارنګه دغزوه تبوک په موقعه دا آیت نازل شویدې ﴿وَمِمَّنْ حَوْلَكُم مِّنَ ٱلْأَعْرَابِ مُنَـٰفِقُونَ وَمِنْ أَهْلِ ٱلْمَدِينَةِ مَرَدُوا۟ عَلَى ٱلنِّفَاقِ لَا تَعْلَمُهُمْ نَحْنُ نَعْلَمُهُمْ﴾

﴿وَمَا جَعَلْنَا ٱلْقِبْلَةَ ٱلَّتِى﴾ دلته : (١) ((جعلنا)) یا په معنی د ((شرعنا)) سره دې دوه مفعوله غواړی مفعول اول ورته ((القبلة)) دې اومفعول ثانی ورته ((التی)) دې په معنی د ((الجهة التی)) سره اود ((قبلة)) نه مرادکعبه ده اود ((كنت علیها)) مطلب دادې چه قبل دهجرت نه تا هغې ته مخ ګرزولو مستقلاً یا اشتراکاً په نزد دبعضواهل علمو باندې.

(٢) یا ((جعلنا)) په معنی د ((صیرنا)) سره دې او ((القبلة التی ـــ الایه)) مجموعه مفعول اول دې اومفعول ثانی محذوف دې ((ای منسوخة)) اوپه دې تقدیر دقبله نه مراد بیت المقدس دې.

(٣) یا تقدیر دکلام دارنګه دې ((وماجعلناالقبلة التی کنت علیها ـــ ای بیت المقدس قبلة الا ، یعنی اصل امرك ان تستقبل الکعبة وان استقبالك بیت المقدس کان امراً عارضاً لغرض لنمتحن الناس))

﴿إِلَّا لِنَعْلَمَ﴾ دا جواب دې د سوال په اول علت تفصیلی سره. یعنی د تحویل دقبلې نه مقصود ابتلاء او امتحان دې یعنی تاسو اعتراض کوئ چه ((ماولّهم)) نوجواب دادې چه : ((لنعلم من یتبع الرسول)) چه حکمت په تحویل دقبله کښې ابتلاء اوامتحان دې په اهل کتابو وغیره کښې چه ایمان یې ښکاره کړې ؤو نو پدوئ کښې چه څوك کچه ایمان والاؤو او دنبی ﷺ رسالت ئی ددې وجې تسلیموو چه ددوئ قبلې ته ئی مخ کولو نو هغوئ مرتدشو او څوك چه محکم ایمان والاؤو نو هغوئ ثابت پاتې شوپه ایمان باندې ((الالنعلم)) استثناء مفرغ ده ((ای شئ الالنعلم)) په ظاهر کښې لدې نه حدوث دعلم دالله تعالی معلومیږی اوپه دې قائل دی معتزله. اواهل سنت والجماعت قائل دی دقدم دعلم دالله تعالی او ددې آیت دا لاندې توجیهات کوی :

## دَ معتزله ؤ استدلال په حدوث دَ علم دَ الله کښې او دَ اهل سنت والجماعت دَ طرفه د آیت توجیهات

(١) ((لنعلم)) نه مراد ((لنمیز)) یا ((نظهرللناس)) دې. (٢) حدوث په اعتبارد حال دمخاطبینو

سره دي چه رسول ﷺ اومؤمنان دی یعنې چه دوئ ته علم حاصل شی (۳) یا د علم نه مراد امتحان دي (۴) یاعلم په معنی درؤیت سره دي یعنې مشاهده (۵) دعلم نه مراد علم حالی دي چه بعد د وجود دمعلوم نه راځی او ددې متعلق دوه **تحقیقونه دی** : **اول** دا چه په علم دالله تعالی کښې تقدیم او تاخیرنشته دې خوپه معلوماتوکښې شته دې. نوکله چه الله تعالی دخپل علم لحاظ ؤکړی نوهلته دماضی یاحال صیغه استعمالوی دقطعیة لپاره اوچه کله دمعلوم اود وقائعو خارجیو لحاظ وکړی نوهلته هره زمانه په خپل محل کښې ذکرکوی لپاره دیوهه کولو دمخاطب. **دویم** : علم دباری تعالی په اشیاؤباندې په دوه طریقوسره دې (۱) بالذات (۲) اوبالواسطه. علم بالذات مقدم بالذات دې په علم بالواسطه لکه تقدم دحرکة الاصابع په حرکة القلم چه تقدم بالذات دې، اودا دواړه قدیم دی. لکه بلاتشبیه زمونږعلم په «نار» باندې کله بالذات وی اوکله په واسطه د دُخان سره اوکله په دواړوطریقوسره وی نوباری تعالی کله دعلم ذاتی لحاظ کوی،نوصیغه دماضی مستعملوی اوکله دعلم بالواسطه لحاظ کوی اوپدې کښې تاخر ذاتی وی، نه زمانی، نوصیغه دمضارع مستعملوی (حاشیه شیخ الهند رحمه الله بتغیر)

﴿مِمَّن يَنقَلِبُ عَلَىٰ عَقِبَيْهِ﴾ دا کنایة ده دمرتدکیدلونه لکه گرزیدونکې په پوندو باندې ترك کوی هغه چه دده مخکښې طرفته وی اوپه بدحال سره واپس شی نو دارنگه مرتدهم دې. یا دا چه په پوندو رفتارضعیف وی په نسبت سره هغه چاته چه په پوره قدم باندې رفتارکوی او مرتد کیدل هم دضعف ایمان دوجې نه کیږی ﴿وَإِن كَانَتْ لَكَبِيرَةً﴾ دکبیر په صله کښې چه علی راشی نوپه معنی دثقل سره وی، اوکلمه د «إنْ» مخفف من المثقله دې اواسم ئې ضمیر شان مقدر دې او «کانت» ضمیر راجع دې تحویلة، اوتولیة ته، اومعنی داده چه «قبلة» بدلول ډیرثقیل اوگران دی اولام په «لکبیرة» کښې لپاره دفرق راځی د«أنْ» مخففه من المثقله. د «إنْ» شرطیه وغیره نه. بعضې نحویانو ویلی دی چه «ان» نافیه دې اولام په معنی د ((إلاّ)) سره دې. لیکن محققینو دیته ضعیف جداً ویلی دی ((هَدَى اللهُ)) دهدایت نه مراد ایمان دې یعنې دایمان والؤ ذوق اوفطرت چونکه اطاعت اوتسلیم وی اوعلت اوحکمت نه طلب کوی نوددې وجې نه دوئ ته یوه قبله پریخودل اوبلې قبلې ته مخ کول دالله تعالی د امر دوجه نه آسانه وی ځکه اطاعت د امر دفطرت ایمانی تقاضا ده . نو معنی دا شوه چه قبله

...نول ډیر گران دی مگر په ایمان والؤ باندې ندی گران.

﴿وَمَا كَانَ ٱللَّهُ لِيُضِيعَ إِيمَٰنَكُمْ﴾ په حديث دبخاری. ترمذی وغیرهما کښې راغلیدی چه هرکله دتحویل قبلې حکم وشو نوبعضې خلق داسې ؤو چه هغوئ بیت المقدس ته مونځونه کړی ؤواو دتحویل قبلې نه مخکښې وفات شوی ؤو ((منهم ابوامامة واسعدبن زراره وبرأ بن معرور)) نوصحابه ؤ تپوس وکړو چه زمونږهغه مونځونه چه بیت المقدس طرف ته شویدی آیا هغه به ضائع شوی وی؟ نو پدې آیت کښې دَ دغه سوال جواب وشو چه چونکه دغه مونځونه په دغه وخت کښې دَ الله پاك دَ امر مطابق شوی وؤ نو دغه ضائع ندی. نومراد له ((ایمانکم)) نه صلوتکم)) دې نو اطلاق د ایمان شویدې په صلوة باندې نو امام بخاری اونورمحدیثین وائی چه دا دقبیلې داطلاق دکل نه دې په جزء باندې نومعلومه شوه چه صلوة او دارنګه نوراعمال جزء دی دایمان نه نو ایمان مرکب دې، اوجمهور فقهأ او ماتریدیه وائی چه ایمان بسیط دې او دا دقبیلی داطلاق دمُقتضی ((بالکسر)) نه دې په مقتضی ((بالفتح)) باندې چه ایمان مقتضی ((بالکسر)) دې اوصلوة مقتضیٰ ((بالفتح)) دې اوپه دې کښې اشاره ده چه دغه مونځونه دوجې دایمان نه دی نوځکه برباد نه دی.

| قَدْ | نَرَىٰ | تَقَلُّبَ | وَجْهِكَ فِي ٱلسَّمَآءِ | فَلَنُوَلِّيَنَّكَ | قِبْلَةً |
|---|---|---|---|---|---|
| بېشکه مونږ | وینو | بیابیامخ اړول | ستادطرف دآسمان ته ، | پس خامخابه اوګرووُمونږتالره | هغه قبلې ته |

| تَرْضَىٰهَا | فَوَلِّ | وَجْهَكَ | شَطْرَ ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ | وَحَيْثُ | مَا كُنتُمْ | فَوَلُّوا۟ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| چې ته ئې خوښوې، | نو پس | واړوه مخ | خپل طرف دمسجدحرام ته ، | اوکوم خائې | چه یئ تاسو | نوګرزوئ |

| وُجُوهَكُمْ | شَطْرَهُۥ | وَإِنَّ | ٱلَّذِينَ | أُوتُوا۟ | ٱلْكِتَٰبَ | لَيَعْلَمُونَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| مخونه خپل | طرف دهغې ته، | اوبېشکه | هغه کسان چه | هغوئ ته | کتاب ورکړې شوېدې | خامخاپوهیږي |

| أَنَّهُ | ٱلْحَقُّ | مِن | رَّبِّهِمْ | وَمَا ٱللَّهُ | بِغَٰفِلٍ | عَمَّا | يَعْمَلُونَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| چې بېشکه داقبله | بدلیدل حق دي | دطرفه | درب ددوئ نه، | اوندي الله | بې خبره | دهغه عملونه | چه دوئ ئې کوي |

﴿قَدْ نَرَىٰ تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي ٱلسَّمَآءِ﴾ ((قد)) د تحقیق لپاره راغی او ((تقلب)) باب تفعل دتکرار لپاره دې یعنی بیابیا ګرزول دمخ او((فی)) په معنی د((الی)) سره دې، دحدیث د بخاری

وغیره مفهوم دي چه حضور ﷺ کله هجرت وکړو مدینی ته نومونځ ئی وکړو بیت المقدس ته شپاړس ۱۲ یا ۱۷ اوولس میاشتی خو دائی خوښه وه چه قبله بیت الله شی ځکه چه بیت الله قبله دَ ابراهیم ﷺ وه او د اهل عرب اسلام ته را نزدې کولو عمده ذریعه وه او په اهل کتابو کښې چه چا ایمان راوړلو نوهغوئ ایمان راوړلې ؤو اوچه کوم باقی ؤو نو حضور ﷺ دهغوئ د ایمان نه مایوس شوې ؤ لکه ددې آیت نه معلوم شوې وه : ﴿ أَفَتَطْمَعُونَ أَن يُؤْمِنُوا لَكُمْ ﴾ الایة

﴿وَلَن تَرْضَىٰ عَنكَ ٱلْيَهُودُ وَلَا ٱلنَّصَـٰرَىٰ﴾ الایه . نو دنبی ﷺ دا خوښه وه چه بیت الله ځماقبله شي او دا ئی توقع هم وه ځکه چه ددین امامت اوسیادت دبنی اسرائیلو نه بنی اسماعیلو ته منتقل شوې ؤو نوپکاروه چه قبله دې هم هغه مقررشی چه هغه قبله د ابراهیم ﷺ او اسمٰعیل ﷺ وه، نوددې وجې نه به نبی ﷺ دوحی په توقع کښې آسمان ته باربار کتل اوالله ﷻ خو د جهاتو او مکان نه پاك دې خو بیا هم په قرآن اوحدیثو کښې تجلیات خاصه آسمان طرف ته منسوب کړې شوی دی، نوځکه به ئی آسمان ته باربار کتل.په وجه د اشتیاق اود اُمید سره، نوالله تعالی اول دا آیت نازل کړو چه : «قد نری تقلب وجهك — الایه» او وعده ئی ورسره وکړه چه زه به تاته حکم دَ تحویل درکوم، او بیا ئی دَ دغه وعدې پوره کولو لپاره ورستو حکم وکړو «فول وجهك» نوپدې طریقه سره نبی ﷺ ته دوه وارې خوشحالی اومسرت حاصل شو چه اول ئی خبرورکړو چه ستاخوښ کاربه کوم اوبیائی ورته خوښه پوره کړه .

﴿فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضَىٰهَا﴾ لام دتاکیدد وعدې لپاره دې «اوترضٰها» مضارع په معنی دحال سره یا په معنی دماضی سره ده. ددې آیت دا تشریح جمهورو مفسرینو بیان کړیده اوحضرت الاستاذ ﷫ دخپل شیخ حضرت مولانا حسین علی ﷫ یوبله توجیه هم لیکلی ده اوفرمایلی ئی دی چه دا په دائره دتاویل کښې داخله ده اوپه تفسیر بالرأی کښې نده داخله نودغه توجیه چونکه بظاهر د روایت حدیث او دجمهورومفسرینو د توجیهِ نه مخالفه ده نو بهتره او اسلمَ توجیه دا د جمهورو توجیه ده ، والله اعلم

﴿فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ﴾ دا دوعدې ایفاء ده. د «وجه» نه مراد کل بدن دې «اوشطر» په معنی دطرف اوجانب دې اود «مسجدحرام» نه خانه کعبه مراد ده. او مدارك وغیره وائی چه په ذکر کولو د مسجد حرام کښې اونه ذکر کولو دکعبه کښې اشاره ده چه

...جب استقبال جهت د قبلې ته دې. نه خاص خانه کعبې ته، **اودا حکم** په حالت دصلوة کښې راغلې دې چه دوه رکعته بیت المقدس طرف ته شوی ؤو ، اودوه رکعته بیت الله طرف ته اداشو او دغه مسجد ته مسجد القبلتین هم پدې وجه سره ویلی شی.

اوپدې کښې اختلاف دې چه **اول مونځ بیت الله ته** دظهر ؤو اوکه دعصرؤو دواړه روایتونه موجوددی. محدثین حضرات ئی تطبیق دا کوی چه اول علی الاطلاق دظهرمونځ ؤو او اول کامل اوپوره مونځ بیت الله ته دعصرؤو، اودارنګه په دې کښې اختلاف شویدې چه **اول حکم دَ تحویل قبله په کوم مسجدکښې شویدې** نو راجح خبره داده چه د تحویل قبلې حکم اول دظهرپه مونځ کښې په مسجد بنوسلمه کښې چه هغې ته مسجد القبلتین ویلی شی په حالت دمونځ کښې شوې دې اومقتدیانو ټولومخ کعبې طرف ته کړو اورجال د نساؤ ځائ ته راغلل اونسأ درجالو ځائ ته راغلل او دا تبدیل دموضع اګر چه عمل کثیر دې اوعمل کثیر خو مفسد دصلوة وی، لیکن کیدې شی چه دا واقعه دهغه وخت وی چه په دغه زمانه کښې عمل کثیر مفسد دَ صلوة نه ؤو یا دا موضع دضرورت ؤو اومواضع دضرورت مستثنی دی لکه چه صلوة دمطلوب، یا دمحدث لپاره بناء جائزه ده

﴿وَحَيْثُ مَا كُنتُمْ فَوَلُّوا۟ وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُۥ﴾ دمخکښې نه خصوصیت فهمیدو نوپدې آیت کښې تعمیم وشوو دحکم دقبلې ټول امت ته، اوبیا وروستوآیتونوکښې تعمیم کیږی دمکان چه کور وی اوکه مسجد، بَرَ وی اوکه بحر، مشرق وی اوکه مغرب، او بیا تعمیم د احوالو کیږی یعنی که حال دسفروی اوکه حال دحضروی.

﴿وَإِنَّ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَـٰبَ لَيَعْلَمُونَ أَنَّهُ ٱلْحَقُّ﴾ دادریم جواب دې، او دتحویل قبلې دویم اجمالی علت دې او«أَنَّهُ» ضمیرتحویل قبلې ته راجع دې یعنی اهل کتابو ته معلومه ده چه د آخری نبی قبله به بیت الله وی نو دذوئ اعتراض په تحویل قبله باندې محض عناد اوسفاهت دې.

| وَلَئِنْ أَتَيْتَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَـٰبَ بِكُلِّ ءَايَةٍ مَّا تَبِعُوا۟ قِبْلَتَكَ ۚ وَمَآ أَنتَ بِتَابِعٍ |
| --- |
| اوکه (١) ته راوړې اهل کتابوته هرقسم دلیل نو تابعدارې نه کوي دوئ دقبلې ستا، اونه ته تابعداري کوونکې ئې |

١- زجر اول.

| قِبْلَتَهُمْ ۚ | وَمَا | بَعْضُهُمْ | بِتَابِعٍ | قِبْلَةَ | بَعْضٍ ۚ | وَلَئِنِ | اتَّبَعْتَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

دقبلې ددوئ اونه دي بعضې ددوئ تابع کېدونکي دقبلې دبعضې نورو. اوکه (١) چرې بالفرض تابعداري اوکړې ته

| أَهْوَاءَهُمْ | مِنْ | بَعْدِ مَا جَاءَكَ | مِنَ الْعِلْمِ ۙ | إِنَّكَ إِذًا لَمِنَ | الظَّالِمِينَ |
|---|---|---|---|---|---|

دخواهشاتو ددوئ روستو دهغې نه چه راغلې دې تاته علم. نوبېشکه ته به په دغه وخت کښې خامخادظالمانو نه شې

﴿وَلَئِنْ أَتَيْتَ الَّذِينَ﴾ دا بیان دې دضد او عناد داهل کتابو یعنی دوئ ته علم دې دحقوالی (حقیة) دتحویل دقبلې خو دحسد اوضدد وجې نه خپله قبله نه پرېږدی اوستا اتباع نه کوی ﴿بِكُلِّ آيَةٍ﴾ یعنی دلیل اوحجت په حقوالی (حقیة) دتحویل قبلې ﴿مَّا تَبِعُوا قِبْلَتَكَ﴾ ماضی په معنی دمضارع ده ((ای لایتبعون)) ځکه جز اد (ان) استقبال وی او اخفش ویلی دی چه (ان) په معنی د (لو) سره دې او جواب د (لو) ماضی وی وهوبعید ﴿وَمَا أَنتَ بِتَابِعٍ قِبْلَتَهُمْ﴾ پدیکښې اخباردې په کلك والی دنبی ﷺ په خپله قبله باندې (ابن کثیر) اوصاحب دروح المعانی وائی چه اهل کتابو ددهوکې ورکولولپاره ویل چه اې محمد ﷺ ته دوباره بیت المقدس خپله قبله وګرزوه نوموږبه ستا اتباع وکړو، نوالله تعالی ددوئ دا طمع قطع کړه. یا دا خبر په معنی دنهی سره دې یعنی اتباع مکوه دقبلې ددوئ (قرطبی).

﴿وَمَا بَعْضُهُم بِتَابِعٍ قِبْلَةَ بَعْضٍ﴾ په دیکښې د اهل کتابوخپل مابین کښې دحسداوعناد ذکر دې. یعنی ددوئ حسد په تاپورې مخصوص ندې بلکه خپل مینځ کښې هم ضد اوعناد کوی اګرچه یوبل ته قریب دی نوتاسره به ولې حسدنه کوی، یهودیان صخره دبیت المقدس ته قبله وایی (هیکل) اونصاری ځائ دولادت دعیسی ﷺ بیت الشرق یعنی جانب مشرقی قبله ګڼړی اګر چه دغلته عمارت یامکان نشته دې هغه قبله ګرزوی.

﴿وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ أَهْوَاءَهُم﴾ په دیکښې تحذیر دې په اتباع داهل کتابو اوخطاب حضور ﷺ ته دې اومراد ترینه امت دې یاکلام علی سبیل الفرض ویلې شوې دې یعنی اتباع دقبلې داهل کتابو اودهغوئ دخواهشاتو دومره سخت ترین جرم دې که چرې بفرض محال ستانه صادرشی نو ﴿إِنَّكَ إِذًا لَّمِنَ الظَّالِمِينَ﴾ نوبل څوك به څرنګ معاف شی نوددې وجه نه صاحب دبیضاوی وائی چه دلته اووه ٧ تاکیدات دی: ١- لام - ٢- قسم مقدر ٣ انّ ۴- حرف من - ۵- لام په جانب دخبرکښې ۶- حکم کول په ظلم سره ٧- ظالمین جمع راوړل.

---

١ - زبجر ثانی

| اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَعْرِفُوْنَهٗ كَمَا يَعْرِفُوْنَ اَبْنَآءَهُمْ ؕ |
| --- |
| هغه کسان چې ورکړېدي مونږ هغوئ ته کتاب پیژني حقانیت ددې رسول داسې لکه چې پیژني خامن خپل |
| وَاِنَّ فَرِيْقًا مِّنْهُمْ لَيَكْتُمُوْنَ الْحَقَّ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿١٤٦﴾ اَلْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ |
| اوبېشکه یوه ډله ددوئ نه پټوي حق لره اوحال دادې چه دوئ پوهیږي همداحق دې دطرفه د رب ستانه |
| فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِيْنَ ﴿١٤٧﴾ |
| پس مه کېږه ته دشک کوونکو نه |

﴿يَعْرِفُوْنَهٗ كَمَا يَعْرِفُوْنَ اَبْنَآءَهُمْ﴾ «يعرفونه» ضمير يا راجع دې حضور ﷺ ته اومراد ترینه نبوت دحضور ﷺ دې. عبدالله بن سلام فرمائی «ولقدعرفته حين رأيته كما اعرف ابنى ومعرفتى لمحمد ﷺ اشد من معرفتى لابنى» یعنې چه مانبی ﷺ ولیدو نوما وپیژندو لکه خپل زوئ چه پیژنم بلکه دنبی ﷺ پیژندل زیات ؤ د پیژندلو د زوی ځما نه. اوپه بل روایت کښې داسې مفهوم دې چه د زوی په باره کښې دا احتمال کیدیشی چه مورئی خیانت کړې وی اودنبی ﷺ په حق والی اونبوت کښې هیڅ شك نشته دې. یاضمیر د «يعرفونه» راجع دې تحویل قبلې ته او دا توجیه اوفق د سیاق او سیاق سره ده (کبیر، قرطبی).

﴿لَيَكْتُمُوْنَ الْحَقَّ﴾ د «الحق» نه مراد دحضور ﷺ رسالت اوصفات دی یا امر دتحویل قبلې دې. ﴿وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ﴾ یعنې دا کتمان دحق دمعذورئ او لاعلمئ په وجه نه دې

«الحق» مبتدأ «من ربك» خبردې یعنی حق دطرف دالله ﷻ نه راځی په ذریعه دوحی سره یا «الحق» خبر د مبتدأ محذوف دې «ای هذا هو الحق من ربك فلاتكونن من الممترين».

| وَلِكُلٍّ وِّجْهَةٌ هُوَ مُوَلِّيْهَا فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرٰتِ ؕ |
| --- |
| اودهرچادپاره یوطرف یعنی قبله وي چه دې مخ کوونکې وي هغې ته نومخکښې شئ ډیوبل نه نیك کارونوته |
| اَيْنَ مَا تَكُوْنُوْا يَاْتِ بِكُمُ اللّٰهُ جَمِيْعًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿١٤٨﴾ وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ |
| هرچرته (١) چې یئ تاسو نورابه ولي تاسوالله ټول، بېشکه الله په هرڅیزقادر دې اودهرخایه (٢) چه اوځې ته سفرته |

١ - تخویف اخروی.
٢ - ددې زیادت دپاره د امر دتحویل اعاده اوشوه.

| فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۖ وَإِنَّهُ لَلْحَقُّ مِن رَّبِّكَ ۗ |
|---|
| نو گرزوه مخ خپل طرف د مسجد حرام یعنی کعبې ته، او بیشکه دا مخ کول کعبې ته خامخا حق دی د طرفه درب ستا نه |
| وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ۝ |
| او ندې الله بې خبره دهغه عملونو نه چه تاسو ئې کوئ |

﴿وَلِكُلٍّ وِجْهَةٌ﴾ تنوین په «لکل» کښې عوض دې «ای لکل ملة اولکل شخص». او «وجهة» فعلة وزن مصدر دې په اصل کښې «وجه» ؤ په معنی دمتوجه الیه سره یعنی هغه ځائ چه هغې ته توجه کولې شی په مانځه کښې یا هر هغه کار چه انسان هغې ته توجه کوی عام لدینه که دین اومسلك وی اوکه قبله وی ﴿هُوَ مُوَلِّيهَا﴾ «هو» ضمیر راجع دې «کل» ته په اعتبار دلفظ سره او «ها» مفعول اول د «مولّی» لپاره دې اومفعول ثانی مقدر دې چه (وجهه) دې - معنی داده (۱) چه د هر اهل ملة لپاره یوقبله اوجهت وی خواه که بحقٍ وی لکه مسلمانان اوکه په خپل خواهش سره وی لکه یهود نصاری. چه دغه اهل ملة دغه جهت ته مخ گرزوی نو اهل اسلام هم یوعظیم ملت دې نو ددوئ لپاره هم یوه مستقله قبله په کاروه لکه دیهودو، ځانله قبله وه او دنصاری ؤ ځانله قبله وه نو که دمسلمانانو ځانله مستقله قبله شوه. نو داخو د اعتراض وجه نشی کیدی

﴿فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ﴾ یعنې دمعترضینُ اعتراض ته توجه مکوئ اونیك کارونوته سبقت کوئ (۲)- په مسلمانانو کښې د هر اهل طرف لکه مشرق مغرب شمال جنوب شولپاره یوجهت وی چه دوئ هغه جهت ته مخ گرزوی لکه دکعبې نه مشرق جانب والا مغرب طرف ته مخ گرزوی او مغرب والا مشرق جانب ته. (۳) - دهرشخص یا قوم لپاره یومسلك اومخه وی چه دې هغې ته مخ کوی یعنی د زړه تعلق ورسره ساتی مثلاځوك ددین سره اوځوك ددنیاسره ځوك دمسجد سره اوځوك د مندر سره ځوك دلله تعالی سره او ځوك دبتانوسره، ځوك دتوحید سره او ځوك دشرك سره اوځوك دسنت سره اوځوك دبدعت سره نو : ﴿فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ﴾ پدې امورو کښې دخیراموروته سبقت کوئ اولکه څرنگه چه په تشریعی امورو کښې خلق مختلف طبائع اومزاجونه لری نو دغه شان په تکویناتو کښې هم خلق مختلف مزاجونه اوطبائع لری دچا د زړه تعلق دزراعت سره دې او د چا دتجارت او دچا دصنعت سره وغیره «کل میسرلماخلق له» ﴿أَيْنَ مَا تَكُونُوا يَأْتِ بِكُمُ اللَّهُ جَمِيعًا﴾ یعنی په آخرت کښې به الله تعالی تاسو دهرملك اوطرف نه راجمع کړی ﴿وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ﴾ دا تعمیم دې په اعتبار دخروج سره

کوزکلی نه یعنی که په کوزکلی کښې ئې اوکه باهرنې خوبه هرحال بیت الله ته مخ کوه په مانځه کښې

وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۖ وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ

او هره ځایه چه اوځې ته نو پس ګرزوه (۱) مخ خپل طرف د مسجدحرام ته یعنې کعبې ته. اوکوم ځائې کښې چې یئ تاسو

فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ ۙ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ حُجَّةٌ ۙ إِلَّا الَّذِينَ

نوګرزوئ مخونه خپل طرف دهغې ته، ددې دپاره چې نه وی د خلقو دپاره په تاسو هیڅ دلیل مګرهغه خلق

ظَلَمُوا مِنْهُمْ ۚ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِي ۚ وَلِأُتِمَّ نِعْمَتِي

چې ظالمان دي ددوئ نه، نو مه ویریږئ ددوئ نه او ویریږئ خمانه. اوددې دپاره چه پورا کړم نعمت خپل

عَلَيْكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴿۱۵۰﴾

په تاسو باندې او ددې د پاره چه تاسوسمه لار او مومئ

﴿وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ﴾ دا تعمیم په اعتبار دسفراوحضرسره دې ﴿وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ﴾ دا تعمیم په اعتبارداشخاصُ سره او د امکنؤ سره دې یعنې په هرمکان کښې چه تاسوئی اګرکه په بیت المقدس کښې ئی خومخ به بیت الله ته ګرزوئ، حضرت شیخ الهند رحمه الله فرمائی چه دتحویل قبلې **دحکم مکررکولووجه** داده چه ددې لپاره متعدد علتونه ذکرکیدل نودهرعلت سره حکم هم مکرر شو د ﴿قَدْ نَرَىٰ تَقَلُّبَ وَجْهِكَ﴾ نه معلومه شوه چه د رسول ﷺ رضاحوئی او اظهار تکریم مقصود دې او د ﴿وَلِكُلٍّ وِجْهَةٌ﴾ نه معلومه شوه چه عادة دالله تعالی دادې چه هرصاحب شریعت رسول ته مستقله قبله ورکوی او د ﴿لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ﴾ نه معلومه شوه چه علت دتحویل لپاره دفع د الزام ده. یا **د دې تکراروجه** داده چه تحویل قبله مهتم بالشان امر دې اوبل داچه بې وقوفه یهودیان دنسخ قائل نه ؤو نود تاکید لپاره داحکم مکرر شو چه دا عین حکمت اوبلاغت دې **یا وجه داده** چه په اول آیت کښې تعمیم دَ احوالو اوپه دویم آیت کښې تعمیم دَ مکان اوپه دریم کښې تعمیم دَ زمان مقصود دې. ﴿لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ حُجَّةٌ﴾ دادویم علت تفصیلی اوځلورم جواب دې اود «حجة» نه مراد صحیح دلیل اومعقول اعتراض دې یعنی که چرې تحویل قبله نوې شوې نو بیا به اهل کتابو

1 - دعلت بیانولو دپاره بیا اعاده اوشوه.

او دا رنگه مشرکین عرب حجت پیش کوؤ چه په ملت ابراهیمی کښې خو قبله بیت الله دې او دا رنگه په مخکنو کتابونو کښې ئی لیکلی دی چه دنبی آخرالزمان قبله به بیت الله وی نو دا حجت صحیح دلیل او معقول اعتراض ؤو

﴿إِلَّا الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْهُمْ﴾ دا استثنا منقطع ده او د ((ظلموا)) نه مراد معاندین دی یعنی صحیح او معقول اعتراض خو دفع شو. لیکن معاندین اعتراضونه نه پریږدی خو ﴿فَلَا تَخْشَوْهُمْ﴾ د دوئ د طعنونو او اعتراضونو نه مه یریږئ او دهغوئ د اعتراض او دطعن دوجه نه عمل په قبله مه پریږدئ او ځما نه ویریږئ او ځما دعظمت دیرې دوجه نه ځما دحکم تعمیل وکړئ

﴿وَلِأُتِمَّ نِعْمَتِي عَلَيْكُمْ﴾ دا عطف دې په ((لئلا)) باندې نو دا هم علت تفصیلی دې خو په معطوف علیه کښې دخیر ددنیا ذکر دې چه هغه ظهور دغلبې دې په مخالفینو په دفع اعتراض دهغوئ سره او په معطوف کښې بیان د خیر دآخرت دې، د **اتمام نعمت نه مراد** دخولِ جنت دې (رواه الترمذی عن معاذبن جبل والبخاری فی الادب المفرد)

یاترینه هدایت کول دی قبلې ته (قرطبی) یاترینه مراد موت دې په اسلام، بیا دخول جنت ته، بیا دیدار الهی دې (خازن) الهم ارزقناهذه.

| كَمَآ أَرْسَلْنَا فِيكُمْ رَسُولًا مِّنكُمْ يَتْلُوا عَلَيْكُمْ ءَايَـٰتِنَا وَيُزَكِّيكُمْ |
|---|
| لکه څنګه چه لیږلی دې مونږ په تاسو کښې رسول دجنس ستاسونه لولي په تاسوآیاتونه زمونږ او پاکوي تاسود کفرنه |
| وَيُعَلِّمُكُمُ الْكِتَـٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَيُعَلِّمُكُم مَّا لَمْ تَكُونُوا تَعْلَمُونَ ۞ فَاذْكُرُونِي |
| اوتعلیم درکوي تاسوته دکتاب او دحکمت اوتعلیم درکوي دهغه څه چه تاسوپه هغې نه پوهیږئ. نوپس یادوئ ما (۱) |
| أَذْكُرْكُمْ وَاشْكُرُوا لِي وَلَا تَكْفُرُونِ ۞ |
| نوزهٔ هم یادوم تاسو او شکر کوئ ځما او ناشکري مه کوئ |

﴿كَمَآ أَرْسَلْنَا﴾ ((کاف)) لپاره دتشبیه دې او ((ما)) مصدریه او جارمجرور په محل دنصب کښې دې صفت دې دمفعول مطلق مقدرلپاره. تقدیر دعبارة داسې دې ((لأتم نعمتی اتماماً مثل اتمام ارسال الرسول)) یعنې لکه څنګه چه تاسوته می افضل، اعز، اکرم، رسول درکړیدې نو دغه شان

1 تاسو الله ﷻ دوه قبلو والا او ګرزولې نو دالله ﷻ شکر کوئ او هغه یادوئ

می ... سوته افضله قبله درکړه

﴿وَيُعَلِّمُكُم مَّا لَمْ تَكُونُواْ تَعْلَمُونَ﴾ ددینه مراد تیرشوؤ امتونو او د رسولانوقصص . اواحوال او د راتلونکو حالاتوتذکره ده چه هغه په ماسوا دوحی سره نشی حاصلیدې نو دا تخصیص بعدالتعمیم شو

﴿فَٱذْكُرُونِىٓ﴾ دا تفریع ده په ماقبل باندې. یعنی هرکله چه الله تعالی تاسودؤو قبلو والا وګرزولئ اوخپل نعمت ئی درباندې تام کړو اوافضل رسول ئی درکړو نواوس تاسو الله تعالی یادوئ اوشکریې کوئی. اومفسرینوتصریح کړیده چه ذکرعام دې که په قلب سره وی اوکه په لسان سره اوکه په اعضأ او جوارحو. اعمالو، افعالو سره وی. او د **ذکرفوائد اوفضائل** ډیرزیات دی خودتهولو نه لوئ فضیلت ئی دادې چه ﴿أَذْكُرْكُمْ وَٱشْكُرُواْ لِى﴾ ((وفی الحدیث القدسی یقول الله عزوجل اناعندظن عبدی بی وانامعه اذاذکرنی فان ذکرنی فی نفسه ذکرته فی نفسی وان ذکرنی فی ملأ ذکرته فی ملأ خیرمنهم وان تقرب الیَّ شبراً تقربت الیه ذراعاً وان تقرب اِلَیَّ ذراعاً تقربت الیه باعاً وان اتانی یمشی اتیته هرولةً)) (متفق علیه) امام رازی رحمه الله **دمفسرینو د هغه عباراتو** ذکر کړیدې چه هغوئ دلته ددې آیت په ذیل کښې ویلی دی .

(۱) اذکرونی بطاعتی اذکرکم برحمتی (۲) اذکرونی بالدعاء اذکرکم بالاجابة والاحسان (۳) اذکرونی بالثناء والطاعة اذکربالثناء والنعمة (۴) اذکرونی فی الدنیااذکرکم فی الاخرة (۵) اذکرونی فی الخلوات اذکرکم فی الفلوات (۶) اذکرونی فی الرخاء اذکرکم فی البلاء (۷) اذکرونی بطاعتی اذکرکم بمعونتی (۸) اذکرونی بمجاهدتی اذکرکم بهدایتی (۹) اذکرونی بالصدق والاخلاص اذکرکم بالخلاص ومزیدالاختصاص (۱۰) اذکرونی بالربوبیة فی الفاتحة اذکرکم بالرحمة والعبودیة فی الخاتمة (۱۱) اذکرونی بالمجاهدة اذکرکم بالمشاهدة : ای دیدارالهی. نومعلومه شوه چه بنده چه دَ الله تعالی څه قسم ذکرکوی نو دالله تعالی دطرفه دهغې مطابق ذکرکیږی ((واشکروالی)) ذکرلکه چه په لسان اوقلب اوجوارحوسره کیدې شی نودغه شان شکرهم کیدې شی او اصل شکرچه دې نو هغه صرف العبدجمیع ماانعمه الله الی ماخلق لاجله دې

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ ﴿۱۵۳﴾

اې ايمان [1] والو، مدد حاصل کړئ په ذريعه د صبر او مونځ سره . بېشکه الله د صبر کوونکو سره دې

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱسْتَعِينُواْ بِٱلصَّبْرِ وَٱلصَّلَوٰةِ﴾ مسلمانانو ته به د کفارو د طرفه هر وخت تکاليف رسيدل او چه تحويل د قبلې وشو نو معاندينُ ته د ضرر رسولو يوه بله بهانه جوړه شوه نو پدې موقعه باندې الله تعالى مسلمانانو ته تلقين وکړو چه د هر قسم مصائب او مشکلاتو په وخت کښې په خپل خدائ توکل کوئ او د هغه سره خپل کامل تعلق ساتئ او صبر کوئ او مونځ کوئ نو د صبر او مونځ په ذريعه سره د الله تعالى مدد راځي بعضې حضراتو د صبر نه روژه مراد کړيده (کمالين)

﴿إِنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلصَّٰبِرِينَ﴾ مراد معية خاصه دې يعنې معية په عون او خصوصي رحمت سره

وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَنْ يُّقْتَلُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتٌ ؕ بَلْ اَحْيَآءٌ وَّلٰكِنْ لَّا تَشْعُرُوْنَ ﴿۱۵۴﴾

او مه وايئ تاسو هغه چاته چه قتل کړېشي په لار د الله کښې چه دوئ مړۀ دي، بلکه دوئ ژوندي دي ليکن تاسو نه پوهيږئ

﴿وَلَا تَقُولُواْ لِمَن يُقْتَلُ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ أَمْوَٰتٌۢ ۚ بَلْ أَحْيَآءٌ﴾ يعنې د تحويل قبلې په وجه به امتحانات راځي او بحث به کيږي او نوبت به قتل قتال ته رسي خو چه څوك د الله تعالى په لار کښې قتل شي نو هغوئ ته مړه مه وايئ بلکه هغه ژوندى دى خو تاسو د هغوئ په ژوندون باندې نه پوهيږئ. «ولاتقولوا» معطوف دې په «واستعينوا» باندې او د «ياايهاالذين آمنو» تحت دې او په سورة آل عمران کښې ﴿وَلَا تَحْسَبَنَّ ٱلَّذِينَ قُتِلُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ أَمْوَٰتًۢا ۚ بَلْ أَحْيَآءٌ﴾ الايه. دې او د دواړونه مقصود يو دې چه هغه تعظيم شان تکريم د هغوئ دې چه په خوله ورته اموات کسائرالاموات مه وايئ او په اعتقاد کښې ئې هم د نورو امواتو په شان مه ګڼړئ. مفسرينو ليکلى دى چه په غزوه بدر کښې څوارلس صحابه کرام شهيدان شول نو بعضې خلقُ وويل چه دوئ مړه شو او د دنيا د مزو او لذتونو نه محروم شول **نو الله تعالى دا آيت نازل کړو** او د «فى سبيل الله» نه مراد اعلاء د کلمة الله ده عام لدينه چه دا قتل په ميدان جهاد کښې وى او که مرابط وى او که

1 - د اهل کتابو د قبلې په ترک باندې دراتلو مصيبتونو قتل وغيره باندې د صبر تلقين.

رحو دعوت دوجي نه وی «اموات» خبر د مبتدا مقدر دي «ای هم اموات» . **سوال** کیږی چه پدې آیت کښې صراحةً منع وشوه د اطلاق دمیت نه په شهید باندې حالانکه احادیثو کښې ځلاو دمیت په شهید باندې شویدې کمافی حدیث جابر ﷺ «مات ابی عبدالله یوم احد» وغیرذلك او دارنګه په عباراتو دفقهاؤ کښې اطلاق دمیت کیږی په شهید او دارنګه مقتول حومبت وی نو دلفظ «یُقتل» نه هم معلومه شوه چه شهید میت دې او دارنګه په شهید باندې تول احکام دمیت جاری کیږی لکه جنازه. دفن. تقسیم دمیراث دهغه او دمنکوحه سره نکاح حتمیدل دا تول احکام دمیت دی، نو چه شهید میت نوی نو دا احکام پرې ولې جاری کیږی

(۱) **جواب** مقصود دلته نفی دموت نه ده بلکه مراد دادې چه دنوروامواتو پشان اموات مړه نه دی. بلکه دوئ ته په برزخ کښې ممتازحیات حاصل دې

حضرت تهانوی ﷫ لیکلی «ایسے مقتول کو شہید کہتے ہیں اور اس کی نسبت گویا کھا کہ وہ مرگیا صحیح اور جائز ہے لیکن اس کی موت کو دوسری مردوں کی سی موت سمجھنے کی ممانعت کی گئی ہے»

تفسیرخازن لیکلی دی «بمنزلة غیرهم من الاموات» اوپه تبصیرالرحمان کښې ئی ویلی دی «کسائرالاموات» (۲) شاه عبدالعزیز ﷫ فرمائی چه د «اموات» نه مراد هغه دی چه ارواح ئی مړه وی، او دروح مرګ دادې چه دې کله په بدن کښې وی نو دبدن په ذریعه خوهغه نه لذتونه حاصلیږی لیکن چه کله دبدن نه جدا شی نو دلذتونونه محروم شی نو داسې روح ته مړ ویلې شی. نوحاصل دادې چه دلته پدې آیت کښې دیوخاص قسم موت د اطلاق کولونه منع شوې ده. او دحقیقی موت نفی مقصود نده ﴿بَلْ أَحْيَآءٌ﴾ ای بل هم احیاء. او مراد حیاة نه حیاة برزخی دې لکه چې دلالت کوی پدې باندې داقول «ولکن لا تشعرون» بیضاوی وائی چه ددې ژوندعلم په حواسواوعقل سره نه لګیږی بلکه په وحی سره ثابت دې. ابن کثیر ﷫ وائی «الشهداء فی برزخهم احیآء» صاحب دروح المعانی وائی «لانهامن احوال البرزخ — الخ».

**سوال** برزخی حیاة خوټولوامواتوته حاصل دې په نزد داهل سنت والجماعت نو بیا تخصیص دشهید ولې وشو؟ **جواب** دلته مقصود دامتیازی حیاة ثابتول دی چه هغه حیاة عامو انسانانو ته ندې حاصل او دهغې تفصیلی کیفیت چونکه په عقل کښې راتلل مشکل وو اومعلومول ئی ضروری فی الدین نه وو نوپه اجمالی بیان باندې اکتفأ وشوه اوبیائی

وفرمايل ﴿وَلَٰكِن لَّا تَشْعُرُونَ﴾ اووددي تفصيل حضرت مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله ليکلي دي په بيان القرآن کښې اودارنګه په اشرف الجواب ص ۲۳۲ کښې دهغې حاصل دادې ۱- چه حياة برزخی دعاموخلقومعمولی اوادنی دې ۲- اودشهداؤ حياة قوی دې حتی چه دهغې اثرخلاف معمول ظاهری بدن ته رسيدلې دې هغه دا چه دشهيد بدن نه خاوری کيږی او دجوندی سړی دبدن پشان صحيح سلامت وی لکه ددې مشاهده شوې ده، اوبعضې اولياً او صالحين هم پدې فضيلت کښې دشهداؤ سره شريك دی، **اوکه څوك دا سوال** وکړی چه ددې خلاف مشاهده شويده، نو **جواب** دادې چه ددې موافق مشاهده هم شويده، نو د دينه بالکليه انکار ندې پکار چه دشهيد بدن نه خاورې کيږی، بله دا چه دا حکم دحقيقی شهيد دې او دحقيقی شهيد لپاره څه شرايط دی چه هغه به نوی موجودشوی، بهرحال داخبره ثابته ده چه دشهيدبدن نه خاورې کيږی زيات نه زيات دومره کيدې شی چه دا قاعده اکثريه وی اوکليه نوی ۳- او د انبيأ عليهم السلام حياة برزخی اقوٰی دې چه دهغې اثر دادې چه دهغوئ ابدان هم په قبوروکښې سالم وی اودهغوئ د ازواجُ سره نکاح جائز نده پشان دجوندو او دهغوئ ميراث نشی تقسيم کيدې دجوندوپشان، حضرت تهانوی رحمه الله په بيان القرآن کښې داسې عبارت ليکی :

اور ایک حیات ہے جس میں حضرات انبیاء علیہم السلام - الخ .

اوپه اشرف الجواب کښې داسې عبارت ليکی :

مگریاد رہے کہ اس حیات سے مراد ناسوتی نہیں ہے وہ دوسری قسم کے حیات ہے جس کو حیات برزخیہ کہتے ہے

دا تصريح ده پدې چه **حيات دانبياؤ** حياة برزخيه دې، دنيويه نه دې، صاحب دفتح الباری به باب غزوة أحد کښې ددې حديث ((کَالْمُوَدِّعِ للاحياء والاموات)) په تشريح کښې ليکی.

((واماتوديع الاموات فيحتمل ان يکون الصحابي ارادبذالك انقطاع زيارته الاموات بجسده، لانه بعدموته وان کان حياً فهي حيوة اخروية لاتشبه لحيوة الدنيا – صفحه ۹۲ جلد ۸))

**فائده** اهل سنت والجماعت دحیات برزخی قائل دی اومعتزله ترینه منکردی نو د اهل سنت والجماعت په نزدد ،،بل احیاء،، معنی داده چه دوئ فی الحال ژوندی دی یعنی په برزخ کښې اومعتزله د،،بل احیاء،، معنی داکوی ،،بل یحیون یوم القیامة فیجزون احسن الجزا،، لکه د ،،ان الابرارلفی نعیم،، معنی داده چه په آخرت کښې به په نعیم کښې وی، بعض خلقو د ،،بل احیاء،، معنی داکړیده چه دوئ احیأ دی په حیاة حکمیه سره چه هغه ذکر جمیل اوثنأ جلیل ددوئ ده ((کما رُوی عن علی ﷺ هلك خُزّانُ الاموال، والعلماء باقون مابقی الدهر اعیانهم مفقودة واثارهم فی القلوب موجودة)) ، اوبعضو ویلی دی چه مراد دموت نه ضلالت دې اومراد دحیاة نه هدایت دې ((ای لاتقولوا هم اموات فی الدین ضالون.بل هم احیاء بالطاعة)) صاحب دروح المعانی د دې اقوالو متعلق وائی((کلهم باطل))البة دحیاة برزخیه په باره کښې داهل سنت دوه قوله دی:
(۱) داکثرسلفوقول دادې چه دا حیاة روح اوجسد دواړولره دې (۲) دا حیاة روحانی دې یعنی روح دشهید چه دبدن نه جداشو نودا ژوندې دې او د لذتونو نه محرومه ندې، صاحب دروح المعانی وائی چه اول قول داکثرسلفو دې اومشهور ترجیح ده قو ل اول ته، یولدې وجه نه چه ﴿عِندَ رَبِّهِمۡ یُرۡزَقُونَ﴾ پرې دلالت کوی څکه رزق جسدمع الروح ته ورکولې شی بل دا چه دظاهردهغه احادیثونه معلومیږی چه میت په قبرکښې کینبودلې شی نو بیاچاته نعمتونه ورکولې شی اوڅوك په ګرزونوسره وهلې شی او دا صفات دبدن دی، او دارنګه دبخاری وغیره روایت دې چه نبی ﷺ په دوه قبرونو باندې تیرشو نووئی فرمایل : ،،انهمالیعذبان فی قبورهما ــ الحدیث،، اوپه قبرکښې خوبدن وی. لیکن بیا اختلاف کړې دې قول اول والوچه آیا مراد دبدن نه هُم دا بدن عنصری دې چه په قبرکښې ټکړی ټکړی کیږی اوکه بل بدن دې

(۱) نو بعضو ویلی دی چه دا بدن عنصری مراد دې اوهم دې بدن ته اعاده دروح کیږی لیکن په طریقه دحلول سره ندې اوپه متعارفه طریقه سره ندې اوالله تعالی عاجز نه دې ددینه چه پدې بدن کښې یونوعه حیوة پیداکړی اوهغه سبب دحس او ادراك وی، اګرکه مونږئې مشاهده نشوکولې لکه په حدیث کښې راغلیدی چه مؤمن ته دهغه قبروسیع شی دځوپورې چه دده نظر رسی، اګرکه مونږ ددې مشاهده هم نشوکولې

(۲) اوبعضو ویلی دی چه جسدآخر دې په صورة دطیر ،،مارغه،، کښې په دلیل دحدیث سره ((ان ارواح الشهدأ فی صورطیرخضر معلقة فی قنادیل الجنة ــــ الحدیث)) اوبعضې وائی چه

جسد آخر دي په صورة دبدن دنيوى سره ((بحيث لوى رأى الرائى احدهم لقال رأيت فلانا))

وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ بِشَيْءٍ مِّنَ الْخَوْفِ وَالْجُوعِ وَنَقْصٍ مِّنَ الْأَمْوَالِ وَالْأَنفُسِ
اوخامخابه مونږ آزمېښت کوؤستاسو پهلږ ويرې سره اولوږې سره اوپه نقصان دمالونوسره اونفسونوسره

وَالثَّمَرَاتِ ۗ وَبَشِّرِ الصَّابِرِينَ ۝ الَّذِينَ إِذَا أَصَابَتْهُم مُّصِيبَةٌ قَالُوا
اوميوؤسره . او زيرې ورکړه صبر کوؤنکوته . هغه صبرکوؤنکي چه کله اورسيږي دوئ ته څه مصيبت نودوئ وائي

إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ ۝ أُولَٰئِكَ عَلَيْهِمْ صَلَوَاتٌ
چه مونږ دالله مملوک يواو بېشکه مونږ هغه ته ګرزخېدونکي يو دغه کسان پدوي باندې برکتونه دي

مِّن رَّبِّهِمْ وَرَحْمَةٌ ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُهْتَدُونَ ۝
دطرفه دربددوئ نه اورحمت دي، اودغه کسان هم دوئ لارموندونکي دي

﴿وَلَنَبْلُوَنَّكُم﴾ داد ((بلاء)) نه مشتق دي په معنى د امتحان سره او دالله تعالى امتحان د اظهار دحقيقت لپاره وى اودعلم حاصلولپاره نه وى ﴿بِشَيْءٍ﴾ په دي کښي اشاره ده ديته چه دا بلايا به کم وى په نسبت سره هغې ته چه دوئ ترينه محفوظ کړې شوى دى ﴿مِّنَ الْخَوْفِ﴾ يره ددشمن وغيره﴿وَالْجُوعِ﴾ لوږه دقحط وغيره په وجه﴿وَنَقْصٍ مِّنَ الْأَمْوَالِ﴾ د آمدنى کميدل. د حيواناتو هلاکتونه وغيره ﴿وَالْأَنفُسِ﴾ قتل کيدل.مړه کيدل دخپلوانو او ملګرو ﴿وَالثَّمَرَاتِ﴾ ميوې. غلې. دزمکې آمدنى کميدل په سبب دقحط يادسيلاب يادګلئ سره او د امام شافعى رحمه الله نه مروى دى چه د ((خوف)) نه مراد خوف دالله تعالى دې او د ((جوع)) نه مراد روژه ده او ((نقص من الاموال)) نه مراد ايجاب د زکوة اوانفاق فى سبيل الله دې اود ((والانفس)) نه مراد امراض دى. او د ((ثمرات)) نه مراد موت د اولاد دې چه هغه ثمرة القلب ده ((کمافى الحديث عن ابى موسى ان النبى ﷺ قال اذامات ولدالعبدقال الله لملائکته اقبضتم ولدعبدى فيقولون نعم فيقول قبضتم ثمرة فؤاده فيقولون نعم فيقول فماذاقال عبدى فيقولون حمدك واسترجع فيقول الله تعالى ابنوالعبدى بيتاً فى الجنة وسموه بيت الحمد)) . حاصل دادې چه دا امورمذکوره تشريعى هم کيدې شى اوتکوينى هم. تشريعى خوف دالله تعالى نه دې اودارنګه په جهاد کښي اوپه دعوت ورکولوکښې دشمنانو ته. او جوع تشريعى روژه او دحرام مال نه ځان ساتل دى. او تشريعى نقص الاموال او حرام تجارت. ربوا. رشوت نه ځان ساتل دى. د زکوة . صدقات ورکول دى اونقص دنفس په جهاد کښي بهادريت دي. ثمرات

امدنی د تجارت، زراعت په صحیح مصرف کښې خرچ کول، او تکوینی هغه دی چه ذکرشو

﴿وَبَشِّرِ ٱلصَّٰبِرِينَ﴾ داعطف دې په مقدر باندې چه «فاصبروا» دې، یعنی کله چه تاسو ته دا مصائب ورسی نوصبر کوئ اوبشارت ورکړه هغه صبر کوونکوته، دلته مبشربه محذوف دې چه مابعد پرې دلالت کوی.

﴿إِذَآ أَصَٰبَتۡهُم مُّصِيبَةٞ﴾ تنوین لپاره دتنکیر دې یعنې هرقسم مصیبت وی چه وړوکې وی اوکه لوئ وی، په یوروایت کښې راغلیدی چه نبی ﷺ یو وارې په ډیوه مړه کیدلو باندې «اناالله وانا الیه راجعون» اوفرمایل . نوعائشه رضی الله عنها عرض وکړو چه یارسول الله آیا داهم مصیبت دې؟ نو نبی ﷺ اوفرمایل چه «نعم ! کل ما آذی المؤمن فهومصیبة» یعنې هرهغه شې چه دهغې نه مسلمان ته پریشانی اوتکلیف ورسی نودغه مصیبت دې

﴿قَالُوٓاْ إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّآ إِلَيۡهِ رَٰجِعُونَ﴾ دا په ژبه ویل سنت دی په وقت دمصیبت کښې او اعتقاد ساتل پرې واجب دی، د «اناالله» معنی داده چه مونږ دالله تعالی مملوك یو. اوهغه زمونږ مالك حقیقی دې، اومالك حقیقی چه په خپل ملکیت کښې هرقسم تصرف کوی نوچالره پرې حق د اعتراض نه وی. «وانااليه راجعون» او ددې معنی داده چه مونږ ددنیا نه دالله تعالی حضورته پیش کیږو نو ددې نقصان بدله به راکوی. دیوحدیث مفهوم دې چه کوم بنده دمصیبت په وقت کښې دا کلمه وائی نوالله تعالی به ده ته په دنیاکښې دنقصان نعم البدل ورکړی اوپه آخرت کښې به ورته داجراوثواب ذخیره جمع کړی

﴿أُوْلَٰٓئِكَ عَلَيۡهِمۡ صَلَوَٰتٞ مِّن رَّبِّهِمۡ وَرَحۡمَةٞ﴾ «صلوة» او «رحمة» قریب المعنی دی (۱)- نو بعضې وائی چه دا د تاکید لپاره او دتکرارلپاره دی او دتکرار دفائده کولو لپاره دواړه ذکر شویدی یعنې په داسی خلقوباندې رحمت بعد رحمة او پې درپې رحمتونه اومهربانئ دی (۲) او بعضې وائی چه د صلوة نه مراد ثناء ، مدح، برکت دې او د رحمة نه مراد مصیبت لرې کول دی (قرطبی) (۳) او بعضې وائ د «صلوات» نه عام رحمتونه مراد دی او د «رحمة» نه خاص خاص رحمتونه (دهرشخص داستعداد مطابق ) مراد دی لکه په دنیاکښې د انعام ورکولو په موقعه دعوت طعام عام وی، اونور انعامات دهرچالپاره په قدر د حیثیت وی او په اندازه دخدمت سره وی (تهانوی) (۴)- یا «صلوات» دکمیة په اعتبارسره دې او «رحمة»

دکيفية په اعتبارسره دی (۵) . يا ((صلوات)) د دنياپه اعتبارسره دي او ((رحمة)) د آخرت په اعتبارسره دي

﴿وَأُولَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُهْتَدُونَ﴾ ددينه مراد کاميابی موندل دی په مقاصدو دينيه ؤ او دنيوي کښ دَ جملې اسميه اوتعريف دمبتدأ اوخبر، اوضمير فصل ذکرکولوکښې اشاره ده چه داسې خلق په هدايت باندې محکم دی، دحضرت عمر ﷺ نه روايت دې ددې آيت په باره کښې ((نعم العدلان ونعمت العلاوة ـــ اولئك عليهم صلوات من ربهم ورحمة ـــ فهذان العدلان ـــ واولئك هم المهتدون ـــ فهذه العلاوة)) ((عدل)) اندې ته وايې او ((علاوه)) سرباری ته وائی

| |
|---|
| إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَآئِرِ اللهِ ۚ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ أَوِ اعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ |
| بېشکه صفا(۱) اومروه د خاصو نښونۀ ددين دالله نه دي، نوپس څوک چه حج کوي دبيت الله ياعمره کوي پس نشته ګناه هيڅ |
| عَلَيْهِ أَنْ يَّطَّوَّفَ بِهِمَا ۗ وَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا ۙ |
| په هغه باندې چه سعي(څې راڅې) اوکړي په مينځ ددغه دواړو کښې، اوڅوک چه خپلې مينې سره اوکړي نيکي |
| فَإِنَّ اللهَ شَاكِرٌ عَلِيمٌ ۝ |
| نوپس بېشکه الله قدردان دې او عليم دې |

﴿إِنَّ ٱلصَّفَا وَٱلْمَرْوَةَ مِن شَعَآئِرِ ٱللَّهِ﴾ دا جواب ددويمې شبهې دې په رسالت باندې چه يهوديانو ويل چه تاسوتعظيم کوئ دمکان د ((اساف او،نائله)) او دا خومکان دشرك ؤو حاصل دجواب دادې چه صفا او مروه په اصل کښې دشعائرالله نه دی، خومشرکانو ددې نه خانی دشرك جوړکړې وؤ ((کذافی تبصيرالرحمن)) اوابن کثيراونورومفسرينو ددې آيت **په شان نزول کښې** درې قسمه روايات نقل کړيدی : ۱- دعائشة ﷺ روايت دې چه ؤو انصار مخکښې داسلام نه چه احرام اوتلبيه به يې کوله لپاره دمناة په مشلل ((قديد)) مقام کښې اوحرج به ئې ګڼړلوپه سعی د صفا اومروه کښې نو دا آيت نازل شو۔ الخ او ددينه معلومه شوه چه دوئ داسلام نه قبل هم د ((اساف ، نائله)) سره نفرت ؤو ځکه چه دوئ ځان له معبود مناة ګرزولې ؤو ۲- دحضرت انس ﷺ اوابن عباس ﷺ دروايت مفهوم داسې دې چه

1 - په رسالت باندې د دويمې شبهې جواب.

صحابؤو ویل چه دا سعی د صفا اومروه د امر دجاهلیت نه وه، نو د اسلام نه بعد دوئ سعی پریخوده ځکه دائی امر دجاهلیة گڼرلو. شعبی ویلیدی چه په صفا باندې یوبُت ؤو چه دهغه نوم «اساف» ؤو او په مروه باندې بل بُت وه چه دهغه نوم «نائله» ؤو

او اهل دجاهلیت به چه کله سعی کوله نو ددې دواړو استلام به ئی کولو اوتعظیم به ئی کولو نو بعد د اسلام نه مسلمانانو دغه سعی گناه گڼرله نو دا آیت نازل شو. ابن کثیروائی چه محمدبن اسحق په کتاب السیرة کښې ذکرکړیدی چه «اساف» سړې ؤو اونائله ښځه وه اودوئ بشرین انسانان ؤو او زنائی وکړه په داخل دکعبه کښې نو دوئ مسخ شو اوگټې ترینه جوړې شوې نو قریشو کعبې ته مخامخ کینبودلې لپاره دعبرت دخلقو. نو بیاچه کله ډیره زمانه تیره شوه نوهغه گټی «صفا اومروه» ته نقل کړې شوې اوعبادت ئی شروع شوو. نو د دې وجې نه مسلمانانو دا سعی حرج گڼرله. ۳- دطواف ذکرپه قرآن کښې ؤو اود صفا او مروه ذکرپه قرآن کښې نه ؤو نو اصحابو دا سعی دصفا او مروه گناه گڼرله نو دا آیت نازل شو «بخاری شریف ص ۲۲»

﴿مِنْ شَعَائِرِ اللهِ﴾ شعائرجمع دشعیرةٌ ده، څرگنده نښه اومخصوص نښه د دین اسلام ته ویلې شی او دا شامل دې مواقف دحج ته لکه سعی ،طواف،منی،عرفات، او دارنگه شامل دې مساجد ،اذان ،وغیره ته او د هر اهل مذهب لپاره مخصوص نښه وی چه هغې ته دهغوئ شعار ویلې شی لکه «زنار» دهندوانو «صلیب» دنصاری ؤ شعاردې وغیرذالك.

﴿فَمَنْ حَجَّ ٱلْبَيْتَ أَوِ ٱعْتَمَرَ﴾ په دیکښ اشاره ده چه سعی پغیر دحج اوعمرې نه عبادت اوثواب ندې په خلاف دطواف نه.

﴿فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَن يَطَّوَّفَ بِهِمَا﴾ مراد دطواف نه دلته سعی ده. د لفظ د «لاجناح» نه امام احمد رحمه الله استدلال کړیدې چه سعی مستحب ده، امام ابوحنیفة رحمه الله وائی چه سعی واجب ده په دلیل دحدیث سره «ان الله کتب علیکم السعی فاسعوا». امام مالك اوامام شافعی رحمه الله وائی چه سعی فرض ده په دلیل ددغه حدیث سره ځکه چه «کتب» په معنی د «فرض» سره دې او د «فاسعوا» نه هم فرضیت معلومیږی، اوامام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی چه فرضیت په خبر واحدسره نه ثابتیږی نو وجوب پاتې شو، او د امام احمد رحمه الله داستدلال نه

جواب هغه دي چه ذکر دي په حديث دعائشة ﷺ کښ چه جواب ورکوی (عروه) ته او فرمائی که چرې دالله ﷻ مراد داوې چه سعی ضروری نه ده نو بيا به ئې داسې ويلی وې چه «فلاجناح عليه ان لايطوف» بلکه سعی ضروری ده او «لاجناح» ويل لپاره ددفع د وهم د مسلمانانو دی چه سعی کښې دشرك سره مشابهت راځی نودا به ګناه وی

﴿وَمَن تَطَوَّعَ خَيْرًا﴾ تطوع دېته وائی چه يوکار د زړه په خوشحالی او اخلاص سره وکړی شی. نفل وی اوکه فرض. نوپدې کښې اشاره ده دې خبرې ته چه په هر کار خير کښې اخلاص ضروری دی

اِنَّ الَّذِيْنَ يَكْتُمُوْنَ مَآ اَنْزَلْنَا مِنَ الْبَيِّنٰتِ وَالْهُدٰى مِنْ بَعْدِ مَا

بېشکه هغه خلق چه پټوي هغه څه چه نازل کړېدي مونږ صفاحکمونه اودهدايت خبرې روستودهغې نه

بَيَّنّٰهُ لِلنَّاسِ فِي الْكِتٰبِ ۙ اُولٰٓئِكَ يَلْعَنُهُمُ اللّٰهُ وَيَلْعَنُهُمُ

چه بيان کړېدي مونږ دپاره دخلقوپه کتاب کښې. دغه کسان چه دی لعنت کوي پدوی الله اولعنت وای پدوی باندې

اللّٰعِنُوْنَ ۙ﴿۱۵۹﴾ اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا وَاَصْلَحُوْا وَبَيَّنُوْا فَاُولٰٓئِكَ اَتُوْبُ

لعنت کوونکي مګرهغه کسان چه توبه اوباسي اوسم کړي خپل عملونه اوبيان کړي حق. نودغه خلق څه قبلوم توبه

عَلَيْهِمْ ۚ وَاَنَا التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ﴿۱۶۰﴾

ددوی. او څه ډېرتوبه قبلوونکي اوډېرمهربان يم

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ يَكْتُمُونَ﴾ په دې کښې زجر دې اهل کتابو ته. ديهود علماؤ به صفات د رسول الله ﷺ پټول اودغه شان مسئله د توحيداو آيت درجم وغيره ئې پټ کړی وو او په رسالت ئې چه شبهات کول نو دا هم دکتمان حق لپاره وؤ. نو پدې آيت کښې دوی ته زجر او وعيد ذکر کيږی. اودآيت شان نزول اګرکه خاص دې خوحکم ئې عام دې شامل دې هرهغه چاته چه کتمان دحکم دقرآن اوحديث وکړی بلاعذره اود ﴿مِنَ ٱلْبَيِّنَٰتِ﴾ نه مراد دلائل دنبوت او دحضور ﷺ صفات دی چه په تورات او انجيل کښې ذکروو د «هدی» نه مراد واضحه حکمونه د قرآن او حديث دی او د «بينت» نه داهم معلومه شوه چه که چرې په يوخبره څوك نه پوهيږی اوعقل ئې نه رسيږی نو دهغې بيانول نه دی پکارځکه ددېنه کله فتنه جوړيږی (کمافی روایة عن ابن

مسعود ﷺ)، او يا د ((بيّنات)) نه مراد آياتونه دكتاب الله دي او ((هدى)) نه مراد احاديث اوسنت درسول الله دي او ﴿فِي ٱلْكِتَٰبِ﴾ نه جنس مراد دې شامل دې تورات،انجيل ، قرآن ته.

﴿يَلْعَنُهُمُ ٱللَّهُ﴾ لعن په لغت كښې بُعد او لرې كولوته وائى اوپه شرع كښې ترينه مراد درحمت خاصه نه محروم كيدل دي، نو لعنت دالله تعالى دادې چه دخپل رحمت نه اوقرب نه ئې محروم كړى اودغضب اوعذاب مستحق ئې وگرزوي.

﴿وَيَلْعَنُهُمُ ٱللَّٰعِنُونَ﴾ دا دمخلوق لعنت دې اولعنت دمخلوق بد دعاكول دي او مراد د ((لاعنون)) نه ملائك اونيك انسانان اوجنات دي، اوپه يو روايت كښې دي چه د اوبو ماهيان . مرغان ،دواب. حشرات، دا ټول پرې لعنت وائى اولكه څرنگه چه دعالم ،حق گو، لپاره مغفرت غواړى هرشې حتى چه ماهيان په اوبواومرغان په هواكښې نودغه شان دحق پټوونكى لپاره بد دعاكوى (ابن كثير).

﴿ إِلَّا ٱلَّذِينَ تَابُوا﴾ يعنې دكفر اوشرك نه توبه وكړى ﴿وَأَصْلَحُوا ﴾ يعني اعمال صالحه كوى او اطاعت دالله تعالى اورسول الله ﷺ كوى ﴿وَبَيَّنُوا﴾ يعني بيانوى هغه حق چه دخلقو نه ئې پټ كړې وى،په دې آيت كښې دتوبې لپاره درې شرطونه بيان شو اودواړه شرطونه چه ((تابوا)) او((اصلحوا)) دي دعوامو دتوبې لپاره دي اودريم شرط چه بيّنوادې لپاردتوبه دعلماؤ دې

| |
|---|
| إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا وَمَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ أُولَٰٓئِكَ عَلَيْهِمْ لَعْنَةُ ٱللَّهِ |
| بيشكه هغه خلق چې كفرئې كړېدې اومړهٔ شي په حال دكفر كښې دغه كسان پدوئ باندې لعنت دالله دې |
| وَٱلْمَلَٰٓئِكَةِ وَٱلنَّاسِ أَجْمَعِينَ ۝ خَٰلِدِينَ فِيهَا ۖ لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ ٱلْعَذَابُ وَلَا هُمْ |
| اودملائكو او دټولو خلقو همېشه بهٔ وي په هغې كښې ، نهٔ بهٔ شي سپكولې ددوئ نهٔ عذاب اونهٔ بهٔ دوئ له |
| يُنظَرُونَ ۝ |
| مهلت وركولې شي |

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا ﴾ اوداتخويف دې ﴿وَمَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ﴾ يعنې موت ئې په كفر راشي ﴿أُولَٰٓئِكَ عَلَيْهِمْ﴾ ددينه مقصود بيان د دوام لعنت دې اوپه ماقبل آيت كښې بيان احداث د لعنت ؤو د ((الناس)) نه مراد عام انسانان دې او ددوئ اتباع پكښې هم داخل دي لكه په سورت

اعراف آیت ۳۸ کښې دی ((حَتّٰی اِذَا ادَّارَکُوْا فِيْهَا جَمِيْعًا)).

«اَجْمَعِيْنَ» دا تاکید داشخاصو دناس یا د اشخاصو دملائکونه دي یعنی د «اجمعین» معنی دانه ده چه هرانسان په دوئ لعنت وائی اوهرهر ملائك په دوئ لعنت وائی ځکه په انسانانوکی خو دا ملعونین په خپله هم داخل دی نودوئ خوپه پخپل ځان لعنت نه وائی اوپه ملانکوکښې بعضې هغه دی چه لعنت ویل دهغوئ شغل نه دې، بلکه اجمعین تاکید دمجموعې دفریقینو دې یعنې دا دواړه فریقین خاکی . اونوری، په دوئ باندې لعنت وائی.

«خٰلِدِيْنَ فِيْهَا» ضمیردفیهایا راجع دې لعنت ته چه په ماقبل کښې صراحةً ذکرشوې دې یا راجع دې «نار» ته چه د ماقبل نه ضمنا معلوم شویدې.

وَ اِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۚ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الرَّحْمٰنُ الرَّحِيْمُ ﴿۱۶۳﴾

اوحقداردبندګۍ (۱) ستاسومعبودیودې، نشته بل څوک دعبادت لائق سوادهغه نهٔ بېحده مهربان اوډېررحم کوونکې دې

اِنَّ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَالْفُلْكِ الَّتِيْ تَجْرِيْ

بېشکه پهٔ پېداکولو دآسمانونواوزمکې کښې اوبدلیدلودشپې او ورځې کښې اوپهٔ هغه کشتو کښې چه چلیګي

فِي الْبَحْرِ بِمَا يَنْفَعُ النَّاسَ وَمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ مِنَ السَّمَآءِ مِنْ مَّآءٍ

پهٔ دریاب کښې پهٔ هغه څهٔ سره چې نفع رسوي خلقوته، اوپهٔ هغه کښې چه راورولی دي الله دآسمان نهٔ څهٔ اوبه

فَاَحْيَا بِهِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَبَثَّ فِيْهَا مِنْ كُلِّ دَآبَّةٍ ۪

پس راژوندئ کوي پدې سره زمکه پس دمړوالي(اوچوالي) دهغې نهٔ اوخواره کړي ئ دي پدې کښې هرقسم زنده سر

وَّ تَصْرِيْفِ الرِّيٰحِ وَالسَّحَابِ الْمُسَخَّرِ بَيْنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ

اوپهٔ ګرزولودهواګانو کښې اوپهٔ وریځو کښې چه تابع کړې شوي دي پهٔ مینځ دآسمان اوزمکې کښې(پهٔ حکم دالله)

لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ﴿۱۶۴﴾

خامخادلیلونه دتوحیددي هغه قوم دپاره چه عقل لري.

(۱): دلیل عقلي په توحید یعني په نفی دشرک فعلي.

﴿وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ﴾ دااعاده دتوحيدده دشرك فعلي دنفي لپاره . چونكه ماقبل كښې
...ت د رسالت وشو او دهغو اوشبهاتو جوابونه ذكرشوه‌چه كفاروپه رسالت كولي نوپه دې
آيت كښې دپيغام رسالت (توحيد) بيان كيږي. قرطبي وائي چه هركله الله تعالى تحذيروكړو
د كتمان دحق نه نواوس دابيانيږي چه اول هغه شي چه اظهارئې واجب اوضروري دې هغه
امردتوحيد دي

**سوال** داسې ولې ونه ويلې شو ((والهكم واحد)) اوسره ددينه چه مقصود خو اثبات د
وحدانيت دې نو ذكر د الهٰ دڅه فائدې لپاره دې ؟ **جواب** دادې چه كه الهٰ نه وې ذكرشوې
نوصرف د وحدانية اثبات به شوې ؤو. اومقصود خو په الُوهية كښې وحدانيت ثابتول دي.
نوځكه الهُ ذكرشو ابوالبقأ وائي چه مقصود دواحد ثابتول دي خوپه ذكردالهٰ كښې زيادة
تاكيد دې په منزله دحال ((موطئه)). اواضافت داله ((كُم)) ته لپاره داستحقاق دې يعنى
مستحق دعبادت ستاسويو اِله دې اودا اضافت په اعتباردوقوع سره ندې ځكه معبودان
باطله غيرمستحق ډير دي، يونه دې او د **اِله په لغت كښې** ډيرې معنى دي، قاضي بيضاوي
رحمه الله په اول كښې ذكر كړيدي، مشهوره معنى دَ (اله) معبود ده **اوپه عرف دشرع** كښې
خاص دې په معبود بالحق پورې او په قرآن كښې دلفظ د (اِله) كله اطلاق كيږي په معنى
دمستحق دعبادت، حقدار دعبادت باندې.

اوكله ئې اطلاق كيږي په هغه صفاتوكښې چه هغه دلوازمود الوهية نه دي .خالق ،مالك،
متصرف. مشكل كشا ، حاجت روا ، لكه په سورة انعام آيت ۴۲ اوپه سورة نمل آيت ۲۰ تا۲۴
پورې، دلته په ((الهكم)) كښې دامعنى مرادده يعنى ستاسوخالق ،مالك ،متصرف ، حاجتونه
پوره كوونكې ، مشكلات لرې كوونكې ، صرف يوذات دې، او د واحد اطلاق كيږي په مبدأ
العدد (اول دشمار) باندې او دا معنى دلته نده مراد (۲) بل اطلاق ئې كيږي په هغه چه اجزأ
ورله نوې او د تقسيم اوتجزى احتمال نه لري، بعضې دامعنى مرادكړيده (۳) اطلاق ئې
كيږي په ما لانظيرله ولاشبيه له باندې دلته دا معنى راجحه ده او اكثرو مفسرينو دامعنى
مراد كړيده چه الله تعالى واحد دې، هغه لره په ذات كښې قسيم نشته ا وواحد دې په
صفاتوكښې شبيه ئې نشته اوواحد دې په افعالوكښې شريك ئې نشته.

﴿لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ﴾ پدې جمله كښې دفع د توهم ده چه (اِله) اكبر(لوئ معبود) خوبه يوذات

وی لیکن واړه واړه معبودان به ډیروی لکه دا زعم دمشرکینوؤو. نو **جواب** وشو چه دالله تعالی نه سوی نه وړوکي اله شته اونه لوئ اله شته اودلته د اله نه معنی اول مراد ده اودویمه معنی هم مرادکیدې شی اوپه دې جمله کښې نفی دشرك صراحةً ده او اثبات دتوحیدضمنا دې او په ماقبل جمله کښې اثبات د توحید صراحةؤو اونفی دشرك ضمناً وه.

**فایده** په «لا اله» کښې «لا» لنفی الجنس دې اوخبر یی محذوف دې چه موجودٌ دې اوبعضې وائی چه «لنا» دې اوبعض وائی چه «بحق» دې او امام رازی رحمه الله اونورو محققینو ویلی دی چه تقدیر دخبرته حاجت نشته ځکه مقصود نفی دوجود او د امکان دواړوده نوچه نفی دماهیت اود ذات د اله حق ؤشی په غیر د الله تعالی نه نومقصود به په وجه اکمل سره حاصل شی. یعنی غیر دالله تعالی نه ځوك معبودبحق موجودهم ندې اوممکن هم نه دې. بلکه ذات د «معبود بحق غیرالله» منفی دې، او په «الاهو» کښې او دارنګه په «الاالله» کښې دنحویانو دوه قوله دی: (۱) جمهورنحویان وائی چه «الا» د استثناء لپاره دې اومابعد مرفوع یا په محل د رفع کښې «الاهو» دې بنا بر بدلیت ، ځکه چه بدل دې دمحل د «لااله» نه چه هغه رفع ده ځکه اسم د «لا» په اصل کښې مبتدا ده نو دجمهوروپه نزدترجمه د «الاالله» ، «الاهو» په «مګرالله دې» سره کیږی . (۲) سیبویه وائی چه «الاّ» په معنی د «غیرُ» سره دې صفت دې دماقبل او تابع دمحل دې چه رفع ده اوچونکه «الا» صلاحیت د اعراب نه لری نو اعراب «چه رفع ده» ترینه مابعد ته منتقل شو ، نو ما بعد دَ «الاّ» مرفوع دې په «الاهُو» کښې محلاً اوپه «الله» کښې لفظاً نو دسیبویه په نزد به ترجمه داسې کیږی: «نشته دې هیڅ معبود برحق سوا دالله تعالی نه.

﴿ٱلرَّحۡمَٰنُ ٱلرَّحِيمُ﴾ دا خبر بعد خبر دې دمبتدا لپاره چه «الهکم» دې یا خبر دې دمبتدأ لپاره اودا دواړه دلیل دې د ماقبل جملې لپاره یعنی بل ځوك اله اومستحق دالوهیت ځکه نشته دې چه رحمن اورحیم صرف الله تعالی دې نوصرف هُم دې اِلٰه اومستحق دالوهیت دې.

﴿إِنَّ فِي خَلۡقِ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾ دا دلیل عقلی دې لپاره دتوحید «انّ» حرف دې دحروف مشبه بالفعل نه او «فی خلق السموات» سره معطوفاتونه خبرمقدم دې او «لأیت» ورله اسم مؤخر دې او د «خلق السموات والارض» نه مراد صرف پیدایش د ذات ددوئ نه دې، بلکه پیدایش ددوئ «سره د متعلقاتو اواحوالونه» مراد دې چه احوال د آسمان ارتفاع او بغیر ستنو ودریدل، اونیشتوالې دتفاوت اوعیب، او نمر، سپوږمی . وغیره، اواحوال او

صفات دزمکې غوړول، فراخي . اشجار ،انهار ،غرونه، دریابونه معدنیات وغیرها دی

﴿وَٱخۡتِلَٰفِ ٱلَّيۡلِ وَٱلنَّهَارِ﴾ د اختلاف نه مراد رڼا ،تیاره، کمیدل، زیاتیدل وغیره مراد دی

﴿وَٱلۡفُلۡكِ ٱلَّتِي﴾ لفظ د (فلك) دمفرد او جمع دواړولپاره استعمالیږی. دلته مراد جمع ده

﴿تَجۡرِي فِي ٱلۡبَحۡرِ بِمَا يَنفَعُ ٱلنَّاسَ﴾ (ما) مصدریه دي (ای بنفع الناس) یا موصوله دي. دکشتئ اوبحری جهازپه ذریعه سره مال تجارت وړلې راوړلي شی نوخلقوته ترینه نفع رسیږی

﴿وَمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مِن مَّآءٍ﴾ د آسمان نه باران وشی نو شاړه زمکه پرې سرسبز اوشادابه شی

﴿وَبَثَّ فِيهَا مِن كُلِّ دَآبَّةٍ﴾ داعطف دې په ((مَا اَنْزَلَ)) باندې

﴿وَتَصۡرِيفِ ٱلرِّيَٰحِ﴾ دګرزولونه مراد مختلف سمتونوته ګرزیدل او دارنګه ګرم والې یخوالې ، باد خزان، باد بهار،مراددی .

﴿وَٱلسَّحَابِ ٱلۡمُسَخَّرِ بَيۡنَ ٱلسَّمَآءِ وَٱلۡأَرۡضِ﴾ دوریځې تابع والې دزمکې آسمان په مینځ کنبې. مراد دا دې چه وریځې نه خالص په زمکه ده اونه آسمان ته په ډیره بُلندی کنبې ده چه مونږته ترینه فائده نه رسیږی ﴿لَأٓيَٰتٖ﴾ یعنی دا امور واضح دلیلونه دتوحید دی

دلته دلسو(۱۰) امور وذکرؤشو ۱- سماوات۲-ارض ۳- لیل ۴- نهار ۵- فلك ۶- اوبه د آسمان نه نازلول ۷- زمکه جوندئ کول ۸- مختلف قسم دواب اوحیوانات پیداکول ۹- تصریف دریاح ۱۰- اودسحاب . دلته ددعوې توحیداعاده دنفی دشرك فعلی لپاره ده ځکه چه په مابعد آیت کنبې دنذر لغیرالله نه منع کیږی نو **دا دلیل عقلی په منع د نذرلغیرالله دارنګه منطبق کیږی** چه نذرهمیشه دَ درې اشیاؤ نه ورکولې شی : (۱) د زمکې دپیداوارنه لکه غله میوه کپړه وغیره (۲) جانور(۳) نقدروپی، الله تعالی دلیل عقلی پدې باندې قائم کړوچه پدې دریواړو څیزونو کنبې نذر دغیرالله لپاره عقلاً درست ندې ځکه میوې وغیره دزمکې نه دباران په ذریعه سره پیدا کیږی اودشپې په وقت کنبې دسپوږمی اوستورو داثر د وجه نه په میؤو غلوکنبې رنګونه اوذائقې پیداکیږی، اودورځې دنمرد ګرمئ دوجه نه دپخیدلو حدته رسیږی

اوبیاهرجانورالله تعالی پیداکړی اود هر ذی روح زندګی په دې مذکرو اشیاؤ موقوفه ده

او بيا دځناورو اوددغه نوروپيداوار (غله، ميوه، کپړه) په ذريعه تاسوپه خپل ملك کښې اوپه بيرون ملك کښې دکشتئ اوبحری جهازپه ذريعه تجارت کوئ دولت اوروپئ حاصلوئ او ددغه تمامو ذرائعو ،اسبابو خالق ، مالك حقيقي صرف الله ﷻ دي بل څوك نشته، نودعقل تقاضا داده چه په دې اشياؤکښې نذر،منّت، صرف دالله ﷻ لپاره کوئ دغيرالله مه کوئ.

| |
|---|
| وَ مِنَ النَّاسِ مَنْ يَّتَّخِذُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَنْدَادًا يُّحِبُّوْنَهُمْ كَحُبِّ |
| اوځينې (۱) دخلقونه هغه څوک دي چه نيسي سوا دالله نه شريکان مينه کوي دهغوئ سره پشان دهغه مينې |
| اللّٰهِ ؕ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَشَدُّ حُبًّا لِّلّٰهِ ؕ وَلَوْ يَرَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْٓا |
| چې مناسب دې دالله سره، اوايمان والا ډيرکلک دي په محبت دالله کښې، اوکه اوويني هغه کسان چه شرک ئې کړيدي |
| اِذْ يَرَوْنَ الْعَذَابَ ۙ اَنَّ الْقُوَّةَ لِلّٰهِ جَمِيْعًا ۙ وَّ اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعَذَابِ ۝ |
| هغه وخت چه دوئ اوويني عذاب چې بېشکه طاقت ټول ديوالله دې ، اوبېشکه الله سخت عذاب والادې |
| اِذْ تَبَرَّاَ الَّذِيْنَ اتُّبِعُوْا مِنَ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْا |
| کله چه بيزاره شي هغه کسان چه تابعداري ئې کړې شوېده دهغه کسانونه چه تابعداري ئې کړېوه |
| وَرَاَوُا الْعَذَابَ وَتَقَطَّعَتْ بِهِمُ الْاَسْبَابُ ۝۱۶۶ وَقَالَ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْا |
| او دوئ اوويني عذاب اوپريکړې به شي(ختم به شي) ددوئ تعلقات ديوبل سره، اواوبه وائي تابعداران ددوئ |
| لَوْ اَنَّ لَنَا كَرَّةً فَنَتَبَرَّاَ مِنْهُمْ كَمَا تَبَرَّءُوْا مِنَّا ؕ |
| هاى ارمان چه وي مونږلره دوباره تلل دنياته، نوبيزاره به شومونږ ددوئ نه لکه څرنګ چه دوئ بيزاره شو زمونږنه |
| كَذٰلِكَ يُرِيْهِمُ اللّٰهُ اَعْمَالَهُمْ حَسَرٰتٍ عَلَيْهِمْ ؕ وَمَا هُمْ بِخٰرِجِيْنَ مِنَ النَّارِ ۝ |
| داشان ښائ دوئ ته الله عملونه ددوئ آفسوسونه په دوئ باندې، اونۀ به وی دوئ وتونکي داور نه |

﴿وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَتَّخِذُ مِن دُونِ ٱللَّهِ أَندَادًا﴾ د دليل عقلى نه بعد ، مشرکينُ ته زجر ذکرکيږی اودشرك فى المحبة رد کيږی «انداد» د ندجمع ده مقابل اوممائل ته وائى چونکه د الله ﷻ ممائل درحقيقت نشته ددې وجه نه د اتخاذ «يتخذ» ذکر وشو اوامراد ترينه دلته

۱ - زجر مشرکينوته.

اصنام، اوثان دی. (قرطبی – روح). یاترینه مراد رؤسا یعنی احبار اورهبان دی اواهل کتابوبه دخپل احبارو اورُهبانو اتّباع په تحلیل اوتحریم کښې کوله، یعنی یو شئ چه به الله پاك حرام کړې نه وو، خو چه احبارو او رُهبانو به حرام کړو نو دوئ به یې اتّباع کوله ، اودغه شان په تحلیل کښې اوبعضې عارفینُ ویلی دی چه ددینه مراد هرهغه شئ دې چه سړې دالله تعالی نه غافل کوی (کبیر – روح).

**فایده** : مشرکینوچه اصنام، اوثان معبودان جوړکړی ؤو نومقصود ددوئ صرف مجسمې نه وې بلکه درحقیقت معبودان ئې خانله اولیأ اونیکان ،صلحأ، گرزولی وو اودغه مجسمې ئې محض دتوجه ، یکسوئی، یادګار په طورجوړې کړې وې.

﴿ كَحُبِّ ٱللَّهِ ﴾ یعنې داسې محبت چه مناسب وی دالله تعالی دشان سره ، دمحبت درجات مختلف دی : دالله تعالی محبت ، درسول ﷺ سره محبت، داهل بیت سره محبت د اولیاؤ الله سره محبت وغیره اودهر چاسره به محبت دهغه دحال مناسب اوشایان شان کولې شی نو دالله تعالی دشان سره مناسب محبت دادې چه هغه واحد لاشریك ومنلې شی او دتمامو احکاماتو اطاعت ئې ؤکړې شی او د رسول الله ﷺ سره مناسب محبت دادې چه هغه ریشتنې اوآخری نبی ومنلې شی او دهغه دسنتُ اطاعت اوپه هغه صلوة اوسلام ویل خپل سعادت اونجات ؤګڼلې شی لیکن که څوك رسول ﷺ لره خدائی صفتونه ثابتوی، معبودئی ګرزوی نودا قسم محبت درسول دشان سره مناسب نه دې بلکه دالله تعالی دشان سره مناسب دې وعلی هذالقیاس محبت د اهل بیتُ او اولیاؤ الله وغیره سره

«ګرفرق مراتب نکنی زندیق شوی»

﴿وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَشَدُّ حُبًّا لِّلَّهِ﴾ دلته «حبًا» تمیز دې دضمیرنه په «اشد» کښې چه هغه فاعل دې اونحویان وائی چه تمیز دفاعل نه (یعنی دنسبت دفعل نه فاعل ته) درحقیقت فاعل وی نو «حبًا» درحقیقت فاعل دې د «اشد» لپاره. یعنی ډیرسخت اوکلك دې محبت ددوئ دالله تعالی سره په هرحالت کښې : غم، راحت، بیماری، صحت، اودنیا او آخرت هرحالت هروخت کښې دې، اودمشرکینو دخپلو معبودانوسره محبت په آخرت کښې نشته بلکه دوئ به دیوبل نه بیزاره شی لکه مابعد آیت کښې ذکرکیږی اوپه دنیا کښې هم مشرکین کله دمصائب په حالت کښې دخپل معبودنه نا امیده شی اوبې تعلقه شی

﴿وَلَوْ يَرَى ٱلَّذِينَ ظَلَمُوٓاْ﴾ دا تخويف دې مشركينوته دلته **متعدد تركيبونه** دى حضرت الاستاذ رحمه الله دوه ذكر كړيدى (۱) «لو» شرطيه «يرى» فعل شرط اورؤيت بصرى مراددې «الذين ظلموا» فاعل د«يرى» دې اومفعول ئى محذوف دې چه «حال انفسهم» او مراد دعذاب نه أخروى عذاب دې اوجزأ د«لو» مقدره ده چه «ما اشركوا» دې يا «مااتخذو اندادا» دې او«ان القوة» په تقدير دبأ سره علت دې د «يرون العذاب» لپاره «اى لويرى الذين ظلمواحال انفسهم اذيرون العذاب الاخروى بسبب ان القوة لله — ، لما اشركوا لما اتخذوهم اندادا» يعني كه چرې ووينى ظالمان يعنې مشركان حال خپل (چه ډيربې بسه. بى كسه به وى نه به ئى څوك شفيع وى نه نصير)كله چه ووينى دوئ عذاب أُخروى. څكه چه طاقت خدائى لره دې ټول (اوددوئ معبودان بى بس دى) اوالله تعالى سخت عذاب وركوونكې دې نوشرك به ؤنه كړې دوئ اوپدې تقدير ﴿إِذْ تَبَرَّأَ ٱلَّذِينَ﴾ بدل دې د «اذيرون العذاب» نه

(۲) «لو» تمنائيه دې چه جواب نه غواړى او«يرى» په معنى د «يعلم» سره دوه مفعوله غواړى اودعذاب نه مراد دنيوى عذاب دې او«ان القوة لله ـ الخ» قائم مقام دمفعولينود «يرى» دې. مطلب دآيت دادې: كاش معلوم كړې وې ظالمانو دا خبره چه قوة ټول الله تعالى لره دې. اوالله تعالى شديدالعقاب دې اوددې معلومولوموقعه داده چه دوئ عذاب په دنياكښې ووينى (اذيرون العذاب اى فى الدنيا) اوپه دې تقدير«اذتبرأ الذين»استيناف دې اوتخويف اخروى دې «الذين اتّبعوا» ددينه مراد احبارسوء. رهبان سوء.حكام سوء.يعنى ناكاره اوگمراه ملايان اوپيران.اوحكام، ليډران دى.

«من الذين اتبعوا» ددينه مراد ددوئ شاگردان مريدان اومحكومين اوپارټى والا دى.

﴿وَتَقَطَّعَتْ بِهِمُ﴾ اى عنهم ﴿ٱلْأَسْبَابُ﴾ ددينه مراد طريقې دخلاصئ دعذاب دى. يا مراد ترينه تعلقات د استاذئ، شاگردئ او دپيرئ، مريدئ او د پارټى دى ، په دنياكښې چه دچا يو صحيح. متّبع سنت پيريا استاذ سره تعلق وى نودغه تعلق په قيامت كښې هم باقى وى. نه ختميږى او ددغه تعلق په وجه ديوبل شفاعت به كوى اوچه دچا تعلق په دنياكښې دعلماؤ سوء سره اورهبان سوء سره وى يا دگمراه ليډرسره وى نو دا تعلق به په قيامت كښې ختم شى او په عداوت سره به بدل شى. «الاخلاء بعضهم لبعضهم عدوّالاالمتقين» اودغه شان مضمون په

سورة یونس آیت ۲۹-۲۸ اوپه سورة عنکبوت : ۲۵ ، اوص : ۲ ، او احزاب ۲۸ وغیره سورتونه کښې هم راغلې دي.

﴿كَذَٰلِكَ يُرِيهِمُ اللَّهُ أَعْمَالَهُمْ حَسَرَاتٍ﴾ ((یری)) باب افعال که درؤیت علمی نه شی نو درې مفعوله غواړی : مفعول اول ورته ((هُم)) دې اومفعول ثانی ورته ((اعمالهم)) دې اومفعول ثالث ئې ((حسرات)) دې اوکه درؤیت بصری نه شی نو بیا دوه مفعوله غواړی، نو بیا ((حسراتٍ)) حال دې او مراد داعمالونه شرك کول اوانکار کول درسالت نه اوانکارکول دقیامت نه او انکارکول داتباع دقرآن نه دی اودارنګه کوتاهی په حقوق الله کښې ددې تمامو اعمالو بد عاقبت چه کله دوئ ته ظاهرشی نو بیابه حسرت کوی نوددې وجهې نه قیامت ته یوم الحسرت ویلی کیږی او حسرات ئ جمع راوړه ځکه افسوسونه به ډیر وی لکه ﴿رُّبَمَا يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ كَانُوا مُسْلِمِينَ﴾ حجر۲- دا افسوس دې په انکار دتوحید ﴿وَلَوْ تَرَىٰ إِذْ وُقِفُوا عَلَى النَّارِ فَقَالُوا يَا لَيْتَنَا نُرَدُّ وَلَا نُكَذِّبَ بِآيَاتِ رَبِّنَا وَنَكُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٢٧﴾﴾ انعام ۲۷ ، دا افسوس دې په تکذیب کولو اوپه انکاردایمان نه ﴿قَدْ خَسِرَ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِلِقَاءِ اللَّهِ حَتَّىٰ إِذَا جَاءَتْهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً قَالُوا يَا حَسْرَتَنَا عَلَىٰ مَا فَرَّطْنَا فِيهَا﴾ انعام ۳۱ افسوس په انکاردقیامت ﴿أَن تَقُولَ نَفْسٌ يَا حَسْرَتَىٰ عَلَىٰ مَا فَرَّطتُ فِي جَنبِ اللَّهِ﴾ زمر ۵۲ افسوس کول دی په کوتاهئ په حقوق الله کښې ﴿وَيَوْمَ يَعَضُّ الظَّالِمُ عَلَىٰ يَدَيْهِ يَقُولُ يَا لَيْتَنِي اتَّخَذْتُ مَعَ الرَّسُولِ سَبِيلًا﴾ فرقان ۲۷ افسوس په انکاراومخالفت درسول دې ﴿يَا لَيْتَنِي قَدَّمْتُ لِحَيَاتِي﴾ دا افسوس دې په ترك داعمالوصالحو

﴿وَمَا هُم بِخَارِجِينَ مِنَ النَّارِ﴾ یعنی حسرتونه به ورته فائده نه رسوی اوهمیشه به په جهنم کښې وی اوپه ((وماهم)) کښې دحصر معنی ده نومعلومه شوه چه عدم خروج د ((نار)) نه محصور دې په کفارو پورې.

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَاَيُّهَا النَّاسُ | كُلُوْا | مِمَّا | فِي الْاَرْضِ | حَلٰلًا طَيِّبًا ۖ | وَّلَا تَتَّبِعُوْا | خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ؕ | | | |
| اې خلقو (١) | خورئ حلال ګڼرئ(٢) | دهغې نه چه | په زمکه کښې دي حلال پاک، | اوتابعداري مه کوئ | دقدمونو شيطان | | | | |
| اِنَّهٗ | لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ۝ | اِنَّمَا | يَاْمُرُكُمْ | بِالسُّوْٓءِ | وَالْفَحْشَآءِ | وَاَنْ تَقُوْلُوْا | | | |
| بېشکه دې | ستاسو دښمن دې ښکاره | خبره همداده چه | دې تاسو ته امر کوي | دبدکار | اودقبيح کار | اودا چه تاسو وائې | | | |
| عَلَى اللّٰهِ | مَا | لَا تَعْلَمُوْنَ ۝ | | | | | | | |
| په الله | هغه خبرې | چه تاسو دهغې علم اودليل نه لرئ | | | | | | | |

﴿يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ كُلُوْا﴾ پدې کې نفی دتحريمات مشرکين ده. دلته دمسئله توحيد اعاده لپاره دنفی دشرك فعلى ده اودنفی دشرك فعلى په ضمن کښې څلورمسئلې بيانيږی:

(١) تحريمات مشرکين ياتحريمات الشياطين ، ياتحريمات غيرالله . (٢) تحريمات الله (٣) نذرلغيرالله (۴) نذرلله، لکه څرنګه چه الله تعالى څه اشيأ حرام کړيدی لکه ميتة وغيره اوديته ١- تحريمات الله ويلې شی . نودغه شان ددې په مقابله کښې شيطان هم څه اشيأ حرام کړيدی لکه بحيره، سائبه وغيره ، ديته ٢- تحريمات الشيطن ياتحريمات مشرکين ياتحريمات غيرالله ويلې شی، اودارنګه لکه څرنګه چه الله تعالى دخپل ځان لپاره ٣- نذراودخپل حرم لپاره هدی مقررکړيدی نودغه شان ددې په مقابله کښې شيطان دخپل ځان لپاره نذراوهدي مقررکړيدی، اګرچه شيطان خپل نوم نه اخلی نوديته ۴- نذرلغيرالله ويلې شی نو دشرك فعلى دنفی په ضمن کښې دا څلور مسئلې درانګه بيانيږی چه (١)- دتحريمات الله حرمت برقرارۈساتئ يعنی کوم اشيا چه الله تعالى حرام کړيدی نوهغه حرام ۇګڼرئ اوځان ترينه بچ وساتئ.

﴿اِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ﴾(٢)- اودتحريمات الشيطان حرمة ختم کړئ يعنی کوم اشيأ چه تاسوپه خپله حرام کړيدی نوهغې ته حرام مه وايئ بلکه حلال ورته وايئ اوخورئ ئی په شرط ددې چه دنذرلغيرالله سره نوی خلط شوی (٣)- اونذرلله برقراروساتئ (۴) -

---

١ - دتحريمات دمشرکينو بيان.

٢ - يعنی بحيره سائبه مه جوړوې.

اونذرلغیرالله ختم کړئ ((حلالاً)) یعنی چه حرام نه وی ((طیّبًا)) یعنی چه پلیت نوی اوسخانه وی یاطیب هغه دی چه بدن اوعقل ته ضررنه رسوی (ابن کثیر)

اودلته چه امرد اکل دحلال طیب وشو نودا امر د ایجاب د اکل لپاره نه دې بلکه دایجاب د اباحت لپاره دې یعنی د دې مباح اوحلال ګنړل واجب دی اوحرام ئې مه ګنړئ نو دا دتحریماتِ مشرکینو بیان دې یعنې چه کوم اشیاء الله تعالی نه وی حرام کړی نو تاسو هغې ته دخپل ځانه حرام مه وایئ بلکه هغه خورئ.

﴿وَلَا تَتَّبِعُوا۟ خُطُوَٰتِ ٱلشَّيْطَٰنِ﴾ خطوات قدمونو اونقش قدم ته وائی مراد ترینه طرق دشیطان دی چه تحریم دبحائرواوسوائبو دې (ابن کثیر) اودعموم په وجه ترینه تمام طرق دشیطان مرادکیدې شی خواه که شرك اوبدعت وی اوکه نورمعاصی، فحاشی وغیره وی

﴿إِنَّمَا يَأْمُرُكُم بِٱلسُّوٓءِ وَٱلْفَحْشَآءِ﴾ ((انما)) دحصر لپاره دې یعنې شیطان همیشه شیطانت کوی دده نه دخیرخواهئ توقع نشته دې **اومراد** د امرنه طلب دګناه دې عام لدینه چه په امرکولو دمنکراتوسره وی اوکه په منع کولو د واجباتوسره وی **یا** امرکنایه ده د تزین دمعاصیونه او دوساوسو نه خواه که په فعل دمنهیاتوسره وی اوکه په ترك دماموراتوسره، نوسوال وارد نه شوچه شیطان خوکله منع کوی دماموراتونه، همیشه خوامرنه کوې او ((سوء)) او ((فحشاء)) متقارب المعنی دی هغه ګناه چه عقلاً هم قبیح وی اوشرعاً هم قبیح وی نوهغه سوء دې اوچه صرف شرعاً قبیح وی یعنی قبح ئی په شرع سره معلومیږی اوپه عقل سره نه معلومیږی نوهغه فحشأ ده اوبعضې حضراتو ددې بالعکس ویلی دی اودحضرت ابن عباس ﷺ نه مروی دی چه سوء هغه دې چه په هغې حدشرعی نوی مقرر، اوفحشاء هغه دې چه حدشرعی پرې مقرروی، حضرت الشیخ ﷫ فرمائی چه مراد دفحشأ نه بربنډ طواف کول دی چه مشرکینوبه کولو.

﴿وَأَن تَقُولُوا۟ عَلَى ٱللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ﴾ دقول په صله کښې چه (علی) راشی نوداپه معنی د درغوجوړولوسره وی اود ((مالاتعلمون)) نه مرادمعلوم شرعی دې، معلوم شرعی هغه دې چه مستند وی دلیل شرعی ته چه ادله اربعه دی. او ((تقوّل علی الله)) یعنی په خدائ دروغ ویل شوالله تعالی ته هغه خبره منسوبه کول چه الله نوی ویلی نو داپه ټولوګناهونوکښې سخت اوقبیح ګناه ده اودا دشیطان دمخصوصو طریقونه ده چه ګناهونه خائسته کوی انسان ته او په

دروغه نسبت کولو سره الله تعالی ته لکه مشرکینو به ویل ﴿وَجَدْنَا عَلَيْهَآ ءَابَآءَنَا وَٱللَّهُ أَمَرَنَا بِهَا﴾ یا ورته غیرشرعی شي مشروع جوړ کړي په بدعت سره نوابن کثیروائی «فیدخل فی هذاکل کافرومبتدع» یعنی پدي وعید کښې کافرهم داخل دي اوبدعتی پکښې هم داخل دي ځکه په بدعت سره غیرشرعی شي شرع جوړ شی او دا تقوّل علی الله دي.

| وَإِذَا | قِيلَ لَهُمُ | ٱتَّبِعُوا | مَآ | أَنزَلَ ٱللَّهُ | قَالُوا | بَلْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوکله چه اوونیلي شي دوئ ته چه تابعداري اوکړئ د هغه څه چه نازل کړیدي الله، دوئ وائ (نه) بلکه | | | | | | |
| نَتَّبِعُ | مَآ | أَلْفَيْنَا | عَلَيْهِ | ءَابَآءَنَا ۗ | أَوَلَوْ كَانَ | ءَابَآؤُهُمْ |
| تابعداري کوؤمونږ دهغه طريقې چې موندلي دي مونږ په هغې باندې پلاران(مشران)خپل. اګرچه وؤ داپلارن (مشران) ددوئ | | | | | | |
| لَا يَعْقِلُونَ | شَيْـًٔا | وَلَا | يَهْتَدُونَ ۝ | وَمَثَلُ | ٱلَّذِينَ | كَفَرُوا |
| داسې چې نه پوهيدل په هيڅ څيزداحکامو ددين اونه ئې لارموندلې وه حق ته . اوحال دَ دعوت ورکونکي کافرانوته | | | | | | |
| كَمَثَلِ | ٱلَّذِى | يَنْعِقُ | بِمَا | لَا يَسْمَعُ | إِلَّا دُعَآءً | وَنِدَآءً ۚ صُمٌّۢ |
| پشان دهغه کس(شپانه)دي چه چغې وهي څاروؤته چه نه آوري هيڅ مګربلنه اوچغه، دوئ کاڼۀ دي | | | | | | |
| بُكْمٌ عُمْىٌ فَهُمْ لَا يَعْقِلُونَ ۝ | | | | | | |
| ګونګيان دي ړانده دي پس دوئ عقل نۀ لري | | | | | | |

﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ﴾ یعنې هرکله چه مشرکانوته وه ویلې شی چه تاسو اتباع د ماانزل الله وکړئ په ایمانیاتو کښې اودارنګه په تحلیل اوتحریم کښې نو «قالوا بل — الایه». لفظ د (بل) د اضراب لپاره دي یعنې دوئ وایی چه مونږ د «ماانزل الله» اتباع نه کوو بلکه اتباع کوو دهغې چه ﴿أَلْفَيْنَا عَلَيْهِ ءَابَآءَنَآ﴾ (الفینا) په معنی د (وجدنا) یعنې موندلوسره دي خو(الفینا) اکثر په امورو معقولوکښې استعمالیږی او (وجدنا) اکثر په امورومحسوسوکښې مستعملیږی اود «آبائنا» معنی امام راغب په «علمائنا» سره کوی یعنی د آبائنا نه مراد مشران دی، صرف پلاران او نیکونه ندی مراد.

﴿أَوَلَوْ كَانَ ءَابَآؤُهُمْ﴾ (۱) همزه لپاره داستفهام انکاری ده په معنی د «لاینبغی» سره او واؤ دعطف لپاره دي نودلته مدخول دهمزه اومعطوف علیه د واؤ لپاره مقدر دی نو تقدیر دعبارت داسې دي «أیتبعوهم ولوکان آبائهم» . (۲) یا واوحالیه او لو مصدریه دي «ای

أیتبعون آبائهم حال کون آبائهم لایعقلون)) نو دلته ذم د تقلید دهغه خلقو وشو چه ۱ - ﴿لَا يَعۡقِلُونَ شَيۡـًٔا﴾ وی چه درجه د اجتهاد ورته نوی حاصله ۲ ـ او ﴿وَلَا يَهۡتَدُونَ﴾ وی یعنې د سنة النبی ﷺ او دحدیث علم ورته نه وی نومعلومه شوه چه د ((لایعقلون)) او ((لایهتدون)) والؤ تقلید ندې پکار بلکه د ((یعقلون اویهتدون)) والؤ تقلیدپکار دې نو آئمه مجتهدین ((لایعقلون)) او ((لایهتدون)) ندی بلکه یعقلون اویهتدون دی نوپدې آیت کښې دهغوئ دتقلید ذم ندې بلکه دهغوئ د اتباع ترغیب دې نوددې وجې نه صاحب دقرطبی وائی : ((اماالتقلیدفی الحق فاصل من اصول الدین وعصمة من عصم المسلمین یلجأ الیها الجاهل المقصر عن درك النظر))یعنی تقلید داصول دین نه یو مستقل بنیاددی اودمسلمانانوددین دحفاظت لویه ذریعه ده چه کوم سړې داجتهادصلاحیت نه لری نوهغه دې ددین په معامله کښې په تقلیداعتماد کوی

﴿وَمَثَلُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ﴾ دا مثال بیانیږی دهغه کافرانوچه حق عناداً نه منی ﴿كَمَثَلِ ٱلَّذِي يَنۡعِقُ﴾ ((نعیق)) صوت الراعی یعنې آواز دشپونکی خپلوځاروته وائی اوچه دا لفظ په غین سره شی نو بیا آواز دکارغه ته ویلې شی ﴿بِمَا لَا يَسۡمَعُ﴾ ددینه مراد ځاروی دی یعنې ګډې، بیزې غوایان اوښان وغیره ﴿إِلَّا دُعَآءٗ وَنِدَآءٗ﴾ فرق ددعأ اوندأ دادې چه دعأ دقریب لپاره وی اوندأ دلرې لپاره وی **پدې تمثیل کښې درې توجیهات دی** : (۱) راجحه توجیه داده چه دا مثال دې ددعوت ورکونکی، معاندین کافرانوته، اوپه عبارت کښې تقدیردې یاپه جانب دمشبه کښې ((ای مثل داعی الذین کفروا کمثل الراعی الذی ینعق)) . مثال د داعی کافرانوته پشان دمثال دهغه راعی دې چه آوازکوی هغه چارپایانوته ـ الخ . اویاپه جانب دمشبه به کښې ((ای مثل الذین کفروا کمثل بهائم الذی ینعق)) . مثال دکافرانوپشان دبهائمو دهغه چا دې چه آواز کوی ـ الخ . اومطلب دادې چه کافران د ډیرعناد په وجه دداعی حق خبره نه آوری اونه پکښې سوچ اوفکرکوی نوددوئ مثال داسې دې لکه چه یوشپونکې ،ګډوبیزوته آوازورکوی اوهغه ګډې بیزې صرف آوازآوری اونورپه مقصدنه پوهیږی

۲- دا تمثیل دې دهغه چاچه اتباع دآباؤکوی اودهغوئ دحقیقت نه خبرنوی لکه ځاروی چه آوازآوری خو دحقیقت اودمطلب نه خبرنه وی

۳- دامثال دبلنې اومدد غوښتلودې د آلهه ؤ نه ((ای مثل الذین کفروا فی دعائهم الهتهم کمثل الذین ینعق ـــ الایه))اوپدې توجیه کښې اشکال دې چه ددوئ معبودان باطله یعنی بُتان

خوهيڅ نه آوری او بهائم خودعاً، نداً آوری لکه په آيت کښې دا استثنا ذکرشوې ده، نو تشبيه صحيح نه شوه، **جواب** دادې چه دا تشبيه دمرکب، دمرکب سره ده نوپه دې کښې تشبيه دهر جزء دبل سره مراد نده بلکه تشبيه دمجموعې ده، دمجموعې سره.

﴿صُمٌّ بُكْمٌ عُمْيٌ﴾ غوږونه ږبه ،سترګی چه په صحيح مقصد کښې استعمال نشی نو دا داسې دی لکه چه بالکل نوی اوذرائع دعلم چه نه وی نوعلم هم نه وی نوځکه پرې دا مرتب شو چه ﴿فَهُمْ لَا يَعْقِلُونَ﴾ «ای لايعلمون لايدرکون».

| يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُلُوا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ وَاشْكُرُوا لِلَّهِ إِنْ كُنْتُمْ إِيَّاهُ |
|---|
| اې ايمان والو، خورئ دپاک حلال هغې نه چه درکړېدې مونږ تاسوته اوشکرکوئ دالله کچرې تاسو خاص ده لره |
| تَعْبُدُونَ ۞ إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَلَحْمَ الْخِنْزِيرِ وَمَا |
| عبادت کوئ. يقيناً (۱) حرام کړېده الله په تاسوباندې مرداره اووينه(بيولې شوې)اوغوښه دخنزيراوهرهغه څيز |
| أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللَّهِ ۚ فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ |
| چه په هغې آوازکړې شوې وې دپاره دنذر دغيرالله، پس هغه څوک چه مجبوره شي ددې خوراک ته اونه وي طلبګار دمزې |
| وَلَا عَادٍ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ۞ |
| اونه وي دحدنه تجاوزکوونکې نونشته هيڅ ګناه په ده باندې، بېشکه الله بخښنه کوونکې دې مهربان دې |

﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُلُوا مِنْ طَيِّبَاتِ﴾ دا خطاب خاص دې مؤمنانوته بعد دخطاب عام نه، اودا خطاب خاص دوباره ځکه ذکرکيږی چه کله خوانسان يوشې دعقيدې په لحاظ سره منی ليکن عملاً ترينه خطره او يره کوی نوالله تعالی مؤمنانوته اوفرمايل چه په حالت دکفرکښې تاسوکوم تحريمات کړی وو نو دهغې تحريم عملی طورسره ختم کړئ اوکوم اشياء چه تاسو دځان نه حرام کړی وو نوهغه خورئ او دالله ﷻ شکرکوئ.

﴿إِن كُنتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ﴾ تقديم دماحقه تاخيرحصر فائده کوی يعنې که چرې تاسو صرف اوصرف دالله تعالی عبادت کوئ نو ددغه اشياؤ تحريم عملی طور سره ختم کړئ او

---

۱ - دا بيان دنذر د غيرالله دې.

د توحید عملی ثبوت پیش کړئ.

﴿إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ ٱلْمَيْتَةَ﴾ دا بیان دحرمت دهغه اشیاؤ دي چه مشرکینوحلال ګڼړل اوپه ماقبل کښې بیان دحِل دهغه اشیاؤ دي چه مشرکانوحرام ګڼړل، نودلته دتحریمات الله او دنذر لغیرالله بیان دي چه تحریمات الله صحیح دی اونذر لغیرالله باطل دي ، کلمه د ((انما)) دحصر لپاره راځی نو دآیت مفهوم بظاهر دادي چه صرف هغه اشیأ حرام دی چه ذکردی پدې آیت کښې حالانکه ددینه علاوه ډیراشیأ حرام دی لکه : خر، سپی ، ګیدړ وغیره چه په احادیثو اونورو آیاتونو کښې ذکرشوی دی.

شیخ رضی رحمه الله وائی چه ((انما)) لپاره د تحقیق اوتاکید دي، نه لپاره دحصر اودقصر. نو دلته اعتراض وارد نشو، البته په سورة انعام ۱۴۵ کښې نفی اثبات صراحةً ذکردی ((قل لااجدفی ما اوحی الی محرما علی طاعمٍ یطعمه الاان یکون میتةً ــ الایه)) نو دهغې نه معلومیږی چه دلته ((انما)) هم دحصر لپاره دي.

**جواب** : ددې اشکال نه دادې چه دا حصرحقیقی ندې بلکه حصراضافی دې په نسبت سره بحیره سائبه وغیره ته دې، یعنی بحیره سائبه وغیره چه کوم تاسوحرام کړیدی اوتاسو ورته حرام وائی نودغه حرام ندی بلکه حرام هغه اشیأ دی چه پدې آیت کښې ذکرکیږی چه په هغې کښې **اول** شې میتة ده (مرداره) میتة نه مراد هغه شې دې چه دهغې ذبح کول په شرع کښې ضروری وی لیکن په شرعی ذبح سره ذبح نه کړې شی او د **مردارې خوراک** او دارنګه ددینه هرقسم نفع اخستل خواه په خرخولو سره وی یاپه بله طریقه سره وی حرام دی حتی چه دمرداري غوښې سپی له یابل ښکاری پرنده له راؤړل اوپه هغه خورول منع دی ځکه چه دا هم یوقسم نفع اخستل دی، البتهٔ دوېښتو نه او د هډوکو نه چه درطوباتونه پاك صاف وی او دارنګه دڅرمنې نه چه دباغت ورته ورکړې شی نفع اخستل جائزدی، او **دویم شې** په آیت کښې چه ذکردې نوهغه ((والدم)) دې مراد د دم نه دَم مسفوح (بیولې شوې) وینه ده لکه په سورة انعام کښې تصریح ده اوپه حدیث سره ددینه د منجمدې وینې تخصیص شویدې چه هغه کبد او طحال دې یعنی (جګر- اینه) او(تورې) اودارنګه هغه وینه چه دذبح نه بعدپه غوښه پاتې شی هغه پاکه اوحلاله ده .

**دریم شی** ﴿وَلَحْمَ ٱلْخِنزِيرِ﴾ خنزير بجميع اجزائه نجس العين دې اوحرام دې ليكن دلحم ذكر ددې وجې نه شويدې چه لحم مقصود اصلى دې په حيوان كښې نوچه دا حرام شو نوباقى اجزأ په طريقه اولى سره حرام شو. ابن عربى وايى چه «كل شحم لحمٌ وليس كل لحم شحم» يعنى لفظ دلحم شامل دې شحم ته نوحرمت دشحم هم مصرح دې پشان دحرمت دلحم نو د بعضې اقوامودا **سوال باطل** دې چه دحرمت دشحم دخنزيرپه قرآن كښې ذكرنشته دې او خنزير اگركه نجس العين دې ليكن دوېښتو استعمال ئى دگنډلولپاره په حديث كښې ثابت دې

او**څلورم شې** پدې آيت كې دادې چه ﴿وَمَآ أُهِلَّ بِهِۦ لِغَيْرِ ٱللَّهِ﴾ د«اهلال» اصلى معنى آواز اوچتول دى په وقت دليدلودهلال «مياشت» كښې بيا استعمال ئى كيږى دهرصوت «آواز» لپاره لكه راغب ليكلى دى «هو رفع الصوت عندرؤية الهلال ثم يستعمل لكل صوت » دمشركينو عادت داؤوچه كوم شې به ئى دخپلو بُتانولپاره نذركولونوآوازبه ئى په هغې سره اوچت كړو نو دا كلام دهغې دعادت په مطابق راوړې شوې دې ليكن حكم په اوچت آواز اوښكته آوازسره نه بدليږى نو لهذا دلته ترينه نذرلغيرالله مراد دې برابره خبره ده كه په اوچت آوازسره وى اوكه په ښكته آوازسره وى

اوددې جملې په تفسيركښې دمفسرينو درې اقوال دى ١- **اول قول** دادې چه مراد دينه هغه حيوان دې چه په وخت د ذبح كښې په هغه باندې نوم دغيرالله واخستلې شى او داقسم حيوان بالاتفاق حرام دې او دا د آيت مدلول صريحى دې، اودمكحول نه روايت دې چه اهل كتابى سرې اگرچه ذبح ؤكړى په نوم دغيرالله سره نو داجائزده ، ليكن نوروتولوعلماؤ دمكحول قول ردكړې دې اوبنأ پدې قول باندې لفظ د«ما» خاص دې په مذبوحه پورې اگرچه «ما» په اصل كښې دعموم لپاره دې «اهل» رفع الصوت «به» اى فى وقت ذبحه «لغيرالله» لام په معنى دبأ سره دې اواسم په كښې مقدردې«اى باسم غيرالله»اودا متعلق دې د«اهل» پورې او**دويم قول** دادې چه مراد ددينه هغه حيوان دې چه ذبح كړې شى لپاره دتقرب دغيرالله اگرچه په وقت دذبح كښې پرې نوم دغيرالله نوى ذكرشوې.

اونوم دالله تعالى پرې ذكرشوې وى اوبنأ پدې قول لفظ د«ما» اگركه خاص دې په حيوان پورې ليكن «اهل» په معنى عامه سره دې يعنى آواز اوچتول او نامزدكول اولغيرالله كښې لام دتقرب لپاره دې يعنې هغه حيوان چه په هغې آوازاوچت كړې شوې وى لپاره دتقرب دغيرالله

او لپاره دتعبّد دغیرالله نودغه حرام اومردار دي، اګرکه په وقت دذبح کښې په هغې باندې نوم دالله تعالی یادکړې شی ځکه هرکله چه پدغه حیوان کښې حرمت سرایت وکړو په وجه دنذر لغیرالله سره نوپه بسم الله سره نه حلالیږی لکه سپې اوخر وغیره چه په بسم الله ویلوسره نه حلالیږی اوهرکله چه د (لغیرالله) معنی داشوه چه لتقرب غیرالله، لتعبدغیرالله نوسوال وارد نشو چه کوم حیوان چه دمیلمه لپاره ذبح کړې شی یا چا ته هدیه کړې شی نوپه هغه هم نوم دغیرالله اوچت کړې شو پکارده چه هغه دې هم حرام شی؟ نوجواب دادې چه هغه دتقرب او تعبد دغیرالله لپاره ندې ذبح شوې بلکه تقرب اوتعبد دالله تعالی مقصود دې او دغیرالله اکل مقصود دې حتی که چرې اکل مقصودنه ؤو بلکه صرف تعظیم مقصودؤو نوهغه حرام دې شامی وغیره لیکلی دی. ((ولوذبح لقدوم الامیرونحوه کواحدٍ من العظماء یحرم)) حضرت مولانا محمدشفیع ﷫ اونورومحققینولیکلی دی چه دا قسم حیوان چه نذرکړې شی لپاره دغیرالله دا حرام دې په اتفاق دفقهاؤ سره اومذبوحه مرداره ده، البته په تخریج ددلیل کښې اختلاف دې بعضې حضرات دا د(وماأهل به لغیرالله) مدلول صریحی ګرزوی اوتائیدئی داپیش کوی چه امام رازی﷫ اودارنګه فقهاء احنافوویلی دی: ((اجمع العلماء لوان مسلماً ذبح ذبیحةً وقصد بذبحه التقرب صارمرتداً وذبیحته ذبیحة مرتدٍ)) او دارنګه درمختارکښې دی ((ذبح لقدوم الامیرونحوه کواحدمن العظماء یحرم لانه اهل به لغیرالله)) اوبعضو ویلی دی چه دا مدلول صریحی د «ما اهل به لغیرالله» نه دې بلکه دهغې مدلول صریحی مذبوحه باسم غیرالله ده، او داقسم دهغې سره ملحق دې د وجه داشتراك دعلت نه چه نذر لغیرالله اوتقرب اوتعبد لغیرالله دې. قرطبی وائی چه عُبّربه (ماأهل لغیرالله ) عن النیة التی هی علة التحریم. یعنی «ما اُهل به لغیرالله». تعبیر دې دَ دینه چه نذر لغیر الله دې اوهم دغه نیت (نذر لغیرالله) علة دَ تحریم دې.

**تنبیه:** ددې نه داول قول تائیدمعلومیږی اګرکه حضرت مفتی محمدشفیع صاحب ددویم قول په تائیدکښې ذکرکړیدې، بیاقرطبی ددې مسئلې لپاره یوڅو روایات ذکرکړیدی: (۱) حضرت علی ﷺ نیت لره اعتبار ورکړې ؤو کله چه دفرزدق پلارغالب اوښان ذبح کړی ؤ اوپه هغې باندې دغیرالله نوم نؤو ذکرشوې خوحضرت علی ﷺ اوفرمایل چه «انهاما اُهل به لغیرالله فترکهاالناس» یعنی دا په «اُهل به لغیرالله» کښې داخل دی اوټولوصحابؤ دا حکم قبول کړو (۲) ابن عطیه وائی چه دحسن بصری نه تپوس وکړې شوې چه یوه زنانه (جینئ) دخپلو لُعبو (ګوډیانو) واده جوړکړی(په لوبوکولوسره) اوپه هغې کښې اوښه ذبح کړی، نوددې څه حکم

دي ؟ نو حسن رحمه الله په جواب کښې وويل «لايحل اكلها فانها نحرت لصنم»، يعنې ددغې خوراك جائز ندي ځکه داده صنم (بت) لپاره ذبح کړې شوه اګرچه نوم دبت ئې وربانديې نه وی ذکر کړې (۳) دعائشة رضي الله عنها طويل حديث په آخرکښې دادی چه دعائشة رضي الله عنها نه تپوس وکړې شو چه څه زمونږ رضاعی رشته دارپه عجمی (مشرکينو) خلقُ کښې دی اوهغوئ په خپلو اخترونوکښې حيوان ذبح کوی اومسلمانانوته هديه ليږی نو آيا دا حلال دی؟ نوعائشة رضي الله عنها وفرمايل چه هغه څاروی چه دَ دغه ورځې لپاره ذبح کړې شی نوهغه مه خورئ (حالانکه دلته په ذبحه باندې نوم دغيرالله ندې ذکر شوې ليکن تقرب دغيرالله مقصوددې ، ۳- **اودريم قول** دادې چه د «مااهل به لغيرالله» نه مراد هغه شې دې چه هغې باندې نوم دغيرالله ذکرشی په طريقې دتقرب اوتعبداونذرسره برابره خبره ده که حيوان وی اوکه نقديات روپئ وغيره وی اوکه کپړې، خوراك وغيره وی اوبنأ پدې قول لفظ د (ما) دعموم لپاره دې اودا اصلِ استعمال دې او «به» په معنی دعليه سره دې او لغيرالله کښې لام دتقرب لپاره دې لکه مخکښې تيرشو اوحضرت الاستاذ رحمه الله دخپل شيخ رحمه الله نه نقل کوی چه د ما اهل نه مراد هغه الفاظ اوکلمات دی چه په هغې سره آوازاوچت کړې شی لپاره د نذر دغيرالله اوپدې تقديرسره بأ په (به) کښې په خپله معنی سره ده .

**فايده** ۱ : کوم شې چه نذرشی په نوم دغيرالله خواه که هغه غيرحيوان وی لکه نقديات کپړې وغيره ياحيوان وی اوپه وخت د ذبح کښې په هغې نوم دالله تعالی ذکرشی ياپه نوم دغيرالله ذبح شی نو دا ټول حرام دی لکه ددې تفصيل ذکرشو ، اوبعضی خلق چه وائی حرام صرف هغه دی چه په وقت دذبح کښې په هغې نوم دغيرالله يادکړې شی اودليل دا وائی چه مفسرينو د ما «اهل به لغيرالله» تفسيرپه «ماذبح على اسم غيرالله» سره کړيدې . **جواب** دادې چه ددغه تفسيرنه حصرنه لازميږی اونه دمفسرينومرادحصردې بلکه دا ديوفرد ذکردې چه په جاهليت زمانه کښې ئی رواج زيات وُو، غاية مافی الباب داده چه دغه تفسير د بل فردنه ساکت دې ليکن دنورو دلائلونه ئی حرمت ثابتيږی لکه چه په تفصيل سره ذکرشو ، بل دا چه په سورة مائده کښې د ﴿وَمَآ أُهِلَّ لِغَيْرِ ٱللَّهِ بِهِۦ﴾ نه بعد ﴿وَمَا ذُبِحَ عَلَى ٱلنُّصُبِ﴾ ذکرشوی دی نو ددينه صفا معلومه شوه چه «ما اهل به لغيرالله» په مذبوحې پورې خاص ندې. بعضې خلق دتفسير احمدی عبارت پيش کوی چه په هغې کښې ئی ويلی دی چه کوم نذرچه داموا تو لپاره وشی نو دهغې خوراك حلال دې. **جواب** دادې چه دنذر للاموت نه مراد نذرلپاره دايصال

ثواب دې امواتو ته لکه دا تاویل دهغه دحاشیه منهیه نه ظاهرېږي

حضرت الاستاذ رحمه الله په تفسیردسورة مائده کښې لیکلی دی چه دعوامو په فعل ((نذرالاموات)) به ترهغې پورې فتوی نشی لګولې ترڅوچه دهغه نذرکونکی دنیت نه تپوس نوی کړې شوې ځکه چه دعوامو کله دنذرالاموات نه مراد ایصال ثواب وی نوکه دا مراد وی نو دا یولفظی غلطی ده نو پدې سره نذرورکونکې مشرك نه ګرزی اوهغه شې نه حرامیږی لهذا اول به دنذر ورکونکی نیت معلوم کړې شی نوبعدبه فتوی لګولې شی. بعضې خلق سوال کوی چه په سیرت ابن هشام کښې دی چه نبی ﷺ ابوسفیان رضی الله عنه ته حکم وکړوچه زر او زیورات وغیره د ((لات)) بت سره جمع دی هغه واخله اودعروه قرضه په هغې سره ادأ کړه اودارنګه په طبقات ابن سعدکښې دی چه حضرت علی رضی الله عنه خزانه دفلس ((بت)) راواخستله. نودا روایات دلالت کوی چه هغه نذرلغیرالله چه حیوان نه وی حلال دې. **جواب** دادې چه دا بی سنده روایات دنص په مقابله کښې هیڅ اعتبارنه لری ، بل داچه پدې روایاتوکښې دا تصریح نشته چه دغه مال دنذرؤو اوکه دا ؤمنلې شی نو بیا **جواب** دا دې چه دغه دکافرانوحربیانو مال ؤو اومسلمانانو په غنیمت کښې حاصل کړې ؤو نو هغه مسلمانانولره جائزؤو

**فایده** ۲ : حضرت الاستاذ فرمائی چه پدې آیت کښې ترقی ده په بیان دتحریم داشیاؤ کښې ځکه چه دَ میتې دحرمة نه څه اشیأ مستثنی دی لکه هډوکی ،ویښته . څرمن چه دباغت ورته ورکړې شی اودارنګه ددم نه استثنأ شته دې یعنی دم منجمد اوهغه دم چه دذبح نه بعد په غوښه پاتې شی اودارنګه دَخنزیرنه استثنأ دویښتودګنډلولپاره راغلې ده ((کمامر)) لیکن د ((**ما أهل لغیرالله**)) نه هیڅ استثنأ نشته دې.

حضرت شیخ الهند رحمه الله فرمائی *جس جانور کی جان غیراللہ کے لیے نامزد کی جائے اس کی خباثت مردار کی خباثت سے بھی بڑھ جاتی ہے - الخ*

﴿فَمَنِ اضْطُرَّ﴾ په دې کښې دمضطر احکام بیانیږی د اضطرار یعنې مجبوره کیدلولپاره دوه صورتونه دی : **اول** دا چه څوك ئې مکره ((مجبوره)) کړی چه دا میتة وغیره وخوره ، او کنه نو قتلوم دې، یا درنه یو اندام قطع کوم، **دویم** دا چه مخمصه یعنې داسې سخته لوږه وی چه که چرې مرداره وغیره ونه خوری نوهلاك به شی.

﴿غَيْرَ بَاغٍ﴾ شوافع د دې معنى كوى باغى دسلطان نه، نوشرعى رخصتونه لکه قصر الصلوة اوافطاردمسافر اوجواز د اکل دميته وغيره ددوئ په نزد دباغى دسلطان لپاره نشته دې اواحناف د«غيرباغ» معنى دا کوى (١) چه نوى ظلم، زياتې کونکې په بل مضطر (٢) يا نوى طلب گار دلذت په اکل دميتته سره، يعنى که حلال شې موجود وى خوبې لذته وى نو دمضطر لپاره پدې صورت کښې دمحرماتو لکه (نذرلغيرالله) لذيذ خوراك جائزندې.

﴿وَلَا عَادٍ﴾ يعنې تجاوزنه کوى دحد ضرورت نه نوځان مړول پرې جائزندى صرف دومره به خورى چه دمرگ نه بچ شى.

﴿فَلَآ إِثْمَ عَلَيْهِ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ امام شافعى رحمه الله اوامام ابويوسف رحمه الله وائى چه په حق دمضطرکښې حرمت دميتې وغيره باقى دې خوصرف مؤاخذه پرې نشته دې او دا معلوميږى دلفظ د«عليه» نه اود«ان الله غفور رحيم» نه، اوامام ابوحنيفه رحمه الله وائى چه حرمت ئى ساقط شويدې ځکه په سورة انعام کښې ١٢٠ دى «وقدفصل لکم ماحرم عليکم الاماضطررتم اليه» نو استثناء دحرمت ؤشوه نوحل ثابت شو اودلفظ د«عليه» مطلب هم دادې چه حل صرف دده په حق کښې دې او «ان الله غفور رحيم» ددې لپاره دې چه کيدې شى چه دې مضطرنه د اجتهادى غلطئ په وجه زيادت شوې وى دحد ضرورت نه.

| |
|---|
| إِنَّ ٱلَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ مِنَ ٱلْكِتَٰبِ وَيَشْتَرُونَ بِهِۦ ثَمَنًا قَلِيلًا ۙ |
| بيشکه هغه (۱)کسان چه پټوي هغه څه چه نازل کړيدې الله دخپل کتاب نه اواخلي پدې پټولويسي لږې(دنيا) |
| أُو۟لَٰٓئِكَ مَا يَأْكُلُونَ فِى بُطُونِهِمْ إِلَّا ٱلنَّارَ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ ٱللَّهُ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ |
| دغه کسان نه خوري(نه اچوي)په خيټوخپلو کښې مګراور او نه به خبري کوي ددوئ سره الله په ورځ دقيامت |
| وَلَا يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ |
| اونه به الله پاک کړي دوئ لره دګناه نه، او ددوئ دپاره دردناک عذاب دي |

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ يَكْتُمُونَ﴾ دنذرلغيرالله داحکاماتوبيانولونه بعد زجر اوتخويف ذکرکيږى

١ - احبارورهبان ته زجر چې نذرلغير الله به ئې اخيستو.

هغه احبارو اورهبانوته چه نذرلغیرالله ئی خوړلو او دنذرلغیرالله احکامات ئی پټول او د رسول پاك ﷺ صفات ئی پټول

﴿ مِنَ الْكِتٰبِ﴾ (من) په معنی د (فی) سره دې یا تبعیضیه دې یعنی ټول احکامات ئی ندی پټ کړی، صرف هغه حکمونه ئی پټ کړیدی چه ددوئ ددنیوی مفادتاتو خلاف دی ﴿تُبْدُونَهَا وَتُخْفُونَ كَثِيرًا﴾ (سورة انعام ۹۱).

﴿مَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ﴾ په ذکرد ((فی بطونهم)) کښې ورستو د ((یا کلون)) نه اشاره ده دیته چه دَ ((یأکلون)) نه حقیقةً اکل (خوړل) مراد دی اوپه معنی داخذ سره ندې لکه په ((یأ کلون الربوٰ)) کښې چه دی، بل په دې کښې شِبع (مړه خیټه خوراك کولو) ته اشاره ده او دا علامه دحرص ده نو معلومه شوه چه دوئ خپل آخرت دخیټې په وجه بربادکړیدې اودا ډیرسخت وعیدونه دی هغه چاته چه نذرلغیرالله خوری.

﴿إِلَّا النَّارَ﴾ یا حقیقة ((اور)) مراد دې یعنې په جهنم کښې به اورخوری نومضارع (یأ کلون) د استقبال لپاره ده یا ترینه مراد حرام دی، ځکه چه (نار) مسبب دې اوحرام ورته سبب دې نوذکر د مسبب شواو مراد ترینه سبب دې نومضارع دحال لپاره ده.

﴿وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾ دخوشحالئ خبرې به ورسره نه کوی اودغصې خبرې به ورسره کوی لکه چه په بل ځائ کښې فرمایی: ﴿فَلَنَسْأَلَنَّ الَّذِينَ أُرْسِلَ إِلَيْهِمْ - الایه﴾ (اعراف ۲۰)، یا دا چه مطلقاخبرې به ورسره نکوی اوسوال اوحساب به ورسره په توسط دملائکو کوی ﴿وَلَا يُزَكِّيهِمْ﴾ دګناهونونه پاکول مراد دی یا ثنا اوتعریف به ئې نه کوی.

| أُولَٰئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الضَّلَالَةَ بِالْهُدَىٰ وَالْعَذَابَ بِالْمَغْفِرَةِ ۚ |
|---|
| داهغه کسان دی چې اخیستې ئې ده ګمراهي په بدله دهدایت کښې اوعذاب په بدله دبخښې کښې |
| فَمَا أَصْبَرَهُمْ عَلَى النَّارِ ﴿١٧٥﴾ ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ نَزَّلَ الْكِتَابَ |
| پس څۀ عجیبه صبرکوؤنکي دی په اورباندې . داعذاب پدې وجۀ دې چې بېشکه الله رالیږلې دې کتاب |
| بِالْحَقِّ ۗ وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِي الْكِتَابِ لَفِي شِقَاقٍ بَعِيدٍ ﴿١٧٦﴾ |
| حق دپاره او(دوئ پکښې اختلاف کوي) اوبېشکه هغه کسان چه اختلاف ئ کړیدې په کتاب کښې خامخاپه ضدلرې کښې دي دحق نه |

﴿ اَلضَّلٰلَةَ ﴾ نذرلغیرالله ﴿بِالْهُدٰی﴾ دتوحید په مقابله کښې ﴿وَالْعَذَابَ﴾ یعنی اسباب دعذاب چه نذرلغیرالله او کتمان دحق دي ((بالمغفرة)) په بدله داسبابو دمغفرت کښې ﴿فَمَآ اَصْبَرَهُمْ﴾ دا صیغه دفعل تعجب ده یعنې څه ډیرعجیبه صبرکونکي دي په اورباندې. تعجب په کلام دالله تعالی کښې په معنی د تعجیب سره وی یعنی اې بندګانو تاسو تعجب وکړئ یا دا مقام دتعجب دي دبندګانو لپاره.

﴿ ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ ﴾ ((ذٰلك)) اشاره ده عذاب ته ((بانّ)) کښې با سببیه ده اود ((بالحق)) نه ورستولفظ د ((رفضوه)) یاد ((اختلفوا)) مقدر دي لکه دما بعدنه معلومیږی اود ((اَلْكِتٰبَ)) نه جنس کتاب مراد دي. چه تورات. انجیل. قرآن ته شامل دي. د ((بِالْحَقِّ)) معنی ئ بالصدق . یا بالحجة . یا . لاظهار الحق ده (مدارک).

﴿وَاِنَّ الَّذِیْنَ اخْتَلَفُوْا فِی الْكِتٰبِ﴾ دکتاب نه جنس کتاب مراد دي او داختلاف نه مراد دادي چه په بعضې ایمان راوړی اوپه بعضې نه راوړی، یا د کتاب نه مراد قرآن دي او داختلاف نه مراد دادي چه بعضې ورته سحر وائی اوبعضې ورته شعروائی اوبعضې ورته اساطیر الاوّلین وائ (روح).

﴿ لَفِیْ شِقَاقٍۭ بَعِیْدٍ ﴾ شقاق نه مراد ضداوتعصب دي یعنې حق واضح شویدې اوکه څوك ترینه خلاف کوی نودا د ضد او عناد له وجه نه کوی

| لَيْسَ الْبِرَّ اَنْ تُوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلٰكِنَّ الْبِرَّ |
|---|
| نه ده نیکي (صرف داخبره) چه تاسو اوګرزوئ مخونه خپل طرف دمشرق اودمغرب ته اولیکن نیکي (نیکي) ده هغه |
| مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالْكِتٰبِ وَالنَّبِيّٖنَ ۚ وَاٰتَى الْمَالَ |
| چا ده چه ایمان ئې راوړي وي په الله اوپهٔ ورځ د آخرت اوپهٔ ملائکو اوپه کتابونو اوپهٔ پیغمبرانو باندې. او ورکوي مال |
| عَلٰى حُبِّهٖ ذَوِي الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنَ وَابْنَ السَّبِيْلِ ۙ وَالسَّآئِلِيْنَ وَفِي الرِّقَابِ ۚ |
| پهٔ محبت دهغه کښې خپلوانوتهٔ اویتیمانو تهٔ اومسکینانوتهٔ اومسافروتهٔ، اوسوال کوونکوتهٔ اوپهٔ آزادولو دختونو کښې |

۱ خاتمه دحصه اول او د تحویل قبله مزید تنویر.

| |
|---|
| وَ اَقَامَ الصَّلٰوةَ وَاٰتَى الزَّكٰوةَ ۚ وَالْمُوْفُوْنَ بِعَهْدِهِمْ اِذَا عٰهَدُوْا ۚ |
| اوپابندي کوي دمونځ اوورکوي زکوة، اوپوره کوونکي دعدوخپلو کله چه وعده اوکړي. |
| وَالصّٰبِرِيْنَ فِي الْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ وَحِيْنَ الْبَاْسِ ؕ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ صَدَقُوْا ؕ |
| اومدح کوم د صبرکوونکوپۀ حالت دسخت فقر کښې اودمرضونو کښې او پۀ وخت دجنګ کښې، دغه کسان دي رښتني |
| وَ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُتَّقُوْنَ ۝ |
| اودغه کسان خاص دوئ پرهیزګاران دي |

﴿ لَّيْسَ ٱلْبِرَّ أَن تُوَلُّوا۟ وُجُوهَكُمْ ﴾ دحصه اولی دسورت په خاتمې باندې دتحویل قبله متعلق مزید تنویر ذکرکیږی. کله چه تحویل قبله وشوو نو یهودو اونصاری اومشرکینوعربو ډیرشور، شغب جوړکړو او داسلام او د رسول الله ﷺ خلاف ئی اعتراضات شروع کړل نوالله تعالی دهغوئ دسوالاتودجوابونونه بعد اوفرمایل چه نیکی اودین خوصرف قبلې ته مخ ګرزول ندی چه تاسو صرف هُم دا موضوع دبحث اومحوردبحث ګرزولې دې بلکه نیکی اودین دادې چه ټول احکام شرعیه ومنلې شی . اوپه دې آیت کښې دتمام احکاماتو بلکه دتمام اهمو احکاماتو بیان اجمالا شویدې یعنې اعتقادات ،عبادات ، معاملات ، اخلاق.

حضرت الاستاذلیکی : *یہ آیت اصول دین میں سے ایک بہت بڑی اصل ہے*

صاحب دروح المعانی لیکی : ((ولعمری من عمل بهذه الاية فقداستکمل الايمان ونال اقصی مراتب الايقان)) داعتقاداتوبیان په ﴿مَنْ ءَامَنَ﴾ کښې شویدې او دعباداتو بیان د ((وآتی المال)) نه تر ((وآتی الزکاة)) پورې شویدې او دمعاملاتو بیان په ((والموفون)) کښې اجمالا شویدې او د اخلاقو بیان اجمالا په ((والصابرین)) کښې شوې دې.

﴿قِبَلَ ٱلْمَشْرِقِ وَٱلْمَغْرِبِ﴾ ددینه مراد مطلق جهات اوسمتونه دی اودا خطاب عام دې مؤمنانو او اهل کتابو ته، اومقصود نفی داختصاص د ((بر)) ده په یوجهت پورې اونفی د ((بر)) مقصود نده. بلکه **مقصود د آیت** دادې چه اصل بر اطاعت دحکم دې چه الله تعالی کوم طرف ته دمخ ګرزولوحکم ؤکړی نوهغه طرف ته مخ ګرزول ثواب دې، خواه که مشرق وی اوکه مغرب اوکه بل جهت وی، اوچه الله تعالی حکم نوی کړې نو نه مشرق ته مخ ګرزولو کښې

ثواب دې اونه مغرب ته اونه بل جهت ته. حاصل دادې چه داخطاب عام دې اومقصود نفي داختصاص د «بر» ده. يعنی نيکی په دې پورې منحصره نده چه «ان تولو — الايه» اونفی د «بر» مقصود نده. **دويمه توجيه** په آيت کښې داده چه دا خطاب يهودو، نصاری ته دې اومراد دمشرق اومغرب نه دغه مخصوص جهات اوسمتونه دی. ځکه ديهودوقبله جانب مغربی دبيت المقدس وو دأفق دمکې نه. اودنصاری ؤ قبله جانب مشرقی دې. نو پدې آيت کښې رد دې په دواړوفرقوباندې چه دجانب مشرقی ، مغربی. دبيت المقدس قبله کيدل منسوخ شوی دی نواوس هغې ته مخ ګرزول بالکل نيکی نده، پدې تقريرباندې مقصود نفی د «بر» ده په طريقې دعموم النفی «سلب کلی» سره نه په طريقې دنفی د اختصاص ياسلب العموم سره.

﴿وَلَٰكِنَّ ٱلْبِرَّ مَنْ ءَامَنَ﴾ **سوال** : دلته يو سوال وارديږی چه «من آمن» ذات دې نوحمل ئی په «البر» باندې صحيح ندې؟ **جواب** : (١) دلته په عبارت کښې تقدير دې په جانب داسم کښې «ای لکن ذالبرمن» (٢) «بر» «مصدر» په معنی دبار- اسم فاعل سره دې . (٣) بهتر تقدير دې په جانب دَ خبر کښې «ای لکن البر بر من آمن» يعنې اصل نيکی اومعتبرعند الله نيکی، نيکی دهغه چاده چه ايمان ئی راوړې وی ـ الخ .

﴿وَٱلْكِتَٰبِ﴾ جنس مراد دې يعنې تمام کتب الهيه ﴿وَءَاتَى ٱلْمَالَ﴾ په معنی د أعطی سره دوه مفعوله غواړی ﴿ ٱلْمَالَ﴾ مفعول ثانی مقدم دې او ﴿ذَوِى ٱلْقُرْبَىٰ﴾ سره دمعطوفاتو نه مفعول اول مؤخردې. د ﴿عَلَىٰ حُبِّهِۦ﴾ ضمير راجع دې لفظ د «الله» ته اوپه دې کښې صفت اخلاص ته اشاره ده چه مقصود به دمال ورکولو نه دالله تعالی رضا وی. يا ضمير مال ته راجع دې اومحبت دمال دادې چه قيمتی مال وی ياد وخت دزنکدن نه مخکښې وی لکه په حديث شريف کښې دی.

((افضل الصدقة ان تصدق وانت صحيح، شحيح ، تأمل البقاء وفی رواية تأمل الغنی وتخشی الفقرولاتمهل حتی اذابلغت الحلقوم قلت لفلان كذاولفلان كذا، وقدكان لفلان )) (متفق عليه).

**ترجمه** : غوره صدقه هغه ده چه ته ئی په داسې حال کښې ورکړې چه روغ ئې، دمال حريص ئی اميد کوې د بقأ يا د غنیٰ اويريږې دفقرنه او انتظار مکوه چه ساه دې مرئ ته

راشی او زنکدن دې شروع شی نوته وصیت شروع کړې چه دومره دفلانی او دومره دفلانی او حالانکه هغه دفلانی (وارث) وی.

﴿وَفِي ٱلرِّقَابِ﴾ ((ای فک الرقاب)) چه دچا څټ بند وی په غلامۍ کښې یاپه قرضونو کښې.

﴿بِعَهْدِهِمْ﴾مرادتول عهود دی،خواه که په باره دمعاملاتوکښې وی دیوبل سره اوکه دالله تعالی اورسول ﷺ سره وی﴿وَٱلصَّٰبِرِينَ﴾ منصوب بنا برمدح دې په تقدیرد((امدح))یا ((اخص)) سره نو په تغیر داسلوب کښې اشاره ده افضلیت دصبرته چه ګویاکښې دا د جنس د ماقبل نه ندې بلکه افضل دې ﴿ٱلْبَأْسَآءِ﴾ هغه تکلیفونه چه دمال سره تعلق لری (شدت فقر) ﴿وَٱلضَّرَّآءِ﴾ هغه تکلیفونه چه دبدن سره تعلق لری ﴿وَحِينَ ٱلْبَأْسِ﴾ ای وقت القتال، او د ((بأسآء)) او ((ضرأ)) ذکر په ((فی)) سره ؤشو ((والصابرین فی الباسآء والضرآء)) او دجنګ ذکرپه **حین** سر وشو **وجه داده** چه سړي مستحق دمدح په صبردبأ ساء اوضراء سره **هله** ګرزی چه په بأساء او ضراء کښې طول اودوام راشی، اوفقراومرض ورته په منزله دظرف شی اوکه طول په کښې نوی نوپه معمولی ضراء او بأساء باندې صبرکولوېسره سړې مستحق دکمال مدح نه ګرزی نو ددې اشارې لپاره ((فی)) ذکرشو اوپه خلاف دجنګ نه چه په هغې کښې دوام اوطول نه وی غالبا

﴿أُوْلَٰٓئِكَ﴾ یعنې حاملین ددې صفاتو ﴿ٱلَّذِينَ صَدَقُواْ﴾ په ایمان کښې اوپه طلب د ((بر)) کښې ﴿وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُتَّقُونَ﴾ یعنې دالله تعالی دعذاب نه په کمال وجه سره بچ کیدونکی صرف دغه مذکوره کسان دی.

## حصه ثانیه دسورت

په دې حصه کښې ۱- دجهاد فی سبیل الله (دتوحیداورسالت لپاره ځان قربانول) ۲- او انفاق فی سبیل الله (دتوحید، رسالت لپاره خپل مال قربانول) بیانیږی، اوچونکه جهادهله کیدې شی چه مسلمانان خپل مینځ کښې منظم اومتفق، متحد وی نو ددې وجې نه امور انتظامیه هم بیانیږی اوانتظام اتفاق هله راځی چه اصلاح دباطن وی نو امورمصلحه هم بیانیږی نوپدې حصه کښې چه کوم مضامین بیانیږی هغه دادی: ۱- جهادفی سبیل الله ۲- انفاق سبیل الله ۳- امورانتظامیه ۴- امورمصلحه.

**تفصيل**: دجهاد ذکرصراحةً څلورواري کیږي (۱)- اول ۱۹۰ نه . تر ۱۹۴ پورې (۲)- دويم وار د ۲۰۴ نه .تر ۲۱۴ پورې (۳) دريم وار د ۲۱۴ نه ، تر ۲۱۸ پورې. ددینه بعد بیاپنځه مسائل ذوجهتين بيانيږي په مناسبت دماقبل ۲۱۹ نه ، تر ۲۲۳ پورې (۴) څلورم وار د ۲۴۳ نه ، تر ۲۵۱ پورې

اومسئله د انفاق هم څلور واري ذکرکيږي (۱) اول وار ۱۹۵ (۲) دويم وار ۲۱۵. (۳) دريم وار ۲۵۴ (۴) څلورم وار ۲۷۱ په تفصيل سره او د انفاق دمقابل يعنې د ربوا حرمت ذکرکيږي .

او امورانتظاميه هم څلورواري ذکرکيږي : (۱) اول ځل ۱۷۸ نه . تر ۱۸۲ پورې . پدې کښې دوه امور ذکرکيږي قصاص، ديت او وصيت (۲) دويم ځل په ۱۸۸ کښې دناحق مال رشوت وغيره نه منع کيږي (۳) دريم ځل ۲۲۴ نه ، تر ۲۴۱ پورې، په دې کښې دايلاء .نكاح . طلاق . عدت ، رجعت، رضاعت، نفقه، وغيره امورذکردي (۴) څلورم ځل ۲۸۲ نه . تر ۲۸۳ پورې پدې کښې دخريداو فروخت، شهادت وغيره ذکردې . او امورمصلحه درې واري ذکرکيږي : (۱) **اول** دصوم ذکر ۱۸۳ نه ، تر ۱۸۷ پورې، (۲) **دويم** دحج ذکر ۱۹۲ نه . تر ۲۰۳ پورې (۳) دريم دصلوة ذکر ۲۳۸ نه ، تر ۲۳۹ پورې .

| فِي الْقَتْلٰى ؕ | الْقِصَاصُ | عَلَيْكُمُ | كُتِبَ | يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا |
|---|---|---|---|---|
| اې ایمان والو (۱)فرض کړې شوېدې په تاسوباندې قصاص جاري کول په باره دقتل کړې شوؤ کښې | | | | |
| بِالْاُنْثٰى ؕ | وَالْاُنْثٰى | بِالْعَبْدِ | وَالْعَبْدُ | بِالْحُرِّ | اَلْحُرُّ |
| حرېه قصاص کیږي په بدله د حر کښې اوغلام به قصاص کیږي په بدله دغلام کښې اوښځه په بدله د ښځې کښې | | | | | |
| شَيْءٌ | اَخِيْهِ | مِنْ | لَهٗ | عُفِيَ | فَمَنْ |
| پس هغه څوک(قاتل)چې عفوه اوکړېشی ده ته (ددم) د رور(مقتول)ددهٔ نه، د څهٔ څیز(نوحکم وارثانو دمقتول ته دادې) | | | | | |
| اِلَيْهِ | وَاَدَآءٌ | بِالْمَعْرُوْفِ | فَاتِّبَاعٌ | | |
| چې پهٔ قاتل پسې کېدل دي(يعنى مطالبه ددیت ده) پهٔ ښهٔ طریقه(پهٔ نرمئ سره)اوپهٔ قاتل اداکول دي ده ته | | | | | |

۱ - د سورت دويمه حصه اول امر انتظامي (قصاص)

| بِاِحْسَانٍ ؕ ذٰلِكَ تَخْفِيْفٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَرَحْمَةٌ ؕ فَمَنِ اعْتَدٰى بَعْدَ ذٰلِكَ فَلَهٗ |
|---|
| په ښکلي طريقې سره. دا آسانتيا ده د طرفه د رب ستاسو نه او رحمت دې، پس چاچې زياتي او کړو بعد د د نه نو هغه لره |
| عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝ وَ لَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيٰوةٌ |
| عذاب دې دردناک اوستاسو دپاره په قانون دقصاص جاري کولو کښې لوئې ژوندې (بچ کېدل د مرګ نه) |
| يّٰاُولِي الْاَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ۝ |
| اې د عقل وفهم خاوندانو ددې دپاره چې تاسو بچ شئ (د يو بل قتلولو نه) |

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ كُتِبَ عَلَيۡكُمُ ٱلۡقِصَاصُ﴾ دا اول امر انتظامی دې يعنې حکم د قصاص او ديت، ديهوديانو په مذهب کښې دقتل سزا صرف قتل ؤو. معافی او ديت نه ؤو او دعيسائيانو په مذهب کښې دعفوې قانون ؤو فقط. قصاص او ديت نه ؤو (**قرطبی**) او په عربو کښې دواړه ؤو ليکن افراط. تفريط پکښې ؤو د اعلی قبيلی مقتول غلام په عوض کښې به ئی حر قتل کولو او د ښځی په عوض کښې به ئی نارينه قتل کولو او د يو په عوض کښې به ئی دوه قتلول او دغه سې ديت به ئی دوچند درې چند وصولولو. په اسلام کښې دقتل دحکم بيان دې چه قصاص هم شته او ديت او عفوهم شته او افراط او تفريط ئی ختم کړو او مساوات ئی قائم کړو ((المسلمون تتکافؤ دمأهم)) چه د مسلمانانو وينې يوشان دی

﴿ٱلۡحُرُّ بِٱلۡحُرِّ وَٱلۡعَبۡدُ بِٱلۡعَبۡدِ﴾ پدې آيت کښې مقابله دحر ده دحر سره او دعبد له عبد سره راغليده نو په حکم دمفهوم مخالف سره ترينه معلوميږی چه **حر به دعبد په مقابله کښې نه قتليږی** او دا مذهب دشوافعو دې نو بيا پدوئ سوال واردېږی چه وروستو مقابله دأنثی دانثی سره راغليده نو په حکم دمفهوم مخالف سره دې مؤنث په عوض دمذکر کښې او دارنګه بالعکس قصاص نه کړې شی او حال داچه دشوافعو په مذهب کښې هم مؤنث دمذکر په عوض کښې قصاص کولې شی او بالعکس. نو شوافع جواب کوی چه ((والانثی بالانثی)) منسوخ دې په حديث سره. او د احنافو په نزد باندې **حُر په عوض دعبد کښې قصاص کولې** شی او دارنګه بالعکس او دغه شان مذکر په عوض دمؤنث کښې قصاص کيدې شی او بالعکس هم . بظاهر دا آيت د احنافو خلاف حجت دې احناف ددينه جوابونه کوی : (۱) ((حُر دې دعبد په عوض کښې نه قتليږی)) دا حکم دمفهوم مخالف دې او زمونږ په نزد باندی استدلال په مفهوم

مخالف معتبر ندې لکه چه د اصولو په کتابونو کښې يې تفصيل موجود دې . ((مدارک وغيره))

(۲) شاه ولی الله رحمه الله فرمائی چه د ((الحربالحر)) مقصد دا نه دې چه حربه دعبد په عوض کښې نه قتليږی بلکه ددې مقصود دادې چه دجاهلية په وخت، کښې چه دقصاص په باره کښې کوم افراط ؤو نو دهغې ختمول مقصود دی يعنې مطلق حُر خواه که د اعلی قبيلی وی اوکه د ادنیٰ قبيلې وی، په مقابله دمطلق حرکښې دې اودغه شان عبدکه د اعلی قبيلې وی اوکه د ادنیٰ قبيلې وی نو پدوئ کښې مساوات دې او داسې نه ده چه د اعلی قبيلې غلام د ادنیٰ قبيلې دحرسره برابردې يامؤنث دمذکرسره برابردې.

شاه صاحب ليکی : **هرحرمثل حرديگراست ، وهرعبدمثل عبدديگراست، وهرزن مثل زن ديگراست**

(۳) حضرت شيخ الشيوخ مولاناحسين علی رحمه الله فرمائی چه قصاص په دوه قسمه دې : يو قصاص بالنفس دې او بل قصاص فی الاطراف دې او پدې آيت کښې ددواړوذکر دې دقصاص فی النفس ذکرپه ﴿عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلَى﴾ کښې شويدې د ((قتلی)) نه مراد مقتولين دی اود دې تفصيل په سورة مائده آية ۴۵ کښې دې ((وکتبناعليهم فيهاان النفس بالنفس)) يعنې مطلق نفس په بدله دمطلق نفس کښې دې. اودقصاص فی الاطراف ذکرپه ((الحربالحر— الايه)) کښې شويدې او د دې تفصيل په سورة مائدة کښې داسې شويدې ((والعين بالعين والانف بالانف — الآيه)) يعنی ((عين الحربعين الحر وانف الحربانف الحر الخ وعين العبدبعين العبد وانف.العبد بانف العبد )) نودا آيت دسورة بقرې تفصيل دې لپاره د آيت دسورت مائدې څکه هلته ((العين بالعين)) ذکر دې اومراد ترينه دادې چه ((عين الحربعين الحر وعين العبد بعين العبد)) اوآيت دسورة مائدې تفصيل دې لپاره دآيت دسورة بقرې او ديته ((صنعة الاحتياك)) ويلې شی اوهرکله چه مقصود په ((الحربالحر)) سره بيان دقصاص فی الاطراف ؤو نوپه قصاص فی الاطراف کښې حر دعبدپه مقابله کښې نشی قصاص کيدې اونه مذکر دمؤنث په مقابله کښې، نوکه مفهوم مخالف معتبرهم شی نو بياهم په احنافوباندې اعتراض نه راځی.

﴿فَمَنْ عُفِيَ لَهُ﴾ پدې کښې ددیت حکم دې ((فمن)) نه مراد قاتل دې. د((عفی له)) ضميرقاتل ته راجع دې ((من اخيه)) په حذف دمضاف سره دې ((ای من دم اخيه)) او د اخ نه مراد مقتول دې اوتعبير ترينه په اخ سره څکه وشو چه دقاتل په زړه کښې شفقت او دَ ندامت جذبه

پیدا شی، او بل په دې کښې اشاره ده چه قاتل په سبب دقتل سره د ایمانی اخوت نه ندې خارج شوې اوپه ذکرد((شیئ)) کښې اشاره ده چه که بعضې ورثه دمقتول معافی وکړی نوقصاص ختم شو اګرکه ټولومعافی نوی کړی، ((فاتباعٌ)) (ای فالحکم لورثة المقتول اتباع القاتل) یعنی حکم دورثوو دمقتول لپاره په قاتل پسې کیدل دی، یعنی دقاتل نه دې مطالبه ددیت وکړی، مقصود دادې چه دمقتول بعضې ورثه قصاص معاف کړی نوقصاص ختم شو، البة دیة ندې ختم، نوورثه دمقتول دې دَ قاتل نه مطالبه ددیت وکړی لیکن ((بالمعروف)) یعنې په نرمه طریقې سره اومعقولې طریقې سره ((واداءٌ)) (ای وعلی القاتل اداء) یعنې په قاتل اداء کول ددیت دی ((الیه)) ورثودمقتول ته ((بِاِحسانٍ)) په ښې طریقې سره. یعنی ټال مټول دې نه کوی، کم والې دې نکوی په مقداردديت کښې، په ((ذلك)) سره اشاره ده عفواوديت ته.

﴿تَخْفِيفٌ مِّن رَّبِّكُمْ﴾ په عفوکښې قاتل ته سهولت دې اوپه دیت کښې ورثؤ دمقتول ته نفع ده ﴿فَمَنِ ٱعْتَدَىٰ﴾ تجاوز دادې چه یوځل ورته معافی وکړی یا ترینه دیت وصول کړی اوبیائی قتل کړی ﴿بَعْدَ ذَٰلِكَ﴾ پس دتقرر دقانون مذکورنه ﴿وَلَكُمْ فِي ٱلْقِصَاصِ﴾ دقانونِ قصاص داجرأ فائدې ذکرکیږی ﴿حَيَوٰةٌ﴾ تنوین یا لپاره دتعظیم دې یعنې لوئ حیوة دې ځکه چه دقصاص د یَری د وجې نه به قاتل بل څوك نه قتلوی، نو دهغه جان بچ شو اوقاتل به هم نه قتلیږی نودده جان هم بچ شو او دارنګه ددشمنئ داُورپه وجه دقاتل اومقتول دقبائلونه چه کوم قتلونه کیدل نو دهغې نه حفاظت ؤشو نوپه قصاص سره عظیم حیوة حاصل شو. یاتنوین په کښې لپاره دتنویع دې یعنې حیوة د امن ﴿يَٰٓأُو۟لِي ٱلْأَلْبَٰبِ﴾ الباب جمع دلب ده. لُب هغه عقل ته ویلې شی چه وهم نه وی خطأ کړې.

﴿لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ﴾ په دنیاکښې دیوبل دقتلولو نه اوپه آخرت دجهنم نه بچ شئ.

| كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ ٱلْمَوْتُ إِن تَرَكَ خَيْرًا ۚ ٱلْوَصِيَّةُ لِلْوَٰلِدَيْنِ |
|---|
| فرض(۱)کړې شوېدې په تاسوباندې،کله چې نزدې شي یوستاسوته مرګ کچرې پریږدې مال، وصیت کول مورپلارته |

۱ - دویم انتظامی امر د وصیت.

| وَالْاَقْرَبِيْنَ بِالْمَعْرُوْفِ ۚ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِيْنَ ۝ |
|---|
| او خپلوانوته په نیکي طریقي سره، حق او لازم دي په متقیانو باندې |

﴿كُتِبَ عَلَيْكُمْ﴾ دا دویم امرانتظامی ذکرکیږی یعنی وصیت ﴿اَلْوَصِيَّةُ﴾ نائب فاعل دکُتِبَ لپاره دې او دحضور دموت نه مراد امارات ، علامات دموت دی ﴿اِنْ تَرَكَ خَيْرًا﴾ دا شرط دې اوجزاء یی محذوفه ده چه ماقبل پرې دلالت کوی چه کُتِبَ دې او د «خیراً» نه مراد مال دې اوبعضې وائی چه خیرمال کثیرته وائی اولږ مال ته خیرنه ویلې کیږی

﴿لِلْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ﴾ وصیت د والدینواودارنگه دنوروورثو لپاره منسوخ دې لکه په حدیث کښې راغلی دی ((ان الله تعالی قداعطی كلّ ذی حق حقه الا فلاوصية لوارث)) (۱)- نو دا آیت په نزد داکثرومفسرینو چه شاه ولی الله رحمه الله هم په هغوئ کښې دې منسوخ دې (۲)- بعضې وائی چه دا حکم استحبابی دې اوپه حق دهغه والدینواواقربینوکښې دې چه دمیراث نه محروم وی په یومانع د ارث سره (مدارک) (۳)- حضرت الشیخ رحمه الله فرمائی چه دلته وصیت لپاره دوالدینو، اقربینو ندې مراد بلکه هغوئ ته وصیت کول مراد دی چه خمامیراث په شرعی طریقې سره تقسیم کړئ اوپه سنت طریقه فدیه، صدقه وکړئ اوخور، مور، ښځې ته په میراث کښې حصه ورکړئ دا معنی د بالمعروف ده، اوکه مال ئې نه وُو نو ددین وغیره وصیت دې وُکړی

| فَمَنْ بَدَّلَهٗ بَعْدَ مَا سَمِعَهٗ فَاِنَّمَآ اِثْمُهٗ |
|---|
| پس څوک چې بدل کړي داوصیت روستودهغې نه چې آوریدلې ئې وي نوپس یقیناًګناه ده دبدلولوصرف |
| عَلَى الَّذِيْنَ يُبَدِّلُوْنَهٗ ۭ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۝ فَمَنْ خَافَ |
| په هغه کسانودې چه بدلوی داوصیت، بېشکه الله هرڅهٔ آوریدونکې دې اوپوهٔ دې، پس څوک چې معلومه کړي |
| مِنْ مُّوْصٍ جَنَفًا اَوْ اِثْمًا فَاَصْلَحَ |
| دَ وصیت کوونکي نه غلطي په وصیت کښې په خطائ سره یاګناه په قصد سره نودې اصلاح اوجوړ اوکړي |
| بَيْنَهُمْ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ۝ |
| ددوئ په مینځ کښې پس نشته هیڅ ګناه په هغه باندې، بېشکه الله بخښونکې دېرمهربان دې |

﴿فَمَنْ بَدَّلَهُ﴾ دا زجر دي په بدلولو دوصيت اود ﴿سَمِعَهُ﴾ نه مراد علم دي. مقصود دا دي چه چا ديو مړی وصيت اوريدلي ؤو اوعلم ئی پرې راغلي ؤو اوبيائی دقاضی اوحاکم په حضورکښي غلط بيان وکړو اوپه وصيت کښې يې رد اوبدل وکړو اوقاضی اوحاکم ددغه غلط بيان مطابق حکم او فيصله وکړه په لاعلمی سره نوپه قاضی اوحاکم گناه نشته بلکه گناه صرف په دغه بدلوونکی باندې ده

﴿فَمَنْ خَافَ مِن مُّوصٍ﴾ خاف په معنی د عِلِمَ سره دې (قرطبی) دجنفاً نه مراد خطاءً دې اود اثماً نه مراد عمداً دې مطلب دادې که يووصيت کونکې (قريب الموت) غلط وصيت کوی خطاءً ياعمداً او اوريدونکې ؤرته تلقين وکړی اواصلاح ئی وکړی چه داسې وصيت وکړه نودا تبديل ندې اوگناه نه ده بلکه اصلاح ده ﴿فَأَصْلَحَ بَيْنَهُمْ﴾ په مينځ دميت اووصيت والوکښې.

| يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِيْنَ |
|---|
| اې (١) ايمان والوفرض کړې شوې دې په تاسوروژې نيول لکه چې فرض کړې شوې وې وې پهٔ هغه کسانو چه |
| مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴿١٨٣﴾ |
| ستاسونه مخکښې وؤ ددې دپاره چې تاسوپرهيزگارشئ |

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ كُتِبَ عَلَيۡكُمُ ٱلصِّيَامُ﴾ دا بيان د امرمصلح دې اول وار

صيام مصدر دې يعنې روژه نيول اوبعضو ويليدی چه دا صيغه دجمع ده اومراد ترينه درې روژې د ايام بيض دی چه منسوخ شويدی.

﴿كَمَا كُتِبَ عَلَى ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكُمۡ﴾ دابيان دتخفيف دې ځکه مشقت چه عام شی نو آسان شی او دا تشبيه په نفس وجوب کښې ده اوپه تمامو کيفياتوکښې نده ځکه چه بعضې مخکنو خلقو به هره مياشت کښې درې روژې نيولې (ابن کثير) اوبعضې مخکنو پنځوس ٥٠ روژې نيولې (روح) اودارنگه دروژې نيولوپه طريقه کښې اختلاف ؤو لکه په ابتدأ داسلام کښې چه به دخوب نهٔ بعد خوراك وغيره منع ؤو.

1 - د امر مصلح ذکر ((روژه))

﴿ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴾ دا بيان دحکمت اوفائدې دې دفرضيت دروژې. علماء ددې تشريع په
دوه طريقوسره کوی ١- په روژه نيولوسره نفس ذليل شی ځکه دنفس دذليل کولوذريعه جوع
(لوږه) ده، نو کله چه نفس ذليل اوضعيف شی نو انسان نشی آماده کولې په ګناه باندې او دا
نفس خو اندرونی دشمن دې نوچه دده اصلاح وشی نوبيرونی دشمن چه شيطان دې هغه هم
حمله نشی کولې ځکه چه بيرونی دشمن چه حمله کوی نو د اندرونی دشمن په معاونت سره ئې
کوی، ديوبزرګ مقوله ده چه څه شيطان ته چلينج ورکوم چه څمانه دې معصيت صادرکړی ما
دخپل نفس کمال اصلاح کړيده، نو چه کله دروژې په ذريعې سره دَ نفس اصلاح وشی نو
شيطان هم بيا ډير نقصان نشی رسولې نو تقوی حاصله شی. (٢) دَ روژې په ذريعې سره انسان ته
تربيت ورکړې شو اومشق ئی وشو چه دخپل حلال رزق خوراك سكاك اوجماع نه ځان بچ کولې
شی له وجهِ د امر دالله تعالی نه نو د حرامونه ځان بچ کول خوپه طريقه اولی سره کولې شی.

| |
|---|
| اَيَّامًا مَّعْدُوْدٰتٍ ؕ فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَّرِيْضًا اَوْ عَلٰى سَفَرٍ |
| يو څو ورځې دي شمارلې شوې، پس څوک چې وی ستاسونه مريض يا وي په سفرباندې اوروژه اونه ساتي نوپه دُ باندې |
| فَعِدَّةٌ مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ ؕ وَعَلَى الَّذِيْنَ يُطِيْقُوْنَهٗ |
| شمارل ددغه روژوپوره کول دې دنورو ورځونه. اوپه هغه خلقوچې طاقت دروژې لري اوبيا هم روژه اونه ساتي نو په دوئ |
| فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِيْنٍ ؕ فَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَهُوَ خَيْرٌ لَّهٗ ؕ وَاَنْ تَصُوْمُوْا |
| فديه دخوراک دمسکين ده، پس چا چې په خپله خوښې سره نيکي اوکړه نودا ډېره غوره ده دده دپاره، او روژې |
| خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝ |
| نيول ډېر غوره دی تاسولره کچرې يئ تاسوپوهيږئ |

﴿ اَيَّامًا مَّعْدُوْدٰتٍ ﴾ دلته ((اياما)) مفعول فيه دې د ((كُتِبَ)) لپاره او دا بيان دبل تخفيف
دې يعنې روژه يوڅو ورځې ده، تمام عمرخونه ده چه تاسو ته ګرانه شی.

﴿فَمَنْ كَانَ﴾ دا بيان دهغه عذرونو دې چه دهغې په وجه افطار جائزوی، اودمريض نه
هغه مريض مراد دې چه روژه هغه ته ضرر رسوی او((على سفر)) دسفرنه مراد شرعی سفر دې
((فعدةٌ)) له دې نه مخکښې ((فافطر)) مقدر دې يعنې دعذر په وجه افطار جائزدې ليکن بيا به
شمار پوره کول ضروری وی.

﴿وَعَلَى ٱلَّذِينَ يُطِيقُونَهُۥ﴾ دا بیان دبل تخفیف دې چه بیا منسوخ شویدې، په ابتدأ د اسلام کښې چه روژه فرض شوه نو د روژه دار لپاره دا رعایت ؤو که روژه نه نیسی اوفدیه ورکوی نو دا کولې شی اوکه روژه نیسی نو دا افضل ده ((وان تصوموا خیر لکم)) نو بیا دا حکم منسوخ شوو په وروستنی آیت سره ((کمافی حدیث البخاری)) نو ددې توجیه په بنأ باندې دا آیت منسوخ دې او ډیر اهل علم پدې قائل دی چه **دا منسوخ نه دې** او د **آیت یوڅو توجیهات کوی**: ۱- دَ ((یطیقونه)) ،نه مخکښې ((لا )) مقدر دې ((ای لایطیقونه)) ۲- ((یطیقون)) باب افعال دې او د باب افعال یوخاصیت سلب دمأخذالاشتقاق دې، نو د ((یطیقون)) معنی داده چه مسلوب الطاقت وی،یعنې طاقت د روژې نه لری، ۳- فرق دې په مابین دوسع. او دطاقت کښې، ((وسع قدرت علی وجه السهولة)) ته وائی اوطاقت ((قدرت مع الشدة اومع المشقت)) ته ویلې شی اودلته دطاقت ماده استعمال شوې ده نو ددې معنی داشوه چه کوم خلق په مشقة سره د روژې قدرت لری چه هغه شیخ فانی ،حامله ، مرضعه دی . ۴- شاه ولی الله رحمه الله وائی چه پدې آیت کښې دصدقة الفطر بیان دې بعد د بیان دصوم نه، نو ((علی الذین یطیقونه)) خبرمقدم دې او فدیه مبتدأ مؤخره ده، نومعنی داده چه ((وفدیة علی الذین یطیقونه)) اوچونکه ((فدیة)) مبتدأ ده نومقدم ده رتبةً نو اضمار قبل الذکرصرف لفظاً راځی اورتبةً نه راځی او داجائز دی اوضمیر دمذکر ورته ځکه راجع شو چه ((فدیة)) په تاویل دطعام مسکین سره دې نومطلب دآیت دادې چه فدیه یعنې صدقة الفطرواجب ده په هغه چاچه طاقت لری اومالك نصاب وی اود ﴿وَأَن تَصُومُواْ خَيْرٌ لَّكُمْ﴾تعلق دصوم شوال سره دې چه شپږ روژې دی لکه په حدیث شریف کښې راغلیدی ((من صام رمضان ثم اتبعه ستاً من شوال فكانما صام الدهر))

| | | | |
|---|---|---|---|
| شَهْرُ رَمَضَانَ ٱلَّذِىٓ أُنزِلَ | فِيهِ ٱلْقُرْءَانُ | هُدًى | لِّلنَّاسِ |
| میاشت درمضان هغه ده | چې نازل کړې شوې دې پدې کښې قران | چې لارخوونکې دې | تولوخلقوته |

اوپدې کښې

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَبَيِّنَٰتٍ مِّنَ ٱلْهُدَىٰ | وَٱلْفُرْقَانِ ۚ | فَمَن شَهِدَ | مِنكُمُ | ٱلشَّهْرَ |
| واضح دلائل دهدایت دی او | دحق اوباطل جدائ اوامتیاز، | پس څوک چې حاضر شي | پۀ تاسو کښې | دې میاشتې ته |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| فَلْيَصُمْهُ ۖ | وَمَن كَانَ مَرِيضًا | أَوْ | عَلَىٰ | سَفَرٍ |
| نوخامخادې روژه اونیسي، | اوهغه څوک چې مریض وي | یا | په | سفرباندې وي |

اوروژه اونۀ ساتي نوبدلۀ باندې

فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ ۗ يُرِيدُ اللَّهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَا يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ

شمار دي د روژي پوره كول، د نورو ورځو نه. اراده كوي الله تاسو ته د آسانئ اونه لري اراده تاسو ته د سختئ

وَلِتُكْمِلُوا الْعِدَّةَ وَلِتُكَبِّرُوا اللَّهَ عَلَىٰ مَا

او دپاره د دې چې پوره كړئ تاسو د روژه دپاره د دې چې لوئي اووايئ د الله په هغه طريقې سره

هَدَاكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ۝

چې خودلې ئې ده تاسو ته او دپاره د دې چې شكر اوكړئ د الله

﴿شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِيٓ﴾ دا بيان د ﴿أَيَّامًا مَّعْدُودَٰتٍ﴾ دې، د ﴿أُنزِلَ فِيهِ الْقُرْءَانُ﴾ دوه ترجمې دى ١- پدې كښې نزول د قرآن شروع شويدې، په اول سنه نبوى كښې د سورة علق ابتدائى آياتونو پدې كښې نزول وشوو. ٢- ټول قرآن د رمضان په يو حصه كښې «ليلة القدر» كښې دلوح محفوظ نه آسمان د دنيا ته نازل شويدې او بيا حسب ضرورت په ٢٣ كلونو كښې مكمل شويدې

﴿هُدًى لِّلنَّاسِ﴾ دا حال دې د «القرآن» نه او په «الناس» كښې اشاره ده چه دا كتاب عالمى كتاب دې لكه څرنګه چه نبى هم د كل عالم لپاره دې «ومارسلناك الا كافة للناس» او دغه شان دا امت هم دې «اخرجت للناس»

﴿وَبَيِّنَٰتٍ مِّنَ الْهُدَىٰ﴾ دا دويم حال لازمه دې د «القرآن» نه او من په «من الهدى» كښې په معنى دلام سره دې يعنې قرآن واضح نشانى ده لپاره د هدايت او يا «من» په خپله معنى سره دې نو بيا د هدايت نه مراد هغه هدايت دې چه په كتب سماويه سابقو كښې موجود ؤو.

﴿ وَالْفُرْقَانِ ﴾ عطف دې په «الهدى» باندې، يعنى دا قرآن لارخودونكې دې ټولو خلقو ته او واضح احكامات او نشانات بيانوونكې دې د هدايت (مخكنى) او دا قرآن جدائى كوونكې دې په مابين د حق او باطل كښې.

﴿فَمَن شَهِدَ مِنكُمُ الشَّهْرَ﴾ پدې سره نسخ راغله د هغه تخيير نه چه ابتدأ كښې ؤو

﴿وَمَن كَانَ مَرِيضًا﴾ دا حكم ځكه معاد شو چه څوك دا توهم ونكړى چه تخير په مابين د صيام او فديه كښې منسوخ شو نو رخصت به مريض ته او مسافر ته هم منسوخ وى

...لته څلورخبرې ذکرشوې دي ۱- معاف کیدل د روژې په عذرسره ۲- ورستوکول د روژې ۳- قضا ګرزول ۴- دالله تعالی دا حکم منل ، ددې لپاره حکمتونه په ترتیب سره بیانیږي

﴿ يُرِيدُ اللَّهُ بِكُمُ الْيُسْرَ﴾ دا د اول حکم حکمت دې یعنې دعذر دوجه نه روژه معاف کیدل آسانی اوسهولت دې. ﴿وَلَا يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ﴾ دا ددویم حکم لپاره حکمت دې یعنې که دورستوکولو د روژې اجازت نه وې نو دا به عسراوسختی وه. ﴿وَلِتُكْمِلُوا الْعِدَّةَ﴾ دا دقضا لپاره حکمت دې. ﴿وَلِتُكَبِّرُوا اللَّهَ﴾ دا د څلورمې خبرې حکمت دې.

| أُجِيبُ ط | قَرِيبٌ | فَإِنِّي | عَنِّي | عِبَادِي | سَأَلَكَ | وَإِذَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| قبلوم | چې بېشکه څه نزدې یم. | (نوورته اووایه څمادطرفه) | باره څما کښې | بندګان څماپه | ستانه | اوکله چې تپوس کوې |

| بِيْ | وَلْيُؤْمِنُوا | لِيْ | فَلْيَسْتَجِيبُوا | دَعَانِ لا | إِذَا | الدَّاعِ | دَعْوَةَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| (په دعاقبلولو) څما | او یقین دې کوي | حکمونه څما ، | نو پس اودې مني | څمانه، | کله چې دعا غواړي | دعاکوونکي | دعاد |

| يَرْشُدُونَ ۝ | لَعَلَّهُمْ |
|---|---|
| خپل مقصدته اورسي | دپاره ددې چې دوئ |

﴿وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي﴾ هر کله چه روژه موجب دقرب الهی وه نو ددې وجې نه پدې آیت کښې دقرب الهی ذکر دې اوبل دا چه د افطار وقت د اجابت د دعاء ؤو نو پدې آیت کښې د اجابت ددعا ذکر دې ﴿عَنِّي﴾ یعنی څما د قرب اوبُعد په باره کښې، چنانچه صحابه کرامو دارنګه سوال کړې ؤو ((اَقَرِيبٌ ربنا فنناجيه ام بعيدفنناديه)) (بيضاوی). ﴿فَإِنِّي قَرِيبٌ﴾ ((ای فقل هم انی قريب)) نو په جهر سره دعاء کولو ته ضرورت نشته. ﴿أُجِيبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ﴾ د **اجابت لپاره درې شرطونه** ذکرکیږي اول داچه ﴿إِذَا دَعَانِ﴾ یعنې سوال کول اوغوښتل ۲- دویم دا چه دالله تعالی حکمونه منل ﴿فَلْيَسْتَجِيبُوا لِي﴾ ۳- اودریم دا چه یقین کول چه الله تعالی قبلوونکې دې

﴿وَلْيُؤْمِنُوا بِي﴾ دایمان نه مراد یقین دې په قبلولو ددعا باندې ((قال رسول الله ﷺ ادعوالله وانتم موقنون بالاجابة)) .

| لَّكُمْ | لِبَاسٌ | هُنَّ ط | نِسَآئِكُمْ | إِلَى | الرَّفَثُ | الصِّيَامِ | لَيْلَةَ | لَكُمْ | أُحِلَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ستاسو | دې جامې | دوئ | ښځو سره، | بیبیانو | کېدل خپلو | یوځائې | دروژې کښې | په شپه | حلال کړې شوې دې ستاسودپاره |

وَ اَنْتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ ؕ عَلِمَ اللّٰهُ اَنَّكُمْ كُنْتُمْ تَخْتَانُوْنَ

اوتاسو جامې يئ دهغوئ دپاره. الله ته معلوم دي چې بېشکه تاسو به په خيانت اونقصان کښې اچولې وې

اَنْفُسَكُمْ فَتَابَ عَلَيْكُمْ وَعَفَا عَنْكُمْ ۚ فَالْـٰٔنَ

خپل نفسونه (کچرې دا حکم باقي پاتې شوې وې) نوتوجه درحمت ئ اوکړه په تاسواوعفوه ئې اوکړه تاسوته. نواوس

بَاشِرُوْهُنَّ وَابْتَغُوْا مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ ۠ وَكُلُوْا وَاشْرَبُوْا حَتّٰى

نزديکت کوئ ددوئ سره اوطلب کوئ هغه څيز چې مقرر کړې وي الله تاسوله. اوخورئ اوڅکئ ترهغه پورې

يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْاَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْاَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ ۠ ثُمَّ اَتِمُّوا الصِّيَامَ اِلَى الَّيْلِ ۚ

چې ښکاره شي تاسو ته تارسپين دتار تور نه چې صبادې. بياپوره کړئ روژې ترشپې پورې

وَلَا تُبَاشِرُوْهُنَّ وَاَنْتُمْ عٰكِفُوْنَ ۙ فِي الْمَسٰجِدِ ؕ تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ

اونزديکت مکوئ ددوئ سره اوحال دادې چې تاسواعتکاف کوونکي يئ په جماعتونو کښې، داالله حدود (پولې) دي

فَلَا تَقْرَبُوْهَا ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ اٰيٰتِهٖ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ ﴿۱۸۷﴾

پس مه نزدې کيږئ ديته، دغسې بيانوي الله احکام خپل خلقوته دپاره ددې چې دوئ متقيان شي

﴿ اُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ﴾ اول چه روژه فرض شوه نو ډيرتخفيف ؤو په کښې. تخير ؤو که څوك روژه نيسی اوکه فديه ورکوی، بيا تخيرمنسوخ شو اوتشديد راغې هغه داسې چه دشپې به د اُده کيدو نه بعدخوراك سكاك جائزنه ؤو او ذ بی بی سره به صحبت جائز نه ؤو نو پدې آيت کښې ددغه تشديد رفع کيدلوحکم ذې، **د آيت دشان نزول** په باره کښې دوه واقعې ذکر شويدی **اوله واقعه** داده چه حضرت عمرؓ په رمضان کښې دشپې کورته راغې اودخپلې بی بی نه يې مطالبه دجماع وکړه نوهغې ورته ووېل قد نمتُ يعنی زه وده شوی ووم (فظن انها تعتل) يعنې حضرت عمرؓ دا گمان وکړو چه دا بهانه کوی نوصحبت ئې وکړو او سهار دمعذرت کولولپاره دحضورﷺ مجلس ته پيش شو نونبیﷺ وفرمايل «لَمْ تكن حقيقًا بذالك ياعمر» (يعنې اې عمر دا تاسره مناسب نه وؤ)، نو بيا چه عمرؓ کورته لاړونو دا آيت نازل شو نونبیﷺ دې خبر کړو. (ددې روايت په بنا دا آيت د موافقاتو د عمرؓ نه دې). **دويمه واقعه** داسې ده چه دقيس بن صرمه انصاریؓ روژه وه او د ورځې ئې دخپل کهجوروپه باغ کښې با مشقته عمل او کار کړې ؤو، کورته راغې نوستړې ؤو او د افطارپه

وخت کښې ئې دخپلې بی بی نه دخوراك دڅه شی طلب وکړو نوهغوئ ورته وویل چه په کورکښې څه نشته خوچرته طلب کوم یعنې دګاوندیانو وغیره نه قرض کوم. نوچونکه دې ستړې او ستومانه ؤو نوتکیه ئې ولګوله او اوده شو نو چه بی بی ئې دخوراك څه شې راوړو او دې اوده ؤو نوهغې وه ویل "خیبة لك"، نوشپه ئې هم په نهارې تیره کړه صباح ورځ بیا په نهاره ئې روژه کړه نوچه کله دغرمې وخت شونو پده باندې بیهوشی راغله نوحضور ﷺ ته ددې تذکره وکړې شوه نودا آیت نازل شو.

د «الرفث» نه مراد نزدې کیدل اوجماع ده «رفث» په اصل کښې هرهغه قول اوعمل چه د زنانه سره کیږی هغې ته وایې.

﴿هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ وَأَنتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ﴾ لکه څرنګه چه جامه پرده وی اوخائست وی اوعزت وی او دبدن سره لازم وی نودغه شان ښځه اوخاوند دیو بل لپاره وی

﴿عَلِمَ ٱللَّهُ أَنَّكُمْ كُنتُمْ تَخْتَانُونَ﴾ ۱- بعضې صحابه خطاشول چه ورستودخوب نه ئې دخپلو ښځوسره نزدیکت وکړو نو دیته خیانت ویلې شویدې لیکن الله تعالی د توبې اومعافی اعلان وکړو ﴿فَتَابَ عَلَيْكُمْ وَعَفَا عَنكُمْ﴾

-۲- که دغه حکم یعنې حرمت د اکل اوشرب اودجماع باقی پاتی شوې وې نو تاسو به خپل ځان په خیانت کښې اچولې وې.

﴿فَتَابَ عَلَيْكُمْ وَعَفَا عَنكُمْ﴾ بنا په اوله توجیه دا اعلان د توبی اود معافئ دې او بنا په دویمه توجیه د ﴿فَتَابَ عَلَيْكُمْ﴾ معنی تخفیف راوستل دی اود ﴿وَعَفَا عَنكُمْ﴾ نه مرادوسعت دحکم دې ﴿فَٱلْـَٔـٰنَ بَـٰشِرُوهُنَّ﴾ ددینه دشان نزول د اولې واقعې حکم معلوم شو «باشروهن» په معنی د «جامعوهن» سره دې او جماع ته مباشرت ځکه وائی چه په جماع کښې «تلاصق» پیوست والی دبشرینو راځی.

﴿وَٱبْتَغُوا۟ مَا كَتَبَ ٱللَّهُ لَكُمْ﴾ مراد ددینه نیت داولاد صالحه دې او دا موجب د اجر دې، او هر چه تلذذ دې نو هغه په غیردنیت نه جاصلیږی نوکتب الله په معنی د «قدرالله لکم بالجماع» سره دې یا کتب الله په معنی د «احل الله لکم» سره دې یعنې جماع اونزدیکت په هغه طریقه کوئ چه تاسوته الله تعالی حلاله کړې وی په شرع کښې، نو دمسلمان لپاره

پکارده چه په نکاح کولوسره اوجماع سره نیت صحیح وکړی یعنې اصلاح دنفس اوتکثیر دامت مسلمه څکه چه اجر اوثواب په غیر دنیت نه. نه حاصلیږی

﴿وَكُلُوا۟ وَٱشْرَبُوا۟﴾ ددینه دشان نزول ددویمې واقعې حکم معلوم شو ﴿حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ﴾ دا غایه دد واړوحکمونوسره متعلق ده. یعنې مباشرت. اواکل او شرب. اوددینه فقهاؤ دامسئله مستنبطه کړې ده چه غسل دجنابت په رمضان کښې دطلوع فجرنه ورستوکول ضررنه رسوی روژی ته څکه چه ددې آیت نه معلومه شوه چه دوخت طلوع پورې دجماع کولو اجازت دې نو غسل به بالضروره روستوکوی . لفظ د ((حتّی)) لپاره د انتهأ دغایې دې نومعلومه شوه چه جواز د اکل اوشرب په طلوع دفجرسره ختم شو نو دطلوع نه بعد اګرچه یومنټ بعدوی خواکل اوشرب مفسد دصوم دې اولفظ د ((يتبيّن)) کښې اشاره ده تیقن دصبح صادق ته یعنی تر څوپورې چه تیقّن دصبح صادق نه وی نو اکل او شرب حرام نه دې اومفسد دصوم نه دې حاصل دادې چه لفظ دَ ((حتّی)) اشاره ده دیته چه بعد دطلوع فجرنه اکل اوشرب حرام اومفسد دصوم دې اولفظ ((يتبيّن)) سره اشاره ده دیته چه قبل د تیقین دصبح صادق نه اکل اوشرب حرام نه دې اوصرف ددې وهم دوجې نه چه شاید وخت دصبا به داخل شوې وی اکل او شرب حرام ګنړل ندی پکاراؤ دبعضې صحابه کرامو واقعات چه دوئ سحری خوړلواوصباح به داخل شوې ؤو محمول دی پدې باندې چه دوئ ته یقین دصباح نه ؤوشوې. او دارنګه په کومو احادیثوکښې چه ذکرشوی دی چه د اذان نه بعدبه صحابه کراموخوراك کولو نوپه بل حدیث کښې ددې تصریح ده چه هغه اذان دبلال ﷺ قبل از وقت ؤو ((لايغرنكم اذان بلال فانه يؤذن بليل)) اوپه بل روایت کښې ((ينتبه نائمكم ويرجع قائمكم)) تصریح موجوده ده امام ابن کثیرهم دغه روایات پدې محمل حمل کړې دې ورنه دنص صریح مخالفت عام مسلمان نشی کولې نو دصحابهٔ کرامو ﷺ نه خو ددې تصورهم نشی کیدې خصوصاچه دآیت په آخرکښې دا مذکوردی چه ((تلك حدود الله فلاتقربوها)) چه پدې کښې د احتیاط تاکید دې

﴿ٱلْخَيْطُ ٱلْأَبْيَضُ مِنَ ٱلْخَيْطِ ٱلْأَسْوَدِ﴾ خیط الابیض تعبیردې د رڼړا دصبا نه اوخیط اسود تعبیردې دتیارې دشپې نه. ﴿مِنَ ٱلْفَجْرِ﴾ بیان دخیط ابیض دې. بخاری وغیره روایت کړې دې چه ؤو بعضې کسان چه اراده دصوم به ئې کوله نو دوه تارونه به ئې په ښپې کښې

تړلی ؤو یوسپین اوبل تور نو اکل او شرب به ئی ترهغې پورې کولوچه ترخوپورې به یې ددوا ړوجدائی نشوه کولې، نونازل کړوالله ﷻ داچه «من الفجر» نو دوئ ته معلومه شوه چه مراد دخیط ابیض نه صباح دې اوعدی بن حاتمؓ وائی چه کله نازل شودا آیة «وکلواوشربوا حتی یتبین لکم الخیط الابیض» نو ما را واخستل دوه مزی اوکیښودل مې دخپل تکیه «بالخت» د لاندې اوهغې ته به مې کتل نوچه دهغوئ جداوالې به راته معلوم شو نو اکل اوشرب به مې بس کړه اوکله چه دنبی ﷺ حضورته حاضرشوم اوخبرمې کړو په دې خپل دغه عمل باندې نوماته ئی اوفرمایل چه «انك لعریض القفا» اوپه یو روایت کښې دی چه ((ان وسادتك اذا لعریض انما ذالك بیاض النهارمن سوادالليل)).

﴿ثُمَّ أَتِمُّوا ٱلصِّيَامَ إِلَى ٱلَّيْلِ﴾ دا بیان د انتها دصوم دې لکه چه په اول آیت کښې د ابتدأ بیان ؤو

﴿وَلَا تُبَٰشِرُوهُنَّ وَأَنتُمْ عَٰكِفُونَ فِي ٱلْمَسَٰجِدِ﴾ په دې کښې د اعتکاف بیان دې چه سنّت کفایه دې. دلفظ د «فی المساجد» نه معلومه شوه چه اعتکاف په هرمسجد کښې جائز دې چه آباد وی اوپنځه وخته مونځ باجماعت پکښې کیږی خواه که جامع مسجدوی اوکه نه وی. اودمعتکف لپاره دمسجدنه وتل جایزنه دی بلکه په وتلوسره اعتکاف فاسدیږی. البة دشرعی حاجت (لکه مونځ دجمعې شو) اوطبعی حاجت لپاره وتل جائزدی اوکه معتکف دخپل کور بیت الخلاء ته دقضأ حاجت لپاره ځی نواجازت دې اودارنګه که چرې دطعام راوړلو لپاره څه انتظام نه ؤو نوپه خپله کورته تلې شی خوطعام به کورکښې نه خوری بلکه مسجدته به ئی راوړی اودلته به ئی خوری نوهرکله چه دمعتکف لپاره ددغه مذکورضروریاتوپه وجه کورته تلل جائزؤو نو توهم کیدې شونوچه مباشرت به هم جائزوی چه په ماقبل کښې په

﴿أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ ٱلصِّيَامِ ٱلرَّفَثُ﴾ کښې تصریح شوې وه نودلته ددغه توهم ازاله ؤکړی شوه اوددینه معلوم شو جواب دیو **سوال** اوهغه داچه دمعتکف په مسجدکښې هسې هم قدرت نه لری په جماع کولونو نهی ته ئی څه حاجت دې، **جواب** دادې چه پدغه مذکوره صورتونوکښې قدرت لری نود دې وجه نه ئی ذکروشو

﴿تِلْكَ حُدُودُ ٱللَّهِ فَلَا تَقْرَبُوهَا﴾ په دې کښې اشاره ده چه د الله تعالی په تمامو احکامانو

کښې اوخصوصاً د روژې په باره کښې احتیاط په کار دې اوددې وجه نه مبالغه په استنشاق کښې منع کړې شوې ده اودخپلې بی بی سره بوسه وغیره هم منع شوی دی په حالت د روژې کښې

وَلَا تَأْكُلُوٓا اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ وَتُدْلُوْا بِهَآ اِلَى الْحُكَّامِ

او مه (۱) خورئ مالونه دیوبل خپل مینځ کښې په باطله طریقه اومه ورکوئ دامالونه حاکمانوته په رشوت کښې

لِتَأْكُلُوْا فَرِيْقًا مِّنْ اَمْوَالِ النَّاسِ بِالْاِثْمِ وَ اَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ

دپاره ددې چې اوخورئ تاسویوحصه دمالونودخلقو په ګناه سره اوحال دادې چې تاسوپوهیږئ

﴿وَلَا تَأْكُلُوٓا أَمْوَٰلَكُم بَيْنَكُم بِٱلْبَٰطِلِ﴾ د امر مصلح (روژې نه) بعد د بل امر انتظامی ذکر دې . او د اکل نه مراد مطلق اخذ (اخستل دی) اومراد دباطل نه هره حرامه طریقه ده خواه که غصب وی اوکه سرقه وی اوکه بیع باطله ،فاسده وی اودارنګه په ارتکاب د بدعاتو سره یا نذر لغیرالله سره چه حاصلیږی دا ټول په کښې داخل دی ﴿وَتُدْلُوا۟ بِهَآ﴾ دا په تاکلوا عطف دې نو د (لا) ماتحت دې (ای لاتدلوا) د ((بها)) ضمیر راجع دې اموالوته او (باء) صله د ((تدلوا)) ده. او د ((ادلاء)) اصل کښې معنی داده چه کوهی ته رسئ آویزانه کړې شی دڅه شئ دراؤباسلو لپاره. اودلته ترینه مراد رشوت دې یعنې حکامو ته خپل مالونه په رشوت سره مه ورکوئ ﴿لِتَأْكُلُوا۟﴾ دا علت دمنفی لپاره دې یعنې ورکول د اموالو ددې لپاره چه تاسو واخلئ اوحاصل کړئ ﴿فَرِيقًا مِّنْ أَمْوَٰلِ ٱلنَّاسِ﴾ یعنې څه حصه دمالونو دخلکو په ګناه سره نو رشوت دیته ویلې شی چه دبل چامال یاحق حاصلول مقصود وی اوکه څوک دخپل مال یاحق دحصول لپاره حاکم ته مال ورکوی نو د ورکونکی دطرفه دا رشوت نه دې اواخستونکی ته حرام دی

يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْاَهِلَّةِ ؕ قُلْ هِیَ مَوَاقِيْتُ لِلنَّاسِ

(۲) تپوس کوې ستانه په باره دمیاشتو کښې ته ورتهٔوایه چې دا آله دپیژندلودوخت ده دپاره دمعاملاتو دخلقو

۱ - د امر انتظامي ذکر
۲ - د امر مصلح روژې سره متعلق دیوسوال جواب.

| وَالْحَجِّ ؕ وَلَيْسَ الْبِرُّ بِاَنْ تَاْتُوا الْبُيُوْتَ مِنْ ظُهُوْرِهَا وَلٰكِنَّ الْبِرَّ مَنِ اتَّقٰى ۚ |
|---|
| اودپاره دحج، اوداخو څه نیکي نه ده چې تاسوراځئ کورونوته دشاطرفنه لیکن نیکي داده چې څوک خان بچ کړي دحراموڼه |
| وَأْتُوا الْبُيُوْتَ مِنْ اَبْوَابِهَا ۪ وَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ۞ وَقَاتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ |
| اوراځئ کورونو ته دطرفه دروازو دهغوئ نه اوویریږئ دالله نه دپاره ددې چې کامیاب شئ اوجنګ کوئ په لار دالله کښې |
| الَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوْا ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ ۞ |
| دهغه چاسره چې جنګ کوي تاسوسره اودحدنه تجاوزمه کوئ ، بېشکه الله محبت نهٔ کوي تجاوزکوؤنکوسره |

﴿يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْاَهِلَّةِ﴾ دا د امرمصلح یعنې روژې متعلق دیوسوال جواب دې. **سوال** دا دې چه روژه بذات خود موجب دتقرب ده نو د رمضان میاشت کتل ولې ضروری دی په غیر د رمضان نه دې دیرش ۳۰ روژی وساتلې شی، نوالله تعالی ته به قرب حاصل شی . نوالله ﷻ **جواب** ورکوی چه د روژې لپاره خاص وخت مقرر دې او ستاسو دا سوال داسې دې لکه ستاسو هغه رسم چه د احرام د حالت نه به کورته دشا د طرفه راتلئ

«داتوجیه دحضرت الشیخ رحمه الله ده» اوشاه ولی الله رحمه الله فرمائی چه بعضې خلقوتپوس کړې ؤو چه دحج لپاره د اشهرحج تعین ضروری دې یا حج په نورومیاشتوکښې ادا کیدیشی نوجواب ورکړې شو چه دحج لپاره د اشهرحج تعّین ضروری دې پدې دواړو توجیهنوسره جواب مطابق دې ددې سوال سره، لیکن جمهورمفسرین وائی چه صحابه کرامو دَ میاشتې دَ وړوکی کیدلو او غټیدلو متعلق تپوس کړې وؤ، نو که دا سوال دحکمت نه وی یعنې پدې غټیدلو او وړوکی کیدلوکښې حکمت څه دې، نو بیا جواب دسوال سره مطابق دې خکه چه سوال دحکمت نه ؤو اوپه جواب کښې حکمت بیان شویدې اوکه سوال دعلت نه وی یعنې دمیاشتی دوړوکی کیدلواوغټیدلو علت څه دې نو په جواب کښې علت ندې بیان شوې بلکه حکمت بیان شویدې، نو دا جواب علی اسلوب الحکیم دې، جواب علی اسلوب الحکیم دیته وائی چه جواب ورکړې شی علی خلاف ما یترقبه السایل یعنې دسائل دتوقع خلاف جواب ذکرشی، او اشاره وشی دیته چه دسائل لپاره دغه قسم سوال مناسب نه ؤو کوم چه ده کړیدې بلکه مناسب ورته هغه سوال ؤو چه دکوم جواب ذکرشو، دلته صحابؤ ته اشاره شوه چه علت معلومول ستاسو لپاره موجب کمال نه دې او ددغه فلسفې علم موجب دَ ثواب نه دې لهذا تاسو دمیاشتې د وړوکی کیدلو اوغټیدلوحکمت معلوم کړئ او هغه دادې چه

﴿هِيَ مَوَٰقِيتُ لِلنَّاسِ وَٱلۡحَجِّ﴾ يعني دا مياشت آله دشناخت د اوقاتو ده. «مواقيت» جمع دميقات ده اوميقات كله په معنى دمطلق وخت سره راځي اوكله په معنى دهغه وخت سره راځي چه په هغې كښې خاص عمل مقرركړې شوې وى لكه مواقيت الحج. اوكله په معنى د آله دشناخت دوخت سره راځي. دلته دا دريمه معنى مناسبه ده يعنى آله دشناخت داوقاتو «لِلنَّاسِ» معنى ئ ده. دخلقو د اختيارى معاملاتو لپاره لكه بيع. شرأ وغيره ﴿وَٱلۡحَجِّ﴾ يعني عبادات لكه صوم. حج . زكوة شو نو د وجوب حج صوم اوزكوة لپاره د قمرى مياشتې حساب معتبر دې او دا ځكه چه پدې حساب باندې هرځوك پوهيږى خواه كه تعليم يافته وى اوكه ان پړ وى او د دې وجې نه د دې **قمرى مياشتو حساب معلومول فرض كفايه دى** په خلاف دشمسى مياشتو چه په هغې هرځوك نه پوهيږى. ﴿وَلَيۡسَ ٱلۡبِرُّ بِأَن تَأۡتُواْ ٱلۡبُيُوتَ﴾ دا رد دې دجاهلية د زمانې ديورسم او هغه رسم داؤو چه دوئ به دحج نه په واپسئ كښې خپل كور ياخيمې ته دشا د طرفه داخليدل او دا به ئې كارثواب گنړلو. او دا دليل دې پدې باندې چه كوم عمل په شرع كښې ثابت نه وى هغه عمل ثواب گنړل او دثواب په نيت سره كول بدعت دې اوموجب دگناه دې اوعلمأ كرام فرمائى چه دا اصل دې درد دبدعاتو لپاره.

تر دې ځايه پورې درې امورانتظاميه ذكرشو قصاص، وصيت، مال غيرنه اجتناب او يو امر مصلح «صوم» ذكرشو نواوس ذكردجهاد كيږى

﴿وَقَٰتِلُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ﴾ دا ذكر دجهاد دې اول وار. مسلمانانو په مكه معظمه كښې ديارلس ۱۳ كاله انتهائى دمظلومئ په حالت كښې تيركړل آخر مدينى ته ئې هجرت وكړو ليكن مشركينو هلنه هم په آرام سره نه پريخودل. نوالله تعالى مسلمانانوته دمدافعت لپاره دجهاد اجازت وركړو. اودا اول آيت دې لپاره دحكم دقتال لكه دا رأى د اكثرصحابه كرامو ﵃ تابعينو ﵏ ده اوبعضو ويلى دى چه اول حكم دجهاد هغه آيت نه ثابت شوې دې چه په سورت حج كښې دې اوهغه دادې چه « أُذن للذين يقاتلون ــ الايه».

جهاد په دوه قسمه دې يو اقدامى، اوبل دفاعى. پدې آيت كښې ددفاعى جهاد ذكر دې د فى سبيل الله معنى ده «لاعلاء دين الله» يعني مقصود دجهاد نه اعلاء دكلمة الله ده. نوكوم قتال چه ملك گيرى ياپه دولت باندې دقبضې كولوپه نيت سره وى يا دبل څه دنياوى مقصد لپاره وى نوهغه شرعى جهاد ندې. اوهم ددې وجه نه صحابه كراموته ﵃ په مكه كښې دقتال

کولو اجازت نه ؤو چه ددوئ تربیت وشی اوددوئ د زړونو نه تمام جذبات ختم شی حتی چه ظالمانه دخپل ظلم بدله اوملك قبضه کول، دولت حاصلول وغیره تمام جذباتی نیتونه ختم شی اوصرف اوصرف یونیت اوجذبه پاتې شی اوهغه داچه «لتکون کلمة الله هی العلیا». دلته دقتال لپاره درې **شرطونه** ذکردی ۱- تاسوابتدأ مکوئ په قتال بلکه دفاع کوئ «دفاعی جهاد» ۲- جنګ صرف دهغه خلقوسره کوئ چه دوئ تاسوسره جنګ کوی یعنې په میدان جنګ کښې تاسوسره جنګیږی یادشمن ته کومك ورکوی، یاجنګی تدبیرونه اومشورې ورکوی دادواړه معلومیږی د ﴿ٱلَّذِينَ يُقَـٰتِلُونَكُمْ﴾ نه.

۳- ﴿وَلَا تَعْتَدُوٓا۟﴾ ددې په تفسیرکښې دحضرت عمربن عبدالعزیز قول دې چه «لاتقاتل من لایقاتلك یعنی النسأ والصبیان والرهبان»یعنی کوم خلق چه دجنګ کولوقابل نه وی لکه زنانه، بچی ، بوډاګان او رهبان نوهغه مه قتلوئ اودهغوئ قتلول تعدی ده.

﴿إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ ٱلْمُعْتَدِينَ﴾ دا تعلیل دې دحکم سابق لپاره.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| وَٱقْتُلُوهُمْ | حَيْثُ | ثَقِفْتُمُوهُمْ | وَأَخْرِجُوهُم | مِّنْ | حَيْثُ أَخْرَجُوكُمْ |
| اوقتلوئ دوي هرځائي چې ئې اوموميئ اواوباسئ دوئ دهغه ځائي نه ([1]) چې ویستلې ئې تاسو | | | | | |
| وَٱلْفِتْنَةُ | أَشَدُّ | مِنَ ٱلْقَتْلِ ۚ وَلَا تُقَـٰتِلُوهُمْ | عِندَ ٱلْمَسْجِدِ | ٱلْحَرَامِ | حَتَّىٰ |
| اوشرک کول ډیر سخت ګناه دې دقتل نه، اوجنګ مه کوئ دوئ سره دمسجدحرام په خوا کښې ترهغې | | | | | |
| يُقَـٰتِلُوكُمْ | فِيهِ ۖ | فَإِن | قَـٰتَلُوكُمْ | | |
| چې دوئ جنګ نه وي شروع کړي ستاسوسره په هغي کښې نوپس کچرې دوئ جنګ شروع کړوستاسوسره | | | | | |
| فَٱقْتُلُوهُمْ ۗ كَذَٰلِكَ جَزَآءُ ٱلْكَـٰفِرِينَ ﴿١٩١﴾ | | | | | |
| نوقتلوئ دوئ دغسې سزا د کافرانو ده | | | | | |

﴿وَٱقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ﴾ دا تعمیم دحکم دقتال دې چه په حرم کښې هم ددوئ قتلول جائز دی.

---

1 - (حیث تعلیلیه) اول علت دمشروعیه قتال.

﴿وَأَخْرِجُوهُم مِّنْ حَيْثُ أَخْرَجُوكُمْ﴾ اخراج يعنى جلاوطن كول دكفارو دا هم يوقسم دجهاد دي او «حيث» يا تشبيهيه دې يعني لكه څرنگه چه تاسوئی وباسلئ دحرم نه نودغه شان دوئ وباسئ دحرم نه، يا «حيث» مكانيه دې يعني وباسئ مشركان دهغه مكان نه (حرم نه) چه تاسوئی ترينه وباسلی ئی، ياتعليليه دې يعني دوئ وباسئ څكه چه تاسوئی وباسلی ئی او رسول پاك ﷺ په كال دفتح كښې ددې حكم تعميل وكړو، هغه كافران چه اسلام ئی نه قبلولو نو هغوئ يې قتل كړل اوبعضې ئی جلاوطن كړل.

﴿وَٱلْفِتْنَةُ أَشَدُّ مِنَ ٱلْقَتْلِ﴾ دفتنة نه مراد شرك دې يعني شرك اقبح (ډيرقبيح) دې دقتل نه نوددوئ قتلول په حرم كښې ارتكاب دقبيح دې لپاره ددفع داقبح، نوځكه جائز دې، يا د «فتنة» نه مراد دادې چه د مؤمن اړول دايمان نه په اكراه اوجبرسره دا زياته سخته ده په مؤمن باندې دهغه دقتلولونه، يا د «فتنه» نه مراداخراج ددې وطن محبوب نه دې يعني دا زيات سخت دې دقتل نه ځكه چه دقتل تكليف زر ختميږي او د اخراج تكليف ډيروخت پورې باقى وى نوچه دوئ تاسوته زيات سخت تكليف رسولې دې نوتاسو ورته ادنى تكليف ورسوئ يعنى قتل.

﴿وَلَا تُقَـٰتِلُوهُمْ عِندَ ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ﴾ دا بيان د آدابو دقتال دې اومراد دمسجد حرام نه تمام حرم دې او ﴿وَلَا تُقَـٰتِلُوا﴾ باب مفاعله ده دطرفينو نه راځى ليكن دا نهى په اعتبار د ابتدأ (شروع كولو) سره ده، يعنې تاسو اول قتال مه شروع كوئ چه دا سبب دمقاتله شى.

﴿حَتَّىٰ يُقَـٰتِلُوكُمْ﴾ دا غايه او انتها د نهى ده او دا هم په اعتبار د ابتدأ سره ده يعنې نهى منتهى كيږى پدې چه دوئ ابتدأ په قتال وكړى ﴿فَإِن قَـٰتَلُوكُمْ﴾ يعنې كه چرې دوئ ابتدأ وكړى په قتال ستاسو سره نو ﴿فَٱقْتُلُوهُمْ﴾ يعنې بيا په حرم كښې ددوئ دقتلولو اجازت دې او دا گناه نه ده او دحرم بې حرمتى نه ده ځكه تاسو خپله دفاع كوئ.

﴿كَذَٰلِكَ جَزَآءُ ٱلْكَـٰفِرِينَ﴾ دا وضع د اسم ظاهرده په ځائ د ضمير باندې «اى جزائهم»

| فَإِنِ | انتَهَوْا | فَإِنَّ | اللَّهَ | غَفُورٌ رَّحِيمٌ ۝ | وَقَـٰتِلُوهُمْ | حَتَّىٰ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| پس كه منع شول دوئ دكفرنه نوبېشكه الله بخښونكې ډېرمهربان دې، اوجنگ كوئ ددوئ سره ترهغې | | | | | | |

| لَا تَكُوْنَ | فِتْنَةٌ | وَّيَكُوْنَ | الدِّيْنُ | لِلّٰهِ ۖ | فَاِنِ انْتَهَوْا |
|---|---|---|---|---|---|
| چې پاتې نشي فساد (شرک) اوشي دين خالص دالله(۱) دپاره، پس کچرې دوئ منع شو د جنګ نه | | | | | |

| فَلَا عُدْوَانَ اِلَّا عَلَى الظّٰلِمِيْنَ۝ |
|---|
| پس زياتي (سختي) کول نشته مګر په ظالمانو باندې. |

﴿فَإِنِ ٱنتَهَوْا۟﴾ اى عن الشرك اوالقتال، يعني كه دوئ دشرك نه تائب شي يا دقتال نه منع شي نوجزأ مقدره ده ((اى فانتهواعن القتال)) نوتاسو ددوئ دقتال نه منع شئ.

﴿فَإِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ دا د محذوفي جزأ علت دې، مفسرين وائى چه دا آيت دليل دې پدې چه د **قاتل عمد توبه قبليږي** ځکه چه کفر زياته لويه ګناه ده دقتل نه اوالله تعالى د کفر نه دقبول د توبې خبرورکړې دې نومعلومه شوه چه د قاتل عمد توبه هم قبليږي.

﴿وَقَـٰتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ﴾ دفتنه نه مراد شرك دې اود(هم) نه مراد مشركين عرب دى نو د دوئ سره قتال ترهغه وخته پورې دې چه څو پورې دوئ مسلمانان شوى نوى، او ددوئ نه جزيه نه قبليږى ((ان مشركى العرب ليس فى حقهم الاالاسلام اوالسيف لقوله سبحانه اويسلمون)) (روح)

﴿فَإِنِ ٱنتَهَوْا۟﴾ يعنى كه چرې دوئ منع شى دقتال نه ستاسى سره اومنع شى دكفرنه، نو ﴿فَانْتَهُوا﴾ جزا مقدره ده. نوتاسوهم منع شئ ددوئ دقتال نه.

﴿فَلَا عُدْوَٰنَ إِلَّا عَلَى ٱلظَّـٰلِمِينَ﴾ دا دمحذوف جزأ قائم مقام دې او د ((عدوان)) نه جنګ اوقتل مراد دې

| اَلشَّهْرُ الْحَرَامُ | بِالشَّهْرِ الْحَرَامِ | وَالْحُرُمٰتُ | قِصَاصٌ ۖ | فَمَنِ اعْتَدٰى |
|---|---|---|---|---|
| عزت والامياشت په عوض دمياشتې دعزت کښې ده اوعزتونه بدلې والادې. نوڅوک چې زياتې اوکړي | | | | |

| عَلَيْكُمْ | فَاعْتَدُوْا | عَلَيْهِ | بِمِثْلِ | مَا اعْتَدٰى | عَلَيْكُمْ ۠ | وَاتَّقُوا اللّٰهَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په تاسونوتاسوزياتې کوئ په هغه باندې پشان دهغې چې زياتې ئې کړېدې په تاسوباندې، اوويريږئ دالله نه | | | | | | |

۱ - دمشركين عرب د پاره يا اسلام دې يا قتل.

﴿وَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ مَعَ ٱلۡمُتَّقِينَ﴾ دامؤمنانوته اطمینان ورکول دی چه کله تاسوتقوی اختیاره کړئ نو ځما مدد به همیشه تاسو سره شامل حال وی.

﴿وَأَنفِقُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ﴾ دا ذکر د انفاق دې اولاً او داعطف دې په «وقاتلوا» باندې.

﴿وَلَا تُلۡقُواْ بِأَيۡدِيكُمۡ إِلَى ٱلتَّهۡلُكَةِ﴾ دا متعلق دې د «وقاتلوا» او د «وانفقوا» دواړوسره یعنې ځان هلاکت ته مه غورزوئ په پریخودلو دقتال فی سبیل الله اوانفاق فی سبیل الله سره ځکه چه کله دا دواړه پریخودې شی نوکفار غالب شی نومسلمانان هلاك کړی. د ابوعمران نه روایت دې وائی چه مونږ قسطنطنیه کښې په صف القتال کښې ؤو نوزمونږنه یو کس تنې (تن) تنها دکفاروپه صف باندې ورننوتلونوخلقو وویل چه دې کس خپل ځان په خپله هلاکت ته وغورزولو اوالله تعالی فرمائی «ولاتلقوابایدیکم الی التهلکة» نو ابو ایوب انصاری ﷺ وویل چه اې خلقو! تاسو خو ددې آیت تاویل کوئ خودا زمونږ د انصاروپه حق کښې نازل شوې دې (نوزه ددې په مطلب ښه پوهیږم) ابو ایوب انصاری ﷺ فرمائی کله چه الله تعالی دین ته غلبه ورکړه اوزیات شو مددګاران ددین نوپه مونږ کښې بعضې خلقو داسې خبره وکړه نورو ته په پټه سره د رسول الله ﷺ نه چه زمونږ مالونه جائیدادونه ضائع اوخراب شوی دی (ددین دخدمت دمصروفیت دوجه نه) اواوس خوالله تعالی دین ته غلبه ورکړه اومددګاران ئې ډیرشو نوکه مونږ دخپلومالونو اصلاح اوخدمت وکړو نو دا به ښه وی. نو **دا آیت نازل شو**. نو پدې آیت کښې الله تعالی صحابوته اوټول امت ته دا تنبیه ورکړه چه دمسلمانانوهلاکت دمال په ضائع کیدلوسره ندې بلکه دمسلمانانوهلاکت دادې چه دوئ ددین لپاره جانی مالی قربانی کول پریږدی نو د «هلکه» نه مراد ترك دجهاد او د انفاق دې. اوبعضې وائی چه د «تهلکه» نه مراد اسراف دې او بعضې وائی چه بخل ترینه مراد دې او د «لاتلقوا» لپاره مفعول مقدردې «ای لاتلقواانفسکم بایدیکم» یا «بایدیکم» مفعول دې د «تلقوا» لپاره. او (باء) زائده ده ځکه چه «تلقوا» په خپله متعدی دې اود «ایدیکم» نه مراد انفسکم دې «ای لاتلقوا انفسکم الی التهلکه».

﴿وَأَحۡسِنُوٓاْ﴾ ددینه مراد احسان دې په مساکینو یاپه تمامو اعمالو کښې اخلاص اوحسن نیت مراد دې.

وَ اَتِمُّوا الْحَجَّ وَ الْعُمْرَةَ لِلّٰهِ ۭ فَاِنْ اُحْصِرْتُمْ فَمَا

اوپوره پوره(1) اداكوئ حج اوعمره خاص الله لره، پس كه منع كړې شوئ تاسودپوره كولونه نوپهٔ تاسولازم دي هغه

اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ ۚ وَلَا تَحْلِقُوْا رُءُوْسَكُمْ حَتّٰى يَبْلُغَ الْهَدْيُ مَحِلَّهٗ ۭ

چې آسان وي دقربانئ خاروي، اومه خريئ سرونهٔ خپل ترڅوچې نهٔ وي رسيدلى هديه ځائ دحلالې خپل ته

فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَّرِيْضًا اَوْبِهٖٓ اَذًى مِّنْ رَّاْسِهٖ فَفِدْيَةٌ مِّنْ صِيَامٍ

پس څوک چې وي ستاسونهٔ ناجوړه ياوي په هغه تكليف دسرنهٔ نوپهٔ باندې فديه ده د(درې)روژونهٔ

اَوْ صَدَقَةٍ اَوْنُسُكٍ ۚ فَاِذَآ اَمِنْتُمْ ۪ فَمَنْ تَمَتَّعَ

ياصدقه (دشپږمسكينانو) ياقرباني، پس هركله چې تاسوحالت دامن كښې يئ، پس چاچې فائده واخيسته

بِالْعُمْرَةِ اِلَى الْحَجِّ فَمَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ ۚ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ

په عمره (2)كولودحج سره پس لازم ده پدهٔ هغه چې آسان وي دقربانئ خاروي، پس چاچې اونه مونده قرباني

فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ فِي الْحَجِّ وَسَبْعَةٍ اِذَا رَجَعْتُمْ ۭ تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ ۭ

پس روژې دي ددريوورځو په ورځودحج كښې اواووهٔ روژې ذئ كله چې واپس شئ، دالس روژې دي پوره

ذٰلِكَ لِمَنْ لَّمْ يَكُنْ اَهْلُهٗ حَاضِرِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۭ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا

داحكم(3) هغه چالره دې چه نهٔ وي اهل وعيال ددهٔ ديره په نيزدمسجدحرام ، اوويرېږئ دالله نهٔ اوپوهه شئ

اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۱۹۶

چې بېشكه الله سخت عذاب وركوونكي دې

﴿وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلّٰهِ﴾ دا بيان د امرمصلح دې، دمسئله جهاد نه بعد مسئله دحج اوعمرې ذكركولو كښې اشاره ده ديته چه تاسو دالله تعالى كورته حاضرى كوئ او د الله تعالى نه سوالونه كوئ نوتاسوته به فتح اوغلبه په كفارودركړى شكه چه بيت الله ته حاضرى دحج

1 - دويم امر مصلح يعني د حج ذكر.
2 - تمتع اصطلاحي مراد دې اودا ظاهره ده او دقران ذكريه [په اتموالحج والعمرة ] كښې شوى دې
3 - قران ، تمتع په آفاقي پورې خاص دي عندالاحناف «ذالک» دغه ته اشاره ده او عندالشوافع هدي يا بدل ده هدي ته اشاره ده

لپاره سبب د بقا او د قیام دخلقو دي لکه چه الله تعالی فرمایلی دی

﴿جَعَلَ ٱللَّهُ ٱلْكَعْبَةَ ٱلْبَيْتَ ٱلْحَرَامَ قِيَـٰمًا لِّلنَّاسِ﴾ تفسیر مدارك وائی «لوترکوه عامًا لم ینظروا ولم یؤخروا» یعنی که چرې حج یوکال پاتی شی اوهیڅ څوك حج ته لاړنه شی نوتمام جهان به بربادشی. او د «اتمام» نه مراد ادأ کول دی دفرائضو او واجباتوسره. اود «لله» معنی دا ده چه حج اوعمره صرف دالله تعالی درضا لپاره وکړې شی. تجارت، نمایش یابل څه فاسد نیت په کښې نه وی.

﴿فَإِنْ أُحْصِرْتُمْ﴾ دا مقابل دمحذوف دي «ای اتموالحج اوالعمرة ان قدرتم علی اتمامهما فان احصرتم ـ» حصر او احصار دیته وائی چه څوك دحج یا عمرې احرام وکړی او بیا دمرض یا ددشمن دوجې نه افعال نه شی پوره کولې اوبعضو فرق کړیدې چه حصر دیته وائی چه ددشمن دوجې نه وی. اواحصار دمرض دوجې نه وی. لیکن صحیح خبره داده چه د دواړو په مینځ کښې فرق نشته دې.

﴿فَمَا ٱسْتَيْسَرَ مِنَ ٱلْهَدْيِ﴾ «ما» موصوله دې اود «فَ» نه بعد «علیکم» اسم فعل مقدر دې «ای فعلیکم ماستیسر» ، یا (الواجب) یا (فاهدوا) مقدر دې اودا جزأ ددغه شرط ده او مطلب دادې چه څوك احرام دحج یا دعمرې وکړی او بیا دبیمارئ یا ددشمن په وجه یا دقید کیدلو په وجه افعال دحج نشی پوره کولې نو دې دې هدیه ورکړی نو بیا دې داحرام نه ځان وباسی اوهدیه هغه څاروی ته وائی چه بیت الله ته هدیه ولیږلې شی اوپدې کښې هغه تمام څاروی داخل دی چه دهغې نه قربانی کیدې شی.

﴿وَلَا تَحْلِقُوا۟ رُءُوسَكُمْ﴾ سر خریيل، علامه ده داحرام نه دوتلو یعنی تاسو د احرام نه تر هغه وخته پورې مه وځئ چه څوپورې ستاسوهدیه حرم ته نوی رسیدلی (مَحِلَّهُ) ای مکانه الذی یجب نحره فیه وهوالحرم (مدارك) ځائ دحلول اوحلالې حرم دې لکه په بل آیت کښې «ثم محلها الی البیت العتیق» راغلې دې، دا زمونږ داحنافو مذهب دې چه دم احصار به حرم ته لیږلې شی اوهلته به ذبح کولې شی اوشوافع وائی چه په کوم ځائی کښې څوك محصر شو نو پدغه ځائ کښې به دم احصار ذبح کوی ځکه چه رسول الله ﷺ اوصحابه کرامو ﷺ خپلې هدیې په

ځائ د احصار کښې چه حديبيه ده ذبح کړې وې او احناف وائی چه حديبيه مقام د حرم سره متصل دې نو بعضې حصه ئی حرم دې نو دغه ذبح په حرم کښې وه.

﴿فَمَن كَانَ مِنكُم مَّرِيضًا﴾ دا متفرع دې په «ولاتحلقوا» باندې او د هغې مخصص دې. په حالت د احرام کښې د بدن نه ويښته اخستل يا سر خرييل جائزنه دی ليکن که چرې حالت د عذر وی مثلا بيماری يا په سر کښې تکليف وی لکه سرد ردی يا زخم ، دانې . سپږې نود ده لپاره جائزدی چه سروخرئی ليکن شرعی فديه اداً کول ورته واجب دی. چه هغه پدې درې امورو کښې يو امر دې علی التخير يا درې روژې يا صدقه يعنې شپږ مسکينانو ته درې صاعه صدقه. يا قربانی يعنی گډه بيزه يا دغوا او اوښ او مه ۷ حصه.

﴿فَإِذَآ أَمِنتُمْ﴾ دا احکام د امن بيانيږی او د «امنتم» معنی «کنتم فی امن» دې يعنې کله چه تاسو په امن ئی يا د «امنتم» معنی زوال الخوف دې «ای زال عنکم خوف الاحصار» يعنې کله چه تاسو په امن کښې شئ.

﴿فَمَن تَمَتَّعَ﴾ دا جواب د «فاذا» دې يعنې چا چه نفع واخستله په افعالو د عمرې سره او مراد د نفعې نه تقرب الی الله دې په افعالو د عمرې سره، يا متعلق د «تمتع» محذوف دې او با سببيه ده يعنې چا چه نفع واخستله په محظوراتو د احرام په سبب د تحلل (ځان حلالولو) د عمرې نه نو پده باندې دم دې او دا دم دشکريه دې چه په يو سفر کښې ورته د دوه عبادتونو توفيق ملاؤ شو

او **مراد د تمتع نه پدې آيت کښې** يا تمتع اصطلاحی ده. لکه دلالت کوی په دې باندې لفظ د «الی»، ځکه چه «الی» د انتهاً د غايه لپاره راځی او افعال د عمرې منتهی کيږی په تمتع اصطلاحی کښې قبل د افعالو د حج نه. دا توجيه راجح ده په نزد دشاه انورشاه صاحب باندې او **يا مراد** د تمتع نه معنی لغوی ده. يعنې نفع اخستل او دا شامل دې حج تمتع او حج قران دواړو ته. ځکه چه د «الی الحج» معنی که چرته دا سې شی چه «منتهياً الی الحج» نو دا حج تمتع شو او که معنی ئی داسې شی چه «منضماً الی الحج» نو دا حج قران شو نو مقصود پدې آيت کښې بيان د وجوب د دم دې په حاجی متمتع او حاجی قارن باندې. او **په دې آيت باندې** بعضې امامانو دليل نيولې دې پدې چه **حج تمتع افضل دې** ځکه چه ذکرئی په قرآن کښې پدې

آیت کښې راغلیدې، او **احناف ترینه داسې جواب کوی** چه دا آیت حج تمتع اوقِران دواړوته شامل دې لکه چه بیان ئی وشوو اوفقط حج تمتع ترینه ندې مراد اوکه چرې فقط حج تمتع ترینه مرادشی نو دحج قِران ذکرشته دې په بل آیت کښې چه «واتموالحج والعمرة لله» دې. **او حج په درې قسمه دې**: ۱- **یوحج افراد** دې او هغه دادې چه دمیقات نه صرف دحج نیت وکړی اوافعال دحج پوره کړی اوپه شرعی طریقه سره داحرام نه ووځی. ۲- **حج تمتع**. هغه دا چه عمره وکړی اوځان حلال کړی بیا د حرم نه دحج احرام وکړی او افعال دحج پوره کړی. ۳- **حج قِران**، هغه داچه دمیقات نه دحج اوعمرې دواړواحرام وکړی او د دواړو دافعالونه یو ځائ فارغ شی.

**اوافضل حج قِران دې** په نزد داحنافو اوپه نزد دامام شافعی رحمه الله افضل حج افراد دې او په نزد د امام احمدبن حنبل رحمه الله اوامام مالك رحمه الله افضل حج تمتع دې.

﴿فَمَا ٱسْتَيْسَرَ﴾ ای فالواجب ما استیسر ﴿مِنَ ٱلْهَدْيِ﴾ دا بیان د «ما» دې ﴿فَمَن لَّمْ يَجِدْ﴾ یعنې څوك چه حج تمتع یاقِران کوی او دهدی طاقت نه لری نودې به دهغې په عوض کښې لس روژې ۱۰ نیسی، درې په ورځو دحج کښې آخرها **یوم عرفة**. اووه ۷ ورځې دحج فارغ کیدلونه بعد، او ﴿إِذَا رَجَعْتُمْ﴾ نه مراد «فرغتم من افعال الحج» دې.

﴿ تِلْكَ عَشَرَةٌ ﴾ په ((تلك)) سره اشاره دثلاثه اوسبعه دواړوته اود «عشرة» ذکرلدې وجه نه وشوو چه دا توهم ونکړې شی چه واو به په معنی د «او» سره وی او ﴿ كَامِلَةٌ ﴾ تاکید دې لپاره ددفع دتوهم چه لس روژې به دهدی مکمل عوض نه وی نوپه کاملةٌ سره دا توهم دفع کړې شو «ای کاملة فی وقوعها بدلاً من الهدی».

﴿ذَٰلِكَ لِمَن لَّمْ يَكُنْ أَهْلُهُۥ حَاضِرِي ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ﴾ مراد دینه ټول حرم دې یعنې مکه او حاضر دحضور نه مأ خوذ دې یا دحضرنه ضد د سفر دې، د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد «ذلك» اشاره ده تمتع ته یعنې حج تمتع او دارنگه حج قِران دهغه چالپاره دې چه هغه اوسیدونکې دحرم نه وی بلکه آفاقی وی ځکه چه کچرته د آفاقی لپاره حج تمتع اوقِران جائز نه

شی بلکه فقط حج افراد جائزشی نو دعمرې لپاره به بیا بل سفرکوی او داحرج دې، لدې وجه نه ده ته اجازت ورکړې شوچه په یوسفرکښې حج اوعمره دواړه اداکړی او دمکی لپاره چونکه مشقت دسفر نشته دې نودې به په ایام دحج کښې صرف حج کوی اوعمره به په نورو ورځوکښې کوی .

او د امام شافعی رحمه الله په نزد «ذلك» اشاره ده هدی اوبدل دهدی ته، یعنی آفاقی سړې چه تمتع وکړی نو دې به دم ورکوی ځکه چه پکار داوه چه دمیقات نه یې احرام دحج کړې وې لیکن هرکله چه هغه دمیقات نه احرام دعمرې وکړو او دحج احرام ئی دمکې نه وکړو نو ددې جبیره دم دې اوهرچه مکی دې نو پده باندې احرام دمیقات نه واجب نه دې نوکه دې تمتع کوی نوخلل ئی په حج کښې نه راځی نوپه هغه هدی اوبدل دهدی نشته دې لیکن دا توجیه دامام شافعی رحمه الله بعیده ده ځکه پدې تقدیر بیا داسې ویل پکاروو «ذالك علی من» ځکه چه هدی واجبه ده په متمتع باندې او واجب مستعملیږی په «علی» سره .

اَلْحَجُّ اَشْهُرٌ مَّعْلُوْمٰتٌ ۚ فَمَنْ فَرَضَ فِيْهِنَّ الْحَجَّ

وخت (۱) دحج میاشتې معلومې(مقررې) دي، پس چاچې فرض کړو په ځان باندې پدې میاشتو کښې حج

فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوْقَ ۙ وَلَا جِدَالَ فِي الْحَجِّ ؕ وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ

نونه دې فحش خبرې کوي اونه دې ګناه کوي اونۀ دې جګړې کوي پۀحج کښې، اوهغه چې کوئ تاسونېک کار

يَّعْلَمْهُ اللّٰهُ ؕ وَتَزَوَّدُوْا فَاِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوٰى ۫ وَاتَّقُوْنِ

خبر دې په هغې باندې الله ، اوتوښه(دسفرخرچ) واخلئ دځان سره پس بېشکه غوره توښۀ ځان ساتل دي دسوال نۀ ، اوویرېږئ ځمانۀ

يٰٓاُولِي الْاَلْبَابِ ۞ لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَبْتَغُوْا فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ ؕ فَاِذَآ

انې صفا عقل والو نشته په تاسوباندې ګناه چې طلب کړئ فضل درب خپل نۀ(ربح په تجارت سره) پس کله

اَفَضْتُمْ مِّنْ عَرَفٰتٍ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ ۠ وَاذْكُرُوْهُ كَمَا

چې واپس شئ تاسودعرفات نۀ پس یادوئ الله دمشعر الحرام پۀ خوا کښې، اویادوئ الله پۀ هغه طریقه

1 - مضاف مقدر دې اې وقت الحج

| الضَّآلِّيْنَ ۞ | لَمِنَ | قَبْلِهٖ | مِّنْ | وَ اِنْ كُنْتُمْ | هَدٰىكُمْ ۚ |
|---|---|---|---|---|---|
| خبرونه | خامخادبي | مخکښي | ددینه | چي وئ تاسو | اوپهٔ تحقیق سره شان دادي ، چي خودنهٔ ئي کړېده تاسوتهٔ |

﴿ اَلْحَجُّ اَشْهُرٌ مَّعْلُوْمٰتٌ ﴾ مضاف مقدردي ((ای وقت الحج)) او دا بیان دوخت دحج دي او ((اشهر معلومات)) نه مراد شوال، ذوالقعده اولس شپې د ذی الحجې دی دا وخت د احرام دحج دي اوددینه بعد بیا احرام دحج نشی کیدي نوکه په لسمه شپه د ذی الحجه چا احرام وکړو اووقوف په عرفات ئی هم وکړو اودارنګه باقی افعال نوحج ئی صحیح شو اوهرچه دي تقدیم داحرام لکه احرام دحج په رمضان یاشعبان کښې نو دا په نزد داحنافومکروه دي اوپه نزد دبعضو امامانو صحیح نه دي

﴿فَمَنْ فَرَضَ ﴾ یعني څوك چه په ځان باندي لازم کړی حج په احرام تړلوسره یعني نیت کولو اوتلبیه ویلوسره ﴿ فَلَا رَفَثَ﴾ جماع اودجماع اسباب اوخبري یعني شهوانی خبرې کول اودارنګه اوریدل دي نه کوی ﴿وَلَا فُسُوْقَ﴾ هرقسم معاصی ﴿وَلَا جِدَالَ ﴾ جګړه اوسخت کلامی او دا نفی ده لیکن مراد ترینه نهی ده ((ای لاترفثوا ولاتفسقوا ولاتجادلوا)) **اوصیغه دنفی** ذکرشوه لپاره ددي چه مبالغه راشی په منع کښې ددغه کارونونه ځکه چه نفی کښې مبالغه زیاته وی دنهی نه ځکه په نفی کښې شي بِاَصلهِ اوبوصفهِ دواړه ممنوع ګرځی.

﴿وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ ﴾ دا ترغیب دخیر دي بعد دنهی نه دشرنه ((ای افعلواالخیر وماتفعلوا من خیر - ))

﴿ وَتَزَوَّدُوْا﴾ پدي کښې بیان د آدابو دسفر دي خصوصاً دسفرحج، بعضې اهل یمن به حج ته تلل بغیر دسفرخرچ نه اوویل به ئی مونږمتوکلین یو، لیکن بیابه ئی په لاره کښې سوالونه کول نو دا حکم نازل شو چه دکورنه ځان سره دَ سفرخرچ وړئ.

﴿فَاِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوٰى﴾ دتقویٰ نه لغوی معنی مراد ده یعني ځان بچ کول یعنې بهترینه توښه هغه ده چه انسان په هغې سره دسوال کولونه بچ شی، یا دتقوی نه مراد شرعی تقوی مراد ده اومفعول د ((تزوّدوا)) لپاره مقدر دي ((ای تزودوا التقوی)) یعنی تقویٰ دخپل ځان لپاره توښه دآخرت وګرځوئ ځکه تقویٰ بهترینه توښه ده.

﴿لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَن تَبْتَغُوا فَضْلًا﴾ دفضل نه مراد ربح اونفع ده، دبعضې خلقو داخيال وو چه دحج په موقعه باندې به تجارت مزدوری جائزنوی، په دې سره به حج فاسديږی يابه په ثواب کښې کموالې راځی نو په دې آيت کښې د دې خيال ترديد دې، چه په تجارت او مزدورئ سره نه حج فاسديږی اونه په ثواب کښې کمې راځی، په شرط ددې چه اصل مقصودحج وی نه تجارت،اوکه چرې اصل مقصد تجارت وی يا دواړه مقصود اصلی وی نوظاهره ده چه پدې سره خلل راځی په اخلاص کښې

﴿فَإِذَآ أَفَضْتُم مِّنْ عَرَفَٰتٍ﴾ افضتم د افاضه نه مشتق دې ((افاض)) متعدی دې د ((فاض)) نه مأخوذ دې چه لازمی دې، د ((فاض)) معنی بهيدل دی ((فاض المأ اذا سال منصباً)) اوبه چه د بره نه په ښکته په کثرت سره وبهيږی نو ويلې شی ((فاض المأ)) اود ((افاض)) معنی ((بَيَول)) دی اومفعول د افاض لازم الحذف دې اومعنی داده چه ((اذا افضتم انفسکم)) دلته مراد د افضتم نه ((رجعتم من عرفات)) ((افاضه)) دعرفات نه واپس کيدلوته وائی پدې وخت کښې دواپس کيدونکو کثرت وی نوددې وجه نه لفظ د افاضه مستعمل شو، ((عرفات)) اسم دمعروف موضع دې. (١) فراء ويلی دی چه دا اسم مفرد دې په صورت دجمع کښې نو بيانه جمع کيږی اومفرد ورته نشته دې اوکه چا ورته ((عرفة)) مفرد ويلې دې نو دا فصيح ندې اوهرچه دې حديث چه ((الحج عرفة)) نو مراد دعرفة نه دلته يوم عرفه ده نه مکان ((ولکن يخدشه حديث البخاری اُنزلت ای آية : اليوم اکملت ـــ الخ و رسول الله ﷺ واقف بعرفه ، ص : ٦٣٢ ج ٢)).

اوبعضو ويلی دی چه عرفات جمع دعرفة ده نوگوياکښې هريو يو جزء عرفه (مفرد) دې او تمام اجزأ ددغه مکان عرفات ((جمعه)) دې ((کماقی قولهم جب مذاکيره)) (٢) دجمهورپه نزد دا لفظ غير منصرف دې ځکه چه پدې کښې سببين دی، يو علميت اوبل تانيث، اوتنوين چه پدې داخل دې نو دا تنوين تمکن نه دې چه ممنوع دې په غيرمنصرف باندې بلکه دا تنوين مقابله دې ځکه چه په جمع مؤنث کښې تنوين په مقابله دنون دجمع مذکرکښې دې نودا قسم تنوين منع نه دې په غيرمنصرف باندې بلکه ممنوع په غيرمنصرف باندې تنوين تمکن دې اوعلامه زمخشری وائی چه دا لفظ منصرف دې اوتنوين پدې کښې تنوين تمکن دې ځکه دلته هغه سببين نشته دې چه مؤثردی په منع دصرف کښې ځکه تأ په عرفات کښې لپاره دتانيث نه ده بلکه دا علامه دجمع مؤنث ده اوتأ مقدره هم نشته ځکه چه وجود د تأ لفظاً مانع

دې د تقدير د تأ ، لپاره ددې چه جمع نشی علامتين دتانيث نودلته صرف يو سبب دې چه هغه کافی ندې دمنع صرف لپاره

**اووجه دتسميه** ددې مکان په عرفات سره : ١- يا داده چه ابراهيم ﷺ ته ددې مکان نعت اوصفت بيان شوې ؤو نوچه کله ئی وليدو نووئی پيژندو . ٢- يا دا وجه ده چه هرکله حضرت ابراهيم ﷺ اوحضرت اسماعيل ﷺ دعاوکړه ﴿وَأَرِنَا مَنَاسِكَنَا﴾ نوحضرت جبرئيل ﷺ ورته دطواف طريقه وخودله اودسعی طريقه ئی وروښودله اوبيائی منیٰ ته بوتلو او شيطان ورته ظاهرشو درې کرته اوهر وار به ئی په کاڼو باندې ويشتلو «رمی الجمار» اوبيائی عرفات ته بوتلواوورته ئی وويل «**هل عرفت**» اوپه بل روايت کښې راغليدی «**هل عرفتَ، هل عرفتَ،هل عرفتَ فقال نعم**» (٣) يا دا وجه ده چه حضرت آدم ﷺ اوحوأ د جنت نه دراوتلونه بعدپه عرفات کښې جمع شو او تعارف ئی وکړو.

﴿فَٱذۡكُرُواْ ٱللَّهَ﴾ **دذکرنه مراد تلبيه** ده يا تهليل يا دعاء ده اوامر داستحباب لپاره دې. يا مراد د ذکرنه دماښام او ماسختن مونځونه دی چه دواړه په يووقت کښې يعنې ماسختن کښې اداکولې شی اوپدې تقديرامر دوجوب لپاره دې.

﴿عِندَ ٱلۡمَشۡعَرِ ٱلۡحَرَامِ﴾ مراد ددينه مزدلفه ده اوبعضې وائی چه مراد ددينه جبل قزح دې او تخصيص ئی شوې دې دوجې دمزيد شرافت اوفضيلت نه ځکه چه مزدلفه کلها موقف دې سوی د وادی محسر نه او مزدلفه ته مشعر ځکه وائی چه دا مَعلم دعبادت دې يعنی محل د واضح نښاناتو دعبادت لپاره دې اوحرام په معنی دمحترم سره دې.

﴿وَٱذۡكُرُوهُ كَمَا هَدَىٰكُمۡ﴾ حکم د ذکر دوباره وشو پدې کښې کثرت د ذکرته اشاره ده يا پدې کښې طريقی د ذکرته اشاره ده يا په يوځائ کښې مونځونه مراد دی اوپه بل ځائ کښې تلبيه تهليل او دعا مراد دی. ﴿وَإِن كُنتُم﴾ دا «ان» مخففه عن المثقله دې اواسم ورته ضمير مقدردې «ای وانکم کنتم». ﴿لَمِنَ ٱلضَّآلِّينَ﴾ داخبر د «انّ» دې او دضلال نه مراد بی خبرتيا او جهل دې د تفاصيلو دايمان اودطاعاتو نه.

| ثُمَّ اَفِيۡضُوۡا مِنۡ حَيۡثُ اَفَاضَ النَّاسُ وَاسۡتَغۡفِرُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ |
|---|
| بیا (۱) ‹‹واوړئ چې›› راواپس شئ دهغه ځائې نه چې واپس کيږي ترينه نورخلق، اوبخښنه غواړئ دالله نه، بېشکه الله |
| غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ ۝ فَاِذَا قَضَيۡتُمۡ مَّنَاسِكَكُمۡ فَاذۡكُرُوا اللّٰهَ كَذِكۡرِكُمۡ |
| بخښنه کوونکې دېرمهربان دې . پس کله چې پورا کړئ تاسوافعال دحج خپل پس يادوئ الله پشان دیادولوستاسو |
| اٰبَآءَكُمۡ اَوۡ اَشَدَّ ذِكۡرًا ؕ فَمِنَ النَّاسِ مَنۡ يَّقُوۡلُ رَبَّنَآ اٰتِنَا |
| دپلارانوخپلوبلکه زيات يادول ، پس بعضې دخلقونه(2) هغه دي چې وائي ائې ربه زمونږ راکړې مونږته |
| فِي الدُّنۡيَا وَمَا لَهٗ فِي الۡاٰخِرَةِ مِنۡ خَلَاقٍ ۝ |
| په دنيا کښې ، اوئشته وي ده لره په آخرت کښې هيڅ حصه. |

﴿ثُمَّ اَفِيۡضُوۡا﴾ ‹‹افاضه›› دعرفات نه واپس کيدلوته وائي او دا مقدم دې دَ وقوف دَ مزدلفې نه نو ‹‹ثم›› دلته دَ تعقيب ذکری لپاره دې او په دې کښې رد دې په يو رسم دجاهلية باندې چه قُريشو دځان لپاره يوامتيازی شان قائم کړې ؤو چه دعرفې په ورځ به عرفات ته نه تلل بلکه دمزدلفې نه به واپس کيدل اوځان ته به ئې حُمس يعنی شريف بهادر ويل اودا به ئې ويل چه مونږه دنوروخلقو پشان نه يو دحرم نه باهرنه وځواوعرفات دحرم نه باهر دې، نو الله ﷻ اوفرمايل چه تاسو دهغه ځائ نه واپس شئ چه نورخلق ترينه واپس کيږی، يعنې عرفات او واپس کيدل خو دتللونه بعدکيږی نو امر د وقوف دعرفات مقصود دې.

﴿مِنۡ حَيۡثُ اَفَاضَ النَّاسُ﴾ دناس نه مراد باقی عرب دی سوی دقريشو نه يا د ناس نه آدم ؑ يا ابراهيم ؑ مراد دې اوپه يوقرأت کښې ‹‹افاض الناسی›› دې يعنې آدم ؑ ، مطلب دادې چه وقوف دعرفات شرع قديمه ده دا مه بدلوئ.

﴿فَاِذَا قَضَيۡتُمۡ مَّنَاسِكَكُمۡ﴾ په زمانه دجاهليت کښې دعربو دا دستورؤو چه کله به دحج نه فارغ شو نو دپلارنيکه اوخاندانی کارنامې به ئې بيانولې نو الله ﷻ اوفرمايل چه په دې مبارك وخت اومقام کښې دالله تعالی ذکرکوئ لکه څرنگه چه تاسوبه په زمانه دجاهليت کښې

1 - ثم د تعقيب ذکر د پاره دې.
2 - د حاجيانو اول قسم.

دپلارنیکه تذکرې کولې.

﴿أَوْ أَشَدَّ ذِكْرًا﴾ داعطف دې په آباکم باندې اوپه معنی د «بل» سره دې.

﴿فَمِنَ النَّاسِ﴾ پدې کښې دحاجیانو دوه قسمه بیانیږی: **اول قسم** حاجیان هغه دی چه لکه خرنګه دهغوئ د زندګئ تمام جدوجهدصرف د دنیا لپاره وی نودغسې حج هم د دنیوی اغراضولپاره کوی لکه مشرکین عرب چه به دحج نه فارغ شو نو دآباؤ اجدادو تذکرې به ئې کولې اوپه مقدس مقاماتو کښې به ئ دحصول دمال اودفتح په دشمن دعاګانې کولې. قرطبی ویلی دی «کانوایسئلون الابل والغنم والظفر علی العدو ولایطلبون الاخرة».

﴿ءَاتِنَا فِي الدُّنْيَا﴾ دلته مفعول ثانی محذوف دې دقصد دعموم لپاره یعنې، هرڅه په دنیاکښې غواړو، نو ددوئ په حق کښې الله تعالی فرمائی ﴿وَمَا لَهُۥ فِي الْآخِرَةِ مِنْ خَلَٰقٍ﴾ چه ددوئ لپار په آخرت کښې هیڅ حصه دخیرنشته دې

| وَمِنْهُم | مَّن | يَقُولُ | رَبَّنَآ | ءَاتِنَا | فِي الدُّنْيَا | حَسَنَةً |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوبعضې(۱)ددوی نه هغه څوک دي چې وائې ائې ربه زمونږ راکړې مونږ ته په دنیا کښې خوشحالي(په نیک عمل سره) | | | | | | |
| وَفِي الْآخِرَةِ | حَسَنَةً | وَقِنَا | عَذَابَ | النَّارِ ۝ | | |
| اوپهٔ آخرت کښې خوشحالي(په جنت سره) اوبچ اوماتې مونږ دعذاب د اور نه | | | | | | |

﴿وَمِنْهُم مَّن يَقُولُ رَبَّنَآ ءَاتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً﴾ دادویم قسم دحاجیانو دې چه په دنیا کښې هم خیرغواړی اوآخرت کښې هم، د «حسنة» مختلف تفسیرونه کړې شوی دی: عافیة، نیکه بی بی، علم، عبادة، نیك اولاد، صحة، فهم دکتاب الله، صحبة دصالحینُ وغیرذالك، قرطبی وائی چه د «حسنة» نه په موضعینو کښې ټول نعمتونه د دنیا او آخرت مراد دی اوهم داصحیح ده.

﴿وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً﴾ دلته هم دحسنه مختلف تفسیرونه شویدی، جنة، سلامتیا د اهوال القیامة نه اودسوء الحساب نه، حورالعین، لذت ددیدار الهی وغیرذالك، او ظاهر داده چه تمام نعمتونه مراد دی کماقال القرطبی.

---

۱- په حاجیانو کښې دویم قسم.

﴿وَقِنَا عَذَابَ ٱلنَّارِ﴾ دعذاب نه بچ كيدل په آخرت كښې په عفو او مغفرت او دخول جنت سره دي. او په دنيا كښې په حفاظت سره دي دخواهشاتو او ذنوب نه. او دا دعا جامع ده ټولو انواعو دخيرلره او ددې وجه نه به نبي ﷺ دا په كثرت سره ويله.

| أُولَٰئِكَ لَهُمْ نَصِيبٌ مِّمَّا كَسَبُوا ۚ وَاللَّهُ سَرِيعُ الْحِسَابِ ۝ |
|---|
| دغه كسان دوئ لره برخه ده دوجې دهغه عملونوچې دوئ كړي دي. اوالله زر حساب كوونكې دې |
| وَاذْكُرُوا اللَّهَ فِي أَيَّامٍ مَّعْدُودَاتٍ ۚ فَمَن تَعَجَّلَ |
| اويادوئ الله په هغه ورخوشمارلې شوؤ كښې(ايام منى)(۱) پس چا چې تلوار اوكړه(مكې ته په راتلو كښې دمنى نه) |
| فِي يَوْمَيْنِ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ وَمَن تَأَخَّرَ فَلَا |
| په پوره كولو ددوؤورځو كښې پس نشته گناه پدۀ باندې ، اوچاچې روستوكړه (ويشتل دربمې ورځې ته) پس نشته |
| إِثْمَ عَلَيْهِ ۚ لِمَنِ اتَّقَىٰ ۗ وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا أَنَّكُمْ |
| گناه پدۀ باندې، داهغه چالره دي چې ويره كوي دالله نه، او ويريږئ دالله نه، اوپوهه شئ چې بيشكه تاسو به |
| إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ۝ |
| خاص هغه ته جمع كولې شئ. |

﴿أُولَٰئِكَ لَهُمْ نَصِيبٌ﴾ دا قسم ثانى ته اشاره ده يادواړه قسمونه ته اشاره ده.

﴿وَٱللَّهُ سَرِيعُ ٱلْحِسَابِ﴾ دمخلوق دكثرت باوجود به ورسره په لږ وقت كښې (قدرنصف النهاروفي رواية قدر فواقة ناقة) حساب وكړي. يا مطلب دادې چه قيامت نزدې دې نو الله تعالى تاسو سره عنقريب حساب كونكې دې.

﴿وَٱذْكُرُوا ٱللَّهَ فِىٓ أَيَّامٍ مَّعْدُودَاتٍ﴾ ((ايام معدودات)) نه مراد يوم النحر او ايام تشريق دى يعنې ديوم النحر نه بعد درې ۳ ورځې مراد دى. لسم ۱۰ د ذى الحجة يوم النحر ده او د ايام تشريق نه. نه ده او ديارلسمه ۱۳ د ايام تشريق نه ده خويوم النحرنه ده ، اويولسمه ۱۱

۱ - ايام منى. ايام تشريق.

اودولسمه «۱۲» ایام تشریق هم دی اُوایام النحر هم دی «هدایه» نو پدې آیت کښې د ایام معدودات نه یوم النحراو ایام تشریق مراد دی او ذکرالله نه مراد هغه تکبیرات دی چه بعدالصلوة په جهرسره ویلې شی او دارنګه هغه تکبیرات چه په وقت د ذبح کښې ویلې شی اوهغه تکبیرات چه په وقت د رمی دجمراتوکښې ویلې شی.

**سوال**: ایام جمع د یوم ده، اودا مذکر دې اومعدودادت جمع د معدودة ده اوهغه مؤنث دې نو مطابقت را نغې په مابین د موصوف او صفت کښې په تذکیر او تانیث کښې.

**جواب** معدودات جمع دمعدودة «مؤنث» لپاره نه ده بلکه داجمع دمعدودٌ «مذکر» لپاره ده اوصفت مذکر لایعقل په الف اوتأ سره جمع کیدې شی لکه سجلات جمع دَ سجل ده.

﴿فَمَن تَعَجَّلَ فِي يَوْمَيْنِ﴾ په یوم النحرکښې رمی دیوې جمرې کیږی یعنې جمره عقبه قبل الزوال اوپه یولسم دولسم باندې رمی د درې واړوجمراتوکیږی بعدالزوال او دا ضروری دی اوپه دیارلسم «۱۳» چه آخری ورځ د ایام تشریق ده نوپدې کښې اختیاردې که څوك نه پاتې کیږی اوتعجیل کوی یعنی په دولسم چه رمی د جمراتووکړی نومکې ته واپس شی نو دا هم جائزده اوکه څوك په دیارلسم پاتې کیږی نو دا هم جائز ده بلکه افضل ده لیکن که دیارلسم ۱۳ته پاتې کیږی نوبیا رمی دجمراتوضروری ده.

البة په نزد دامام شافعی رحمه الله بعدالزوال ده اوزمونږ په نزد قبل الزوال اوبعدالزوال دواړوکیدې شی «روح» اود ﴿فَلَآ إِثْمَ عَلَيْهِ﴾ تصریح ځکه وشوه چه اهل جاهلیة پدې کښې مختلف ؤو بعضو به په دولسم ۱۲واپسی ضروری ګڼړله اوتاخیر به ئی ګناه ګڼړلو اوبعضو به تاخیر ضروری ګڼړلو اوتعجیل به ئی ګناه ګڼړلو.

﴿لِمَنِ ٱتَّقَىٰ﴾ یعنې په تاخیرکښې ثواب اونفی د اثم دهغه چالپاره ده چه دشرك اونورو ګناهونونه ځان بچ ساتی یا دا معنی ده چه دا ټول افعال د حج هغه چاته فائده ورکوی چه دا افعال د تقوی د وجې نه کوی نه د ریاء اوعادت دوجې نه.

**فایده**: دلته ددویم امرمصلح یعنی حج ذکرتفصیلاً وشوو روستو بیا دجهاد حکم ثانیا کیږی خو دهغې نه مخکښې په **اته وجوهاتوسره ترغیب الی الجهاد** ذکرکیږی چه دهغې خلاصه داده. «۱» په دنیاکښې شر اوفساد پیدا کونکی عناصرموجوددی، ددوئ سره

جهادو کړئ آیت ۲۰۴ تر ۲۰۲ پورې (۲) دجهاد په ذریعه رضا الهی حاصله کړئ آیة ۲۰۷ ، (۳) په اسلام کښې پوره پوره داخل شئ اوپه تمام احکاماتو عمل وکړئ چه په هغې کښې جهادهم دې آیة : ۲۰۹ ، (۴) که چرې تاسو دالله تعالی داحکاموتونه نافرمانی وکړه نوسخته سزا به درته ملاؤشی، بنی اسرئیل ئې نمونه ده ، آیة : ۲۱۱ ، (۵) کفار، مشرکین د ددنیا د دولت په نشه کښې مست دی په اسلام اومسلمانانو پورې مسخرې کوی لهذا ددوئ سره جهاد وکړئ، آیة : ۲۱۲ ، (۲) دالله ﷻ په فطری دین کښې چه چا اختلاف پیداکړیدې دهغوئ سرکوبی وکړئ، آیة : ۲۱۳ ، (۷) جنت ته تلل آسان نه دی بلکه ددې لپاره دځان اومال قربانی ضروری ده، آیة : ۲۱۴ ، (۸) دالله تعالی ددین په خاطرپه جهاد کښې چه څه خرج کړئ نوهغه ضائع نه دی ، آیة : ۲۱۵.

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُّعْجِبُكَ قَوْلُهٗ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا

اوبعضې(۱) دخلقونه هغه دي چې ښائسته اومزېداري لګې تاته خبرې دهغه، چې هغه خبرې محض د دنيوي غرض دپاره دي

وَيُشْهِدُ اللّٰهَ عَلٰى مَا فِيْ قَلْبِهٖ ۙ وَهُوَ اَلَدُّ الْخِصَامِ ۝ وَاِذَا

اوګواه کوي الله په هغه څه چې ددهٔ په زړه کښې وي، اوحالانکه دی (ستاسخت مخالف) اوجګړماردې . اوکله

تَوَلّٰى سَعٰى فِي الْاَرْضِ لِيُفْسِدَ فِيْهَا وَيُهْلِكَ

چې لاړشي( ستادمجلس نه)کوشش کوي دې په زمکه کښې دپاره ددې چې فسادوکړي په زمکه کښې ، اوهلاک کړي

الْحَرْثَ وَالنَّسْلَ ۗ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الْفَسَادَ ۝ وَاِذَا قِيْلَ لَهُ اتَّقِ اللّٰهَ اَخَذَتْهُ

فصل او څاروي . اوالله نهٔ خوښوي فساد . اوكله چې اووئيلي شي ده ته اوويريږه دالله نه ، آماده كړي ده لره

الْعِزَّةُ بِالْاِثْمِ فَحَسْبُهٗ جَهَنَّمُ ۗ وَلَبِئْسَ الْمِهَادُ ۝ وَمِنَ النَّاسِ

غرور(اوشيطاني غيرت)په ګناه، پس كافي دي دهٔ لره جهنم، اوخامخا ډيربدخاني دي ځاى تياركړي شوي . اوبعضي دخلقونه

مَنْ يَّشْرِيْ نَفْسَهُ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ ۗ وَاللّٰهُ رَءُوْفٌ بِالْعِبَادِ ۝

هغه (۲)څوک دي چې خرڅوي(قربانوي)ځان خپل دپاره دطلب درضادالله . اوالله ډيرمهربان دي په بندګانوخپلو

1 - دجهاد دپاره اول ترغيب.

2 - دجهاد دويم ترغيب

﴿وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يُعۡجِبُكَ﴾ دا ترغیب الی الجهاد په وجه اوله سره دي، دشر اوفساد پیدا کونکو صفات اوعلامات پدې آیاتونو کښې مذکور دی **اوله علامه** داده چه ددنیوی اغراضو او مقاصدو لپاره، لکه دنیوی سیاست اوتجارت وغیره. داسې خوږې خوږې اوفصیح بلیغ خبرې کوی چه تابه په تعجب اوحیرانتیا کښې واقع کړی. مفسرین وائی چه دا آیت د اخنس بن شریق منافق په حق کښې نازل شویدې لیکن حکم ئی عام دې، شامل دې هرهغه چا لره چه دا مذکور صفات پکښې موجود شي

﴿وَيُشۡهِدُ ٱللَّهَ﴾ دا **دویمه علامه** ده په دروغه طریقه سره په خپلې دعوې قسم کوی او الله پاك گواه کوی، مثلا وائی چه قسم بالله یا خدائ گواه دې چه ځما په زړه کښې ستاسره ډیر محبت دې او د اسلام سره مې ډیره مینه ده.

﴿وَهُوَ أَلَدُّ ٱلۡخِصَامِ﴾ دا **دریمه علامه** ده، یعنی دالله ﷻ او د رسول او د اسلام سخت دشمن اوجگړ مار دې «الد» په معنی د اشد سره دې اوخصام په معنی دخصومة سره دې «الد» په اصل کښې اشدالخصومة ته وائی او د خصام معنی د مبالغه اوشدت فی الخصومة ده نو ذکر د خصام بعد د «الد» نه یا په تجرید مبنی دې یاپه تاکید اویا د یو معنی شدت او دبل زیادة اوکثرت دې

﴿وَإِذَا تَوَلَّىٰ﴾ ددې یوه معنی داده چه کله دې ستا دمخې نه اوستاد مجلس نه مخ وگرزوی، اوبله معنی ئی داده چه دې متولی اواختیارمند دځه حکم وگرزی. ﴿سَعَىٰ فِي ٱلۡأَرۡضِ لِيُفۡسِدَ فِيهَا﴾ دا **څلورمه علامه** ده ، او مراد دفساد نه عام دې شامل دې قتل بغیرحق ، کفراوشرك اوټولو معاصیوته. ﴿وَيُهۡلِكَ ٱلۡحَرۡثَ وَٱلنَّسۡلَ﴾ **پنځمه اوشپږمه** علامه ده.

«حرث» فصل ته وائی او د فصل هلاکول په سیزلوسره اوغلاکولو سره هم کیږی. او د حرث اطلاق په نساؤ باندې هم کیږی او «نسل» هر ذات روح (حیوان) ته وائی، دلته ترینه مراد دحیواناتو بچی دی، یا د حرث نه زنانه مراد دی او د نسل دانسانانو بچی مراد دی، او دنساؤ او بچو هلاکول په قتل سره دی، دغه رنگه دا آیت کریمه ددې زمانې نسل کشی (منصوبه بندی) ته هم شامل دې.

﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُ ٱتَّقِ ٱللَّهَ﴾ دا بله وجه علامه ده ﴿أَخَذَتْهُ ٱلْعِزَّةُ﴾ دعزت نه شيطانى اونفسانى غيرت مراد دې او د ((اَخذَ)) يعني نيولونه مراد دادې چه دا نفسانى شيطانى غيرت پرې داسې غالب وى لكه اخذ (نيوونكې) چه په مأخوذ غالب وى او اخذ په معنى د اِسر يعنى قيدكولوسره هم راځى، دلته دا معنى هم مراد كيدې شى يعنى قيدى كړى ده لره، دلته ((باء)) په ((بالاثم)) كښې يا دمصاحبت لپاره ده ((اى مصحوبا بالاثم)) او يا په معنى د (على) سره ده نو دا هم دمنافق دعلاماتونه ډيره بد ترينته علامه ده چه دنصيحت منلوپه ځائ په گناه كولو اوشيطانى غيرت باندې مضبوط شى اوشيطانى غيرت پرې غالب شى او دې داسې مغلوب شى لكه مأخوذ اوقيدى چه مغلوب وى، وفى الروح ((وفى الآية ذم لمن يغضب اذاقيل له اتق الله ولهذاقال العلماء اذاقال الخصم للقاضى اعدل ونحوه له ان يعزّره واذاقال له اتق الله لايعزره ، واخرج ابن المنذر عن ابن مسعودﷺ ان من اكبرالذنب ان يقول الرجل لاخيه اتق الله تعالى فيقول عليك بنفسك ، عليك بنفسك)) .

﴿وَلَبِئْسَ ٱلْمِهَادُ﴾ دا تخويف دې اولام په ((لبئس)) كښې مؤطئه للقسم دې اومخصوص بالذم محذوف دې ((اى والله لبئس المهاد هى)) اومهاد فراش ته وائى او دارنگه هغه ځائ ته ويلې شى چه دميلمه د آرام لپاره تياركړې شوې وى نوجهنم ته مهاد تهكمًا ويلې شوې دې .

﴿وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَشْرِى﴾ دا ترغيب دې جهاد ته په وجه ثانى سره او دمنافقينو دصفاتو په مقابله كښې دمخلصينو دصفاتو ذكر دې د ((شرىٰ)) اصل معنى اخستل د يوشى دى په بيع سره او اطلاق ئى شائعًا كيږى په معنى ذبيع (خرڅولو ) سره، دلته يامعنى اوله مراد ده. لكه په ډيرور واياتوكښې راغليدى چه حضرت صهيب ﷺ چه كله دهجرت په نيت روان شو نوكفار ئى مقابلې ته راغله نو دې دخپلې سورلئ نه راكوز شو او د تركش نه ئى غشى را وباسل اولينده ئى راواخستله اوكفاروته ئى وويل چه تاسوته معلومه ده چه زه په غشو ويشتلوكښې ډير ماهر يم نوپه خدائ قسم چه تاسو ما ته نزدې نشئ راتلې تر څوچه دا غشى ختم شوى نوى اوچه دا ختم شى نو بيا به زه ستاسوسره په توره مقابله كوم ترڅوچه هغه ماته شوى نوى، اوچه هغه ماته شى نو بيا ستاسو خوښه ده چه څه كوئ، نوكه ستاسو خوښه وى نوزه به تاسوته خپل مال چه كوم په مكه كښې دې وښايم هغه واخلئ او ما پريږدئ

نوهغوئ پدې راضي شول او ده ((رضی الله تعالی عنه)) هجرت وکړو مدينې منورې ته، **نو دا آيت نازل شو** اونبی کریم ﷺ ده ته وويل چه ((أبا يحى ربح البيع، ربح البيع)) او دا آيت يې تلاوت کړو ، اويا ((شراء)) په معنی دبيع سره دې نو د ((يشری نفسه)) معنی ((يبيعها ويبذلها في الجهاد)) يعنې خپل ځان قربانوی په جهاد کښې لکه دا مروی ده دحضرت ابن عباس رضي الله عنه نه. يا په **امربالمعروف اونهی عن المنکر** کښې لکه دا مروی دی دحضرت عمراوحضرت ابن مسعود رضي الله عنهما

| يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا ادْخُلُوْا فِي السِّلْمِ كَاۤفَّةً ۠ وَّلَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ؕ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ |
|---|
| اې ايمان والو(۱) داخل شئ په اسلام کښې پوره پوره،اومه ځئ په نقش قدم دشيطان،بېشکه شيطان ستاسودښمن |
| مُّبِيْنٌ ۞ فَاِنْ زَلَلْتُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْكُمُ الْبَيِّنٰتُ فَاعْلَمُوْٓا |
| ښکاره دې پس کچرې اوخوئيدلئ تاسوروستوددينه چې راغلې دې تاسوته ښکاره حکمونه . پس پوهه شئ |
| اَنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ۞ هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ يَّاْتِيَهُمُ اللّٰهُ فِيْ ظُلَلٍ |
| چې بېشکه الله زورآوردې حکمتونو والا دې . انتظارنۀ کوي دوئ مګردادې چې راشي دوئ تۀ الله په سيورو کښې |
| مِّنَ الْغَمَامِ وَالْمَلٰٓئِكَةُ وَقُضِيَ الْاَمْرُ ؕ وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ ۞ |
| دوريځو نه او ملائک اوپوره کړېشي کاردعذاب ددوئ اوخاص الله تۀ واپس کولې شي ټول کارونه |

﴿ يَا اَ يُهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا اُدْخُلُوْا فِي اَلسِّلْمِ كَآفَّةً﴾ داترغيب الی الجهاد دې په وجهِ ثالث سره او((سِلْم)) په معنی داسلام سره دی او ((کافة)) منصوب دې حال دې دضميرد ((اُدخلو)) نه. او دا صيغه د اسم فاعل ده دکف نه اوکف منع ته وائی او (تاء) په کافة کښې د تانيث لپاره ده يا د نقل لپاره ده دوصفية نه اسمية ته لکه عامةً،خاصةً ، قاطبةً، يا د مبالغې لپاره ده او د **کافة معنی** ده جملةً. يعنی ټول . ظاهراً . باطناً ،اعتقاداً، عملاً، اخلاقاً. يعنې په هره پهلو او جانب سره په اسلام کښې داخل شئ ،عبادات ، معاملات ، عادات، غمونه، ښادئ بلکه دمسلمان هرڅه دې داسلام په طريقه وی، درسوماتو، بدعاتو او ديهودو اونصاری وو دطريقونه به ځان ساتی، مفسرين وائی چه **دا آيت نازل شوېدې** په باره دمؤمنينو داهل

۱- دريم ترغيب.

کتابو کښې لکه عبدالله بن سلام ﷺ او دهغه ملګري، دوئ د يوم السبت تعظيم شروع کړو او د اوښانو پئ خوړل ئې پرېښودل او دا خيال ئې وکړو چه د يوم السبت تعظيم په اسلام کښې حرام نه دې اوپه يهوديت کښې ضروري دې او دارنګه د اوښانو پئ خوړل په اسلام کښې ضروري نه دی اوپه يهوديت کښې منع دی نو پدې سره د قرآن دَ قانون نه مخالفت نه راځي اوپه تورات به عمل راشي ، نوالله ﷻ حکم نازل کړو چه په اسلام کښې دبل دين ديوقانون د داخلولو ګنجايش نشته دې اګرچه هغه په بل دين کښې منصوصي وي نو. د بدعاتو او رسوماتو ګنجايش به چرته راشي.

﴿خُطُوَاتِ ٱلشَّيْطَٰنِ﴾ خطوات دَخطوةَ جمع ده دقدم (پل) نقش ته وائي، مراد ترينه تمام شيطاني طريقې دي ﴿فَإِن زَلَلْتُم﴾ دا زجر او تخويف دې ((زلل)) ښويدلو ته وائي قصداً وي اوکه دجهل د وجې نه وي، د ((زلل)) نه مراد دحکم شرعي پرېښودل دي قصداً ﴿عَزِيزٌ حَكِيمٌ﴾ الله تعالى غالب اوزورآور دې نو انتقام اغستې شي اوځوك يې منع کولې نشي خوحکيمَ دې نوپه انتقام اوسزا ورکولوکښې جلدي نه کوي.

﴿هَلْ يَنظُرُونَ﴾ داتخويف دې .او((هل)) داستفهام انکاري لپاره دې په معنی دنفي سره او ((ينظرون)) دانتظارنه مأخوذ دې ((اى لاينتظرون)).

﴿إِلَّآ أَن يَأْتِيَهُمُ ٱللَّهُ فِى ظُلَلٍ مِّنَ ٱلْغَمَامِ﴾ د اتيان معنى راتلل اوديوځائ نه بل ځائ ته منتقل کيدل دي او دا صفات د اجسامو دي اوالله ﷻ منزه دې د جسمية نه او دصفاتو داجسامونه ((ليس کمثله شئ)) نو دا دقبيلې دهغه متشابهاتونه دې چه ظاهري معنى ئې چه کومه مونږته معلومه ده نوهغه مرادنه ده، اوچه کومه مراد ده دالله ﷻ نوهغه مونږ ته معلومه نه ده. نوددې وجه نه مفسرين بعضې داسې وائي چه دلته اتيان په هغه معنى سره مراد دې چه لائق وي دالله تعالى دلوئ شان سره. صاحب د روح المعاني ليکي : ((بالمعنى اللائق به جل شانه منزهاً عن مشابهة المحدثات والتقيد بصفات الممکنات)) اوبعض مفسرين ئې تاويل کوي چه : ((ياء تيهم امرالله وحکمه)) امام قرطبي رحمه الله وائي ((قيل ليس الکلام على ظاهره فى حقه سبحانه وانماالمعنى ياءتيهم امرالله وحکمه بياليکي وقال ابن عباس ﷺ هذامن المکتوم الذي لايفسر وقدسکت بعضهم عن تاويلهاوتاء وّلهابعضهم کماذکرنا ــ آه)) اوقرطبي يوقول دا هم ذکرکړيدې چه اتيان دالله تعالى سزا ورکولوته وائي لکه چه په سورة نحل آية ۲۲ په قصه دنمروذکښې دي ((فاتى

الله بنیاهم)) اوپه شان دبنی نضیروکښې ﴿فَأَتَاهُمُ اللهُ مِنْ حَيْثُ لَمْ يَحْتَسِبُوا﴾ یالکه ﴿وَإِن كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ أَتَيْنَا بِهَا﴾ (سورة الانبیاء ۲۷) په دې آیتونوکښې اتیان د سزا په معنی سره دې نو په دې آیت کښې هم سزا مرادکیدې شی دنیوی یا اُخروی.

حضرت الشیخ رحمه الله دتفسیر کبیر په حواله لیکلی دی چه دا کلام دیهودو د خیال مطابق راوړلې شوې دې چه دوئ د تشبیه قائل ؤو، **خلاصه داده چه اهل سنت والجماعت د اتیان ظاهری معنی نه مراد کوی**، بلکه یائی تاویل کوی یائی تفویض دعلم کوی الله ﷻ ته.

| |
|---|
| سَلْ بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ كَمْ أَتَيْنَٰهُم مِّنْ ءَايَةٍۭ بَيِّنَةٍ ۗ |
| تپوس اوکړه دبنی اسرائیلونه څو مره ورکړې وې مونږ دوئ ته ننبې ښکاره (یعنی نعمتونه، پس دوئ بدل کړل) |
| وَمَن يُبَدِّلْ نِعْمَةَ ٱللَّهِ مِنۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُ فَإِنَّ ٱللَّهَ |
| اوچاچې بدل کړونعمت دالله (په ناشکرئ سر) روستو دهغې نه چې راغلل دهٔ ته، پس بېشکه الله |
| شَدِيدُ ٱلْعِقَابِ ۝ زُيِّنَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ٱلْحَيَوٰةُ ٱلدُّنْيَا |
| سخت عذاب ورکوونکې دې. ښائسته (۱) کړې شوېدې هغه کسانوته چې کفرئې کړې دې ژونددنیا |
| وَيَسْخَرُونَ مِنَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ۘ وَٱلَّذِينَ ٱتَّقَوْا۟ فَوْقَهُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ۗ |
| اوټوقې کوي پهٔ مومنانوپورې، اوهغه کسان چې خان ئې بچ کړې وی دشرک نه پورتهٔ بهٔ وي ددوئ نه پهٔ ورځ دقیامت. |
| وَٱللَّهُ يَرْزُقُ مَن يَشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ۝ |
| او الله رزق ورکوي چاتهٔ چې اوغواړي بېحسابه. |

﴿سَلْ بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ﴾ دا نمونه دتخویف دنیوی لپاره ده یعنې هغه عذابونه چه په بنی اسرائیلو باندې راغلی ؤو په سبب د ناشکری سره او ترغیب الی الجهاد دې په څلورمې وجهِ سره

﴿ كَمْ ءَاتَيْنَٰهُم مِّنْ ءَايَةٍۭ بَيِّنَةٍ ﴾ لفظ د (کم) یا خبریه دې اومسئول عنه د (سل) لپاره محذوف دې : ((ای سل بنی اسرائیل عن طغیانهم وجحودهم للحق بعدوضوحه فقدأتیناهم آیات کثیرة بینة))، یا (کم) استفهامیه دې او دا جمله په محل دمفعول ثانی (مسئول عنه) کښې ده او))من

۱ - پنځم ترغیب، یعنی کفار ددولت په نشه کښې مست دې او په مسلمانانو پورې مذاق کوي لهذا ددوئ سره جهاد اوکړئ.

ايةٍ بينةٍ،، تميز د ،كم، دي او من زائده په تميز د ،كم، استفهاميه كښې هم راتلې شى كله چه فصل راشى په مابين د ،كم، او د تميز دده كښې په فعل سره لكه چه په ،كم، خبريه كښې هم داسې كيږى

اوشيخ رضى رحمه الله يا نورو نحاتوچه ويليدى چه د ،كم، استفهاميه په تميز باندې ،من، زائده نه داخليږى. نو داپه هغه صورت كښې ده چه فصل نه وى راغلې په فعل سره

اود ((ايةٍ بينةٍ)) نه مراد هغه نعمتونه دى چه ددې سورة په اول كښې ئى ذكر راغلې دې اوچونكه هرنعمت معجزه وه نوځكه يې ورته ((آية)) وويلو.

﴿وَمَن يُبَدِّلْ﴾ ددينه مراد دنعمت ناشكرى كول دى اوداسبب دې دعذاب

﴿ زُيِّنَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا﴾ دا بيان دترغيب الى الجهاد دې په پنځمه وجه سره او دماقبل لپاره علت دې يعنې سبب دتبديل دنعمت او د ناشكرى دادې چه دوئ ته د دنيا زندگى اومالونه ډيرمزين شوى دى اودنيوى شان اوشوكت اومحبت ددوئ په زړونو كښې ننوتې دې. او ((زين)) صيغه دمجهول ددې وجې نه ذكرشوه چه فاعل د تزين كله الله تعالى راځى نو بيا نسبة ئى خلقًا وى اوكله ئى فاعل شيطان وى نونسبت ورته په اعتبارد وسوسو كولو سره وى نو دمجهول صيغه ذكرشوه چه دواړوخبروته اشاره وشى . ﴿وَيَسْخَرُونَ﴾ مسخره په طريقې دتكبرسره مراد ده

﴿وَالَّذِينَ اتَّقَوْا﴾ مراد ترينه ايمان والا دى او تعبير په تقوىٰ سره ځكه وشو چه علة الحكم ته اشاره راشى يعنى دفوقيت لپاره سبب تقوىٰ ده. ﴿فَوْقَهُمْ﴾ دفوقيت نه مراد يا د مكان فوقيت دې ځكه جنت چه محل دمؤمنانو دې فوق دې په اعلى عليين كښې. او ،نار، چه محل دكفارو دې په اسفل السافلين كښې دې. يادفوقيت نه مراد فوقيت د درجې دې

﴿ وَاللَّهُ يَرْزُقُ مَن يَشَاءُ﴾ ددينه مراد رزق د دنيا دې اود ،،من يشاء،، نه مراد عام خلق دى او ﴿ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴾ نه مراد كثرت دې يعنې په دنياكښې د رزق او د مال او دولت كثرت معيار دحق والى او دمقبوليت عندالله لپاره ندې بلكه الله جل جلاله دمصلحت اوحكمت ماتحت كله مؤمن ته وركوى اوكله كافرته وركوى. يا د رزق نه دجنت رزق مراددې چه هغه بى حسابه دې

| كَانَ النَّاسُ أُمَّةً وَّاحِدَةً قف فَبَعَثَ اللهُ النَّبِيّنَ مُبَشِّرِيْنَ |
|---|
| ؤخلق يوډله (په توحيدباندې پس مختلف شو)، (۱) پس راؤليږل الله پيغمبران زيري ورکوونکي مومنانوته |
| وَمُنْذِرِيْنَ ص وَأَنْزَلَ مَعَهُمُ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ لِيَحْكُمَ بَيْنَ |
| او ويروونکي کافرانوته، اونازل ئې کړل ددوئ سره کتابونه په حقه سره دپاه ددې چې فيصلې اوکړي په مينځ |
| النَّاسِ فِيْمَا اخْتَلَفُوْا فِيْهِ ط وَمَا اخْتَلَفَ فِيْهِ |
| دخلقو کښې په هغه څيزکښې چې دوئ پکښې اختلاف کړې وؤ، اواختلاف نه وؤکړې په هغې کښې |
| إِلَّا الَّذِيْنَ أُوْتُوْهُ مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ |
| مګر هغه کسانو چې ورکړې شوې دې هغوئ ته علم دکتاب، روستو دهغې نه چې راغلي وؤ هغوئ ته |
| الْبَيِّنٰتُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ ج فَهَدَى اللهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا |
| واضح دلائل دوجې دضدنه ددوئ په مينځ کښې، پس هدايت اوکړو الله هغه کسانو ته چې ايمان ئې راوړې وؤ |
| لِمَا اخْتَلَفُوْا فِيْهِ مِنَ الْحَقِّ بِإِذْنِهِ ط |
| دهغه خبرې چې اختلاف کړې وؤ (دې نورو خلقو) په هغې کښې، چې هغه حق دې، په خپل توفيق سره |
| وَاللهُ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَاءُ إِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۝ |
| اوالله رسوي هغه څوک چې اوغواړي لارې نيغې ته |

﴿كَانَ النَّاسُ أُمَّةً وَّاحِدَةً﴾ دا ترغيب الى الجهاد دې په شپږمې وجې سره، دوحدت نه مراد دعقيدې اودين وحدت دې يعنې اول دحضرت آدم ﷺ دزمانې نه دحضرت ادريس ﷺ دزمانې پورې ، يا دنوح ﷺ دزمانې پورې (بناء على اختلاف الروايتين) خلق ټول په يودين توحيد باندې ؤو، يعنی شرك نه ؤو اګرچه معصيت دقابيل نه صادر شوې وو نو دا فطری دين دې او بيا په زمانه دنوح ﷺ کښې يالږ شان مخکښې شرك شروع شو او باغيانو په فطری دين کښې اختلاف وکړو، نودغه شان خلقو سرکوبی وکړئ، يا مراد دادې چه دهر نبی په دورکښې به چه کله کفارپه عذاب سره تباه شول نو ما بقیٰ امت به په توحيد باندې متفق ؤو

1 - اي فاختلفوا فبعث ـــ الخ .

﴿ فَبَعَثَ ٱللَّهُ ٱلنَّبِيِّـۧنَ ﴾ دا مرتب دي په ماقبل باندې ليكن بظاهر **سوال** وارديږي چه هر كله ټول خلق په دين توحيد متفق ؤو نودپيغمبرانوبعثت ته څه ضرورت ؤو **جواب** دادې چه ,,فبعث الله،، مرتب دې په مقدرباندې ,,اى كان الناس امة واحدةً فاختلفوا،، لكه په سورت يونس آية ١٩ كښې دى ﴿ وَمَا كَانَ ٱلنَّاسُ إِلَّآ أُمَّةً وَٰحِدَةً فَٱخْتَلَفُوا۟ ﴾. (يونس، آية : ١٩)

﴿ مَعَهُمُ ٱلْكِتَٰبَ ﴾ لام په ,الكتاب، كښې دجنس لپاره دې او ,,بالحق،، متعلق دې په ,,انزل،، پورې. ياحال دې د ,الكتاب، نه اى متلبساً بالحق ياشاهداً بالحق اوپه لفظ د ,معهم، كښې اشاره ده چه په هرنبى باندې مستقل كتاب نه ؤو نازل شوې، بلكه دډيرو انبياؤسره به يوكتاب ؤو.

﴿ لِيَحْكُمَ بَيْنَ ٱلنَّاسِ ﴾ ضميرپه ,ليحكم، كښې يا راجع دې الله تعالى ته او اسنادحقيقى دې اويا راجع دې كتاب ته او اسناد مجازى دې، يا راجع دې هر هر نبى ته.

﴿ وَمَا ٱخْتَلَفَ فِيهِ إِلَّا ٱلَّذِينَ أُوتُوهُ ﴾ دلته **درې امور** ذكركيږي : ١- اختلاف چاوكړو؟ ٢- كله ئى وكړو؟ ٣- ولې ئى وكړو؟ ، نوجواب ئى دادې چه : ١- ,,الذين اُتوهُ،، اختلاف اهل علمُ يعنى علماء سوء وكړو ٢- ,,من بعد ما جائتهم البينٰت،، بعد دعلم نه ئى وكړو ديده ودانسته . ٣- ,,بغيًا بينهم،، دضد او حسد لوجه نه ئى وكړو.

﴿ بَغْيًۢا بَيْنَهُمْ ﴾ دا مفعول له اوعلت دې د ,,اختلف،، لپاره او ,,بغياً،، په معنى دحسد اوضد سره دې او د ,,بينهم،، نه ورستو و ,,بين الانبياء،، مقدر دې، يائى معنى داده چه دا ضد اوحسد مشترك دې په مابين دټولو علماؤ سوء كښې اوڅوك ترينه هم خالى نشته دې، يائى معنى داده ,,خارجا بينهم،، اى من قلبهم

﴿ فَهَدَى ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ﴾ د الذين آمنوا نه مراد ((قصدوالايمان)) دې يعنې هغه خلق چه طلب دحق كوى يعنى علماء سوء هميشه مصروف ؤو په اختلاف كولوكښې ليكن الله تعالى هميشه دحق طلب كونكوته په خپله مهربانى اوتوفيق سره دحق هدايت وركړې دې اوپه حق ئى ثابت قدم كړيدى، يامراد د ((الذين اوتوه)) نه اهل كتاب دى اود ((الذين آمنوا)) نه امت

محمد ﷺ مراد دي يعني كله چه اهل كتابو په حق كښي اختلاف كړيدي نو الله تعالى په خپل فضل او مهرباني سره امت محمديه ﷺ ته هدايت كړيدي او ددوئ رهنمائي ئ كړيده لكه مثلاً كله چه يهودو نصارئ ؤدحضرت ابراهيم ﷺ په حق كښي اختلاف وكړو نو الله تعالى امت محمديه ته وفرمايل ﴿مَا كَانَ إِبْرَٰهِيمُ يَهُودِيًّا وَلَا نَصْرَانِيًّا وَلَٰكِن كَانَ حَنِيفًا مُّسْلِمًا﴾ اودارنګه دعيسى ﷺ په باره كښي چه كله دوئ اختلاف وكړو چه نصارئ ورته اله ويلو او يهودئى دنبوت نه منكر شو او په نسب ئى ورته طعن كولو نو الله تعالى دامت محمديه ﷺ رهنمائى وكړه او وي فرمايل ﴿إِنَّمَا ٱلْمَسِيحُ عِيسَى ٱبْنُ مَرْيَمَ رَسُولُ ٱللَّهِ وَكَلِمَتُهُۥٓ﴾ دغه شان اهل كتابو ديوم الجمعه په باره كښي دخپل خپل نبى سره اختلاف وكړو نو الله تعالى امت محمديه ته دهغي په باره كښي هدايت وكړو «كمافي الحديث : هذااليوم الذى اختلفوافيه فهداناالله له ــ الحديث».

| أَمْ حَسِبْتُمْ | أَن | تَدْخُلُوا | الْجَنَّةَ | وَلَمَّا | يَأْتِكُم | مَّثَلُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| آياګمان كوئ تاسو (۱) | چي داخل به شئ | جنت ته | | اولاتراوسه پوري نه دي راغلي تاسوته | پشان | دعجيبه حالاتو |
| الَّذِينَ | خَلَوْا | مِن | قَبْلِكُم ط | مَّسَّتْهُمُ | الْبَأْسَاءُ وَالضَّرَّاءُ | وَزُلْزِلُوا |
| دهغه كسانوچي تيرشوي دى | | | ستاسونه مخكښي، | رسيدلي دي هغوئ ته | سختئ مالي، اومرضونه، | اوجړقولي شوي وؤ |
| حَتَّىٰ يَقُولَ | الرَّسُولُ | وَالَّذِينَ | آمَنُوا | مَعَهُ | مَتَىٰ | نَصْرُ اللَّهِ ط أَلَا |
| دوئ تردي چي اووئيل | رسول | اوهغه چاچي | ايمان ني راوړي | وؤ ددۀ سره | كله به | راځي مدد دالله. خبرشئ |

إِنَّ نَصْرَ اللَّهِ قَرِيبٌ ۝
بيشكه مدد دالله نزدي دي.

﴿أَمْ حَسِبْتُمْ أَن تَدْخُلُوا ٱلْجَنَّةَ﴾ دا ترغيب الى الجهاد دي په وجهِ سابعه سره يعني جنت ته تلل په تكليفونو برداشت كولو سره كيدي شي او دغه شان دالله ﷻ بارګاه اقدس ته تقرب او رسيدل په تحمل دشدائدو او ترك د لذاتو سره كيږي ((كمافي الحديث حُفَّت الجنة بالمكاره

۱ - ووم (۷) ترغيب، جنت ته تلل آسان ندي، د جان او مال قرباني ضروري ده

وحفت النار بالشهوات)) . ((مثل الذين)) مثل يا په معنى دحالت عجيبه سره دې يعنې ددوئ حالت عجيبه تاسو ته لا تراوسه پورې ندې معلوم شوې او يا په معنى د تكليفونو سره دې يعنې په تاسو باندې هغه شان تكليفونه ندى راغلى كوم چه په هغوئ راغلى ؤو **اوتكليفونه دري قسمه دى** ۱- **يومالى** تكليف دې چه هغې ته ((باساء)) وائى ددې ذكرپه ﴿مَّسَّتْهُمُ ٱلْبَأْسَآءُ﴾ كښې راغلى دې. امام قرطبى په روايت دوهب رحمه الله نقل كړيدى چه په مابين دمكه اوطائف كښې اويا ۷۰ پيغمبران داسې موندلې شوى ؤو چه مړه ؤو دلوږې دوجه نه. او **دويم** ۲- قسم تكليف بدنى دې هغې ته ((ضرآء)) ويلې شى او ددې ذكرپه ﴿وَٱلضَّرَّآءُ﴾ كښې راغلى دې. په روايت دبخارى، ابوداؤد وغيرهما كښې دى چه حضرت خباب رضي الله عنه وائى چه مونږوويل يارسول الله ! آياتاسو زمونږ لپاره مددنه طلب كوئ ؟ او زمونږلپاره دعاء نه غواړئ دالله تعالى نه ؟

نونبى كريم ﷺ اوفرمايل چه بيشكه وو ستاسو نه مخكښې خلق چه دهغوئ دسرپه كيږئ باندې به اره كيښودلې شوه اوقدمونوته به ئې راورسيدله خو دې كاربه هم دوئ دخپل دين نه، نه اړول او ددوئ نه به په ((امشاط الحديد)) يعنى داوسپنې منګزې سره دهډوكونه غوښې او اعصاب راؤشوكولې شول او دوئ به ئې دخپل دين نه، نه اړول اوبيائى وفرمايل چه په الله تعالى مې دې قسم وى چه خامخا به الله تعالى دا امر ((دين)) تام كړى حتى چه دصنعاء ((يمن)) نه به يو راكب . دحضرموت پورې راځى اوهيڅ خوف به ورسره نه وى مګر دالله تعالى خوف به ورسره وى اوذئب ((شرمخ)) خوف به ورسره وى)) په خپلوګډواوبيزو باندې لكن تاسوجلدى كوئ. **اودريم** ۳- قسم تكليفونه دمخالفينوطعنونه الزامونه ، مكرونه وغيره دى اوديته اشاره ده په دې قول كښې ﴿وَزُلْزِلُوا﴾ زلزل د زلّ عن مكانه ((دخپل ځائ نه خويول)) نه ماخوذ دې نوچه زلزل ترينه جوړشونومعنى ئې داشوه چه زلل ئې مكرر شو نود زلزل معنى ((سخت جنبانيدن)) سخت خوزول جړقول دى.

﴿حَتَّىٰ يَقُولَ ٱلرَّسُولُ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾ دا قول درسول اودمؤمنانودشكايت لپاره نه دې بلكه دمدد غوښتلو او ډيرې عاجزى لپاره دې اودارنګه ﴿مَتَىٰ نَصْرُ ٱللَّهِ﴾ دمايوسى اونا

امیدی لپاره نه دي ځکه چه انبیاء لدې نه معصوم دی بلکه لپاره دطلب دمقصود دې چه هغه نصرت الهی دې. ﴿ أَلَآ إِنَّ نَصْرَ ٱللَّهِ قَرِيبٌ ﴾ دا تسلی ده دالله تعالی دطرفه دوئ ته

| يَسْـَٔلُونَكَ | مَاذَا | يُنفِقُونَ ۖ | قُلْ مَآ | أَنفَقْتُم | مِّنْ | خَيْرٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| تپوس کوي دوئ ۱. ستا نه څومره څيز پهٔ چاباندې خرچ کړي، ته اووايه چې څومره خرچ کوئ تاسو دمال نه | | | | | | |
| فَلِلْوَٰلِدَيْنِ | وَٱلْأَقْرَبِينَ | وَٱلْيَتَٰمَىٰ | وَٱلْمَسَٰكِينِ | وَٱبْنِ | ٱلسَّبِيلِ ۗ | |
| نو پس دپاره دمور پلار دې | اوخپلوانو، | اویتیمانو، | اومسکینانو، | او | مسافرو، | |
| وَمَا تَفْعَلُوا۟ مِنْ خَيْرٍ فَإِنَّ ٱللَّهَ بِهِۦ عَلِيمٌ ﴿٢١٥﴾ | | | | | | |
| اوهغه چې تاسوئې کوئ څه نېک کار پس بېشکه الله پهٔ هغې باندې عالم دې | | | | | | |

﴿يَسْـَٔلُونَكَ مَاذَا يُنفِقُونَ﴾ دا دمضمون انفاق ذکردې ثانیا. بظاهر داسې معلومیږئ چه دوئ سوال دمنفق نه کړیدې یعنی څه شې ،اوڅومره خرچ وکړو لیکن په جواب کښې دمصارفو بیان دې نو دې ته اشاره ده چه اصل اوزیات ضرورت مصرف پیژندل دی نو دا رد دې په رسم دجاهلیت چه هغوئ بی ځایه مالونه خرچ کول، حضرت الشیخ رحمه الله فرمائی چه سوال داؤو چه څومره مالونه خرچ کړو؟ نوجواب راغې چه هرڅومره چه تاسو خرچ کولې شئ نوخرچ کړئ خو دې مذکورو مصارفُ ته ئی صرف کړئ چه والدین، اقربین وغیره دی او دا انفاق واجب دې په هغه وخت کښې چه دوئ محتاج وی اودخرچ کونکی وس طاقت وی او که داسې نه وی نو بیاصرف استحباب دې.

﴿وَمَا تَفْعَلُوا۟ مِنْ خَيْرٍ﴾ دا ترغیب دې لپاره د انفاق په جهاد کښې یعنې په جهاد کښې چه څومره خرچ کړئ نو هغه ضائع نه دی.

---

۱ - مضمون د انفاق ، دویم وار.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| كُتِبَ | عَلَيْكُمُ | الْقِتَالُ | وَهُوَ | كُرْهٌ | لَّكُمْ ۚ | وَعَسَىٰ | أَن تَكْرَهُوا |

فرض كړى شوېدې ۱ په تاسوباندې جنګ كول، اوهغه تاسوته ګران اوطبعابدبنكاري، اوكيدېشي چې بدبنكارې تاسوته

شَيْئًا وَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۖ وَعَسَىٰ أَن تُحِبُّوا شَيْئًا وَهُوَ شَرٌّ لَّكُمْ ۗ

يوڅيز(طبعا)اوهغه به غوره وي تاسولره اوكېدېشي چې بنه ګڼئ به تاسويوڅيزاوهغه به بد وي تاسولره.

وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴿٢١٦﴾

او الله پوهيږي او تاسونه پوهيږئ

﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ﴾ دا دمضمونِ جهاد دريم وارذكردي. ﴿وَهُوَ كُرْهٌ لَّكُمْ﴾ ددينه طبعي كراهيت ناپسندي مراد ده او دا مراد نه دي چه امر د جهاد صحابو ﷺ ته مكروه ؤو

﴿وَعَسَىٰ أَن تَكْرَهُوا﴾ يعنى كيدې شي چه يوشې تاسوته طبعا ناپسند وى خوپه هغې كښې ستاسو ډيرخيروى لكه ترخه دوائى، دغه شان كيدې شي چه يوشې تاسوته محبوب وى لكه راحت، آرام، جهاد نه كول، خوپه هغې كښې ستاسو لپاره ډيرنقصان وى

﴿وَاللَّهُ يَعْلَمُ﴾ يعنې دهرشى دمنافعوعلم اودنقصاناتوعلم الله تعالى سره دې تاسوته نشته

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يَسْأَلُونَكَ | عَنِ | الشَّهْرِ | الْحَرَامِ | قِتَالٍ | فِيهِ ۖ | قُلْ قِتَالٌ |

دوئ تپوس كوي[۲] ستانه په باره د مياشتې محرمې كښې يعنى دجنګ كولونه پدېكښې، ته اووايه چې جنګ كول

فِيهِ كَبِيرٌ ۖ وَصَدٌّ عَن سَبِيلِ اللَّهِ وَكُفْرٌ بِهِ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ

پدېكښې(ګناه، لوئ دې. (ليكن، [۳] اومنع كول دالله دلارې نه اوكفر [۴] په الله باندې اومسجدحرام([۵]) نه منع كول

۱ - مضمون د جهاد ، دريم (۳) وار.
۲ - متعلق دمضمون جهاد سره.
۳ - په اشهرحرم كښې د مشروعيه دقتال اول علت.
۴ - دويم علت
۵ - دريم علت

| |
|---|
| وَ اِخۡرَاجُ اَهۡلِهٖ مِنۡهُ اَكۡبَرُ عِنۡدَ اللّٰهِ ۚ وَالۡفِتۡنَةُ اَكۡبَرُ مِنَ الۡقَتۡلِ ؕ |
| اوویستل(۱) داهل دمسجدحرام دده نه، دادېره لويه گناه ده په نزد دالله، اوفتنه(۲) ډېره لويۍ گناه دي دقتل نه |
| وَلَا يَزَالُوۡنَ يُقَاتِلُوۡنَكُمۡ حَتّٰى يَرُدُّوۡكُمۡ عَنۡ دِيۡنِكُمۡ اِنِ اسۡتَطَاعُوۡا ؕ |
| اوهمېشه(۳) به وي دوئ جنگ به کوي تاسوسره تردې پورې چې واپس اوگرزوي تاسولره خپل دين نه کچرې وس نې اورسي. |
| وَمَنۡ يَّرۡتَدِدۡ مِنۡكُمۡ عَنۡ دِيۡنِهٖ فَيَمُتۡ وَهُوَ كَافِرٌ فَاُولٰٓئِكَ |
| اوهرهغه څوک چې واپس اوگرزي په تاسو کښې دخپل دين نه پس مرشي پداسې حال کښې چې کافروي پس دغه کسان |
| حَبِطَتۡ اَعۡمَالُهُمۡ فِى الدُّنۡيَا وَالۡاٰخِرَةِ ۚ وَاُولٰٓئِكَ اَصۡحٰبُ النَّارِ ۚ هُمۡ |
| بربادشوعملونه ددوئ په دنيا کښې اوآخرت کښې، اودغه کسان خاوندان(اوسيدونکي)داور دي اودوئ به |
| فِيۡهَا خٰلِدُوۡنَ ۞ اِنَّ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَالَّذِيۡنَ هَاجَرُوۡا |
| پۀ دې کښې همېشه وي(اوسيږي). بېشکه هغه(۴) کسان چې ايمان نې راوړې دې اوهغه کسان چې هجرت نې کړېدې |
| وَجٰهَدُوۡا فِىۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ ۙ اُولٰٓئِكَ يَرۡجُوۡنَ رَحۡمَتَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ ۞ |
| اوجهادکوي پۀ لاردالله کښې، دغه کسان اميد لري دالله د رحمت، او الله بخښونکې ډېر مهربان دي. |

﴿ يَسۡـَٔلُوۡنَكَ ﴾ دا متعلق دې دمضمونِ جهاد سره، حضوراقدس ﷺ په سنه ۲هـ کښې يو لښکر(سريه) دعبدالله بن جحش ؓ په امارت کښې نخله مقام ته ((چه دمکې اوطائف په درميان کښې دې)) وليږلو، دوئ چه هلته ورسيدل.

نوعمروبن الحضرمی چه دکفارِقريش دقافلې مشری ئی کوله ملاؤشو نو دعبدالله بن جحش ؓ دقافلې دطرفه يو کس چه عبدالله بن واقد ؓ ؤو په هغه باندې دغشی گذاروکړو نو عمروبن الحضرمی ولگيدلو او مړشو اوملگری ئی وتښتيدل نودوئ ترينه مال غنيمت حاصل کړو اوتقسيم ئی کړو او دا په جهاد کښې اول مال غنيمت وو چه دکفارونه حاصل شو او دا تاريخ درجب دمياشتې اول ؤو اوپه دې کښې قتال کول منع ؤو، خو مجاهدينو دا خيال

۱ - څلورم علت.
۲ - پنځم علت.
۳ - شپږم علت.
۴ - بشارت.

کړي ؤو چه دا دجمادی الاخر دیرشم ۳۰ تاریخ دې نو ددې وجه نه ئی قتال وکړو. نو کافران چه خبرشو نو دوئ طعن شروع کړو چه محمد ﷺ محرمه میاشته «رجب» حلاله کړه قتال ئی پکښې وکړو اولوټ مارئی وکړو اومجاهدینو ته هم دافکرلاحق شو چه آیا زمونږ نه گناه ؤشوه نودا آیت نازل شو چه دا گناه نه ده، لکن دوئ ته بیا دا خیال راغې چه گناه خو نه ده لیکن مونږ ته به په دې جهاد څه ثواب هم ملاویږی یا نه ؟ نو ورستوبل آیت نازل شو : ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَٱلَّذِينَ هَاجَرُواْ وَجَٰهَدُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ أُوْلَٰٓئِكَ يَرْجُونَ رَحْمَتَ ٱللَّهِۚ وَٱللَّهُ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴾ آیت ۲۱۸

﴿عَنِ ٱلشَّهۡرِ ٱلۡحَرَامِ﴾ ددینه مراد میاشت درجب ده ﴿قِتَالٖ فِيهِۖ﴾ دا بدل اشتمال دې دالشهرالحرام نه ﴿قُلۡ قِتَالٞ فِيهِ كَبِيرٞۖ﴾ قتال مبتداء نکره ده اوتخصیص ئی شویدې په جارمجرور سره او «کبیرٌ» ئی خبردې دا جواب دې د «یسئلونك» یعني بیشکه په اشهرحرم کښې قتال عمداً کول گناه دې لیکن صحابه کرامو ﷺ خوقتال پدې گمان کړې ؤو چه دا دجمادی الاخر، اخیری تاریخ دې نودوئ خوعمداً قتال ندې کړې اومشرکان خوچه کله کمزوری وی نو دَ اشهر حرم رعایت کوی اوچه وس ئی ورسیږی نو بیاخوپه هروخت اوپه هرځائ کښې ستاسوسره قتال کولوته تیاروی لکه په حدیبیه کښې دوئ نه دحرم خیال وساته اونه ئی د اشهرحرم خیال وساته اوستاسو سره قتال ته تیارشو.

**جمهورعلماء دې آیت ته منسوخ وائی** اوناسخ ورته دا آیت دې «وقاتلوا المشرکین کافة» سورة توبه، او دارنگه فعل دنبی ﷺ چه غزوه تبوك په رجب ۹ کښې شوې وه.

اوشاه ولی الله رحمه الله ئی داسې مطلب بیانوی چه په ملت ابراهیمی کښې قتال په اشهر حرم کښې ناجائز ؤو نو دوئ سوال وکړو چه په شریعت محمدیه کښې ئی حکم دتحریم باقی دی اوکه نه ؟ نوجواب راغې چه قتال د کفارو سره جائز دې اودمسلمانانو سره قتال مطلقاً حرام دې اوپه اشهر حرم کښې ئی حرمت زیات مغلظ دې.

شاه صاحب رحمه الله فرمائی چه:«هذامن قبیل تسلیم العلة واظهارالموانع» یعني دحکم علت منل اواظهاردموانعو دحکم دَ قبیلې نه دې، نود آیت معنی داده چه قتال په اشهرحرم کښې نهایت سخت دې نو دا تسلیم دعلت شو لیکن کفر،شرك وغیره امور د دینه هم زیات سخت دی. نوځکه قتال حرام نه شو لپاره ددې چه دغه امور یعني کفروغیره دفع کړې شی نو دا اظهار دموانعو دحکم شو.

﴿وَصَدٌّ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ﴾ دا بیان دهغه امورو دي چه دهغې دوجې نه قتال جائز شویدې او حرمت ئی رفع شویدې اودا **امراول** دې. اودلته هم «صدٌ» مبتداء نکره ده خو تخصیص ئی په جار اومجرور سره راغلې دې. نو ابتدائیة ئی صحیح دې، او ددې مثال ابن مالك په الفیه کښې دا ذکرکړیدې «ورغبة فی الخیرخیرٌ» ﴿وَكُفْرٌۢ بِهِۦ﴾ دامعطوف دې په «صدٌ» باندې او دا هم مبتداء ده. تخصیص ئی په جار اومجرور سره راغلې دې.

﴿وَٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ﴾ داعطف دې په «سبیل الله» باندې.«ای صدّ المؤمنین عن المسجد الحرام» ، دا **دویم علت** دې. ﴿وَإِخْرَاجُ أَهْلِهِۦ﴾ دا **دریم علت** دې اود اهل نه مراد حضورﷺ اومؤمنان دی. ﴿أَكْبَرُ عِندَ ٱللَّهِ﴾ دا خبر دمبتداء دې ﴿وَٱلْفِتْنَةُ أَكْبَرُ﴾ دا **څلورم علت** دې دمشروعیت دقتال لپاره او دفتنې نه مراد یا شرك دې او یا ترینه مراد دمسلمانانو اړول دی ددین نه په جبر او اکراه سره.

﴿وَلَا يَزَالُونَ يُقَٰتِلُونَكُمْ﴾ **داپنځم علت** دې یعنې دا کفارچه کمزوری وی نو بیاخو د اشهر حرم رعایت کوی لیکن چه وس ئی ورسی نو بیا د اشهرحرم خیال نه ساتی اوستاسوسره قتال کوی ترهغې پورې چه تاسو دخپل دین حق نه واړوی، لیکن څوك چه دخپل دین نه واوړی او مرتد شی نودهغه لپاره وعیدبیانیږی ﴿وَمَن يَرْتَدِدْ﴾ الایه ـ چه دهغه تمام اعمال صالحه به برباد شی. ﴿فَيَمُتْ وَهُوَ كَافِرٌ﴾ دا جمله حالیه ده یعنې موت ئی په حالت دکفر راشی.

﴿فِى ٱلدُّنْيَا وَٱلْءَاخِرَةِ﴾ حبط د اعمالو په دنیا کښې دادې چه داسلام په وجه کومې فائدی حاصلیدلې لکه حقن الدم وغیره نو دا فوائد به نه حاصلیږی او په آخرت کښې حبط د اعمالو دادی چه ثواب او اجر به ورته نه ملاویږی. د احنافواوشوافعو په درمیان کښې دا **مسئله مختلف فیه** ده چه که یومالدار سړې حج اداء کړې وی اومعاذالله بیا مرتد شی او بیا مسلمان شی نو د احنافوپه نزدپه ده باندې بیاحج کول فرض دی او د مرتد کیدلو په وجه مخکښې حج اوټول اعمال صالحه ئی باطل شویدی، اودشوافعوپه نزد دوباره حج کول فرض ندی. دغه شان که چا مونځ وکړو اوبیا مرتد شو او بیا مسلمان شو او وخت باقی ؤو نوپه نزد د احنافو به اعاده دصلوة کوی اوپه نزد دشوافعوپه ده باندې اعاده نشته، اعمال صالحه به هله باطلیږی چه موت ئی په کفروشی،شوافع ددې آیت نه استدلال کوی چه «فیمت وهو کافر»

خکه چه ددینه په طریقې دمفهوم مخالف سره معلومیږی دا چه که موت ئی په کفر رانشی نو حبط د اعمالو به نه راځی او احناف استدلال کوی په بل آیت سره چه.

﴿وَمَن يَكْفُرْ بِٱلْإِيمَٰنِ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهُۥ﴾ دا مطلق دې چه موت ئی په کفر راغلې وی او که نه، او مطلق محمول نشو په مقید اګرکه په یوه حادثه کښې وارد دی خکه دا په اسبابو کښې دی او په اسبابو کښې چه مطلق راشی نو هغه په خپل اطلاق باندې پاتې وی، اوصاحب د در مختاروغیره ویلی دی چه دلته دوه امره مذکوردی : ۱- یودادې چه ﴿وَمَن يَرْتَدِدْ مِنكُمْ عَن دِينِهِۦ﴾ دویم دادې چه ﴿فَيَمُتْ وَهُوَ كَافِرٌ﴾ بیا پدې دواړوباندې دوه امره متفرع دی. په اول امر باندی دا متفرع دې چه ﴿حَبِطَتْ أَعْمَٰلُهُمْ فِى ٱلدُّنْيَا وَٱلْءَاخِرَةِ﴾ اوپه دویم امر باندې دامتفرع دې چه : ﴿وَأُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ هُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ﴾

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾ دا بشارت دې مؤمنانوته په مقابله دمرتدینو کښې او دمجاهدینو دشك ازاله ده، ((کمامرّ)). ﴿يَرْجُونَ رَحْمَتَ ٱللَّهِ﴾ دا جمله خبریه ده لیکن مقصود ترینه انشاء ده یعنی امید دې وساتی.

| يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلْخَمْرِ وَٱلْمَيْسِرِ ۖ قُلْ فِيهِمَآ إِثْمٌ كَبِيرٌ وَمَنَٰفِعُ |
|---|
| دوئ تپوس (۱)کوي ستانۀ دحکم دشرابواود جواړئ، تۀ اووایه چې پدې دواړو کښې ګناه سخته ده اوفائدې ددنیا |
| لِلنَّاسِ وَإِثْمُهُمَآ أَكْبَرُ مِن نَّفْعِهِمَا ۗ وَيَسْـَٔلُونَكَ مَاذَا يُنفِقُونَ |
| پۀ کښې هم دي دپاره دخلقو، اوګناه ددي دواړوډېرلوئ دي دنفع ددوئ نه، اودوئ تپوس کوي(۲) چې څه څيز خيرات کري دوئ |
| قُلِ ٱلْعَفْوَ ۗ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ ٱللَّهُ لَكُمُ ٱلْءَايَٰتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُونَ |
| تۀ ورتۀ اووایه. تيرې دخپل حاجت نۀ. دغه شان بيانوي الله تاسوتۀ آياتونۀ دپاره ددې چې تاسو فکراوکړئ |
| فِى ٱلدُّنْيَا وَٱلْءَاخِرَةِ ۗ وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلْيَتَٰمَىٰ ۖ قُلْ |
| پۀ مصحلت ددنيا او د آخرت کښې، اودوئ تپوس(۳) کوي ستانۀ پۀ باره ديتيمانوکښې، تۀ ورته اووایه |

۱ - اوله مسئله د ذوجهتین.
۲ - دویمه مسئله د ذوجهتین.
۳ - دریمه مسئله د ذوجهتین.

| |
|---|
| اِصۡلَاحٌ لَّهُمۡ خَيۡرٌ ؕ وَاِنۡ تُخَالِطُوۡهُمۡ فَاِخۡوَانُكُمۡ ؕ وَاللّٰهُ |
| ددوئ اصلاح (مالي ،جاني ،اخلاقي) ډېره غوره ده، اوکه تاسو ددوئ سره شرکت کوئ نو ددوئ ستاسوروڼه دي، اوالله |
| يَعۡلَمُ الۡمُفۡسِدَ مِنَ الۡمُصۡلِحِ ؕ وَلَوۡ شَآءَ اللّٰهُ لَاَعۡنَتَكُمۡ ؕ |
| پیژني خرابوونکي (دمال دیتیم) داصلاح کوونکونه، اوکه دالله اراده وې نوتاسوبه يې مشقت کښې اچولې وې |
| اِنَّ اللّٰهَ عَزِيۡزٌ حَكِيۡمٌ ۝ |
| بېشکه الله زورآوردې او حکمت والا دې |

﴿يَسۡـَٔلُوۡنَكَ عَنِ الۡخَمۡرِ وَالۡمَيۡسِرِ﴾ دلته پنځه مسائل ذوجهتين بيانيږي په مناسبت د ماقبل سره ، هغه پنځه مسائل دادي : ۱- بيان دحکم دخمراو د ميسر. ۲- بيان د انفاق ۳- ديتيمم دمال اصلاح اودهغه سره اختلاط اوشرکت ، ۴- بيان د نکاح دمشرکاتو اومشرکينو سره، ۵- حکم دمحيض، ماقبل کښې په اشهر حرم کښې دقتال ذکر وشو چه دا ذی جهتين دي دنفوسو عزت او اشهرحرم حرمت ته چه وکتلې شی نوپکارده چه قتال دې ونکړې شی ليکن چه د مشرکانو شرك او صَد او ((اِخۡرَاجُ اهله)) وغيره ته چه وکتلې شی نو پکار ده چه قتال دې وکړې شی نو قتال په اشهرحرم کښې ذی جهتين شو، اودا پنځه مسئلې هره يوه ذی جهتين ده : ۱- خمر او ميسر فائدې دنيوی لری ليکن نقصان او گناه زيات لری نوځکه منع کړې شو، ۲- انفاق بظاهر نقصان دې ليکن فوائد يې ډير دی نو ځکه يې د کولو حکم وشو ، ۳ -د يتيم نه مال اخستل او قبضه کول به ظاهر لږ شان فايده ښکاری، ليکن نقصان په کښې ډير دې ، ۴ -د مشرکانو ښځو سره نکاح بظاهر نفعه معلوميږی خصوصًا چه کله مال او جمال لری خو په دې کښې نقصان ډير دې نوځکه حرام شو، ۵ -د حائضې سره جماع کښې حصول د لذت دې چه به ظاهر نفع ده ليکن نقصان يې زيات دې نوځکه حرام شو.

((خمر)) هغه شراب دی چه مسکر(نشه) پيدا کوی اومخامرة العقل (پټ والې دعقل) راولی دهرې مادې نه چه جوړشوی وی، خمرپدې معنی کښې حقيقت شرعی دې اگرچه حقيقت لغوی دې په ((التی من ماء العنب اذاغلاوقذف بالزبد)) کښې، او ((ميسر)) هرقسم جواری ته شامل دې خواه که لاټری وی يانور تمام اقسام دجوارئ ، **دخمرو حرمت** آهسته آهسته راغليدې اومفسرينو تصريح کړيده چه دخمرو متعلق اول آيت دسورت نساء نازل شويدې. ﴿يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ

ءَامَنُوا لَا تَقْرَبُوا الصَّلَوٰةَ وَأَنتُمْ سُكَٰرَىٰ﴾ ـ الايه ـ نساء ۴۳ ، او بیا آیة مذکوره دسورت بقرة ۲۲۰ نازل شوې دي اوبیا ورستو دا آیت دمائده نازل شوې دي ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِنَّمَا ٱلْخَمْرُ وَٱلْمَيْسِرُ وَٱلْأَنصَابُ وَٱلْأَزْلَٰمُ رِجْسٌ﴾ ـ الايه ـ (مائده : ۹۰ ـ ۹۱)

﴿قُلْ فِيهِمَآ إِثْمٌ كَبِيرٌ﴾ یعني پدې دواړو کښې ګناه ده چه دا أخروی نقصان اوتاوان دي، ﴿وَمَنَٰفِعُ لِلنَّاسِ﴾ اودنیوی ،فانی ، فائدې په کښې هم دی لکه لذت ، فرح ، هضم ، وغیره په خمروکښې اوپه آساني سره مال ګټل په جوارئ کښې. ﴿وَإِثْمُهُمَآ أَكْبَرُ مِن نَّفْعِهِمَا﴾ یعنې هغه مفاسد اوګناهونه چه ددې دواړو نه پیدا کیږی هغه ډیرلوئ دی ددوئ دفائدونه لکه عداوت ، بُغض، د ذکر اوعبادت نه منع کیدل چه دا مذکوردی په آیت دسورة مائده کښې او «اکبر» یې او ویلو او «اکثر» ئ ونه ویلو په دې سره اشاره ده دیته چه یوه ګناه کبیره هم د بیشماره منافعونه زیات قبیح اوبده ده

﴿وَيَسْـَٔلُونَكَ مَاذَا يُنفِقُونَ﴾ دا دویمه مسئله ذوجهتین ده دغه شان مسئله مخکښې ذکرشوې وه، البتة هلته ئې په جواب کښې مصارف ذکرشوی ؤ اودلته دمقدارذکردې.

﴿قُلِ ٱلْعَفْوَ﴾ یعنې هغه مال چه دضروری حوائجونه زائدوی.

﴿تَتَفَكَّرُونَ فِى ٱلدُّنْيَا وَٱلْءَاخِرَةِ﴾ جاراومجرور یعنې فی الدنیا والاخرة متعلق دی دتتفکرون پورې ددنیا او دآخرت دفکرنه مراد ددنیا د زوال فکر او د آخرت دبقاء فکر مراد دې یا ددنیا دفکرنه مراد دادې چه بعضې مال ددنیا دضرورت لپاره وساتئ اوټول مه خرچ کوئ او د آخرت دفکرنه مراد دادې چه څه مال دآخرت ذخیره وګرزوئ.

﴿وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلْيَتَٰمَىٰ﴾ دادریمه مسئله ذی جهتین ده، په جاهلیة کښې به دیتیمانو سره ډیرظلم اوبدسلوك کیدلو نوپه قرآن کښې دیتیمانودمال خوړل په سختئ سره منع کړې شو ، لکه چه الله تعالی په سورة نساء کښې فرمایی : ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَٰلَ ٱلْيَتَٰمَىٰ ظُلْمًا إِنَّمَا يَأْكُلُونَ فِى بُطُونِهِمْ نَارًا ۖ وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيرًا﴾ (سورة النساء ۱۰)

نوصحابه کرامو ﷺ کښې چه دچاپه نګرانئ اوکفالت کښې یتیمانان ؤو نودهغوئ لپاره ئې دخوراك سکاك بندوبست جداشروع کړو اوپدې کښې حرج هم ؤو اوکله به دخوراك

سکاك ځیزونه خرابیدل نو دوئی تپوس وکړو نودا آیت نازل شو چه ﴿قُلْ إِصْلَاحٌ لَّهُمْ خَيْرٌ﴾ یعنې هغه طریقه اختیارکړئ چه په هغې کښې دیتیمانانو اصلاح اوفائده وی نوکه په شرکت نه کولو کښې فائده وی نو شرکت اوخلط مکوئ اوکه په شرکت اوخلط کولو کښې فائده وی نو بیاخیر دې خلط ورسره کوئ خو دهغوئ داصلاح خیال ساتئ اود دې آیت نه معلومیږی چه دیتیم په متولی باندې دیتیم اخلاقی اصلاح اومالی اوجسمانی اصلاح ضروری ده.

﴿ وَإِن تُخَالِطُوهُمْ﴾ مراد خلط دې په خوراك سکاك کښې لکه دابن عباس ﷺ نه مروی دی چه ((المخالطة ان یشرب من لبنك وتشرب من لبنه ویاءکل فی قصعتك وتاءکل فی قصعته ویاءکل من تمرك وتاء کل من تمرته))

﴿ وَاللَّهُ يَعْلَمُ الْمُفْسِدَ مِنَ الْمُصْلِحِ ﴾ لام په ((المفسد)) او ((المصلح)) کښې دعهد لپاره دی یعنې خرابوونکې دمال د یتیم اواصلاح کوونکې دمال دیتیم. یا لام الاستغراق دې او مراد هر مفسد اومصلح دې. او دمال دیتیم خرابوونکی اواصلاح کوونکی پکښې داخل دی

﴿لَأَعْنَتَكُمْ﴾ اعنت ، دعنت نه مشتق دې اوعنت لوئ مشقت اوتکلیف ته ویلې شی مراد ترینه سخت حکم ورکول دی.

| وَ لَا تَنكِحُوا الْمُشْرِكَٰتِ حَتَّىٰ يُؤْمِنَّ ۚ وَ لَأَمَةٌ مُّؤْمِنَةٌ خَيْرٌ |
|---|
| اونکاح مه کوئ[1] دمشرکوښځوسره ترڅوپورې چې ایمان ئ نه وی راوړې، اوخامخاوینځه مومنهٔ ډیره ښهٔ ده د(حرې) |
| مِّن مُّشْرِكَةٍ وَّ لَوْ أَعْجَبَتْكُمْ ۗ وَلَا تُنكِحُوا الْمُشْرِكِينَ حَتَّىٰ |
| مشرکې نهٔ اګرکه ستاسوډیره خوښوي، اوپهٔ نکاح سره مه ورکوئ مشرکانوته (مؤمنې ښځې) ترڅوپورې |
| يُؤْمِنُوا ۚ وَلَعَبْدٌ مُّؤْمِنٌ خَيْرٌ مِّن مُّشْرِكٍ وَّ لَوْ أَعْجَبَكُمْ ۗ |
| چې ایمان ئ نهٔ وي راوړې، اوخامخا غلام مؤمن ډیرغوره دې دمشرک نهٔ اګرکه تاسوتهٔ خوښ وي |
| أُولَٰئِكَ يَدْعُونَ إِلَى النَّارِ ۖ وَاللَّهُ يَدْعُوا إِلَى الْجَنَّةِ وَالْمَغْفِرَةِ بِإِذْنِهِ ۖ |
| دغه کسان (یعنی کافران) بلنه کوي طرف داورتهٔ، اوالله بولی خلق طرف دجنت تهٔ، اوبخښنې ته، پخپل حکم سره |

١ - څلورمه مسئله د ذوجهتین.

| وَيُبَيِّنُ | ءَايَٰتِهِۦ لِلنَّاسِ | لَعَلَّهُمْ | يَتَذَكَّرُونَ ﴿٢٢١﴾ |
|---|---|---|---|
| اوبيانوي خپل حكمونه خلقوته دپاره ددې چې دوئ نصيحت قبول كړي | | | |

﴿وَلَا تَنكِحُوا۟ ٱلْمُشْرِكَٰتِ﴾ دا څلورمه مسئله ذى جهتين ده. ددې آيت دنزول نه مخکښې دمسلم اوغيرمسلم په مينځ کښې نکاح جائز وه اوپدې آيت سره حرامه شو اوکه دنکاح نه ورستو يو د زوجينونه مشرك شو نو نكاح ماتيږي. **اوشرك دادې** چه دالله تعالى سره په علم يا قدرت ياپه بل يوصفت كښې بل څوك مماثل وګڼړى ، يابل چاته سجده په طوردعبادت سره وكړى ياترينه غائبانه طورسره حاجات وغواړى اومختار يې وګڼړى. باقى داهل كتابيې ښځې سره نکاح جائز ده اګرکه شرك كوى، اوعيسى ﷺ ته اوعزير ﷺ ابن الله وائى خو پدې شرط چه خپل كتاب اونبى منى اوملحده اودهريه نه وى نود «المشركات» نه دلته مراد هغه مشركات دى چه كتابيئ نه وى نو دا آيت شامل نه دې كتابياتوته نومنسوخ نه دې اوبعضې وائى چه شامل دې كتابياتوته خوپه حق دكتابياتوكښې منسوخ دې په آيت دسورة مائدې سره.

**ددې آيت خلاصه داده** چه دمسلمان نارينه نكاح دمشركې ښځې سره ترهغه پورې جائز نه ده تر څو چه مسلمانه نشى اومسلمانه وينځه دمشركې ښځې نه بهتره ده اګر كه دامشركه ښځه حره وى او دمال اوجمال اوعزت شرافت په وجه ستاخوښه هم وى. اوهم دغه شان دمسلمانې ښځې نکاح دمشرك نارينه سره ترهغې پورې جائزنه ده ترڅوچه دا سړى مسلمان نه شى او مسلمان مريئى (غلام) دمشرك نه ډيرښه دې اګركه دامشرك حر، شريف، ښه ښاغلې . او مالدار وى اوستا سو په نظركښې درونډكتې شى ، خو ادنىٰ خوار مسلمان دده نه ډيربهتر اوغوره دې.

﴿أُو۟لَٰٓئِكَ يَدْعُونَ﴾ داعلت دحرمت دنکاح داهل شرك دې. ﴿إِلَى ٱلنَّارِ﴾ مراد ددينه هغه اعمال دى چه مفضى الى النار يعنى اورته رسول كوى. ﴿إِلَى ٱلْجَنَّةِ﴾ مراد هغه عملونه دى چه جنت ته رسول كوى اود بخښش ذريعه وى. ﴿بِإِذْنِهِۦ﴾ اى بتوفيقه .

| وَيَسْـَٔلُونَكَ | عَنِ ٱلْمَحِيضِ | قُلْ | هُوَ | أَذًى | فَٱعْتَزِلُوا۟ | ٱلنِّسَآءَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوتپوس كوي دوئ ستاند دحکم دحيض، ورته اووايه چې دا يوګندګي ده، نوتاسو په څنګ شئ دښځونه | | | | | | |

| فِى ٱلْمَحِيضِ | وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ | حَتَّىٰ | يَطْهُرْنَ | فَإِذَا |
|---|---|---|---|---|
| په حالت د حيض کښې، اونزديکت مکوئ ددوئ سره ترڅوچې دوئ دحيض نه پاکې نشي، پس کله چې | | | | |

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| تَطَهَّرْنَ | فَأْتُوهُنَّ | مِنْ حَيْثُ | أَمَرَكُمُ | اللَّهُ ۚ | إِنَّ | اللَّهَ |
| دوئ ښې پاکې شي نونژديکت کوئ ددوئ سره دَ هغه ځائې نه چې جائز کړې دې هغه الله تاسودپاره، بېشکه الله | | | | | | |
| يُحِبُّ | التَّوَّابِينَ | وَيُحِبُّ | الْمُتَطَهِّرِينَ ۝ | | | |
| محبت کوي دتوبه کوؤنکوسره اومحبت کوي دځان پاک ساتونکو سره دَ گندگئ نه | | | | | | |

﴿وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلْمَحِيضِ﴾ دا پنځمه مسئله ذوجهتين د، «**حيض**» هغه وينوته وائی چه درحم د بالغې ښځې نه دعادت موافق بهيږی ، نوپدې حالت کښې ، جماع، مونځ، روژه، طواف، تلاوت دقرآن، دخول مسجدته منع اوحرام دی اوکه وينه دعادت موافق نه وی نو هغې ته استحاضه «ناروغتيا» ويلې شی نو دا مذکور اشياء پکښې منع نه دی، لکه دزخم يا پوزې نه يارگ وهلونه چه وينه بهيږی ، يهوديانو به دحيض په وقت کښې دښځوسره يوځائ خوړل سکل اوپه کورکښې يوځائ به يې استوگنه ناجائزگنړل ، اونصاریٰ وو به دا کارونه جائز گنړل حتی چه دجماع نه به ئی هم ځان نه ساتلو نوصحابه کرامو ﷺ ددې په باره کښې دحضور ﷺ نه تپوس وکړو نو **دا آيت نازل شو** نوحضور ﷺ دوئ ته اوفرمايل چه : «اصنعوا کل شئ الاالنکاح»يعنی په حالت دحيض کښې جماع حرامه ده نورهرڅه جائزدی،يوځای خوړل، سکل، استوگنه، ناسته، ولاړه هرڅه جائز دی ديهوديانو د افراط اونصاریٰ وو دتفريط رد وشو، لفظ د «**محيض**» مصدر ميمی هم راځی اوظرف مکان او زمان هم راځی، دلته په معنی دمصدر سره دې اوظرف مکان هم کيدې شی يعنې محل دحيض چه عورت خاصه دې چه محل د اذی دې، البة په دې تقدير به ورستو په ﴿فَٱعْتَزِلُواْ ٱلنِّسَآءَ فِى ٱلْمَحِيضِ﴾ کښې ظرف زمان مراد وی.

**فايده** : قاضی بيضاوی وغيره وائی چه دلته «يسئلونك» درې وارې اول په غير د «واو» نه ذکردې او بيا درې وارې ورستوپه واوسره ذکردې نو ددې وجه داکيدې شی چه د اول درې سوالاتوپه درميان کښې فصل ؤو، نو «واو» سره ذکرنه شو، ځکه چه واو د وصل لپاره وی او د ورستو درې سوالاتوپه درميان کښې فصل نه ؤو نوهغه په واوسره ذکرشو چه وصل ته اشاره راشی.

﴿قُلْ هُوَ أَذًى﴾ که «محيض» مصدرشی نو بيا تقديرته حاجت نشته اوکه ظرف مکان شی نو بيا لفظ دموضع مقدر دې «ای هوموضع اذی» او اذی مستقذرشې اوگندگئ ته ويلې شی

(كمافسره قتادة) حضرت الشيخ رحمه الله فرمائی چه گندگی که چرې جسمانی وی یعنې حیض نو ددوئ نه دځو ورځو لپاره دې جدائی اختیارکړی لیکن که چرې روحانی گندگی وی یعنی کفر او شرك نوبیا دې ترینه همیشه لپاره جدائی اختیار کړی.

﴿فَاعْتَزِلُوا النِّسَآءَ﴾ ددینه مراد اجتناب دې دجماع نه لکه دمابعد نه معلومیږی. لیکن اسناد وشو نفس ذات دنساؤته لوجه دمبالغې نه او ذکر شو اسم ظاهرلپاره د اهتمام شان.

﴿وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ﴾ ددینه مراد جماع کول دی او دا تفسیر دماقبل لپاره دې ﴿حَتّٰى يَطْهُرْنَ﴾ ددینه انقطاع اوبندکیدل دوینودحیض مراد دی. ﴿فَإِذَا تَطَهَّرْنَ﴾ دا دباب تفعل مزیدونه دې چه په مبالغه باندې دلالت کوی، نوددینه مراد غسل کول دی، نو د اول نه یعنی «حتی يطهُرن» نه معلومیږی چه په نفس بندیدلو ددم الحیض سره صحبت جائز دې اوددویم یعنی «تطهّرن» نه معلومیږی چه دغسل کولونه وروستو جائزکیږی نوپه **ظاهرکښې تعارض** معلومیږی، **نواهل اصول وائی** چه اول محمول دې په دې چه انقطاع ددم الحیض راشی په اکثرمُدة الحیض باندې چه لس ورځې دی، اودویم محمول دې په دې چه انقطاع راشی په اقل کښې نو په اول صورت کی په غیردغسل کولونه صحبت جائزدې اوپه دویم صورت کښې بعد دغسل نه جائز دې.

لیکن حضرت شاه انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی چه دلته صنعت احتیاك دې یعنی په اول کښې تخفیف مذکوردې یعنی «يَطْهُرْنَ» اوتشدید مقدردې چه هغه «وَيَطّهّرْنَ» دې اوپه دویم کښې تشدید مذکور دې اوتخفیف مقدر دې چه «طهُرن» دې نو تقدیر د آیت داسې دې چه «حَتّٰى يَطْهُرْنَ وَيَطّهّرْنَ فَإِذَاطَهُرْنَ وَتَطَهَّرْنَ» فلله درّه.

﴿فَأْتُوهُنَّ﴾ ددینه مراد جماع اوصحبت دې ﴿مِنْ حَيْثُ﴾ یعنی هغه ځائ ته چه اجازت ورکړې دې دهغې الله تعالی چه هغه قُبل دې (مخې خوا) اوهغه موضع الحرث دې اود وطی لپاره فطری اوطبعی محل دې، اوددې لپاره واضح دلیل دا دې چه حیوانات (چارپایان) چه دهغوئ رهنمائی صرف فطرت کوی نوهغوئ دخپل همجنس سره جماع هم پدې محل کښې کوی اوهرچه «دُبر» دې نوهغه موضع الفرث دې نه موضع الحرث. ﴿يُحِبُّ التَّوَّابِينَ﴾ هغه کسان چه گناه ترینه اتفاقاً صادره شی لکه مثلاً دحیض په حالت کښې وطی نوپه اخلاص

سره به توبه کوی ﴿ ٱلْمُتَطَهِّرِينَ ﴾ ددینه مرادهغه څوك دی چه په حالت دحیض کښې دجماع نه ځان ساتی.

| نِسَآؤُكُمْ | حَرْثٌ | لَّكُمْ | فَأْتُوا | حَرْثَكُمْ | أَنَّىٰ | شِئْتُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ستاسو ښځې ځائې دفصل کرلو دي ستاسو دپاره، پس راتله کوئ ځائې دفصل خپل ته پهٔ کومه طریقه چې ستاسو خوښهٔ وي، | | | | | | |
| وَقَدِّمُوا لِأَنفُسِكُمْ ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا أَنَّكُم مُّلَاقُوهُ ۗ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٢٢٣﴾ | | | | | | |
| او مخکښې ولیږئ (څه خیر) د خپلو ځانونو دپاره، اوویریږئ دالله نهٔ، اوپوهه شئ چه بیشکه تاسو بهٔ دالله سره ملاویږئ، اوزیرئ ورکړه مؤمنانو ته دجنت | | | | | | |

﴿ نِسَآؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ ﴾ دا په حذف دمضاف سره دي ((ای موضع حرث لکم)).

﴿فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّىٰ شِئْتُمْ ﴾ اتیان نه مراد جماع کول دی او ((حرثکم)) کښې اشاره ده چه دا ((اتیان)) خاص دي په فرج پورې ځکه چه دیته ئی حرث ویلیدې او وروستوعورت (دبر) ته فرث ویلې شی، او ((انّی)) په معنی دکیف اومتی سره دې اوپدې سره عموم دکیفیاتو او اوقاتوته اشاره ده نه عموم دمکان ته، په یهودو کښې دا مشهوره وه چه وطی دقُبل سره من جانب الدُبرمنع ده، او دوئ به ویل چه څوك په دغه طریقه مجامعت دښځوسره وکړی نو بچې به ترینه احول (کوږسترګی) (چیپ) پیدا کیږی، نو د رسول الله ﷺ نه چه په دې باره کښې تپوس وشو **نو دا آیت نازل شو** چه ستاسې ښځې ستاسې لپاره ځائی دفصل دي چه پدوئ کښې نطفه اچول پشان دتخم کرلو دي اواولاد دپیداوارپه شان دي نوستاسواختیاردي چه په هرکیفیت اوطریقه سره جماع کوئ نو جائزه ده په شرط ددې چه دموضع الحرث یعنی قبل سره وی. اودیهودیانو خیال غلط دې.

﴿وَقَدِّمُوا لِأَنفُسِكُمْ﴾ یعنې دځان لپاره عمل صالح مخکښې ولیږئ. **ددې مطلب** یا دادې چه اعمال صالحه دځان لپاره همیشه کوئ داسې نه چه په دنیوی لذاتو کښې مشغول شئ او د آخرت لپاره عمل کول درنه پاتې شی. یا **دا مطلب دې** چه دنکاح اووطی نه صرف نفسانی خواهش پوره کول اولذت حاصلول مقصود مه ګرځوئ بلکه نیت د اولاد صالحه (تکثیرامة) او د اصلاح نفس کوئ یا **مطلب دادې** چه دجماع نه مخکښې عمل صالح چه دعاء ماثوره ده وائی. لکه په حدیث صحیحه سره ثابته ده چه څوك دجماع نه مخکښې دا دعاء لولی نو ددې جماع نه چه کوم اولاد پیدا شی نو دشیطان د شراوضررنه به محفوظ وی او هغه دعاداده چه ((اَللّٰهُمَّ جَنِّبنَا الشَّیطٰن وجنّب الشیطٰن مارزقتنامنه)).

﴿وَاتَّقُوا اللَّهَ﴾ يعني اوامر، نواهي پوره کوئ ﴿وَاعْلَمُوا أَنَّكُم مُّلَاقُوهُ﴾ يعني دا استحضارساتئ چه دالله تعالى حضورله تلل دى نو پدې سره به تقوىٰ پيدا کيږى او دتقوى والو لپاره خوشخبرى ده .

| وَلَا تَجْعَلُوا | اللَّهَ | عُرْضَةً | لِّأَيْمَانِكُمْ | أَن | تَبَرُّوا | وَتَتَّقُوا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اومه گرزوئ (۱) نوم دالله نښه دخپلوقسمونودپاره، چې نه به نېکې کوئ دچاسره اونه به پرهيزگارى کوئ | | | | | | |

| وَتُصْلِحُوا بَيْنَ النَّاسِ ۗ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ۝ |
|---|
| اونه به صلح کوئ په مينځ دخلقو کښې، اوالله آوريدونکې دې عالم دې |

﴿وَلَا تَجْعَلُوا اللَّهَ﴾ د پنځو مسائل ذى جهتين نه ورستو بيا د امورانتظاميو ذکر کيږى

﴿عُرْضَةً لِّأَيْمَانِكُمْ﴾ «لام» په «لايمانکم» کښې صله د «عرضة» ده او **دعرضة يوه معنى** ده نشانه (نښه) لکه څرنګه چه يوه نشانه اوهدف باربار دمشق لپاره ويشتلې کيږى نو تاسې دغه شان دالله تعالى نوم دخپلوقسمونو لپاره نشانه مه گرزوئ چه قسمونه پرې خورئ.

﴿أَن تَبَرُّوا﴾ دا عطف بيان دې د «لايمانکم» لپاره او «ان» مصدريه دې او «بر» نه قسم کول مراد دى، ددې حاصل اونتيجه داده چه «بر» نه کول، نو دلته (لا) مقدر دې يعني تاسو دالله تعالى نوم نشانه مهٔ گرزوئ دخپلو قسمونو لپاره اوقسم دا چه بر او احسان به نه کوو د والدينواو اقاربو سره اوتقوىٰ به نه کوو اواصلاح به نه کوو اوکه چا دغه شان قسم کړې وى نوماتول ئې ضرورى دى اوکفاره به ورکوى، اود«**عرضة**»**بله معنى** ده حاجز، مانع،نو پدې تقدير سره «ان تبرّ وا» د «عرضة» سره متعلق دې اولام په «لايمانکم» کښې دتعليل لپاره دې ((اى لاتجعلوا ذکرالله مانعابسبب ايمانکم من ان تبروا ــ اى من البروالتقوى والاصلاح)) .

حضرت الشيخ فرمائى (کما فى روح المعانى) چه د ايمان نه مراد محلوف عليه دې ((کمافى الحديث من حلف على يمين فراءى غيرهاخيرامنهافليکفرعن يمينه ولياءت بالذى هوخير)) نومعنى داده چه ((لاتجعلوالله حاجزالماحلفتم عليه وترکتموه من انواع الخير)) يعني دالله تعالى نوم منع کونکې مه گرزوئ دنيکئ دانواعونه.

**اوانواع دنيکئ درې قسمه دى** چه دا خلاصه ددين ده **يود اچه** «أَن تَبَرُّوا» دحقوق العباد

۱ دمسائلود ذوجهتين نه بعد دويم وار دامور انتظاميه و ذکر يمين، طلاق، عدت، نفقه وغيره

ادا کول، **دويم** دا چه «وَتَتَّقُوْا» حقوق الله ته اشاره ده، او **دريم** دا چه «وَتُصْلِحُوْا» يعني دخلقونه شر دفع کول.

| لَا يُؤَا | خِذُكُمُ | اللّٰهُ | بِاللَّغْوِ | فِيْٓ | اَيْمَانِكُمْ | وَ لٰكِنْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الله تاسونه نسي (١) په لغوقسمونو ستاسي (يعني بې قصده اوبې پوهې سره) ليکن | | | | | | |

| يُّؤَاخِذُكُمْ | بِمَا | كَسَبَتْ | قُلُوْبُكُمْ ط | وَاللّٰهُ | غَفُوْرٌ | حَلِيْمٌ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نيسي تاسو په هغه دروغو قسمونو چې قصد کړې وي زړونو ستاسو، اوالله بخښونکې دې اوصبر کوونکې دې | | | | | | |

﴿لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ﴾ دا ديمين لغو بيان دې چه پديکښې مواخذه دنيوی يا اخروی نشته.

﴿بِمَا كَسَبَتْ قُلُوْبُكُمْ﴾ کسب د زړه نيت او اراده کول دی او دا شامل دې يمين غموس اومنعقده دواړولره خودلته ترينه مراد يمين غموس دې اوپه سورة مائده کښې ترينه يمين منعقده مراد دې. **نوقسَمْ په درې قسمه دې** : **اول** يمين لغوه، دشوافع په نزد يمين لغوه هغه دې چه په ژبه باندې عادة وی بی د ارادې دقسم نه لکه « لاوالله» وغيره الفاظ دقسم ووائی لپاره دمجرد تاکيد او دا تفسير مروی دې دحضرت عائشة رضي الله عنها اوابن عمر رضي الله عنه وغيرهما نه او د احنافو په نزد يمين لغوه هغه دې چه په غلطئ سره په يو تيرشوی کارقسم وکړی دخپل ګمان مطابق اوپه واقع کښې دغه شان نه وی لکه مثلا د چا دا ګمان وی چه زيد لاهور ته تللې دې او دخپل ګمان مطابق قسم وکړی چه والله زيد لاهورته تللې دې اوپه واقع کښې نوی تللې او دا تفسير مروی دې دحضرت ابن عباس رضي الله عنه ،حسن، مجاهد ،نخعی،زهری ، وغيره نه.

**دويم** يمين منعقده چه د راتلونکی کاردکولو يا د نه کولو په باره کښې قسم وکړی نوپه دې کښې کفاره لازمه ده په شرط د حانث کيدلو باندې، **دريم** يمين غموس دې چه قصداً په دروغه قسم وکړی، پدې کښې ګناه ده او په کفاره کښې اختلاف دې شوافع دکفارې قائل دی او د احنافو په نزد کفاره پرې نشته دې.

| لِلَّذِيْنَ | يُؤْلُوْنَ | مِنْ نِّسَآئِهِمْ | تَرَبُّصُ | اَرْبَعَةِ | اَشْهُرٍ ۚ |
|---|---|---|---|---|---|
| دپاره دهغه خلقوچې قسمونه ئې کړي وي دخپلوښځو (دنزديکت) نه انتظاراومهلت دې څلورمياشتې | | | | | |

١- ديمين، لغو او غموس ذکر.

| فَإِنْ | فَآءُو | فَإِنَّ | اللهَ | غَفُورٌ | رَّحِيمٌ ۝ | وَ إِنْ عَزَمُوا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نو پس كچري دوئ | واپس شو (دخپلو قسمونو نه) | پس بېشكه | الله | بخښونكي | مهربان دي | اوكچري دوئ قصد كړي وي |

الطَّلَاقَ فَإِنَّ اللهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ۝

د طلاق نو پس بېشكه الله اوريدونكئ عالم دي

﴿لِلَّذِينَ يُؤْلُونَ مِن نِّسَآئِهِمْ﴾ ديمين په مناسبت سره د ايلاء ذكر دې. ايلاء په لغت كښې مطلق قسم ته وائي اوپه اصطلاح كښې ديته وائي چه څوك قسم وكړي چه خه به ښځې ته نزديكت نه كوم څلورمياشتې، نو كه دڅلورمياشتو نه يوه ورځ هم كمه وي نو دغه ايلاء شرعي نه ده بلكه قسم دې نو ديمين منعقده حكم به پرې جاري كيږي اوچه پوره دڅلور مياشتو قسم وكړي نو دا ايلاء شرعي ده نو **ددې حكم دادې** چه دڅلورمياشتو پوره كيدلو نه مخكښې مخكښې دې قسم مات كړي اوكفاره دې اداء كړي اوكه دڅلورومياشتو پوره كيدلو نه مخكښې مخكښې ئې قسم مات نه كړو نو بيا يو طلاق بائن واقع كيږي، يعنې ښځه پرې طلاقه شوه په غير دحاجت نه تفريق دحاكم اوقاضي ته . اوپه نزد د امام شافعي رحمه الله تفريق په قضاء دقاضي سره راځي. نو پدې آيت كښې د ايلاء ذكر دې **اودجاهليت ديوغلط ظالمانه دستور رد دې.** هغه داؤو چه كله به يوسړي دښځې نه ناراض ؤو نوقسم به يې ترينه وكړو نو نه به ئې ورسره د زوجيت تعلق ساته اونه به ئې پريښودله چه بل چرته نكاح وكړي نو تمام عمر به دا خواره په مشقت اوتكليف كښې (كالمعلقه) وه، نو پدې آيت كښې حكم راغې چه څوك دغه شان قسم وكړي نو بيا د څلورو مياشتو پوره كيدلو نه مخكښې مخكښې دې رجوع وكړي ښځې ته اوحقوق زوجيت دې برحال كړي اوكفاره دې اداء كړي اوكه داسې ونه كړي نو بيا به ښځه طلاقه شي.

﴿فَإِن فَآءُو﴾ يعنې كه رجوع وكړي ښځې ته په مدت دڅلورومياشتوكښې ﴿فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ يعنې د ايلاء كولو په وجه چه دكوم ظلم اوګناه اراده ئې كړې وه او دارنګه دحانث كيدلوچه كومه ګناه ده نو دا ګناه الله تعالى معاف كوي په رجوع كولواوكفاره اداكولوسره ﴿وَإِنْ عَزَمُوا الطَّلَاقَ﴾ يعنې رجوع نه كول ، اوپه ايلاء استمراركول ، عزم دطلاق دې نو كه په څلورومياشتوكښې ئې رجوع ونه كړه نوطلاق به واقع شي او د طلاقوحكم وجوب دعدت دې نو دعدت حكم ذكر كيږي.

وَالْمُطَلَّقٰتُ يَتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ ثَلٰثَةَ قُرُوْٓءٍ ؕ وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ

اوطلاقې[1] کړې شوې ښځې به په انتظار کښې لرى خپل ځانونه درې حيضه، اوحلال نه دي دوئ لره

اَنْ يَّكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللّٰهُ فِيْٓ اَرْحَامِهِنَّ اِنْ كُنَّ يُؤْمِنَّ بِاللّٰهِ

داچې دوي پټ کړي هغه څه چې پيدا کړيدي الله ددوئ په رحمونو کښې، که وي دوئ چې ايمان ئ راوړې وي په الله

وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ؕ وَبُعُوْلَتُهُنَّ اَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ فِيْ ذٰلِكَ

او په ورځ دآخرت، اوخاوندان[2] ددوئ زيات حقدار دى دواپس کولوددوئ پدې موده کښ (عدت) کښې

اِنْ اَرَادُوْٓا اِصْلَاحًا ؕ وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِيْ

کچرې اراده لرئ ددوئ داصلاح اوجوړښت، اودپاره ددې ښځو(په خاوندانوباندې) مثل دهغه حق دي

عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ۪ وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ ؕ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۲۲۸﴾

چې کوم پدوئ دې(دخاوندانو)په شرعي دستورسره، او دپاره دسړو پدوئ باندې غوره والې دې، اوالله غالب دې حکمت والا دې

﴿يَتَرَبَّصْنَ﴾ دا اخبار دې مقصود ترينه امردې ﴿بِأَنفُسِهِنَّ﴾ باء د تعديت لپاره ده يعنې په انتظارکښې دې وساتى خپل نفسونه ﴿ثَلَٰثَةَ قُرُوٓءٍ﴾ دا بيان دعدت دهغه مطلقې ښځې دې چه مدخول بها وى يعنې صحبت بالخلوت صحيحه ورسره شوې وى اوحامله نه وى او وينزه نه وى بلکه حره وى او ذواة الحيض وى (يعنى حيض ئى کيږى) نو ددې عدت درې حيضونه دى په نزد داحنافو او درې طهرونه دى په نزد دشوافعو، منشاء داختلاف داده چه لفظ دقروء جمع ده قرء ده اوقرء مشترك دې اطلاق ئى په حيض هم کيږى، اوپه طهرباندې هم کيږى نو شوافع ترينه طهرونه مرادکوى اواحناف ترينه حيضونه مراد کوى ((والتفصيل فى الكتب الفقه والاصول)).

﴿وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ أَن يَكْتُمْنَ مَا خَلَقَ ٱللَّهُ فِىٓ أَرْحَامِهِنَّ﴾ په رحم کښې ياحمل وى ياحيض وى نو ددې په کتمان اوپټولوسره دعدت اقسام بدليږى اونورډيرمفاسد راځى مثلاً چه يوه ښځه حامله وى نوعدت ئى وضع دحمل ده نوچه داحمل پټ کړى او وه وائى چه زه حامله نه يم نوعدت ئى بدل شو او دحمل نسب دغيرسره ملحق شو اوچه حيض ئى کيږى اودا ووائى چه

١ - دطلاق بيان.
٢ - دطلاق او رجوع حق دخاوند دې.

زما حیض نه کیږی نو بیاهم عدت بدل شو اودارنګه چه دعدت په دوران کښې دریم حیض شروع وی نوعدت ختم نه دې اوکه ښځه ووائی چه زما دریم حیض ختم شویدې نودحکم تبدیل به راشی نو ددې وجه نه تاکیداً ذکرشوه چه کتمان دې نه کوی.

﴿إِن كُنَّ يُؤْمِنَّ﴾ دا د تاکیدلپاره دې اود تقییدلپاره نه دې چه که کتمان ئی وکړو نو مؤمنانې به نه وی، یا دتقیدلپاره دې خو مراد دایمان نه درجه کامله دایمان ده نوکه کتمان ئی وکړو نو ایمان کامل به نی نه وی او ددې رجع هم تاکید دحکم ته ده اوچونکه پدې معامله کښې. یعنې دحمل یا دحیض شته والی یا نشتوالی کښې معتبرقول دښځې دې نو ددې وجه نه تاکید ذکر شو، ﴿وَبُعُولَتُهُنَّ أَحَقُّ﴾ احق په معنی د حقدارسره دې، مطلب دادې چه په مده دعدت کښې یعنې تر څو چه عدت نوی ختم شوې نو خاوند حقدار دې چه ښځې ته رجوع وکړی قولاً یا فعلاً او زوجیت ته ئی واپس کړی لیکن رجوع کول هله جایز دی اوګناه په کښې نشته چه دخاوند مقصود اصلاح اوخانه آبادی وی اوښځې ته ایذاء رسانی اوتطویل عدت ئی مقصودنه وی او که مقصود ئی ایذاء او تطویل دعدت ؤو نوپه دغه رجوع کولو کښې ګناه ده

﴿وَلَهُنَّ مِثْلُ ٱلَّذِى﴾ پدې کښې دښځې دحقوقو بیان دې، اومثلیت په وجوب اولزوم کښې مراد دې اوپه مقدارکښې نه دې مراد. ﴿وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ﴾ ددینه مراد فضیلت دنارینؤ دې په ښځو، ځکه چه نارینه دداسې کارونو صلاحیت لری چه زنانه دهغې صلاحیت نه لری.

| |
|---|
| اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ ۖ فَإِمْسَاكٌۢ بِمَعْرُوفٍ أَوْ تَسْرِيحٌۢ بِإِحْسَانٍ ۗ |
| طلاق رجعي د دوؤکرتوپوره دې، نوددینه پس نې یا ساتل دی په ښهٔ طریقه یا نې پرېښودل دي په ښکه طریقه |
| وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ أَنْ تَأْخُذُوا مِمَّآ اٰتَيْتُمُوهُنَّ شَيْـًٔا إِلَّآ أَنْ يَخَافَآ |
| اوحلال نهٔ دي تاسولره چې واخلئ تاسوځهٔ څیزدهغې مال نهٔ چې تاسوورکړې دې دوئ تهٔ مګر دا چې ویرېږي ښځهٔ خاوند |
| أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ اللّٰهِ ۗ فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ |
| چې قائم به اونهٔ ساتي دادواړه احکام دالله، پس کچرې ویرېږئ تاسوچې قائم به اونهٔ ساتی دادواړه احکام |
| اللّٰهِ ۙ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا افْتَدَتْ بِهٖ ۗ تِلْكَ حُدُودُ |
| دالله حقوق زوجیت پس نشته ګناه پدې دواړوبهٔ هغې څیز کښې چې فدیه ورکړي دابنځه پهٔ هغې سره . دا پولې |

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اللّٰهِ فَلَا تَعۡتَدُوۡهَا ۚ وَ مَنۡ يَّتَعَدَّ حُدُوۡدَ اللّٰهِ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوۡنَ ۞ | | | | | | | | | |
| دالله دي پس تاسوددېنه مه تيريږئ، اوڅوک چې تيرشي دپولودالله نۀ پس دغه کسان هم دوئ ظالمان دي | | | | | | | | | |
| فَاِنۡ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهٗ مِنۡۢ بَعۡدُ | | | | | | | | | |
| پس که‌دوه خلونه روستو(بیائې طلاقه کړه دا ښځۀ (یعني دریم وار) پس بیانۀ ده حلاله دده دپاره پس ددې نه | | | | | | | | | |
| حَتّٰى تَنۡكِحَ زَوۡجًا غَيۡرَهٗ ؕ فَاِنۡ طَلَّقَهَا فَلَا جُنَاحَ | | | | | | | | | |
| ترهغه پورې چې نکاح اونۀ کړي دابنځه دبل خاوندسره، نوپس که هغه دویم خاوند طلاقه کړه پس نشته گناه | | | | | | | | | |
| عَلَيۡهِمَآ اَنۡ يَّتَرَاجَعَآ اِنۡ ظَنَّآ | | | | | | | | | |
| په ښځه او رومبني خاوندباندې، چې یوبل ته واپس شي پۀ نکاح کولوسره کچرې گمان کوي داداواړه | | | | | | | | | |
| اَنۡ يُّقِيۡمَا حُدُوۡدَ اللّٰهِ ؕ وَ تِلۡكَ حُدُوۡدُ اللّٰهِ يُبَيِّنُهَا لِقَوۡمٍ يَّعۡلَمُوۡنَ ۞ | | | | | | | | | |
| چې قائم به اوساتي حکمونه دالله (حقوق زوجيت) اوداپولې دالله دي چې الله ئې بیانوي دهغه قوم دپاره چې پوهیږي | | | | | | | | | |

﴿اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ﴾ يعنې هغه طلاق چه دهغې نه ورستو رجوع کيدې شي نوهغه صرف دوه دی، په جاهليت کښې دطلاقو لپاره څه شمار اوحدنه ؤو نوبعضوخلقو به په ښځو باندې ظلم زياتې کولو چه طلاق به ئی ورکړو نو بيا به چه عدت نه ووختم نورجوع به ئې ورته وکړه اوبيابه ئی حقوق زوجيت نه پوره کول اودوباره به ئی بیاطلاق ورکړو اوبیابه ئی رجوع کوله اودغسې داسلسلهٔ به جاری وه چه نه به طلاق ختميدل اونه به ئی حقوق دزوجيت پوره کول نوقرآن دا ظلم ختم کړو اووې فرمايل چه څوك يوځل يادوه ځله طلاق ورکړی نورجوع کولې شی ليکن که درې وارې طلاق ئی ورکړو نوبيارجوع نشی کولې اوښځه پده حرامه شوه مګر دا چه دبل خاوندسره نکاح وکړی اوهغه ورسره صحبت وکړی اوطلاقه ئی کړی نوچه عدت ئی تيرشی نو بعدله هغې نه بيا ورسره د اول خاوند نکاح جائزده.

**فايده** : طلاق ابغض المباحات دي يعنې په مباح کارونو کښې زيات ناخوښه الله تعالی ته داده چه څوك طلاق ورکړی ښځې ته، البتهٔ که څوك ډيرمجبورشی اودښځې سره دقانون شرعی مطابق زندګی نشی تيرولې نو دطلاق ورکولو اجازت دې ليکن بيا دې ښځې ته طلاق احسن ورکړی او طلاق احسن دادې چه په داسی طهرکښې چه صحبت ئی په کښې نوی کړې يوطلاق ورکړی بيادې پريږدی.

**او طلاق بیا په دري قسمه دي** : (۱) رجعی (۲) بائن (۳) مغلظ ، طلاق رجعی هغه دي چه یو طلاق صریحی یادوه طلاق صریحی ورکړی، **ددې حکم** دادې چه څو پورې عدت نه وی ختم شوې نو خاوند ته حق درجوع شته دې اوعدت ختمیدونه وروستو بیا تجدید دنکاح کولې شی ، **طلاق بائن** هغه طلاق دې چه د «بائنٌ یاحرامٌ» وغیره الفاظ دطلاق بائن ښځې ته ووائی په نیت دطلاقو سره **اوحکم ددې** قسم طلاقو دادې چه رجوع نشی کولې اوتجدید دنکاح کولې شی ، **طلاق مغلظ** دادې چه درې طلاق ورته ورکړی خواه که متفرق طور سره وی او که په یوخل وی **اوددې حکم** دادې چه ښځه بیاخاوند ته نه حلالیږی مګر په پنځه شرطونو سره **اول** داچه داول خاوند نه ئې عدت تیرشی ، **دویم** داچه دویم خاوند ورسره صحیح نکاح وکړی **دریم** داچه جماع ورسره وکړی **څلورم** دا چه طلاق ورته ورکړی **پنځم** داچه ددغه دویم خاوندنه ئې هم عدت تیرشی او دا مذهب دڅلوروامامانو دې اودارنګه **دامام بخاری** هم دا مذهب دې اوهم ددې لپاره ئې باب منعقد کړیدی «باب من اجاز الثلاث ـــ الخ ص ۷۹۱ ج ۲»

د دې زمانې دمدعیانو حدیث قول دجمهورامت نه مخالف دې، اودارنګه د روافضو قول د اجماع امت نه مخالف دې چه په دې سره خلق په زناکښې مبتلاکیږی اوعقیده دحلال پرې ساتی په «**الطلاق مرتان**» کښې دطلاق رجعی ذکر دې اوپه ﴿وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ أَن تَأْخُذُوا مِمَّآ ءَاتَيْتُمُوهُنَّ﴾ الایه، کښې دخلع بیان دې اوهغه طلاق بائن دې اوپه ﴿فَإِن طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُۥ مِنۢ بَعْدُ﴾ کښې دطلاق مغلظ بیان دې.

﴿فَإِمْسَاكٌۢ بِمَعْرُوفٍ﴾ ددینه مراد رجوع کول دی، ﴿أَوْ تَسْرِيحٌۢ بِإِحْسَٰنٍ﴾ ددینه مراد رجوع نه کول دی اودا قول صحیح اوراجح دې اوپه بل روایت کښې دی چه ددینه دریم طلاق مراد دې اوبناپه دې قول بیا ﴿فَإِن طَلَّقَهَا﴾ بیان دې د ﴿أَوْ تَسْرِيحٌۢ بِإِحْسَٰنٍ﴾ لپاره لیکن ددې روایت په باره کښې قرطبی اونورحضرات فرمائی چه دا ثابت نه دې

﴿وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ أَن تَأْخُذُوا﴾ دابیان دخلع دې، خلع دیته وائی چه کله یوه ښځه دخاوند سره موافقه نه وی اودیوبل سره وخت نشی تیرولې نو دا ښځه خاوند ته ووائی چه زمانه دومره مال واخله اوما پریږده نوهغه ترینه مال واخلی اوورته ووائی چه ماته په عوض ددغه مال کښې خلع کړې، **اوعوض دخلع مقدار** د مهر هم کیدې شی اوکم یازیات هم کیدې شی البته زیات اخستل دمکارم الاخلاق نه خلاف دی نوغیراولی دی. پس که چرې دښځې او

خاوند په مینځ کښې دنفرت په وجه قصوردخاوندؤو چه بد اخلاقه ؤو یابل څه عیب وو پکښې نو دښځې لپاره بدل خلع ورکول جائزدی خوخاوند لپاره اخستل جائزندی اوکه قصور دښځې دوجه نه ؤو نوبیاخاوندله اخستل جائزدی ، دبخاری وغیره روایت مفهوم دې چه ښځه دثابت بن قیس ﷺ راغله اونبی ﷺ ته ئی عرض وکړو چه په ثابت ﷺ باندې څما هیڅ اعتراض په باره د اخلاقو او ددین کښې نشته (خوځماطبیعت ورسره نه لګیږی ) اوپه اسلام کښې ناشکری کول دخاوند نه خوښوم ، نونبی ﷺ ترینه تپوس وکړو چه آیاهغه باغ چه تاله ئی په مهر کښې درکړیدې نوهغه به واپس کړې؟ نودې وویل چه هو! نونبی ﷺ ثابت ﷺ ته وویل چه باغ ترینه واپس واخله اوخلع ئی کړه نودغه شان وشوه .

**فایده** : په نزد داحنافو باندې خلع طلاق بائن دې اوشوافع وائی چه خلع فسخ د نکاح ده او طلاق نه دې، څکه چه که خلع طلاق شی نوبیا به عدد دطلاقو زائدشی د درې ؤ نه څکه دوه طلاق ذکرشو په ((الطلاق مرتان)) کښې اودریم طلاق خلع شوه نوبیا ﴿فَإِن طَلَّقَهَا﴾ څلورم طلاق کیږی حالانکه ددرې نه زیات طلاق په شرع کښې نشته، **احناف جواب** ورکوی چه خلع مستقل طلاق نه دې بلکه په ماقبل کښې چه څه ذکرشویدی دهغې بیان دې پدې شان چه دوه طلاقه عام دی لدینه چه رجعی وی لکه په ماقبل کښې ذکرشو یا بائن وی لکه په صورت دخلع کښې نو پدې سره حرمت مغلظه نه راځی، البته دریم طلاق چه راشی خواه که دَ دوه رجعیو نه بعد راشی اوکه دَ دوه بائنونه بعد راشی نو پدې سره حرمت مغلظه راځی.

﴿مِمَّآ ءَاتَيْتُمُوهُنَّ﴾ اکثرمفسرین ددینه مهرمراد کوی اوبعضو ترینه ټول هغه څیزونه مراد کړی دی چه خاوند ، ښځې ته ورکړی وی. ﴿أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ ٱللَّهِ﴾ حقوق زوجیت پوره کول مطابق دقانون شرعی سره. ﴿فَإِنْ خِفْتُمْ﴾ دخوف نه مراد علم دې او دا خطاب حُکامو ته دې یاصلح کونکوته دې چه دهغې ذکر په سورت نساء آیة ۳۵ کښې دې . ﴿فِيمَا ٱفْتَدَتْ بِهِۦ﴾ یعنې فدیه اوبدله ورکړی داښځه، مراد ترینه بدل دخلع دې. ﴿فَإِن طَلَّقَهَا﴾ دا د دریم طلاق بیان دې ﴿حَتَّىٰ تَنكِحَ زَوْجًا﴾ دتنکح نه وطی مراد ده او عقد دلفظ دزوجاً نه معلومیږی، یا د تنکح نه عقد مراد دې اواشتراط دوطی په حدیث مشهوره سره ثابت دې نو د زوج اول لپاره مطلقه دطلاقوثلاثو حلالیږی په پنځه شرطونو سره لکه مخکښې ذکرشو.

| وَ إِذَا | طَلَّقْتُمُ | النِّسَآءَ | فَبَلَغْنَ | اَجَلَهُنَّ | فَاَمْسِكُوْهُنَّ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوږه هغه وخت کښې چې تاسو طلاقې کړئ ښځې پس اورسيږي دوئ (يعنی نزدې شی) خپلې نيتې ته نو يانې ساتئ | | | | | |
| بِمَعْرُوْفٍ | اَوْ سَرِّحُوْهُنَّ | بِمَعْرُوْفٍ ۠ | وَّ لَا تُمْسِكُوْهُنَّ | ضِرَارًا | لِّتَعْتَدُوْا ۚ |
| په ښه طريقې سره اويانې پريږدئ په ښه طريقې سره، اومه ساتئ دوئ لره دضرررسولو دپاره چې تاسو زياتې اوکړئ | | | | | |
| وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهٗ ۭ وَلَا تَتَّخِذُوْٓا اٰيٰتِ اللّٰهِ هُزُوًا ۡ وَّاذْكُرُوْا | | | | | |
| او څوک چې داسې اوکړی نو يس په تحقيق ظلم ئې اوکړو پخپل ځان، اومه نيسئ آياتونه دالله په توقوسره، او ياد کړئ | | | | | |
| نِعْمَتَ اللّٰهِ | عَلَيْكُمْ | وَمَآ | اَنْزَلَ | عَلَيْكُمْ | مِّنَ الْكِتٰبِ وَالْحِكْمَةِ |
| دالله نعمت اواحسان په تاسوباندې اوهغه چې نازل کړې ئې دې په تاسوباندې کتاب اودعلم خبرې | | | | | |
| يَعِظُكُمْ بِهٖ ۭ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ۝ | | | | | |
| چې تاسو ته نصيحت کوي په دې سره، اوويريږئ دالله نه او پوهه شئ چې بېشکه الله په هرڅيز عالم دې | | | | | |

﴿وَإِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ﴾ مقصود دادې چه دطلاق رجعی نه بعد حق درجوع کولو خاوند لره شته دې نو که څوك رجوع کول غواړی نو کولې شی ليکن چه مقصود ئې حسن معاشرت او خانه آبادی وی، او ظلم کول په ښځې او تطويل دَ عدت ئې مقصود نه وی لکه په جاهليت کښې دغه شان عادت ؤو. اود ﴿فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ﴾ مراد دعدت قريب الاختتام کيدل دی او ختميدل مراد نه دی ځکه چه دختميدلونه بعد بيا رجوع نشی کيدې.

﴿فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ أَوْ سَرِّحُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ﴾ **سوال**: دا حکم خو يو وار ذکرشوې دې په ماقبل کښې «**فامساك بمعروف اوتسريح باحسان**» نو بيا ولې ذکرشو.

**جواب**: مخکښې عام حکم ؤو چه دطلاق رجعی نه بعد دعدت په دوران کښې په خپله فيصله نظر ثانی وکړی، او دلته وائی چه دَعدت په دوران کښې چه تاسو دَ مطلقې متعلق کومه فيصله کړيده نو اختتام ته قريب يوځل بيا په هغې باندې غور او فکر وکړئ ځکه چه ممکنه ده چه زياته مفيده فيصله به وکړئ ﴿وَلَا تُمْسِكُوهُنَّ﴾ ددينه مراد «لاترجعوهن» دې ﴿ضِرَارًا﴾ دا مفعول له يعنې علت دې يعنې رجوع دضرر رسولو لپاره مکوئ، نو دا نهی قيد ته متوجه ده ﴿لِتَعْتَدُوا﴾ داد «ضرار» سره متعلق دې او د «لتعتدوا» نه مراد ظلم او زياتې دې،

چه تطويل دعدت دې يا ښځه مجبوره کول دى ورکولو د بدلِ خلع ته.

﴿فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُۥ﴾ دالله تعالى دټولو احکاماتو خلاف کول او خصوصاً دهغه احکاماتو خلاف کول چه دنساؤ سره متعلق دى دا في الحقيقت په خپل ځان ظلم کول دى چه په دنيا کښې به ترينه حسن معاشرت فوت شي او په آخرت کښې به ترينه ثواب فوت شي

﴿ءَايَٰتِ ٱللَّهِ هُزُوًا﴾ په آياتونه پورې ټوقى کول دا دى چه په هغې باندې عمل نه کوى.

﴿وَٱذْكُرُواْ نِعْمَتَ ٱللَّهِ عَلَيْكُمْ﴾ ددينه مراد شکر کول دى په ټولو نعمتونو باندې، نو عطف د ﴿وَمَآ أَنزَلَ عَلَيْكُم مِّنَ ٱلْكِتَٰبِ﴾ عطف الخاص على العام دې، يا د نعمت الله نه مراد ذات اقدس د رسول الله صلى الله عليه وسلم دې او د ﴿وَمَآ أَنزَلَ عَلَيْكُم مِّنَ ٱلْكِتَٰبِ﴾ نه قرآن مراد دې او د ﴿وَٱلْحِكْمَةِ﴾ نه احاديث مراد دى. ﴿يَعِظُكُم بِهِۦ﴾ دا د أُنزل دفاعل نه حال دې

| فَلَا تَعْضُلُوهُنَّ | أَجَلَهُنَّ | فَبَلَغْنَ | ٱلنِّسَآءَ | طَلَّقْتُمُ | وَإِذَا |
|---|---|---|---|---|---|
| اوکله چې تاسو طلاقې کړئ ښځې نو اورسي دوئ خپلې نيتې ته (عدت ئې ختم شي) نو مه منع کوئ دوئ لره ددېنه | | | | | |
| أَن يَنكِحْنَ أَزْوَٰجَهُنَّ إِذَا تَرَٰضَوْاْ بَيْنَهُم بِٱلْمَعْرُوفِ ۗ ذَٰلِكَ يُوعَظُ | | | | | |
| چې نکاح اوکړي دخپلو خاوندانو سره کله چې دوئ راضي وي خپل مينځ کښې په شرعي طريقې سره، دا نصيحت | | | | | |
| بِهِۦ مَن كَانَ مِنكُمْ يُؤْمِنُ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ ۗ ذَٰلِكُمْ أَزْكَىٰ لَكُمْ | | | | | |
| هغه چاته ورکولېشي چې وي هغه ستاسې نه ايمان لري په الله اوپه ورځ دآخرت، دا ستاسو دپاره ډېر پاک | | | | | |
| وَأَطْهَرُ ۚ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴿٢٣٢﴾ | | | | | |
| او ډېر سُتره دې. او الله پوهيږي او تاسو نهٔ پوهيږئ. | | | | | |

﴿وَإِذَا طَلَّقْتُمُ ٱلنِّسَآءَ﴾ دا دجاهليت ديو رسم رد دې، دجاهليت يو رسم داؤو چه چا به ښځه طلاقه کړه نو بيا به ئى ورته دبل خاوند سره دنکاح کولو اجازت نه ورکولو بلکه دا به ئى دخپل ځان لپاره سخت عار ګڼړلو. نو دا حکم نازل شو چه کله تاسو ښځو ته طلاق ورکړئ او ددوئ عدت ختم شى نو بيائى دبل خاوند سره دنکاح کولو نه مه منع کوئ. اودارنګه دجاهليت يو رسم داهم ؤو چه چا به ښځه طلاقه کړه او عدت به ئى ختم شو نو اولياؤ دښځې به بيا دا ښځه دغه خاوند ته په نکاح سره نه ورکوله اګرکه هغوئ به راضى ؤو.

لکه چه روایت دي چه معقل بن یسار ﷺ وائی چه څما خور ما خپل تربورته په نکاح ورکړې وه نوهغه طلاقه کړه اوعدت ئې ختم شو اورجوع ئې ورته ونه کړه نو بیا ورستو ئې ورنه رغبت پیداشو اوطلب دنکاح ئې وکړو اوښځه هم راضي وه نوماقسم وکړو چه داخپله خور بیا تا لره په نکاح نه درکوم، **نودا آیت نازل شو**، نومعقل ﷺ بیا دا خپله خور ورکړه او دقسم کفاره ئې اداکړه، نوبناء په اوله توجیه ﴿فَلَا تَعْضُلُوهُنَّ﴾ خطاب خاوندانو ته دي او د ﴿أَزْوَاجَهُنَّ﴾ نه مراد هغه څوك دي چه ورستو به زوج جوړیږي، اوبناء په دویمه توجیه ﴿فَلَا تَعْضُلُوهُنَّ﴾ خطاب اولیاؤ ته دي . او ﴿أَزْوَاجَهُنَّ﴾ په اعتبار د ما کان سره دي اود ﴿فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ﴾ نه مراد ختمیدل دعدت دي.

﴿ذَٰلِكَ يُوعَظُ بِهِ﴾ په ((ذٰلك)) سره اشاره ده مذکور فیماقبل ته. ﴿ذَٰلِكُمْ أَزْكَىٰ﴾ په ((ذال)) کښې اشاره ده ((اتّعاظ)) (قبول وعظ) ته او ((کم))حرف خطاب دي او((ازکی)) په معنی داعظم برکةً ونفعًاسره دي .

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَالْوَالِدَاتُ | يُرْضِعْنَ | أَوْلَادَهُنَّ | حَوْلَيْنِ | كَامِلَيْنِ | لِمَنْ | أَرَادَ | أَنْ | يُتِمَّ |
| اومیاندې[1] به تې ورکوې خپل اولادته دوه کاله پوره، داحکم دهغه چا دپاره دې چې اراده کوې چې پوره کړې موده | | | | | | | | |
| الرَّضَاعَةَ ۚ | وَعَلَى | الْمَوْلُودِ | لَهُ | رِزْقُهُنَّ | وَكِسْوَتُهُنَّ | بِالْمَعْرُوفِ ۚ | | |
| دتې ورکولو.اوپه هغه چاچې بچې دهغه دپاره دې یعنی پلار ، نفقه اوخرچه ددې ښځو ده او جامې د دوئ دی په ښه طریقې سره | | | | | | | | |
| لَا تُكَلَّفُ | نَفْسٌ | إِلَّا | وُسْعَهَا ۚ | لَا تُضَارَّ | وَالِدَةٌ | بِوَلَدِهَا | | |
| نشي مکلف کولې هیڅوک مګرپه قدردطاقت هغه سره،ضرردې نشي رسولې مورته په سبب دبچي ددې سره سره | | | | | | | | |
| وَلَا مَوْلُودٌ | لَهُ | بِوَلَدِهِ ۚ | وَعَلَى | الْوَارِثِ | مِثْلُ | ذَٰلِكَ ۗ | | |
| اونه پلارته په سبب دبچې دده سره ، (که پلارنې نه وو) ، نو په وراثان باندې مثل ددې حکم دي | | | | | | | | |
| فَإِنْ | أَرَادَا | فِصَالًا | عَنْ | تَرَاضٍ | مِّنْهُمَا | وَتَشَاوُرٍ | | |
| پس که اراده اوکړه دواړو دصبر کولو دبچی دتې نه په رضا د دواړو سره اوپه مشورې اومصلحت سره | | | | | | | | |

۱ - درضاعت یعنی تې ورکولو بیان.

| |
|---|
| فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا ۗ وَ إِنْ أَرَدْتُّمْ أَنْ تَسْتَرْضِعُوٓا أَوْلَادَكُمْ |
| نوپس هیڅ ګناه نشته پدې دواړو، اوکه تاسوغواړئ چې دایه اومرضعه اونیسئ بله ښځه دپاره داولادخپل |
| فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِذَا سَلَّمْتُمْ مَّآ ءَاتَيْتُم بِالْمَعْرُوفِ ۗ |
| نوهیڅ ګناه نشته په تاسوکله چه تاسواوسپارئ هغه مبلغ چې تاسومقررکړې وي پۀ ښۀ طریقې سره |
| وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوٓا أَنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٢٣٣﴾ |
| اودالله نه ویرېږئ اوپوهه شئ چې بېشکه الله ستاسودټولوعملونولیدونکې دې |

﴿ وَٱلْوَٰلِدَٰتُ يُرْضِعْنَ ﴾دلته احکام د رضاعت بیانیږی او «یرضعن» اخبار دې خو مراد ترینه امر دې او امر د ندب لپاره دې ځکه په موربانديې ارضاع (تی ورکول) واجب ندی مګر دا که بله مرضعه نه وی یا پلار دمعاوضې طاقت نه لری یا بچې د بلې ښځې شوده نه سکی نو بیا په موربانديې وجوب دې، اومراد دوالداتو نه عام دې چه مطلقې وی اوکه غیر مطلقی وی

﴿حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ ﴾ د دینه معلومیږی چه موده د رضاعت دوه کاله ده او دا مذهب د صاحبینو او نورو ائمو دې او په نزد دامام ابوحنیفه رحمه الله باندې دوه کاله ارضاع یعنې تې ورکول قضاءً دی اودوه نیم کاله دیانةً دی چه په بل آیت کښې مذکوردی ﴿وَحَمْلُهُۥ وَفِصَٰلُهُۥ ثَلَٰثُونَ شَهْرًا﴾ -

﴿لِمَنْ أَرَادَ أَن يُتِمَّ ﴾ په دې کښې اشاره ده چه دوه کاله پوره کول لازم ندی لکه ورستو ذکرکیږی ﴿وَعَلَى ٱلْمَوْلُودِ لَهُۥ﴾ مراد ترینه پلار دې خو تعبیرپه والد سره ونه شو نو پدې کښې اشاره ده چه د بچی نسب په پلار پسې ځئ نه په مورپسې، سوا د آل دنبی ﷺ نه ځکه آل د فاطمه رضی الله عنها نسب دنبی ﷺ دې، اوبل پدې تعبیرکښې علة دحکم ته اشاره ده چه په پلارباندې نفقه ځکه واجبه ده چه بچې ده ته منسوب دې ﴿بِٱلْمَعْرُوفِ﴾ یعنې په غیر د افراط او تفریط اوکمی بیشی نه. ﴿لَا تُكَلَّفُ نَفْسٌ ﴾ دا تعلیل دې دبالمعروف لپاره یا تفسیر دې د معروف لپاره

﴿لَا تُضَآرَّ وَٰلِدَةٌۢ بِوَلَدِهَا ﴾ «لاتضارّ » په فتح د راء سره په اصل کښې دویمه راء ساکنه ده دجزم په وجه ځکه چه دا صیغه دنهی ده نود ادغام لپاره چه کله اوله راء ساکنه شوه نو دویمه راء ته حرکت دفتح ورکړې شو دا قراءت دجمهورو دې ، او بل قراءت د ابوعمرو او ابن کثیر او ابان دې په ضمه د راء سره، اودا خبر دې په معنی ده انشاء سره یعنې نفی په معنی

دنهی سره ده او «لاتضارّ» یاصیغه دمجهول ده لکه اکثرومترجمینو دمجهول ترجمه لیکلې ده نو داپه اصل کښې «لا تضارَرْ» دې «والدة» نائب فاعل دې یعنې ضرر دې نشی رسولې والدې ته په سبب د ولد اوضرر دادې چه والده طاقت د ارضاع نه لری او مجبوره کړې شی په ارضاع باندې یا دا په خپلې خوښې سره ارضاع کوی اوخاوند وغیره ئې دا منع کړی اوبچې ترینه جدا کړی. یا ورته دارضاع معاوضه نه ورکوی.

﴿وَلَا مَوْلُودٌ لَّهُۥ﴾ یعنې ضرر دې نشی رسولې پلارته چه دهغه د وسع اوطاقت نه زیات بوج پرې واچولې شی. یا «لاتضار» صیغه دمعلوم ده په اصل کښې «لاتضارِرْ» وو او «والدة» فاعل دې یعنې ضرردې نه رسوی والده زوج ته چه دهغه نه زیاته معاوضه طلب کوی یا بچی ته تې نه ورکوی.

﴿وَلَا مَوْلُودٌ لَّهُۥ﴾ یعنی ضرردې نه رسوی پلاردبچی، مور دبچی ته چه مجبوره ئې کړی په ارضاع یائې منع کړی دارضاع نه یاورته معاوضه نه ورکوی.

﴿وَعَلَى ٱلْوَارِثِ مِثْلُ ذَٰلِكَ﴾ یعنې که دبچی پلارجوندې نه وُو نوپه وارث باندې واجب دی په شان دهغه رزق اوکسوه چه واجب وُو په پلار باندې نوکه دبچی خپل مال وُو نو داخرچ به دبچی دمال نه اداء کولې شی اوکه دبچی خپل مال نه وُو نو بیا به د زیات قریب وارث دمال نه اداء کولې شی ﴿فَإِنْ أَرَادَا فِصَالًا﴾ یعنې که مور او پلارپه مشورې او رضاسره بچې دتی نه صبرکول غواړی نوجائزدی. ﴿وَإِنْ أَرَدتُّمْ﴾ دا خطاب آباؤ دبچی ته دې یعنې که مور دبچی معذوره وی یامعاوضه زیاته غواړی نوپلارلره جائزدی چه بله ښځه دتی ورکولولپاره ونیسی. ﴿فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ﴾ گناه نشته دې په شرط ددې چه مور راضی وی یا معذوره وی یا زیاته معاوضه غواړی اوکه داسې نه وُو نو بیا گناه ده. ﴿إِذَا سَلَّمْتُم﴾ چه تاسوحواله کړئ مرضعې ته ﴿مَّآ ءَاتَيْتُم﴾ په معنی دالتزمتُم یادعیّنتم سره دې، یعنې چه کوم تاسو مقرر کړې وی.

| بِأَنفُسِهِنَّ | يَتَرَبَّصْنَ | أَزْوَٰجًا | وَيَذَرُونَ | مِنكُمْ | يُتَوَفَّوْنَ | وَٱلَّذِينَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوهغه کسان چې وفات شي ستاسونه، اوپرېږدي دوئ ښځې، په انتظار کښې به لري دا ښځې خپل ځانونه | | | | | | |
| عَلَيْكُمْ | فَلَا جُنَاحَ | أَجَلَهُنَّ | بَلَغْنَ | فَإِذَا | وَعَشْرًا | أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ |
| څلورمیاشتې اولس ورځې، پس هرکله چې دوئ اورسي خپلې نیتې ته یعنی عدت ئې ختم شي نو نشته گناه په تاسو | | | | | | |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| فِيمَا | فَعَلْنَ | فِيٓ | أَنفُسِهِنَّ | بِٱلْمَعْرُوفِ ۗ | وَٱللَّهُ |

پۀ هغه کار کښې چې ئې کوي داښځې پۀ باره دخپلونفسونو کښې (يعنى ډول زينت) پۀ شرعي طريقې سره، اوالله

بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ۝

ستاسوپۀ ټولوعملونو خبرداردې

﴿ وَٱلَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنكُمْ ﴾ دلته دمتوفى عنها زوجها دعدت بيان دې چه دا څلورمياشتې اولس ورځې دى او پدې موده کښې د زنانه لپاره ډول سنګارحرام دې او دا عدت دغيرحاملې دې اوعدت دحاملې مطلقې وضع دحمل ده.

﴿فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ ﴾ يعنې کله چه عدت تيرشى ﴿فَلَا جُنَاحَ﴾ نوبياپه ډول سنګارکولو کښې ګناه نشته خوهله چه ﴿بِٱلْمَعْرُوفِ﴾ وى، يعنې موافق دقانون شرعى سره وى اوبى حيائى وغيره ته مفضى نه وى

**فائده**: دجاهلية د زمانې دستور داؤو چه کله به دښځې خاوندوفات شو نودې به يوکال عدت په داسې طريقه تيرولو چه په کورکښې به ډيرې بيکاره اوخرابى کمرې ته داخله شوه او ډيرې خرابى کپړې به ئى واغوستلې اوپوره يوکال به ئى صفائى نه کوله اوخوشبو به ئى نه لګوله اوچه کال به پوره شو نو يوه «دابه» حمار،يا شاة ، يعنې بيزه وغيره به ورته راوستلې شوه نوپه هغې به ئى «افتضاض» وکړو يعنى دخپل بدن يادقبل څرمن به ئى په هغه باندې مسه کړه نوهغه به اکثرمړه کيده نو بيابه دې ښځې ته يوه بعره (پچه) ورکړې شوه نوهغه به ئى اُويشتله . نوپدې سره به ئى عدت ختم شو خو بيا به هم دابنځه د اولياؤ دميّت په تصرف کښې وه نوکه دهغو به داسې خوښه وه چه پخپله ورسره نکاح وکړى اويائى بل ځائ خرڅه کړى اويائى بالکل نکاح کولوته نه پريږدى نو ددوئ اختيار ؤو. اوښځه مجبوره وه نو د قرآن حکم دا ټول ظلمونه اوغلط رسومات ختم کړه اود يو پاکيزه معاشرې قانون ئى نافذکړو

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا جُنَاحَ | عَلَيْكُمْ | فِيمَا | عَرَّضْتُم | بِهِۦ | مِنْ | خِطْبَةِ ٱلنِّسَآءِ |

اونشته هيڅ ګناه پۀ تاسوباندې پۀ هغه خبرې کښې چې تاسوپۀ هغې سره اشاره کوئ پيغام دنکاح ددغه ښځوته

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| أَوْ أَكْنَنتُمْ | فِيٓ | أَنفُسِكُمْ ۚ | عَلِمَ | ٱللَّهُ | أَنَّكُمْ | سَتَذْكُرُونَهُنَّ |

يابټه اراده لرئ پۀ زړونوکښې دوئ دنکاح، عالم دې الله پدې چې بېشکه تاسوپۀ عنقريب ددوئ ذکر کوئ نواجازت دې ددغه شان ذکر،

وَلٰكِنْ لَّا تُوَاعِدُوْهُنَّ سِرًّا اِلَّآ اَنْ تَقُوْلُوْا قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ؕ وَلَا تَعْزِمُوْا

ليکن صراحةً وعده مکوئ ددوئ سره پۀ پټه مګرداچې تاسواورواني خبره جائزه (يعني تعريض) اوقصد مکوئ

عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتّٰى يَبْلُغَ الْكِتٰبُ اَجَلَهٗ ؕ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا

دتړلودنکاح ترڅو چې نۀ وي رسيدلې عدت خپل انتهاتۀ، اوپوهه شئ چې بېشکه الله عالم دې پۀ هرهغه څۀ

فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ فَاحْذَرُوْهُ ۚ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ ۝

چې ستاسوپۀ زړونو کښې دی، نوتاسو ويريږئ دهغه نۀ اوپوهه شئ چې الله بخښونکې صبرکوونکې دې

﴿ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا عَرَّضْتُم بِهِۦ﴾ يعنې چه عدت ختم شوې نوی نوبيانکاح منع ده او فاسده ده اوبل دا چه په صريح الفاظو سره وعده کول چه نکاح به کوو دا منع دی اوګناه ده البته دوه کارونه جائز دی يو دا چه په اشارو سره پوهه کول چه د عدت تيريدلو نه بعد به نکاح کوو، بل دا چه په زړه کښې اراده ساتل دنکاح کولو.

﴿عَلِمَ ٱللَّهُ ﴾ داعلت دې لپاره دجواز دتعريض يعنې الله تعالى تهعلم دې چه تاسوبه ښځو ته ذکر صراحةً دنکاح کوئ بعد دعدت نه اوپه خپل ځان کنټرول نشئ کولې نو ددې وجه نه ئې تاسوته دتعريض کولواجازت درکړو لکن ﴿لَّا تُوَاعِدُوهُنَّ ﴾ يعنې صراحةً وعده دنکاح مه کوئ

﴿قَوْلًا مَّعْرُوفًا﴾ ددې نه مراد تعريض دې ﴿وَلَا تَعْزِمُوا ﴾ دا د ماقبل تاکيد اوتفصيل دې او دعزم نه مرادهغه قصد اواراده ده چه مقارن وی دفعل سره.

﴿يَعْلَمُ مَا فِىٓ أَنفُسِكُمْ﴾ يعنې خپل ظاهراوباطن دواړه درست کړئ ځکه چه الله تعالى په دواړو عالم دې.

لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ مَا لَمْ تَمَسُّوْهُنَّ اَوْ تَفْرِضُوْا

نشته ګناه پۀ تاسوچې طلاق ورکوئ ښځوتۀ پۀ هغه وخت کښې چې تاسوپېدوئ لاس نۀ وی لګولې يانۀ وی مقررکړې

لَهُنَّ فَرِيْضَةً ۖۚ وَّمَتِّعُوْهُنَّ ۚ عَلَى الْمُوْسِعِ قَدَرُهٗ وَعَلَى الْمُقْتِرِ

ددوئ دپاره څه مهر، اومتعه ورکړئ دوئ تۀ، لازم دې په غني باندې پۀ قدردحال دهغه اوپۀ تنګدست باندې

قَدَرُهٗ ۚ مَتَاعًۢا بِالْمَعْرُوْفِ ۚ حَقًّا عَلَى الْمُحْسِنِيْنَ ۝

په قدردحال دهغه، نفع ورکول په ښه طريقې سره، لازم دې په نېکئ کوونکو باندې

﴿ لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِن طَلَّقْتُمُ ٱلنِّسَآءَ مَا لَمْ تَمَسُّوهُنَّ ﴾ پدې آية کښې دمطلقاتو اقسام بيانيږي اولفظ د ((ما)) ياشرطيه دې په معنی د ((ان لم تمسوهن)) سره يا مصدريه دې او مدخول ني په تاويل دمصدر سره ګرزولې دې او ((وقت)) مقدر دې ځکه تقدير د وقت قبل دمصادرو نه شائع کثير دې نومعنی داده چه ((لاجناح عليکم ان طلقتم النساء وقت عدم مسيسهن))

﴿ أَوْ تَفْرِضُواْ ﴾ عطف دې په ((تمسوهن)) باندې نود لم ماتحت دې ((اى لم تفرضوا لهن)) حاصل دادې چه د(مس) او دعدم مس او د فرض مهر اودعدم فرض مهرپه اعتبارسره **مطلقه په خلورقسمه ده** : (۱) مهرئی مقرروی اومس حقيقی ياحکمی يعني خلوت صحيحه ورسره شوې وی نو ددې حکم دادې چه ټول مقررشوې مهر به ورته ورکولې شی، ددې حکم په ماقبل کښې بيان شوې دې ، (۲) **مهر نوی اومس هم نه وی بلکه طلاق قبل الدخول ورته ورکړې شی نو ددې حکم دادې** چه پدې باندې عدت نشته دې او ددې لپاره مهرنشته دې البة ددې لپاره متعه ورکول واجب دی، يعنې جوړه، جامه، لوپټه، پړونی، پيزار، د دې قسم حکم په ﴿وَمَتِّعُوهُنَّ﴾ کښې ذکر دې، (۳) قبل الوطی ورته طلاق ورکړې شي خومهرئی مقرروی **نوددې لپاره** نصف مهر ورکول واجب دی دا حکم په مابعد آيت کښې بيانيږي، (۴) مهرنوی مقرر اوطلاق ورته بعدالدخول ورکړی نو **ددې لپاره** مهرمثل واجب دې، اودا ثابت دې په حديث دابن مسعود ﷺ سره په باره د بِرَوع بنت واشق کښې اوفقهاؤ يې تفصيل کړيدې.

﴿عَلَى ٱلْمُوسِعِ قَدَرُهُۥ﴾ يعنې ثياب ، متعه به دزوج دمالی حالت مطابق وی.

﴿مَتَٰعًا بِٱلْمَعْرُوفِ﴾ متاعاً په معنی دتمتيعا سره مفعول مطلق دې د ((متّعواهُنّ)) لپاره او بالمعروف په اعتبار دمتعلق محذوفه سره چه متلبساً دې صفت اول د متاعًا دې اوحقًا په معنی د واجبًا سره صفت ثانی د متاعًا دې. اود ﴿ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴾ نه مراد مسلمانان دی او دا دتاکيد او د ترغيب لپاره ذکرشويدې.

| وَقَدْ | أَنْ تَمَسُّوهُنَّ | مِنْ قَبْلِ | طَلَّقْتُمُوهُنَّ | وَإِنْ |
|---|---|---|---|---|
| اوکچرې تاسو طلاق ورکړو ښځوته مخکښې ددې نه چې تاسولاس لګولې وي پدوئ اوپه تحقيق سره | | | | |
| فَرَضْتُمْ | لَهُنَّ | فَرِيضَةً | فَنِصْفُ | مَا | فَرَضْتُمْ | إِلَّآ أَنْ |
| تاسومقررکړې وي ددوئ دپاره مهر نوواپس واجب نيم.هغه مهر دې چه تاسومقررکړې وي. مګر داکه | | | | | | |

| يَعْفُوْنَ | أَوْ | يَعْفُوَا | الَّذِيْ | بِيَدِهٖ | عُقْدَةُ | النِّكَاحِ ؕ | وَ | أَنْ | تَعْفُوْا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| معاف کړي دابنځې دغه مهر، يامعاف کړي هغه سړې چې دَهغه په لاس کښې غوټه دنکاح ده. اوچې تاسوعفواوکړئ | | | | | | | | | |

| أَقْرَبُ | لِلتَّقْوٰى ؕ | وَ لَا تَنْسَوُا | الْفَضْلَ | بَيْنَكُمْ ؕ | إِنَّ | اللّٰهَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| داکارډېرنژدې دې تقوىٰ ته، اومه هيروئ تاسواحسان کول پخپل مينځ کښې ديوبل سره، بېشکه الله | | | | | | |

| بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿٢٣٧﴾ |
|---|
| ستاسودتماموعملونوليدونکې دې |

﴿ إِلَّآ أَن يَعْفُونَ ﴾ يعنې نصف مهرچه حق دبنځې دې دا معاف کړی.

﴿ أَوْ يَعْفُوَا ٱلَّذِى بِيَدِهِۦ عُقْدَةُ ٱلنِّكَاحِ ﴾ د ابن عباسؓ نه روايت دې چه د دينه مراد وکيل دبنځې دې، يامراد ددينه خاوند دې يعنې خاوند ټول مهر ورکړی يائې ورته په وخت دعقد نکاح کښې ټول مهر ورکړې وی نوهغه نصف مهرچه دې ئې د واپس کولو حقدار دې هغه معاف کړی.

﴿وَأَن تَعْفُوٓا۟ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَىٰ﴾ دا خطاب رجال اونساء دواړو ته دې عفوه کول او خصوصا دمخالفت او تفريق په صورت کښې دتقوىٰ لويه علامه ده.

﴿وَلَا تَنسَوُا۟ ٱلْفَضْلَ﴾ الفضل په معنى د احسان سره دې او «لاتنسوا» په معنى د **لاتتركوا** سره دې يعنى دطلاقو د وجه نه ديوبل سره احسان اواسلامى تعلقات مه پريږدئ او دشمنى مه جوړوئ .

| حٰفِظُوْا | عَلَى | الصَّلَوٰتِ | وَالصَّلٰوةِ | الْوُسْطٰى ۚ | وَقُوْمُوْا | لِلّٰهِ | قٰنِتِيْنَ ﴿٢٣٨﴾ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ساتنه اوپابندې [1] کوئ په ټولومونځونواوخصوصاًپه مينځني مونځ، او اودريږئ الله ته په عاجزئ سره | | | | | | | |

| فَإِنْ | خِفْتُمْ | فَرِجَالًا | أَوْ | رُكْبَانًا ۚ |
|---|---|---|---|---|
| پس کچرې تاسوته ويره وي ددښمن «وغيره»، نومونځ کوئ پداسې حال کښې چې تاسوپېدل روان يئ ياسواره | | | | |

| فَإِذَآ | أَمِنْتُمْ | فَاذْكُرُوا | اللّٰهَ | كَمَا | عَلَّمَكُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| پس هرکله چې تاسوامن کښې شئ نوتاسويادوئ الله «يعنى مونځ کوئ» په هغه طريقه چې تاسوته ئې خودلې ده | | | | | |

١ - دامور انتظامي نه بعد دادمر مصلح دمونځ ذکر.

| مَّا لَمْ تَكُونُوا تَعْلَمُونَ ۝ |
|---|
| چې هغه تاسوته مخکښې نهٔ وه معلومه |

﴿حَـٰفِظُوا عَلَى ٱلصَّلَوَٰتِ﴾ د امور انتظامیونه بعد د امر مصلح یعنې صلوت ذکردې ځکه دامور مصلحو په ذریعه سره امور انتظامیه برابرېږي ، ((حافظوا)) باب مفاعله دې دلته دمبالغې لپاره دې .

﴿وَٱلصَّلَوٰةِ ٱلْوُسْطَىٰ﴾ پدې کښې دسلفو ډېر اقوال دی د اکثروقول دادې چه ددینه صلوة العصرمراد دې ﴿وَقُومُوا لِلَّهِ﴾ ددینه ثابته شوه چه قیام فرض دې ﴿قَـٰنِتِينَ﴾ په معنی دسکونت سره دې، ددې آیت دنزول نه قبل په مانځه کښې کلام کول اوسلام جائز وو پدې آیت سره منع شو او دقانتین نورتفسیرونه هم شوی دی ، مطیعین ، خاشعین، لیکن ساکتین تفسیر په بخاری کښې په حدیث د زیدبن ارقم رضی الله تعالی عنه کښې مذکور دې. اوپه حدیث دعبدالله بن مسعود ﷺ کښې .

اوپه یوروایت کښې دسعیدبن مسیب اوابن عباس ﷺ نه ترینه مراد قنوت فی صلاة الصبح دې.

﴿فَإِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا أَوْ رُكْبَانًا﴾ پدې کښې بیان دحکم دصلوة دې په حالت دشدت الخوف کښې ((فرجالا)) معنی داده چه ((صلوا راجلین)) نو رجالاً حال دې او دا جمع د راجل ده یعنې پیاده روان او ((رکبانا)) په معنی د راکبین سره دې یعنې په سورلئ باندې سور نو پدې حالت کښې رکوع، سجده په اشارې سره کوئ.

﴿فَإِذَآ أَمِنتُمْ﴾ یعنې کله چه حالت د خوف او دَ عُذر نه وی ((فاذکروا الله)) یعنی مونځ کوئ ((کما علمکم)) یعنې په حالت د امن اوعدم عذر کښې مونځ کوئ په هغې طریقې چه دهغې دطریقې تعلیم الله ﷻ په قرآن عظیم الشان کښې اجمالاً ذکر کړې دې او رسول الله صلی الله علیه وسلم په احادیثو کښې تفصیلاً تاسوته درکړې دې .

| وَٱلَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَٰجًا وَصِيَّةً لِّأَزْوَٰجِهِم |
|---|
| اوهغه کسان چې مړهٔ شي ستاسونهٔ اوپرېږدي ښځې، نودوئ دې وصیت اوکړي، وصیت کول په حق دخپلوبیبیانو کښې |

| مَتَاعًا | إِلَى | الْحَوْلِ | غَيْرَ | إِخْرَاجٍ ۚ | فَإِنْ | خَرَجْنَ | فَلَا | جُنَاحَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

دنفع ورکولو (يعني نفقه) ديوکال پورې دنۀ اوباسلو د کورنه، پس کچرې دوئ پخپله اووتلې د کورنه پس نشته گناه

| عَلَيْكُمْ | فِي مَا | فَعَلْنَ | فِي أَنْفُسِهِنَّ | مِنْ مَعْرُوفٍ ۗ | وَاللَّهُ عَزِيزٌ |
|---|---|---|---|---|---|

په تاسو په هغه کار کښې چې دوئ کوي په حق دخپلونفسونو کښې جائزکار (زينت ډول) ، اوالله زورآور دې

| حَكِيمٌ ۝ | وَ لِلْمُطَلَّقَاتِ | مَتَاعٌ | بِالْمَعْرُوفِ ۖ | حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِينَ ۝ |
|---|---|---|---|---|

حکمت والا دې . اودطلاقې کړې شوؤ ښځو دپاره نفع ورکول دي په نېکه طريقې سره . لازم دې په متقيانوباندې

كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ آيَاتِهِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ۝

دغه شان بيانوې الله تاسوته خپل آياتونه دپاره ددې چې تاسوپوهه شئ

﴿ وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ ﴾ دمتوفى عنها زوجها عدت چه مخکښې ذکرشوې وۀ نوهغه وجوبی دې اودلته دَ يو استحبابی شی ذکردې .

﴿وَصِيَّةً﴾ مفعول مطلق د فعل محذوف دې «اى فليوصوا وصية» ﴿ مَّتَاعًا﴾ بدل دې د وصيّةً نه، مراد ترينه نفقه اوسکنى ده او﴿غَيْرَ إِخْرَاجٍ ﴾ بدل دې دمتاعًا نه، د جمهورو مفسرينو په نزد **دا حکم منسوخ دې،** ځکه دا آيت په تلاوت کښې اگرکه مؤخر دې ليکن د نزول په اعتبارسره مقدم دې نو اول دَ متوفى عنها زوجها په باره کښې داحکم وۀ چه پدې آيت کښې ذکر دې يعنې يوکال عدت اوسکنىٰ په کور دخاوندکښې نو بياهغه حکم نازل شو چه په مخکښې آيت ۲۳۴ کښې ذکر دې نوعدت څلورمياشتې اولس ورځې مقررشو اوسکنىٰ هم منسوخه شوه په ميراث سره. اوحضرت مجاهد رحمه الله اوعطا رحمه الله دابن عباس رضي الله عنه نه نقل کريدى چه دا آيت منسوخ ندې اوهغوئ وائى چه اول دمتوفىٰ عنها زوجها لپاره عدت څلور مياشتې او لس ورځې مقررشو په طريقې د وجوب سره او بيا خاوندانو ته حکم وشوو چه ناسو په وخت دوفات کيدلو کښې په طريقه داحسان او استحباب سره وصيت وکړئ دخپلو ښځو لپاره چه ديوکال پورې دې دوئ دکور دخاوند نه نشى وباسلې ليکن ښځوته اختيار دې چه دوئ په کور دخاوندکښې پاتې کيږى اوکه نه پاتى کيږى نو مجاهد رحمه الله وائى چه څلور مياشتې اولس ورځې عدت واجب دې او ددينه زائد دکال پورې اووه مياشتى اوشل ورځې دښځې اختياردې چه په کور دخاوندکښې پاتې کيږى اوکه نه پاتې کيږى . او عطاء رحمه الله وائى چه په کور دخاوندکښې سکونت په ښځه لازم ندې. نه په موده د «اربعة اشهروعشرا»

کښې اونه په زائده موده کښې، د مجاهد او عطا دقولينو په مابين کښې فرق دومره دې چه مجاهد ددې تصريح نده کړې چه په موده د «اربعة اشهروعشرا» کښې دخاوند په کورکښې اوسيدل ضروری دی يانه.

اوعطاء رحمه الله تصريح کړې ده چه ضروری ندی، حاصل دا چه دجمهورو په نزد دا آيت منسوخ دې اوپه آيتينو کښې تقديم اوتاخير دې نو مقدم آيت نزولاً وروسته دې اوناسخ دې، او متاخرآيت نزولاً متقدم دې، او منسوخ دې، او د ابن عباس رضی الله تعالی عنه په نزد په کښې ناسخ او منسوخ نشته دې، اوپه تقدم تاءخير باندې قول کولوته هم ضرورت نشته دې.

﴿فَإِنْ خَرَجْنَ﴾ يعنې که دعدت وجوبی پوره کولونه ورستو په خپله دکور دخاوندنه وځی اوکال پوره نه کړی.

﴿مِن مَّعْرُوفٍ﴾ عام دې که حلال کسب وی يا طلب دنکاح وی يا د اقاربو ملاقات وی.

﴿وَلِلْمُطَلَّقَاتِ مَتَاعٌ﴾ دا متعه ديوقسم مطلقې لپاره واجبه ده لکه مخکښې ذکر شو او دنورو لپاره مستحب ده.

﴿حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِينَ﴾ د متقين نه مراد مسلمانان دی.

| |
|---|
| أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ خَرَجُوا مِن دِيَارِهِمْ وَهُمْ أُلُوفٌ حَذَرَ الْمَوْتِ |
| آيا ته نه ګورې هغه کسانوته چې وتلي وؤدکورونوخپلونه، اودوئ په زرګونو وؤ، د وجې دويرې دمرګ نه |
| فَقَالَ لَهُمُ اللَّهُ مُوتُوا ثُمَّ أَحْيَاهُمْ إِنَّ اللَّهَ لَذُو فَضْلٍ |
| پس اووئيل دوئ ته الله چې مړۀ شئ بيائې ژوندي کړل دوئ بېشکه الله خامخاخاوندفضل دې |
| عَلَى النَّاسِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُونَ ۝ وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَاعْلَمُوا |
| په خلقو باندې، ليکن زيات خلق شکر نۀ کوي. اوجنګ کوئ په لار دالله کښې او پوهه شئ پدې |
| أَنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ۝ |
| چې بېشکه الله آوريدونکې دې عالم دې |

﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ﴾ داموړانتظاميؤ او د امورمصلحؤ د ذکرنه بعداصل موضوع يعنې مسئله د جهاد شروع کيږی او پدې کښې د واقعې د بنی اسرائيلو ذکر په طور دتمهيد دې

دتخويف اوعبرت لپاره چه کله دوئ ته دجهاد حکم وشوو نو دوئ دخپلو کورونونه وتختېدل دخان بچ کولو لپاره ليکن الله ﷻ په دوئ باندې مرګ مسلّط کړو اوټول مړه شو، نومعلومه شوه چه دجهاد په ترک سره بچ کيدل يقيني ندی اوجهاد ته په تللو کښې موت يقيني نه دې .
اوکلمه دَ «الم تر» په هغه واقعه کښې مستعملیږی چه ډیره مشهوره وی اوکله په هغه واقعه کښې مستعملیږی چه مقصود ترينه عبرت اخستل وی .

او ﴿ ٱلَّذِينَ خَرَجُواْ ﴾ دا يوقوم د بنی اسرائيلودې چه بادشاه وقت دوئ جهاد ته رابللی ؤ او دوئ د مرګ دخوف دوجې نه دجهادکولونه انکاروکړو اوخپل کلې وطن ئې پرېښود نوالله ﷻ دوئ په طور دسزا ورکولو سره ددوئ داجل مقدرنه مخکښې مړه کړل اوبيائې ژوندی کړل لپاره ددې چه ددوئ يقين راشی چه دالله ﷻ دقدرت په مقابله کښې تدبيرنه کاميابيږی اوپدې کښې مسلمانانوته هم وعيد بيان شوچه تاسو دجهاد نه تېښته مه کوئ ځکه چه په جهاد کښې موت يقيني ندې اوپه ترک کښې بچ کيدل يقيني ندی، اوډيرو مفسرينوليکلی دی چه دايوقوم ؤو دبنی اسرائيلو نه چه دطاعون نه تښتيدلی ؤو اوپه يو ميدان کښې ډیره شو، نوالله ﷻ يوملَك را وليږه اويوه چغه ئې پرې وکړه نو دوئ ټول مړه شوو اوبيا په دعا د نبی سره ژوندی شو چه دهغه نوم حزقييل ﷺ دې يا شمعون ﷺ دې يا شموئيل ﷺ دې او دا موت چونکه موت د اجل ندې بلکه دا موت دعقوبت او د سزا دې نو دا سوال نه واردیږی چه دوه وارې موت خو نشی واقع کيدې ځکه موت د اجل دوه وارې نشی واقع کيدې او دا موت د اجل نه دې، اودارنګه دا سوال هم نه واردیږی چه دموت نه بعد بيا انسان مکلّف نشی کيدې او دارنګه دموت نه بعد بيا ايمان معتبرنه دې ځکه ايمان بالغيب معتبر وی او دموت نه بعد مشاهده وشی د احوالو او د اهوالو نو پکارده چه دوئ مکلف نه شی او ددوئ ايمان معتبرنه شی وجه داده چه موت د اجل نه بعد بيا انسان مکلف نوی اودا موت دعقوبت دې، اوکيدې شی چه په دې موت سره دې مشاهده دَ اهوالو او احوالو بعدالموت نوی شوی ، ياکه شوی وی نو کيدې شی هير کړی شوی وی له دوئ نه، يعنی احوال اهوال بعد الموت دې ترينه بالکل هيرکړی شوی وی اوالله ﷻ قادر دې چه دا هرڅه ترينه هير کړی .

﴿وَهُمْ أُلُوفٌ﴾ الوف صيغه دجمع کثرت ده په عشره اومافوق العشره باندې يې اطلاق کيږی نو معلوميږی چه دلس زرونه کم نه ؤو، په تعداد کښې ئې روايات مختلف راغليدی

دیرش زره (۳۰۰۰۰) څلویښت زره (۴۰۰۰۰) اویازره (۷۰۰۰۰)، ابن کثیر رحمه الله **دا واقعه تفصیلاً** او صاحب دروح المعاني مختصراً تقریباً داسې نقل کړیده چه داخلق دطاعون نه تښتیدلي ؤو او د دوو غرونو په درمیان کښې په یووسیع میدان کښې دیره شوو نوالله ﷻ دوه فرښتې راولیږلې او د میدان په دواړو طرفونو ودریدلې اوسخت آوازئی پرې وکړو نو دوئ هلاک شو اوکله چه دهغوئ د قرب اوجوارعلاقې خلق خبرشول نو هغوئ راغلل او وې کتل چه ددوئ ټولوکفن دفن مشکل ؤو نوچاپیره ئی ترینه یو دیوال وکړو اودغه شان ئی پریښودل او دوئ خاورې شول اوهډوکی ئی پاتې شول اوڅه ډیر وخت ورستو یو نبی په دوئ تیرشو او دا هډوکی ئی ولیدل نوتعجب ئی وکړو، اودالله ﷻ نه ئی سوال وکړو نوالله ﷻ په ذریعه دوحی سره دټولې واقعې نه خبرکړو نو دغه نبی دعاء وکړه چه یا الله دا خلق بیا ژوندی کړه ! نوالله تعالی ورته حکم وکړو چه ته دې هډوکوته داسې خطاب وکړه چه ((ایتها العظام البالیة ان الله یاء مرکِ ان تجتمعی)) **(ترجمه)** اې زړوهډوکو ! الله تعالی تاسوته امرکوی چه دهر جوړ هډوکی دې دخپل ځائ سره جمع شی، نودهرانسان هډوکی دخپل خپل ځائ سره جمع شو او بیائی ورته داسې حکم وکړو چه بیادغه هډوکو ته داسې خطاب وکړه ((ایتهاالعظام ان الله یاءمرك ان تکتسی لحماً وعصبًا وجلداً)) یعنې هر هډوکې دې غوښه، پټې، څرمن، واغوندی، نودغه شان وشوه اوبدنونه مکمل تیارشو بیائی دریم وارې ورته داسې خطاب وکړو ((ایّتها الارواح ان الله یاءمرك ان ترجع کل روح الی الجسدالذی کانت تعمره)) چه ارواح دې خپل خپل بدنونونه واپس شی نو دوئ ټول ژوندی شو اوپه ژبه دا کلمه جاری وه ((سبحانك لااله الاانت))

﴿وَقَٰتِلُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ﴾ د تمهید نه بعد دجهاد ذکر دریم وارې کیږی اودا عطف دې په قصه دماقبل یعنې دموت دخوف دوجې نه دجهادنه تیخته مکوئ بلکه قتال کوئ اودالله تعالی په ذات باندې توکل کوئ هغه سمیع اوعلیم دې اوچونکه په جهادکښې انفاق ته ضرورت راځي نوددې وجې نه دحکم دقتال نه بعدترغیب د انفاق ورکولې شی.

| مَنْ ذَا الَّذِيْ يُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضٰعِفَهٗ لَهٗۤ اَضْعَافًا كَثِيْرَةً ؕ وَاللّٰهُ |
|---|
| څوک دې هغه کس چې قرض ورکړي الله ته قرض ښائسته نوبس دوچند به کړي ده ته الله په ډېرو دوچندئ سره، اوالله |
| يَقْبِضُ وَ يَبْصُۜطُ ۪ وَ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۲۴۵﴾ |
| تنګي راولي اوفراخي راولي، اوهغه ته به تاسوواپس کولی شئ |

﴿مَّن ذَا ٱلَّذِى يُقْرِضُ ٱللَّهَ﴾ دقرض اطلاق په هرنيك عمل باندې كيدې شي لكن اكثر استعمال ئې دمال په خرچ كولو كښې كيږي او د انفاق نه تعبيرپه قرض سره كيږي پدې كښې اشاره ده چه ددې بدله به ضرور وركيدې شي لكه قرض وركول چه ضروري وي اود ﴿قَرْضًا حَسَنًا﴾ نه مراد په اخلاص اوپه طريقه دسنت سره خرچ كول دي چه د رياء او بدعت څه شائبه پكښې نوي «من» مبتداء مرفوع محلاً «ذا» ورله خبر دې او «الذى» موصول سره دصله نه صفت د «ذا» دې يا ترينه بدل دې يعنې څوك به وي داسې سړې چه قرض وركړي الله تعالى ته «قرضا» په معنى د اقراضاً سره مفعول مطلق دې ياپه معنى د مقروضًا سره مفعول به دې او «حسنا» صفت دقرضًا دې.

﴿فَيُضَٰعِفَهُۥ﴾ ضمير مستتر چه فاعل دې راجع دې الله تعالى ته او«ه» ضمير راجع دې قرض ته او مراد ترينه جزاء اوثواب دقرض دې، او باب مفاعله په خپله معنى سره نده بلكه دمبالغې لپاره ده او «فيضاعف» منصوب دې څكه دا جواب داستفهام دې معنىً. او ﴿أَضْعَافًا كَثِيرَةً﴾ مفعول مطلق دې ﴿وَٱللَّهُ يَقْبِضُ وَيَبْصُۜطُ﴾ يعنې فراخى د انفاق په ترك سره نه ده اوتنگى په اتفاق كولوسره نه ده.

**فائده** كله چه دا آيت نازل شونوخلق درې قسمه شو يوهغه بد نصيب خلق ؤو چه هغوئ وويل چه «ان الله فقير ونحن اغنياء» دويم قسم هغه ؤو چه بخل ئې وكړو اوخرچ ئې ونه كړو دالله ﷻ په لاركښې، دريم قسم هغه مخلصين ؤو چه فوراًپه دې آيت باندې عمل وكړو اوبى دريغه خرچ ئې وكړو. لكه قرطبى نقل كړي دى چه **حضرت ابوالدحداح** دنبى ﷺ په خدمت كښې حاضرشو او عرض ئې وكړو يارسول الله ! څما مورپلاردې په تا قربان شي الله تعالى زمونږنه قرض غواړي ! حالانكه هغه مستغنى دې نونبى ﷺ وفرمايل چه هو! الله ﷻ غواړي چه تاسوپدې سره جنت ته داخل كړي، نوده وويل چه زه خپل رب ته قرض وركوم په هغې سره ، آيا زما لپاره او زما دبچى دحداحه لپاره به تاسو دجنت ضمانت راكړئ ؟.

نونبى ﷺچه وفرمايل چه «نعم» يعنې هو! نوده وويل چه لاس راكړه نونبى ﷺ لاس وركړو نو ده وويل چه زما دوه باغونه دى نورڅه نه لرم دا دواړه ماالله ﷻ ته قرض وركړو

نونبی ﷺ او فرمایل چه یوباغ صدقه کړه اوبل دخپل ځان اوعیال دمعیشت لپاره وساته نو ده وویل چه پدې دواړه باغونوکښې چه کوم زیات غوره باغ اوشپږسوه ۶۰۰ ونې پکښې دی هغه ما دالله ﷻ درضا لپاره ورکړو اوتاپرې ګواه کوم، نونبی ﷺ وفرمایل چه الله ﷻ به تاله ددې په عوض کښې جنت درکړی نو ابوالدحداح لاړ اودده بی بی ام دحداح په باغ کښې د خپلو بچو سره دونې دسوری لاندې ګرزیده راګرزیده او بچولره ئې میوې شوکولې وې نو ابوالدحداح ورته د باهر نه آوازوکړو اوپه اشعاروکښې ئې ورته وویل چه دا باغ ماالله ﷻ ته قرض ورکړې دې شعر :

| | |
|---|---|
| هداكِ الله ربّی سبل الرشاد | الی سبیلِ الخیرِ والسَّدادِ |
| بِلینی من الحائط بالودادِ | فقد مضیٰ قرضاً الی التّـناد |
| اقرضتُه الله علی اعتمادی | بالطّـوع لامَنّ وَ لا ارتداد |
| اِلّارجاءَ الضِّعف فی المعادِ | فارتحلی بالنفس و الاولادِ |
| والبِرُّ لاشك فخـیر زادِ | قدّمه المرء الـی الـمعادِ |

نو ام دحداح جواب ورکړو چه ((ربح بیعك)) یعنې دا ډیر نفعې والا تجارت دې، الله ﷻ دې پکښې برکت واچوی اوچه کومې میوې ئې شوکولې وې نو هغه ئې دبچونه واخستلې اوبل باغ ته لاړه سره داولادنه اوخاوند ته ئې په جواب کښې دا اشعار وویل :

| | |
|---|---|
| بشّرك الله بخیر و فـرح | مثلك ادّی مالدیـه و نصح |
| قد متّع الله عیالـی ومنح | بالعجوة السوداء والزّهو البلح |
| والعبدُیسعی وله ماقدکدح | طول اللیالـی وعلیه ماجترح |

نونبی ﷺ وفرمایل ((کم من عذقٍ رداحٍ ودارٍ فیاحٍ لابی الدحداح)) ، (قرطبی) یعنې څومره ډیرې ونې دکهجورودمیؤونه ډکې اوکورنه فراخ د ابوالدحداح لپاره تیاردی په جنت کښې.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اَلَمۡ تَرَ اِلَی الۡمَلَاِ مِنۡۢ بَنِیۡۤ اِسۡرَآءِیۡلَ مِنۡۢ بَعۡدِ مُوۡسٰی ۘ اِذۡ قَالُوۡا لِنَبِیٍّ لَّهُمُ ابۡعَثۡ | | | | | | |
| آیا تۀ نۀ ګورې هغه ډلې تۀ دبنی اسرائیلوۀ روستو دموسی ﷺ ، کله چې دوئ اوونیل نبی خپل تۀ ، مقرکړه | | | | | | |
| لَنَا | مَلِكًا | نُّقَاتِلۡ | فِیۡ سَبِیۡلِ | اللّٰهِ ؕ | قَالَ | هَلۡ عَسَیۡتُمۡ |
| مونږلپاره یوبادشاه چې مونږ(دهغه په مشرئ کښې)جنګ اوکړوۀ لار دالله کښې، اوونیل دوئ ته نبی آیا ؛ نزدې یئ | | | | | | |

| اِنْ كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ اَلَّا تُقَاتِلُوْا ؕ قَالُوْا وَمَا |
|---|
| تاسودې خبرې نه کيږې فرض کړېشي په تاسوجنګ کول، چې جنګ به نه کوئ، نودوئ اوونيل چې څه شوي دي |
| لَنَآ اَلَّا نُقَاتِلَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ قَدْ اُخْرِجْنَا مِنْ دِيَارِنَا |
| مونږلره چې مونږجنګ نه کوو په لاردالله کښې اوحال دا چې په تحقيق سره مونږ اوباسلي شوي يودخپلوکوروڼونه |
| وَ اَبْنَآئِنَا ؕ فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ تَوَلَّوْا |
| اوجداکړې شوي يودخپلوځامنونه، پس هرکله چې فرض کړېشو پدوئ باندې جنګ کول نوواپس اوګرزيدل ټول |
| اِلَّا قَلِيْلًا مِّنْهُمْ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِالظّٰلِمِيْنَ۝ |
| مګر لږ غوندې دَ دوئ نه ، او الله عالم دې په ظالمانو |

﴿ اَلَمْ تَرَ اِلَى الْمَلَاِ مِنْۢ بَنِىْٓ اِسْرَآءِيْلَ ﴾ «ملاء» اسم جمع ده دقوم اشرافوته ويلې شى، خواه شرافت دنيوى وى يا دينى او اکثر استعمال ئى په دنيوى شرافت والوکښې کيږى، او «ملاء» ورته ځکه ويلې شى چه ددوئ رُعب اوهيبت دَکوى سينو لره، پدې آيت کښې **ترغيب الى الجهاد** دې **اوبيان دنمونې دې** چه کله داسې کيږى چه قليل جماعت په ډيرو باندې غالب شى او دارنګه پدې واقعه کښې ددې خبرې بيان دې چه جهاد بغير دَ امير نه او بغير دَ اطاعت نه نشى کيدې، **دا واقعه** دبنى اسرائيلو دحضرت عيسى ﷺ نه زرکاله ۱۰۰۰ قبل ده، او دکوم نبى چه دلته ذکرشوې دې هغه شموئيل ﷺ دې لکه داقول داکثرودې،پدغه زمانه کښې دجالوت قوم «عمالقه» غالب شوى ؤو اودبنى اسرائيلوپه ملك ئى قبضه کړې وه اودوئ ئى د خپلې علاقې نه ويستلى ؤواواولادونه ئى ورته قيد کړى ؤو اوپه بعضو ئى جزيه مقررکړې وه.

نوپدغه وقت کښې دبنى اسرائيلو شرفاء او اصحاب الرأى حضرت شموئيل ﷺ ته درخواست وکړو چه زمونږ لپاره يوامير مقررکړه چه مونږ دهغه په رهبرئ کښې جهاد وکړو نو حضرت شمونيل ﷺ ته دبنى اسرائيلو تيرشوې تاريخ معلوم ؤو نوځکه ئى ورته وويل ﴿هَلْ عَسَيْتُمْ﴾ «هل» لپاره داستفهام تقريرى دې، اوخبر د عَسَيْتُمْ لپاره ﴿اَلَّا تُقَاتِلُوْا ﴾ دې

﴿اِنْ كُتِبَ﴾ شرط دې فاصل دې په مابين داسم دعسىٰ اود خبر دعسىٰ کښې يعنې دا خبره متقرره ده چه که په تاسو جهاد فرض شى نو بيا به تاسو جهادنه کوئ نوخبرې ته سوچ او فکرکوئ، داسې نه چه ساتاسو جهاد نه کوئ، نو دوئ وويل چه ﴿وَمَا لَنَآ اَلَّا نُقَاتِلَ﴾ يعنې

جهاد خو شرعی فریضه هم ده اووددینه علاوه صورت حال دادې چه دشمنانو مونږ دخپلې علاقې نه ؤباسلی یو او د بال بچونه ئی جدا کړی یو نو دا لوئ باعث دې د جهاد کولو لپاره.

﴿فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ﴾ نو کله چه قتال فرض کړې شو. نو چه دحضرت شموئیل ﷺ کومه خطره وه نو هغه وشوه

| وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ إِنَّ اللَّهَ قَدْ بَعَثَ لَكُمْ طَالُوتَ مَلِكًا ۚ قَالُوا |
|---|
| اواوئیل دوئ ته نبی ددوئ چې بېشکه الله په تحقیق سره مقرر کړېدې ستاسودپاره طالوت بادشاه، اووئیل دوئ |
| أَنَّىٰ يَكُونُ لَهُ الْمُلْكُ عَلَيْنَا وَنَحْنُ أَحَقُّ بِالْمُلْكِ مِنْهُ وَلَمْ يُؤْتَ |
| چې څرنگ به شي دده دپاره بادشاهي په مونږ باندې اومونږزیات لائق یودبادشاهۍ دده نه، اودهٔ ته ندې ورکړې شوې |
| سَعَةً مِّنَ الْمَالِ ۚ قَالَ إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَاهُ عَلَيْكُمْ وَزَادَهُ بَسْطَةً فِي الْعِلْمِ |
| فراخي دمال، اووئیل نبی بېشکه الله غوره کړېدې داطالوت په تاسواوزیاته فراخي ئ ورته ورکړېده په پوهه کښې |
| وَالْجِسْمِ ۖ وَاللَّهُ يُؤْتِي مُلْكَهُ مَن يَشَاءُ ۚ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٤٧﴾ |
| اوجسم کښې، اوالله ورکوي بادشاهي هغه چاتهٔ چې خوښه ئې شي، اودالله فضل ډېرواسع دې اوعالم دې |
| وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ إِنَّ آيَةَ مُلْكِهِ أَن يَأْتِيَكُمُ التَّابُوتُ فِيهِ |
| اوونیل دوئ ته نبي ددوئ چې بېشکه نشاني دبادشاهۍ دطالوت داده چې رابهٔ شي تاسوتهٔ صندوق پدې کښې به |
| سَكِينَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ وَبَقِيَّةٌ مِّمَّا تَرَكَ آلُ مُوسَىٰ |
| دزړهٔ تسلي وي دطرفه درب ستاسونهٔ او څهٔ باقي پاتې شوي(تبرکات)، دَ هغه څیزونو نه چې پریخودي وؤ آل دموسی |
| وَآلُ هَارُونَ تَحْمِلُهُ الْمَلَائِكَةُ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٢٤٨﴾ |
| اوآل دهارون چې راوړي بهٔ ئې فرښتې، بېشکه پدې کښې نشاني ده ستاسودپاره کچرې يئ تاسويقين کوونکي |

﴿وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ﴾ دا د ماقبل تفصیل دې یعنې شموئیل ﷺ بنی اسرائیلوته وویل چه بیشکه الله ﷻ ستاسو لپاره طالوت بادشاه مقررکړې دې لهذا تاسو دده اطاعت کوئ اود ده دحکم ماتحت جهاد کوئ. او **طالوت** لفظ عجمی عبرانی دې نوغیرمنصرف دې په وجه دعجمه اوعلمیت سره اوبعضې ویلیدی چه دا لفظ عربی دې په اصل کښې طولوت ؤو.

﴿قَالُوا أَنَّىٰ يَكُونُ لَهُ الْمُلْكُ﴾ بنی اسرائیلوته چه هرکله شموئیل ﷺ دالله تعالی حکم

واورولو نو پدوئ کښې دولت مند و ؤویل چه طالوت یوغریب اوخوار سړی دی نو دی څرنګه د امارت حقدار کیدی شی؟ بل دا چه طالوت په بنی اسرائیلو کښې نه د سبط (خاندان) نبوت نه دی اونه د سبط (خاندان) مملکت نه دی، په بنی اسرائیلو کښې دوه لوئ سبطه (خاندانونه) ؤو یو سبط نبوت. چه هغه اولاد د لاوی بن یعقوب ؤو او بل سبط دَ مملکت ؤو چه هغه اولاد دیهودا ؤو. اوطالوت پدې دواړو کښې نه ؤو بلکه دی په اولاد د بنیامین کښې وو چه هغه دحضرت یعقوب ﷺ په ټولو کښې کشر زوی وو.

﴿قَالَ إِنَّ ٱللَّهَ ٱصۡطَفَىٰهُ﴾ نبی دوئ ته په درې طریقوسره جواب ورکړو (۱) دا انتخاب الهی دی انسانی نه دی لهذا تاسو خپل عقل او رایه ددې په مقابله کښې مه پیش کوئ. (۲) تاسو چه د امارت اومشری کوم معیارمقررکړی دی چه امیربه هغه څوك وی چه مالدار وی او دخاندان امارت سره به تعلق لری نو دغه اصل معیارنه دی بلکه د امیر لپاره دادوه صفتونه پکاردی ۱- فراخی دعلم ددین اودسیاست۲- زیادت دشجاعت اوجسمانی قوت او دا دواړه صفتونه په طالوت کښې زیات دی ، ۳- حکومت او امارت دالله ﷻ په اختیارکښې دی نو چه هغه چاته ورکوی نو دهغه خوښه ده چاله د اعتراض حق نشته، نو کله چه بنی اسرائیلو دا خبره واوریده نوشموئیل ﷺ ته ئی وویل چه یوبل څه دلیل اونښه د امارت دطالوت لپاره ؤښایه چه زمونږ په زړونو کښې هیڅ شك پاتې نشی نونبی دعا وکړه نو الله ﷻ بله نښه ښکاره کړه نوونی فرمایل : ﴿إِنَّ ءَايَةَ مُلۡكِهِۦٓ أَن يَأۡتِيَكُمُ ٱلتَّابُوتُ﴾ په بنی اسرائیلو کښې دپخوا زمانې نه یو صندوق موجود ؤو چه په هغې کښې دحضرت موسی ﷺ اوهارون ﷺ او د نوروانبیاؤ علیهم السلام بعضې تبرکات ؤو، بنی اسرائیلو به همیشه دا صندوق دجنګونوپه موقعه دجنډې په شان دلښکرنه مخکښې وړلو او د هغې په برکت به الله ﷻ دوئ ته فتح ورکوله اوهرکله چه جالوت په دوئ غالب شو نو دا صندوق ئی هم ددوئ نه واخیست لیکن هرکله چه دالله ﷻ اراده وه چه دا تابوت دې بنی اسرائیلو ته واپس شی نو داسې وشوه چه دوئ یعنی جالوت والو به چه دا تابوت کوم ښارته وړلو نو هلته به وباګانې اوتکلیفونه شروع کیدل حتی چه وائی چه ددوئ پنځه ښارونه وران شو، نوهرکله چه دوئ مجبورشو نوصندوق ئی په دوو غوایانو باندې بارکړو او هغه یی وشړل، دالله ﷻ په اراده سره فرشتو هغه غوایان طالوت ته ورسول، او دابن عباس ﷺ نه روایت دی چه فرشتو دا صندوق په هوا کښې اُچت راوړو او دطالوت په مخکښې ئی کیښود، نو چه بنی اسرائیلو ورته وکتل نومطمئن

شواوجهاد ته تیارشو. دیهودیانو دا خیال دې چه دغه تابوت اوس هم په هیکل سلیمانی کښې دفن دې

﴿فِيهِ سَكِينَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ﴾ «ای فی اتیانه سکینة»، په تقدیر دمضاف سره او دسکینة نه مراد تسلی اواطمینان قلب دې. یا مضاف مقدرنه دې او ﴿وَبَقِيَّةٌ﴾ عطف تفسیر دسکینةٌ دې او مراد ترینه تبرکات دی، نسخه دتورات، عصی دموسی ﷺ عمامه دهارون ﷺ وغیره.

| فَلَمَّا فَصَلَ طَالُوتُ بِالْجُنُودِ ۙ قَالَ إِنَّ اللَّهَ مُبْتَلِيكُم بِنَهَرٍ ۚ |
| --- |
| پس هرکله چې راؤتلوطالوت سره دلښکرو نه، نووې وئیل چې بېشکه الله ستاسوآزمېښت کوي په یونهرسره |
| فَمَن شَرِبَ مِنْهُ فَلَيْسَ مِنِّي ۚ وَمَن لَّمْ يَطْعَمْهُ |
| پس هغه څوک چې اوبۀ اوڅکي ددېنه نوندې هغه څمادتابعدارانونۀ. اوچاچې اونۀ څکلې دااوبۀ |
| فَإِنَّهُ مِنِّي إِلَّا مَنِ اغْتَرَفَ غُرْفَةً بِيَدِهِ ۚ فَشَرِبُوا مِنْهُ |
| نوبېشکه دې بۀ څما دَتابعدارانونۀ وي مګرهغه څوک چې راواخلي یو لپه پڼلاس خپل، پس اوبۀ اوڅکلې دوئ ټولو ددغه نهر نۀ |
| إِلَّا قَلِيلًا مِّنْهُمْ ۚ فَلَمَّا جَاوَزَهُ هُوَ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ ۙ قَالُوا |
| مګرلږو ددوئ نۀ،پس هرکله چې تېرشودهغې نهرنۀ،دې،اوهغه کسان چې ایمان ئې راوړې وۀ دده سره، اووئیل دوئ |
| لَا طَاقَةَ لَنَا الْيَوْمَ بِجَالُوتَ وَجُنُودِهِ ۚ قَالَ الَّذِينَ يَظُنُّونَ |
| چه نشته دې طاقت زمونږ نن ورځ دمقابلې ددجالوت اوددۀ لښکرسره، اووئیل هغه کسانوچې یقین ئې وۀدې |
| أَنَّهُم مُّلَاقُو اللَّهِ ۙ كَم مِّن فِئَةٍ قَلِيلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيرَةً بِإِذْنِ |
| چه بېشکه دوئ ملاقات کوؤنکي دي دالله سره، ډېرخله داسې دي چې لږه ډله غلبه اوکړي په ډېره ډله باندې په اذن |
| اللَّهِ ۗ وَاللَّهُ مَعَ الصَّابِرِينَ ۝ |
| دالله سره اوالله دصبر کوؤنکوسره دي |

﴿فَلَمَّا فَصَلَ طَالُوتُ﴾ ای خرج، هرکله چه دوئ جهاد ته تیارشو نو ویلی شوی دی چه اتیازره خلق(۸۰۰۰۰)دده سره روان شو اوپه دومره ډیروخلقو کښې مخلصین اوغیرمخلصین او بزدل هرقسم کسان موجود وی نو دا ضروری وه چه غیرمخلصین جدا کړې شی اومیدان جنګ ته صرف مخلصین لاړشی، ځکه غیرمخلصین اوبزدل خلق په میدان جنګ کښې همیشه

لپاره دنقصان باعث وی نوددې وجه نه طالوت ددوئ امتحان واخیست اوچونکه دا امتحان په حکم دوحی سره ؤو په نبی باندې نوځکه ئی وویل : ﴿إِنَّ ٱللَّهَ مُبْتَلِيكُم بِنَهَرٍ﴾ دغه موسم د ډیرې ګرمئ ؤو اودوئ مزل هم وکړو نوسخته تنده ورته ولګیده لیکن طالوت حکم وکړو چه څوك به هم اوبه نه سکی اوکه چاوسکلې نو زما سره به میدان جهادته نه ځی . اول ئی مطلقاً منع وکړه اوبیائی دیوې لپې اوبو اجازت ورکړو چه : ﴿إِلَّا مَنِ ٱغْتَرَفَ﴾ دا استثناء یامنقطع ده که په ماقبل کښې منع دشرب کرغا وی یا متصله ده که په ماقبل کښې منع دشرب مطلقاً وی.

﴿فَشَرِبُوا۟ مِنْهُ﴾ نوکله چه دوئ نهرته ورسیدل نو دحیواناتو پشان ئی په اوبو کښې خولې کیخودلې اوبه ئی وسکلې او ډیری ئی وسکلې نوخیټی ئی درنې شوې نو ددشمن مقابلې ته میدان جهادته نشو تللې. ﴿إِلَّا قَلِيلًا مِّنْهُمْ﴾ مګرلږ شان کسان داسې ؤو چه هغوئ د امیردحکم مطابق یوه لپه اوبه وسکلې نوالله تعالی ددوئ تنده په دغه یوه لپه اوبوسره ختمه کړه او ددشمن مقابلې ته روان شو اودغه کسان درې سوه دیارلس (۳۱۳) ؤو اودوئ کامل ایمان والاؤو لکه په حدیث کښې راغلیدی : «والله ماجاوزمعه النهرالامؤمن» اوکومو کسانو چه دامیر دحکم مخالفت کړې ؤو اواوبه ئی ډیرې سکلې وې نودهغوئ تنده نه ختمیده.

قرطبی د ابن عباس ﷺ نه نقل کړیدې چه په دوئ کښې بعضو خلقو بالکل اوبه ونه سکلې اوبعضې خلقو یوه لپه وسکلې اوبعضې خلقو دحیواناتو پشان ډیرې وسکلې نو دوئ ددشمن دمقابلې طاقت نه لرلو اوتنده ئی هم نه ختمیده او چا چه اوبه بالکل نوې سکلې نو هغوئ زیات تکړه ؤو په نسبت دهغه چاچه یوه لپه اوبه ئی سکلې وې.

﴿فَلَمَّا جَاوَزَهُۥ﴾ په «جاوز» کښې ضمیرمسترفاعل دې . او« ه » ضمیر ئی مفعول دې او «هو» تاکید د ضمیر مستتردې او «والذین» عطف دې په ضمیر مستتر باندې .

﴿ قَالُوا۟ لَا طَاقَةَ لَنَا ٱلْيَوْمَ ﴾ دامقوله دهغه مؤمنینو ده چه جهاد ته تللی ؤو. حاصل دادې چه دوئ درې قسمه خلق ؤو : **یوهغه ناقص الایمان** ؤو چه اوبه ئی ډیرې وسکلې اودجهاد نه پاتې شو. **اودویم هغه کامل الایمان** ؤو چه دخپل قلّت فکر ورسره ؤو. **اودریم هغه اکمل ایمان** والاؤو چه دهغوئ سره هیڅ فکرنه ؤو اونوروته ئی تسلی ورکړه چه تاسو غم مکوئ او ډیر وارې داسې کیږی چه لږه ډله په ډیروباندې غلبه وکړی دالله تعالی په اذن سره.

﴿ يَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلَٰقُوا۟ ٱللَّهِ ﴾ ((یظنون)) په معنی د ((یوقنون)) سره دي او د ((ملاقوالله)) نه مراد بعث بعد الموت دي یا ثواب دي. یعني یقین ئی ؤو په بعث بعدالموت یا په ثواب باندي، او یا ظن پخپله معنی سره دي یعنی گمان، او د ((ملاقوالله)) نه مراد موت اوشهادت دي په میدان جهاد کښي او دملاقات اطلاق په موت هم کیږی ، لکه په حدیث کښي راغلیدی چه ((من احب لقاء الله احب الله لقائه)) . . .

| وَلَمَّا | بَرَزُوا۟ | لِجَالُوتَ | وَجُنُودِهِۦ | قَالُوا۟ | رَبَّنَآ | أَفْرِغْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوهرکله چي مېدان ته راغلل دپاره دجنگ دجالوت اودلښکر دده نو اووئیل دوی ائي ربه زمونږ راتوئ کړه | | | | | | |
| عَلَيْنَا | صَبْرًا | وَثَبِّتْ | أَقْدَامَنَا | وَٱنصُرْنَا | عَلَى | ٱلْقَوْمِ ٱلْكَٰفِرِينَ ۝ |
| په مونږباندي صبراوکلک اوساته قدمونه زمونږ اومونږ ته غلبه راکړه په قوم کافرانو | | | | | | |
| فَهَزَمُوهُم | بِإِذْنِ | ٱللَّهِ | وَقَتَلَ | دَاوُۥدُ جَالُوتَ | وَءَاتَىٰهُ ٱللَّهُ | ٱلْمُلْكَ وَٱلْحِكْمَةَ |
| پس دوئ ماتي ورکړه کافرانوته په توفیق دالله، اوقتل کړوداؤد جالوت لره، اوورکړه الله داؤد ته بادشاهي اوپیغمبري | | | | | | |
| وَعَلَّمَهُۥ | مِمَّا | يَشَآءُ | وَلَوْلَا | دَفْعُ ٱللَّهِ | ٱلنَّاسَ | بَعْضَهُم بِبَعْضٍ |
| او وخودل ئ ده ته دهغي نه چي ئي خوښه وه، اوکچري نه وي دفع کول دالله خلقولره، خنولره په نوروسره | | | | | | |
| لَّفَسَدَتِ ٱلْأَرْضُ وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ ذُو فَضْلٍ عَلَى ٱلْعَٰلَمِينَ ۝ | | | | | | |
| نو خامخا به خرابه شوي وه زمکه ، لیکن الله خاوندد فضل دي په خلقوباندي | | | | | | |

﴿وَلَمَّا بَرَزُوا۟ لِجَالُوتَ﴾ ((برزوا)) د ((براز)) نه مشتق دي بکسرالباء اوفتح الباء یوه معنی ده یعني وسیع میدان دجنگ لپاره، اودبعضي اهل علم قول دادي چه بِرازپه کسري دباء سره په میدان جنگ کښي ددشمن مقابلي کولوته وائی اوپه فتح دباء سره موضع الغائط والبول ته وایی، یعني دقضاء حاجت ځائ ته وائی، اول قول اصح دي، یعني هرکله چه دوئ دجالوت د مقابلي لپاره راؤوتل نوچونکه صف القتال اومیدان جنگ دقبولیت ددعا لپاره مخصوصه موقعه ده نودوئ دعاؤکړه چه: ﴿رَبَّنَآ أَفْرِغْ﴾ نومعلومه شوه چه په میدان جنگ کښي دعا غوښتل پکاردی لیکن شرکی نداء ، یاعلی مدد، یاغوث الاعظم مدد، ددنیا اوآخرت دواړو نقصان دي اوحضورﷺ په جنگ بدرکښي هم دجنگ شروع کیدلو نه قبل په ډیر اهتمام او عاجزی سره دعاوغوښتله حتی چه ابوبکرؓوویل(حسبك یارسول الله فقدالححت علی ربك)

﴿ اَفْرِغْ﴾ د افراغ نه مشتق دې اوبه تویه ولو ته وایی. او دا کنایه ده د کثرت نه یعنې مونږ ته د ډیر صبر توفیق راکړه چه په هغې سره زمونږ قدمونه مضبوط شی په میدان جنګ کښې او زمونږ مددوکړه په قوم کافرانو باندې، قرطبی اوروح المعانی وغیره مفسرینو لیکلی دی چه داؤد ﷺ پدغه وقت کښې ګډې، بیزې څرولې (شپونکې) ؤو نو دده سره درې کاڼروخبرې وکړې او ورته ئې وویل چه مونږ دځان سره واخله ؛ جالوت به زمونږ په ذریعه هلاکیږی. په لښکر کښې د داؤد ﷺ پلار او شپږ ورونه شریك ؤو نو هر کله چه مقابله شروع شوه نو دجالوت سره یو لاکهـ (۱۰۰۰۰۰) او په بعضو روایاتو کښې دی چه درې لاکهـ (۳۰۰۰۰۰) لښکرؤو او جالوت پخپله هم ډیرقوی او مضبوط ؤو حتی چه بعضو ویلیدی چه دمنارې (مینار) په مقدار لوئ جسامت ئی ؤو نو دې پخپله دمقابلې لپاره راغې اوبدن ئی ټول په زغره کښې پټ ؤو او دطالوت لښکر درې سوه دیارلس (۳۱۳) کسان ؤو. اوپه قوت اوجسامت کښې هم ادنی ؤو، نو جالوت وویل چه زه یوازې ستاسو لپاره کافی یم راشئ زما مقابلې ته .شموئیل ﷺ دداؤد ﷺ پلار ته وویل چه خپل ځامن ماته وښایه نو هغه د داؤد ﷺ نه علاوه شپږ ځامن چه قد اوجسامت کښې د داؤد ﷺ نه بهترؤو هغه ئی پیش کړه، نو شموئیل ﷺ دوئ واپس کړه داؤد ﷺ ئی راوغوښت اوورته ئی وویل چه آیا ته دجالوت مقابله کولې شې ؟ نو دده وویل چه هو؛ اوطالوت داسې اعلان هم کړې ؤو چه څوك جالوت مړکړی نو زه به ورته خپله لور په نکاح ورکوم اوپه بادشاهئ کښې به ئی دځان سره شریك کړم نو **داؤد ﷺ چه کله دمقابلې لپاره تیارشو** نو طالوت ورته خپله زغره ورکړه اوپه خپل آس باندې ئی سور کړو لیکن داؤد ﷺ زغره دځان نه ارتاؤ کړه اودغه شان مقابلې ته لاړ نو جالوت ورسره ګفتګو شروع کړه اوورته ئی وویل چه آیاته جنګ له مقابلې ته راغلې ئی؟ اوکه دسپو شړلو لپاره راغلې ئی چه دجنګ اسلحه اوسامان درسره نشته دې .

نوحضرت داؤد ﷺ ورته وویل «انت اهون علی الله من الکلب» یعنې ته دسپې نه زیات ذلیل ئی د الله پاك په نیزد باندې، نوجالوت وویل چه تا به څه په خپلولاسونو ټکړې ټکړې . خنې، خنې ، کړم او د مرغانو خوراك به دې کړم، نوحضرت داؤد ﷺ هغه کاڼړی راواخستل چه دده سره ئی خبرې کړې وې اوپه مرچوغنه (لینده) کښې ئی کینبودل اوپه جالوت ئی ګذاروکړو دجالوت ټول بدن په زغره کښې پټ ؤو صرف سترګې او وچولې ((تندې)) ئی څرګندؤو هم پدغه ځائ کاڼړی ولګیدل او د سربل جانب ته ووتل اوکپړئ ئی ټکړې ټکړې

شوه اودا لویه بلاپه میدان جنگ کښې راؤغورځیده ، فوج ئې هم مرعوب شو او وتښتیدل او الله تعالی دوئ ته فتح ورکړه نوطالوت خپله لور داؤد ﷺ ته په نکاح ورکړه اوپه بادشاهی کښې ئې شریك کړو اوبیائې ورته ټوله بادشاهي ورکړه، مفسرینو لیکلی دی چه دطالوت په زړه کښې د داؤد ﷺ سره حسد پیداشو او اراده ئې وکړه دقتل دده، خو بیا ده ته څه داسې آثار او علامات ښکاره شوچه دې دخپلې ارادې نه واپس شو اوټوله بادشاهی ئې داؤد ﷺ ته حواله کړه .

﴿وَءَاتَىٰهُ ٱللَّهُ ٱلْمُلْكَ وَٱلْحِكْمَةَ﴾ دحکمت نه مرادنبوة دې، حضرت داؤد ﷺ ته الله ﷻ بادشاهی اونبوت دواړه ورکړل اوددینه مخکښې به نبوت په یوسبط (قبیله) کښې وُو او بادشاهی به په بل سبط کښې وه، اودا بعد دموت دنبی (شموئیل ﷺ) نه وه اوهغه دطالوت نه مخکښې وفات شوې وُو ،نوداؤد ﷺ ته الله ﷻ اول بادشاهی ورکړه بیائی ورته نبوت ورکړو.

﴿وَعَلَّمَهُۥ مِمَّا يَشَآءُ﴾ ددینه زغرې جوړول ، منطق الطیر، کلام الدواب ، وغیره مراددی.

﴿وَلَوْلَا دَفْعُ ٱللَّهِ ٱلنَّاسَ﴾ دا علت اوحکمت دمشروعیت دجهاددې ﴿بَعْضَهُم﴾ ددینه مراد اهل شردی﴿ بِبَعْضٍ ﴾ ددینه مراد اهل خیردی ﴿ لَّفَسَدَتِ ٱلْأَرْضُ ﴾ ددې تفسیر په سورة حج آیت ۴۰ کښې دې چه ﴿ لَّهُدِّمَتْ صَوَٰمِعُ وَبِيَعٌ وَصَلَوَٰتٌ وَمَسَٰجِدُ يُذْكَرُ فِيهَا ٱسْمُ ٱللَّهِ ﴾ نو دجهاد په ذریعه سره داهل شر دفاع کیږی او دشعائرو ددین حفاظت کیږی لیکن **جهادپه غیر دمملکت اسلامی** نه نشی کیدې نوځکه علماء وائ چه ((الدین والملك توءمان)) . امام قرطبی ددې آیت متعدد توجیهات کړیدی، فراجعه .

| تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱللَّهِ نَتْلُوهَا عَلَيْكَ بِٱلْحَقِّ ۚ وَإِنَّكَ لَمِنَ ٱلْمُرْسَلِينَ ۝ |
|---|
| دا آیاتونه دالله دي چې مونږ ئې لولویۀ تا باندې پۀ حق سره، اوبېشکه تۀ خامخا درسولانو نه ئې |

﴿تِلْكَ ءَايَٰتُ ٱللَّهِ﴾ مذکوربماقبل ته اشاره ده او دا دلیل دنبوت دې یعنې انبآء عن الغیب.

﴿وَإِنَّكَ لَمِنَ ٱلْمُرْسَلِينَ﴾ ذکره رسالت دې .

**سیقول پاره ختمه شوه ولله الحمد اولاً وآخراً**

| تِلْكَ | الرُّسُلُ | فَضَّلْنَا | بَعْضَهُمْ | عَلٰى بَعْضٍ ۘ | مِنْهُمْ | مَّنْ |
|---|---|---|---|---|---|---|

دغه پیغمبران غوره کړي دي مونږ بعضې ددوئ په بعضو باندې. خینې ددوئ نه خوهغه دي

| كَلَّمَ | اللّٰهُ | وَرَفَعَ | بَعْضَهُمْ | دَرَجٰتٍ ؕ | وَ اٰتَيْنَا | عِيْسَى | ابْنَ | مَرْيَمَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

چې الله ورسره خبرې کړېدي اواوچت کړي ئې دي بعضې دوئ لره په درجو کښې.اوورکړي وې مونږعیسی خوئې دمریم

| الْبَيِّنٰتِ | وَ اَيَّدْنٰهُ | بِرُوْحِ | الْقُدُسِ ؕ | وَلَوْ شَآءَ | اللّٰهُ | مَا | اقْتَتَلَ | الَّذِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

ته واضحه معجزې اوقوي کړې وو مونږ په روح پاک سره. اوکه دالله اراده وې نودیوبل سره به نه وې جنګېدلې هغه کسان

| مِنْ | بَعْدِهِمْ | مِّنْ | بَعْدِ | مَا | جَآءَتْهُمُ | الْبَيِّنٰتُ | وَلٰكِنِ | اخْتَلَفُوْا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

چې روستووو دپیغمبرانونه بعددهغې نه، چې رارسیدلي دي دوئ ته واضحه نښې، لیکن دوئ اختلاف اوکړو

| فَمِنْهُمْ | مَّنْ | اٰمَنَ | وَ مِنْهُمْ | مَّنْ كَفَرَ ؕ | وَ لَوْ شَآءَ | اللّٰهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|

پس خینې ددوئ نه هغه وو چې ایمان ئې راوړې وو اوخینې هغه وو چې کفرئې کړې وو. اوکه دالله اراده وې

| مَا اقْتَتَلُوْا ۫ وَ لٰكِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيْدُ ۧ |
|---|

نودوي به دیوبل سره نه وې جنګېدلې، لیکن الله کوي هغه کار چې اراده ئې وي

﴿ تِلْكَ الرُّسُلُ ﴾ دا ترقی ده دماقبل نه یعنې ته درسولانونه ئی بلکه افضل دافضلو نه ئی خکه انبیاء افضل دی دعامو انسانانو نه او بیا په انبیاؤکښې بعضو ته مونږفضیلت ورکړیدې په نورو باندې او تا ته مې په هغوئ باندې افضلیت درکړیدې او دومره ډیرې اولوئ درجات مې درکړیدی چه دهغې کمیت اوکیفیت څوك نشی معلومولې. او ددې وجه نه درجات جمع ذکرشوه چه ډیروالی ته اشاره شی، اونکره ذکرشوه چه تفخیم اوتعظیم ته اشاره شی یعنی دحضور ﷺ درجات عالیه داسې دی چه نه ئی دکثرت څه حدشته اونه ئی دعظمت څه حدشته . شعر

فانّ فضلَ رسولِ الله ليس له حــدٌ فيُعرِبُ عنه ناطق بفمٍ

﴿فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ﴾ **سوال** واردیږی چه په حدیث کښې منع راغلې ده دتفضیل دبعضې انبیاؤ نه په بعضې باندې ((لاتخيروابين الانبياء ،لاتخيرون على موسى ،لاينبغى لاحدٍ ان يقول اناخيرمن يونس بن متى)). **جواب** کړی دې بعضې اهل علمو چه دا حدیث قبل دعلم

بالتفضیل نه ؤو، یعنې قبل دوحی راتلونه په تفضیل دبعضې په بعضې باندې، اوبعضو ویلی دی چه «لاتخیرون علی موسیٰ» وغیره بعضې نور احادیث محمول دی په تواضع باندې، اوبعضو جواب کړې دې چه منع داسې تفضیل دې چه دهغې نه تحقیر دبل نبی معلومیږی نو دا سوء ادب دې، اونفس تفضیل ندې منع شوې.

﴿مِّنْهُم مَّن كَلَّمَ ٱللَّهُ﴾ دا بیان دتفضیل دې او ددینه مراد حضرت موسیٰ ﷺ دې لکه دا راجح اومشهورقول دې او دحضرت موسی ﷺ ذکر په قرآن کښې د نوروانبیاؤ نه زیات کیږی اودلته دحضرت موسیٰ ﷺ دخاص منقبت اوفضیلت ذکردې چه هغه کلام دې دالله تعالی سره اومراد دکلام نه بلا واسطه کلام دې ځکه بالواسطه کلام د ټولوسره شوې دې، حضرت موسیٰ ﷺ الله تعالی کوه طورته وباله اوبلا واسطه کلام ئی ورسره وکړو نو دموسی ﷺ ډیرشوق د دیدارالهی پیداشو اوسوال ئی وکړو. ﴿قَالَ رَبِّ أَرِنِىٓ أَنظُرْ إِلَيْكَ﴾ نو جواب ورته راغی ﴿قَالَ لَن تَرَىٰنِى﴾.

لیکن حضور ﷺ ئی په ډیرو انواعو داعزاز او داکرام سره «فوق السّموات والعرش» خپل حضورته وباله او په سدرة المنتهیٰ کښې یې ورله استقبال په سُکانو دعالم قدس اوعالم غیب سره وکړو «اذیغش السدرة مایغشیٰ» اود «مازاغ البصر» کحل ئی ورته ولګول ،اوپه خپل دیدار سره ئی مشرف کړو اوبلاواسطه کلام ئی ورسره وکړو.

﴿ وَرَفَعَ بَعْضَهُمْ دَرَجَٰتٍ﴾ ددینه مراد حضور ﷺ دې اوتعبیرپه لفظ مبهم یعنی بعضهم سره کولوکښې اشاره ده تعظیم شان ته، اوادعاء دتعین ته، چه د داسې لویو درجو حامل صرف یوذات کیدې شی چه هغه ذات بابرکات دسید الکونین ﷺ دې.

﴿ وَءَاتَيْنَا عِيسَى ٱبْنَ مَرْيَمَ ٱلْبَيِّنَٰتِ ﴾ دا دعیسی ﷺ دفضیلت اودمنقبت ذکر دې او دحضور ﷺ فضیلت ددې نه هم زیات دې او د «بینات» نه مراد واضحه معجزات دی، لکه «احیاء الموتی، ابرأ الاکمه والابرص وغیره» او د روح القدس تفسیرمخکښې تیرشوې دې په سورة بقره ، آیت: ۸۷ کښې.

﴿وَلَوْ شَآءَ ٱللَّهُ مَا ٱقْتَتَلَ ٱلَّذِينَ﴾ په دې کښې تسلی ده نبی ﷺ ته یعنې که څوك ستا رسالت نه منی نوته غم اوافسوس مکوه ځکه چه د ټولو پیغمبرانو سره دغه شان معامله شوې ده چه بعضو ئی موافقت کړې ؤو اوبعضو ئی مخالفت کړې ؤو، اوپدې کښې هم دالله تعالی

حکمت وی اګرچه دهغې تفصیلی علم هرچاته نوی حاصل. البته دومره اجمالی عقیده ساتل ضروری دی چه پدې کښې دالله ﷻ لویه حکمت دې اُوکه دالله ﷻ اراده وی چه جبراً ټول خلق ایمان راوړی نو بیا به چا هم اختلاف نوې کړې لیکن الله ﷻ ته جبری ایمان ندې منظور. اود «ما قتتل» نه مراد ما اختلف دې ځکه چه اختلاف سبب د اقتتال دې اومفعول د «شاء» لپاره محذوف دې ای «لوشاء الله عدم اقتتالهم مااقتتل الذین ....... الآیه»

﴿وَلَٰكِنِ ٱخْتَلَفُواْ﴾ ددینه معلومه شوه چه ما اقتتل په معنی د «مَا اختلفَ» سره دې اونسبت ئې دوئ ته وشو لپاره ددې چه اشاره شی دیته چه دا اختلاف ددوئ په سوء اختیارسره وجود ته راغلیدې. ﴿فَمِنْهُم مَّنْ ءَامَنَ﴾ دا تفصیل داختلفوادی.

﴿وَلَوْ شَآءَ ٱللَّهُ مَا ٱقْتَتَلُواْ﴾ دا دوباره ذکرشو لپاره ددې چه مابعد پدې مرتب شی چه هغه داقول دې ﴿وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيدُ﴾ یعنې ددې خلقوپه دین کښې اختلاف کول او بیا پدې باندې جنګ اوقتال مرتب کیدل دا ټول دالله ﷻ د ارادې اومشیة ماتحت دی، هیڅ شې دالله ﷻ د ارادې اومشیة نه باهر نشته دې، حضرت الشیخ ﷫ فرمائی چه دا د مشروعیت دقتال لپاره دویم علت دې. اول علت دا وو چه «ولولا دفع الله الناس — الآیه» چه جهاد ددې لپاره مشروع شویدې چه د اهل فسادو دفاع وشی. اودویم علت دادې چه جهاد مشروع شویدې دبندګانو دابتلاء اوامتحان لپاره اوکه دالله ﷻ اراده وې نوپه غیر د قتال نه به ئې خلق په ایمان مجبورکړی وې.

| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَنفِقُواْ مِمَّا رَزَقْنَٰكُم مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِيَ يَوْمٌ |
|---|
| اې ایمان والو ! خرچ کړئ دهغه مال نه چې مونږ تاسوته درکړې دې مخکښې دَهغې نه چې راشي داسې ورځ |
| لَّا بَيْعٌ فِيهِ وَلَا خُلَّةٌ وَلَا شَفَٰعَةٌ ۗ |
| چې نه پکښې خرڅول اخیستل شته اونهٔ پهٔ کښې دوستي، آشنائی شته، اونهٔ سفارش، |
| وَٱلْكَٰفِرُونَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ۝ |
| اوکافران چې دي هم دوئ ظالمان دي |

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَنفِقُواْ﴾ دا ذکر د انفاق دې پنځم واري.

﴿مِن قَبۡلِ أَن يَأۡتِيَ يَوۡمٞ لَّا بَيۡعٞ فِيهِ﴾ ((یوم)) نه مراد یوم القیامة ده او وخت دنزع هم مراد کیدې شي ، مقصود دادې چه دنیکۍ دګټلو او دالله ﷻ په لاره کښې خرچ کولو موقعه صرف دا دنیاده ، د دنیانیکی اوصدقه په آخرت کښې په کار راځی اوپه آخرت کښې خرید او فروخت نشته چه څوك فدیه یارقم ورکړی اونیکی واخلی اونه دوست او آشنا په کار راځی چه څه نیکی ورله ورکړی، اونه شفاعت په کار راځی، په دنیاکښې دضروریاتو پوره کیدلو لپاره دادرې طریقې دی چه یا یوشئ په بیع واخلی یا ورسره دوست او آشنا احسان وکړی مفت ئی ورته ورکړی، یائی سفارش وکړی، په آخرت کښې دا ټول ذرائع نشته دې، د ((خلّة)) نفی په حق دکافر کښې ده ((الاخلاءُ بعضهم لبعضٍ عدوّالاالمتقین ـــ زخرف ۶۷)) او دارنګه دشفاعت نفی په حق دکافر کښې ده په دلیل د مابعد سره چه ((والکافرون هم الظلمون)) دې .

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَللّٰهُ | لَآ | اِلٰهَ | اِلَّا | هُوَ ۚ | اَلۡحَيُّ |
| الله چې دې نشته [۱] دې هیڅوك لائق دعبادت بغیرددنه، هم دې ژوندې دې [۲] په ذاتي دائمي حیاة سره، | | | | | |
| اَلۡقَيُّوۡمُ ۚ | لَا | تَاۡخُذُهٗ | سِنَةٌ | وَّ لَا | نَوۡمٌ ؕ |
| محکم ولاړ [۳] په نګهبانۍ اوتدبیرونودمخلوق، نه راځي په دۀ پرکالي اونۀ خوب(چې غافل شي دمخلوق نه) | | | | | |
| لَهٗ مَا فِي | السَّمٰوٰتِ | وَ مَا | فِي | الۡاَرۡضِ ؕ | مَنۡ ذَا الَّذِيۡ |
| صرف ددۀ په قبضه کښې دي هرهغه څۀ چې پۀ آسمانونو کښې دي اوزمکه کښې دي،داسې کس څوک دې چې | | | | | |
| يَشۡفَعُ | عِنۡدَهٗۤ اِلَّا | بِاِذۡنِهٖ ؕ | يَعۡلَمُ | مَا | بَيۡنَ اَيۡدِيۡهِمۡ |
| سفارش اوکړي په حضورددۀ کښې بغیرداجازت ددۀ نه، پوهیږي الله پۀ هغه حالاتو دوئ چې پۀ مخ ددوئ کښې دي | | | | | |
| وَمَا | خَلۡفَهُمۡ ۚ وَ لَا | يُحِيۡطُوۡنَ | بِشَيۡءٍ | مِّنۡ عِلۡمِهٖۤ | اِلَّا |
| اوپۀ هغې حالاتو چه روستوددوي نۀ دي. اودوئ (یعنی علم ددوي) احاطه نشي کولې پۀ هیڅ څیزدمعلوماتود الله نۀ مګر | | | | | |

---

۱ - د دعوی توحید ذکر ، دریم څل نفی دشرک فی الشفاعت.

۲ - دلیل عقلی پۀ توحید باندې چې مشتمل دې په اووۀ دلائلو.

۳ - (هویمه ترجمه) د تمام عالم سنبالوونکې او تدبیر کوونکې دې.

| وَلَا يَؤُدُهٗ | وَالْاَرْضَ ۚ | السَّمٰوٰتِ | كُرْسِيُّهُ | وَسِعَ | شَآءَ ۚ | بِمَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| پۀ هغې چې هغه ئې اوغواړي، محیط دې او زایه وي کرسی ددهٔ آسمانونولره ازمکې لره ، اوګران نه دې پۀ دهٔ | | | | | | |

| الْعَظِيْمُ ۞ | الْعَلِيُّ | وَهُوَ | حِفْظُهُمَا ۚ |
|---|---|---|---|
| حفاظت اوساتنه دزمکې آسمان، اودې، ډېرلوئې دې ذات دده او ډېرلوئې دې شان دَ ده | | | |

﴿ اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ﴾ دا ذکر دمسئله توحید دې دریم واړې، اولکه مخکښې ذکر شوې ده چه دلته ذکرده مسئله توحید دنفی دشرك فی الشفاعت لپاره دې لکه مشرکینو ویل ﴿مَانَعْبُدُهُمْ اِلَّالِيُقَرِّبُوْنَا اِلَى اللّٰهِ﴾ اودغه شان دیهودا ونصاریٰ ؤخیال ؤو چه زمونږ آباء او اجداد دالله ﷻ نازولی دی دهغوئ خبره نشی ردکیدې نوهغوئ به مونږ دالله ﷻ دعذاب نه بچ کوی. پدې آیت کښې اودغه شان په نوروآیاتونوکښې ددوئ ددې خیال رد ذکرکیږی چه دقیامت په ورځ هیڅ څوك په غیر د اذن دالله ﷻ نه دچا سفارش نشی کولې. لفظ «الله» مبتدا دې او «لااله الاهو» جمله ئې خبر دې، د دې معنی او تشریح دَ آیت (۱۶۳) په تشریح کښې ذکر شوې ده. «لااله الاهو» مدعی ده او مابعد و رله دلیلونه دی : ۱- الحی ۲- القیوم ۳- لاتاء خذه ۴- له مافی السموات. ۵- من ذالذی. ۶- یعلم مابین ایدیهم . ۷- وسع کرسیه — .

**اول دلیل دادې** چه «الحی» یعنې معبودهغه څوك کیدې شی چه حی او ژوندې وی په حیوة اصلی، ذاتی، دائمی سره اودالله ﷻ نه ماسوئ د تمامو مخلوقاتو حیاة نه اصلی ذاتی دې اونه دائمی دې لهذا ماسویٰ الله هیڅ څوك معبود برحق نشی کیدې، پدې کښې صراحةً رد شو په قبرپرستانو اوبت پرستانو باندې.

**دویم دلیل** «القیوم» دې او دا مبالغه ده په قائم کښې، قیوم هغه ذات ته وائی چه پخپله قائم دائم وی اودکل ماسویٰ سنبالوونکې اوچلوونکې وی.

**دریم دلیل** ﴿لَا تَاْخُذُهٗ سِنَةٌ ﴾ یعنی په الله ﷻ باندې (پرنا) اوخوب نشی راتلې یعنې دخپل مخلوق نه غافل ندې .

**څلورم دلیل** ﴿لَهٗ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَمَا فِى الْاَرْضِ ﴾ یعنې تمام آسمانونو والا فرشتې وغیره او زمکې والا انسانان جنات ، انبیاء وغیره ټول صرف دالله ﷻ په اختیاراوتصرف کښې دی او هیڅ چاته نی د زمکې اوآسمان او د مافیها دچلولو تصرف اواختیارندې ورکړې

﴿مَن ذَا ٱلَّذِی یَشْفَعُ﴾ **داپنځم دلیل دې**، «من» استفهام انکاری دې په معنی دنفی سره یعنې داسې هیڅ څوك نشته دې چه دالله تعالی د اذن نه په غیر او د هغه دمرضی نه په غیر دیو مجرم سفارش وکړی اوپدې کښې دمشرکینو د زغم رد دې چه زمونږ الٰهه به زمونږ سفارش کوی.

حضرت الشیخ رحمه الله فرمائی چه په قرآن کښې دا مسئله په مختلفو مقاماتوکښې په مختلف تعبیراتوسره ذکرشوې ده سورة بقره ، طه، انبیاء ، نبأ، چه دټولو **خلاصه داده** چه دا دشفاعت قهری نفی ده یعنې داسې سفارش چه الله جل جلاله مجبورکړی په قبول دهغې اوپه غیر د اذن الهی نه وی داسې شفاعت اوسفارش نشته دې اودشفاعت بالاذن اثبات دې یعنی شفاعت بعد د اذن الهی نه شته دې اوددې دوه قسمه دی : **اول** (۱) دنیوی شفاعت ، دا عام دې دمؤمن لپاره هم جائزدې اودکافرلپاره هم جائزدې په شرط ددې سره چه مهر جباریت پرې نه وی لګیدلې **اودویم** (۲) اخروی شفاعت دې، دا خاص دې په مؤمنانو پورې او دکافرانو لپاره قبل العلم کیدې شی اوبعدالعلم نشی کیدې، لکه په حدیث کښې راغلی دی چه ملائك به بعضې خلقو لره جهنم طرف ته روان کړی نونبی ﷺ به ورته اُصیحابی ،اُصیحابی وفرمائی دهغوئ شفاعت به کوی لیکن فرشتې به ورته ووائی چه «انك لاتدری ما احدثوا بعدك» نو نبی ﷺ به دهغوئ شفاعت ترك کړی او ورته به وفرمائی چه : «سُحقاً سُحقاً».

﴿ یَعْلَمُ مَا بَیْنَ أَیْدِیهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ ﴾ دا **شپږم دلیل** دې. دلته حصرمراد دې په قرینه دمقام سره او «ما» د عموم لپاره دې یعنې صرف الله تعالی عالم دې په تمام «ما بین ایدیهم وماخلفهم» باندې او «بین ایدیهم» نه مراد حاضرین دی دوئ ته او د «ماخلفهم» نه مراد غائبین دی له دوئ نه. یا د «بین ایدیهم» نه مراد حالی او د «خلفهم» نه مراد استقبالی دی یعنې الله په موجوده او راتلونکو ټولو باندې عالم دې، یا امور ددنیا او امور دآخرت ورنه مراد دی، یعنې الله جل جلاله د دنیا او دَ آخرت په کارونو باندې عالم دې، یامحسوس او معقول مراد دی، اوضمیر دجمع «مافی السموات والارض» ته راجع دې او پدې کښې تغلیب د ذوی العقول دې په غیرذوی العقول باندې، یاصرف ذوی العقول ته راجع دې یاضمیر «من ذا» ته راجع دې چه مرادترینه ملائك اوانبیاء دی یا صرف انبیاء دی «روح»

حضرت الشیخ رحمه الله فرمائی ضمیر «من ذا» ته راجع دې او ددینه مراد دمشرکینو مزعومه شفعاء دی یعنې الله جل جلاله ددوئ دمزعومه آلهؤ په تمام حالاتوخبردې چه هغه ددوئ

لپاره شفاعت نشی کولې.

﴿وَلَا يُحِيطُونَ﴾ يعنې الله ﷻ نه دتمامو مخلوقاتو دتمامو حالاتوعلم دې اومخلوقاتوته صرف هغه قدر علم حاصل کيدې شی چه الله تعالی ؤغواړی.

﴿وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمَوٰتِ وَالْأَرْضَ﴾ دا اووم دليل دې، او دکرسی نه مراد ياظاهری معنی ده چه هغه داسې عظيم جسم دې چه عظمت ئی صرف دالله تعالی په علم کښې راتلې شی، او په يوروايت کښې د ابن عباس ﷺ نه مروی دی چه اووه زمکې او اووه آسمانونه دکرسئ په مقابله کښې داسې دی «كحلقةٍ في فـلاةٍ» لکه په لوئ بيابان کښې دګوتئ حلقه. اوپه بل روايت کښې دی چه دغه ټول بيا دعرش عظيم په مقابله کښې داسې دی لکه «حلقه في فلاة» اوپه بل روايت کښې داسې دی لکه پترې په ډال باندې، او د ابن عباس ﷺ نه مروی دی چه دکرسی نه مراد ملك اوسلطنت دې اوپه بخاری کښې دسعيدبن جبير رضی الله تعالی عنه نه مروی دی چه دکرسی نه مراد علم دې، ﴿وَلَا يَئُودُهُ﴾ يعنې دزمکې اوآسمان نګهبانی اوحفاظت په الله تعالی دروند اوګران ندې

﴿وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيمُ﴾ يعنې د ذات اوصفات دواړو په اعتبارسره ډير زيات لوئ دې دعقل د ادراك نه باهر دې وراء الوراء دې.

**فايده**: دا آيت مسمیٰ دې په آية الکرسی سره اوددې ډير زيات فضائل وارد دی په احاديثو کښې . دمسند احمد په روايت کښې دی چه رسول الله ﷺ ديته افضل دټولو آياتونو نه ويليدی . په بل روايت کښې دی چه نبی ﷺ دأبیّ بن کعب ﷺ نه دريافت وکړ چه په قرآن کښې کوم آيت ډير افضل دې نو أبی بن کعب ﷺ جواب ورکړو چه آيت الکرسی. نونبی ﷺ ده ته مبارکباد ورکړو «ليهنك العلم». حضرت ابوذر ﷺ دنبی کريم ﷺ نه تپوس وکړ و چه په قرآن کښې عظيم ترين آيت کوم يودې نونبی ﷺ اوفرمايل چه آية الکرسی. د ابوهريرة ﷺ نه روايت دې چه نبی ﷺ اوفرمايل چه په سورت بقره کښې يوآيت دې چه هغه سردار دآياتونو دقرآن دې چه په کوم کورکښې ولوستلې شی نوشيطان دهغې کورنه خارج شی. دنسائی په روايت کښې دی چه رسول الله ﷺ اوفرمايل څوك چه دهرفرض مونځ نه بعد آيت الکرسی وائی نودده دجنت ته د داخليدولپاره مانع صرف مرګ دې، يعنې دمرګ نه بعدمتصل به دې دجنت آثار، راحت، آرام مشاهده کوی ، ددينه علاوه ډير فضائل وارد دی چه تفسير قرطبی

ابن کثیروغیرهما کښې مذکوردی.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| لَآ | إِكْرَاهَ | فِي | الدِّينِ ۖ | قَدْ | تَّبَيَّنَ | الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ ۚ |
| نشته دې هيڅ [1] جبرپهٔ قبلولوددين کښې، پهٔ تحقيق سره واضح شوېدې حق اوسمه لار دګمراهۍ اوباطل نه | | | | | | |
| فَمَنْ | يَكْفُرْ | بِالطَّاغُوتِ | وَيُؤْمِنْ | بِاللَّهِ | فَقَدِ | |
| پس څوک چې منکرشي دشيطان اودغيرالله دعبادت نهٔ اوايمان راوړي په الله باندې پس پهٔ تحقيق سره | | | | | | |
| اسْتَمْسَكَ | بِالْعُرْوَةِ | الْوُثْقَىٰ | لَا انفِصَامَ | لَهَا ۗ | وَاللَّهُ | سَمِيعٌ |
| ده منګلې ښخې کړې پهٔ کړۍ او رسۍ مضبوطه باندې، چې نشته دې شليدل هغې لره، اوالله آوريدونکې دې | | | | | | |
| عَلِيمٌ ۝ | | | | | | |
| پوهيدونکې دې | | | | | | |

﴿لَآ إِكْرَاهَ فِي ٱلدِّينِ﴾ حضرت الشيخ ﷫ فرمائی چه دا آيت دجهاد سره متعلق دې اوپه دې کښې دجهاد متعلق ديوشبهې ازاله کول دی هغه داچه دجهاد مقصود به داوی چه په زبردستۍ اوجبرسره څوك مسلمان کړې شی، نو پدې آيت کښې ددې وضاحت وشو چه دجهاد مقصود مجبورکول په ايمان نه دی او نه ددې وجې نه دکفارونه جزيه اغستې شی او د هغوئ دجان مال ، ابرو. حفاظت کوليشی، بلکه مقصود دجهادنه دادې چه دنيا دفتنې اوفساد نه پاکه کړې شی. اودکفاروظلم اوتشدد په مسلمانانواو داسلام نه اړول په جبرسره بندکړې شی ((کماقال تعالی وقاتلوهم حتی لاتکون فتنة ای لايفتن مؤمن)) (مدارك) د ايمان تعلق د زړه سره دې اوپه زړه باندې جبرنه شی کيدې بلکه زړه هغه خبره منی چه په خپل اختيار سره ئې پسند کړې ددې وجې نه په اسلام کښې جبرنشته دې. اوهمدارنګه جبر ديته وائی چه څوك دخپل مرضۍ خلاف په داسې کار باندې مجبوره کړې شی چه په هغه کارکښې فی نفسه بهتری اوخوبی نوی يا وی خوپه نظرنه راځی مګراسلام خوصرف خيردې او د اسلام خوبی داسې واضحه ده چه په اذنی سوچ اوفکر سره معلوميږی نوجبرته ضرورت نشته دې نو ﴿قَد تَّبَيَّنَ ٱلرُّشْدُ مِنَ ٱلْغَيِّ﴾ د ماقبل لپاره دليل دې. اوبعضې علماؤ ويلی دی چه ﴿لَآ إِكْرَاهَ فِي ٱلدِّينِ﴾ نفی ده په معنی دنهی سره يعنې څوك مه مجبوره کوئ په قبلولو ددين باندې نو دا حکم په حق دکفارو دعربو

۱- دمضمون جهاد ذکر اشارة.

كنبې منسوخ دي په ﴿وَقَـٰتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ﴾ سره اوپه حق دنوروكنبې باقي دې څكه دعربو كفارونه جزيه اخستل نشته بلكه ددوئ لپاره امّاالاسلام وامّاالسيف دې، اوهغه كفار چه عرب نوى نو دهغوئ نه جزيه اخيستې شي نومعلومه شوه چه هغوئ مجبورندى په قبول داسلام باندې، اوهرچه دې مرتد نوهغه د اسلام باغى دې نو ددې وجې نه هغه مجبور كولې شي چه اسلام ته واپس شي يا به قتل كيدې شي بعد دمهلت ددرې ورځونه، نو د هغه قتل دبغاوت دوجې نه دې، او دا اكراه نه ده.

﴿فَمَن يَكْفُرْ بِٱلطَّـٰغُوتِ﴾ دا متفرع دې په ماقبل. **دطاغوت متعددې معانى** بيان شوى دى، دحضرت عمر رضي الله عنه اوحسين رضي الله عنه نه مروى دى چه ددينه شيطان مراد دې، اوسعيدبن جبير اوعكرمه وائى چه ددينه مراد كاهن دې، ابوالعاليه وائى چه ددينه مراد ساحر دې، دمالك بن انس نه روايت دې چه هرمعبودمن دون الله ترينه مراددې(روح) اى بمعبودية كل معبودٍ ماسوى الله. ((شيخ رحمه الله)) يعنې، حقه لار ښه واضح ښكاره شوې ده دګمراهئ نه نوپس چاچه انكار وكړو دعبادت اوبندګئ دماسوى الله نه اويقين اوايمان ئى راوړو په الله تعالى باندې نويقيناً ده مضبوطه كړئ كلكه ونيوله، د ((عروة الوثقىٰ)) نه د ايمان اوتوحيدمحكمه كړئ اورسئ مرادده دا داسې محكمه رسئ ده چه ددې شوكيدل نشته دې.

| |
|---|
| ٱللَّهُ وَلِيُّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ يُخْرِجُهُم مِّنَ ٱلظُّلُمَـٰتِ إِلَى ٱلنُّورِ ۖ وَٱلَّذِينَ |
| الله دوست(١) اومددګاردمومنانودې، راوباسي دوئ لره ددتيرودكفراوشک نه رڼرا دايمان ته، اوهغه كسان (٢) |
| كَفَرُوٓا۟ أَوْلِيَآؤُهُمُ ٱلطَّـٰغُوتُ يُخْرِجُونَهُم مِّنَ ٱلنُّورِ إِلَى ٱلظُّلُمَـٰتِ ۗ أُو۟لَـٰٓئِكَ أَصْحَـٰبُ |
| چې كافران دي دوستان ددوئ شيطانان دى (جني يا انسي)، راوباسي دوئ لره درڼرانه تيروته، دغه كسان خاوندان |
| ٱلنَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَـٰلِدُونَ ۝ أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِى حَآجَّ إِبْرَٰهِـۧمَ فِى رَبِّهِۦٓ |
| داوردي، دوئ به پدې كښې همېشه وي. آيانه ګورې ته هغه كس ته (٣) چې جګړه ئى كوله دابراهيم سره په باره درب دده كښې |

١ - اوله قاعده دپاره د مومنانو.

٢ - دويمه قاعده دپاره د كافرانو.

٣ - اوله قصه متفرع په دويمه قاعده.

| أَنْ | ءَاتَىٰهُ | ٱللَّهُ | ٱلْمُلْكَ | إِذْ | قَالَ | إِبْرَٰهِـۧمُ | رَبِّيَ | ٱلَّذِى | يُحْيِۦ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ددې وجې نهٔ چې ورکړې وه دهٔ ته الله بادشاهي، کله چې اووئیل ابراهیم خمارب هغه ذات دې چې ژوندي کول کوي | | | | | | | | | |
| وَيُمِيتُ ۖ قَالَ أَنَا۠ أُحْيِۦ وَأُمِيتُ ۖ قَالَ إِبْرَٰهِـۧمُ فَإِنَّ ٱللَّهَ يَأْتِى بِٱلشَّمْسِ مِنَ ٱلْمَشْرِقِ | | | | | | | | | |
| اومرکول کوي، نوده اووئیل چې زه هم ژوندي کول اومرکول کوم، نواوئیل ابراهیم پس بیشکه الله راولي نمرد مشرق نهٔ | | | | | | | | | |
| فَأْتِ بِهَا مِنَ ٱلْمَغْرِبِ فَبُهِتَ ٱلَّذِى كَفَرَ ۗ وَٱللَّهُ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّـٰلِمِينَ ۝ | | | | | | | | | |
| نوتهٔ راوله نمردمغرب نهٔ پس حیران شرمنده شو هغه کس چې کافروؤ، اوالله لارنهٔ ښائ قوم ظالمانوتهٔ | | | | | | | | | |

﴿ ٱللَّهُ وَلِىُّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾ دلته دوه تکوینی قاعدې بیانیږی : **یوه قاعدهٔ** دمؤمنانولپاره ده او هغه داده چه ددوئ مددګارالله ﷻ دې نوکه چرې دوئ ته دشکوك اوشبهاتوڅه ظلمة راشی نوالله تعالی ئی امداد کوی اوهغه ظلمت دشکوکو اوشبهاتو ترینه ذائل کړی اونور دایقان ورته ورکړی، او **دویمه قاعده** دکفارو لپاره ده او هغه داده چه ددوئ دوستان اومدد ګار شیاطین دی نوکه چرې دوئ ته په زړه کښې دهدایت څه نور راشی نوشیاطین الجن والانس ئی دنور نه ظلمت طرف ته وباسی.

﴿ ٱللَّهُ وَلِىُّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ﴾ ولی په معنی دمعین او مددګارسره دې، یاپه معنی دمحب اودوست سره دې او د «آمنوا» نه مراد هغه دی چه بالفعل مؤمنان دی.

﴿يُخْرِجُهُم مِّنَ ٱلظُّلُمَـٰتِ﴾ اوظلمٰت نه مرادظلمة (تیارې) دشکوکو اوشبهاتو دی یعنې که مؤمنانوته په زړه کښې ظلمة دشکوك او شبهاتو راشی اوشیاطین ورته وسوسې واچوی ﴿إِلَى ٱلنُّورِ ﴾ نوالله تعالی ددوئ سره مددکوی اوظلمة دشکوکو نه ئی نور دایقان ته راؤباسي. یامراد د اخراج نه ساتل او حفاظت دې.

یامراد د «**آمنوا**» نه هغه دی چه اراده صحیح د ایمان لری. یا ترینه مراد هغه دی چه مؤمنان وی په علم دالله تعالی کښې اوبالفعل مؤمنان نوی، او دظلمة نه مراد ظلمة دکفر او دشرك دې، او دنور نه مراد نور د ایمان او دتوحید دې یعنې کوم خلق چه صحیح اراده لری دایمان اوهغه خلق چه په علم دالله تعالی کښې مؤمنان دی نو دوئ ته الله ﷻ دایمان توفیق ورکوی اودکفر د تیرو نه ئی دایمان او دتوحید رڼاته راؤباسی، اودغه شان تشریح د

﴿وَٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْ﴾ ده چه مراد ترينه بالفعل كافران دي، ياهغه چه اراده لري دكفر يا هغه دي چه كافروي په علم دالله ﷻ كښې.

ددينه بعد درې قصې ذكركيږي او دا مرتبې دي په دې دوومذكوره ؤ قاعدو باندې «بنابرتوجيه اول» په طور د لف نشرغيرمرتب سره.

﴿أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِى حَآجَّ إِبْرَٰهِـۧمَ﴾ دا اوله قصه ده متفرع ده په دويمه قاعده باندې، چه نمرود كافر ته دحضرت ابراهيم ﷺ ددلائلو د توحيدنور ښكاره شوخوشيطان ئې ملګرې ؤو نو بيائې دكفرظلماتو ته واپس كړو اودلائلو دتوحيد ظرف ته ئې څه توجه ونكړه، استفهام په «الم تر» كښې دتعجب لپاره دې يعني دا قصه قابل دتعجب ده.

د ﴿اَلَّذِىْ حَاجَّ اِبْرَاهِيْمَ﴾ نه مراد نمرود بن كوش بن كنعان بن سام بن نوح ﷺ دې، او چا داسې ويلي دي: نمروذبن كوش بن كنعان بن حام بن نوح ﷺ.

﴿أَنْ ءَاتَىٰهُ ٱللَّهُ ٱلْمُلْكَ﴾ اى لاجل ان آتاه الله الملك، او داعلت دې د «حاج» لپاره يعني د حضرت ابراهيم ﷺ سره ئې مناظره ځكه كوله چه الله تعالى ده ته بادشاهي وركړې وه نوپده كښې كبر پيداشو، يامطلب دادې چه الله ﷻ ورته بادشاهي وركړې وه اوهغه موجب دشكر وه او ده سبب د ناشكرۍ ؤګرزوله او ديته علت تهكمي ويلې شي ((كماتقول عاداني فلان لاني احسنت اليه)) اودده په حق كښې مفسرين وائي چه: ((اول من تجبر وهوصاحب الصرح ببابل ومَلك الدنياكلها)).

اوپه ټوله دنياباندې بادشاهي څلوركسانوكړې ده يو په هغوئ كښې نمروذ دې چه په ټوله دنيا يې بادشاهي كړې وه او دخدائي دعوىٰ ئې كړې وه، اوبل په هغوئ كښې بخت نصر دې دا دواړه اشقياء او غټ كافران وو، اوبل حضرت سليمان ﷺ اوبل ذوالقرنين ؤؤ، او دنمروذ اودده د لښكر هلاكت په ذريعه دبعوضو «ماشو» سره ؤو، روايت دې چه ده قصد دمحاربه مع الله وكړو اوخپل لښكرئې راوباسه نوالله تعالى په دوئ ماشي مسلط كړل، قرطبي وائي ((وكان اهلاكه لماقصد المحاربة مع الله تعالى بان فتح الله تعالى عليه باباً من البعوض فستروا عين الشمس واكلوا عسكره ولم يتركوا الاالعظام)) نولښكرئې ټول هلاك شو اويوماشي اوپه

بعضې روایاتو کښې دی چه ګوډ ماشې دنمرودپه دماغوکښې داخل شو. قرطبی وائی ((فکان اعزالناس عنده بعدذالك من یضرب دماغه بطرقة عتیدة لذالك)) یعنې بیا به ده ته ډیرمحبوب سړې هغه ؤو چه دې به ئی دسرپه کپړئ وهلو پدې سره به ده ته لږ شان آرام راتلو. څلوېښت (۴۰) ورځې داسې ؤو. بالاخرپه وهلو وهلوسره مرادرشو. اوذکرشوی دی چه نمروذ څلور سوه کاله (۴۰۰) بادشاهی کړې ده. اوپه دې آیت کښې چه دکومې مناظرې اومباحثې ذکر دې نو بعضې وائی چه دا مناظره اومباحثه بعد د اخراج من النار نه شوې ده، **دسبب دمناظرې** په حقله قرطبی وغیره ویلی دی چه نمروذ دملك ټولې غلې دانې له خپل ځان سره جمعه کړې وې نوچابه چه دغلې طلب وکړو نو اول به ئی نمروذ ته سجده وکړه اوبیا به ورته هغه غله ورکوله. نوحضرت ابراهیم ﷺ چه کله د ده څنګ ته لاړو نوسجده ئی ونه کړه نونمروذ ورته وویل تاماته سجده ولې ونه کړه؟ نو حضرت ابراهیم ﷺ وفرمایل چه زه سجده صرف خپل رب ته کوم، نمروذ وویل ستا رب څوك دې؟ نوابراهیم ﷺ وویل ((ربی الذی یحی ویمت — الآیه)).

نوچه لاجواب شو نوحضرت ابراهیم ﷺ ته ئی غله ورنه کړه نوحضرت ابراهیم ﷺ خپل کورته خالی لاس روان شو په لاره کښې دشګو په یوه غُنډئ تیرشو نوخیال ئی وکړو چه دا (غرارتین) دوه انډې (بورئ) ددې شګونه ډکې کړم اوکورته ئی ورسوم،نو بچی به ورته وګوری نو خوشحاله به شی، نودغه شان ئی وکړه اوچه کورته لاړ نوهغه بورئ یې کیښودلې اوپخپله اوده شو، آرام ئی کولو. ماشومان خوشحاله شو او دَ دغه بورئ سره ئی لوبې کولې. نو د حضرت ابراهیم ﷺ بی بی راغله او اراده ئی وکړه چه روټئ پخه کړی نوچه دغه انډې (بورئ) ئی کلاؤ کړې نوپه هغې کښې ډیراحسن اوبهترین اُوړه ؤو نو روټی ئی ترینه تیاره کړه اوحضرت ابراهیم ﷺ ئی دخوب نه را بیدارکړو اوطعام ئی ورته مخې ته کیښوده نوده تپوس وکړو ((من این هذا)) یعنې چه دا چرته ؤو؟ نوبی بی وفرمایل ((من الدقیق الذی سُقت)) یعنې دا دهغه اوړونه چه تا راوړی دی، نوحضرت ابراهیم ﷺ پوهه شوچه الله تعالی آسانی وکړه او غیبی مددې یې وکړو.

﴿قَالَ اَنَا اُحیِی وَاُمِیتُ﴾ هرکله چه حضرت ابراهیم علیه السلام د الله تعالی دربوبیت دلیل پیش کړو چه ((ربی الذی یحی ویمیت)) نونمروذ نقض وکړو چه دا کارخوزه هم کولې شم اودوه قیدیان ئی راوبلل او آزاد ئی کړل نو وې ویل چه دامې ژوندی کړل اودوه بې ګناه

کسان ئی راونیول هغه ئی قتل کړل او وې ویل چه دا مې مړه کړل. نوحضرت ابراهیم ﷺ پوهه شو چه دا جاهل داحیاء او اماتت په معنی هم نه پوهیږی. نوبل دلیل ئی ورته پیش کړو چه ﴿فَإِنَّ اللَّهَ يَأْتِي بِالشَّمْسِ﴾ یعني داشمس زما رب دمشرق نه مغرب ته راولی نوکه چرې ته رب ئی ﴿فَأْتِ بِهَا مِنَ الْمَغْرِبِ﴾ دَ مغرب نه ئی مشرق ته راوله . نو دا جاهل حیران او لاجوابه پاتې شو . که څوك داسې **سوال** وکړی چه دلته خوحضرت ابراهیم ﷺ انتقال وکړو من حجة الی حجةٍ اوحالانکه اهل اصولو په مبحث القیاس کښې ذکرکړی دی چه انتقال من علة الی علة صحیح ندې اودمناظرې داصولو نه مخالف دې.

**جواب** دادې چه کله مخاطب ډیرغبی وی اودمستدل په حجت پوهه نه شی نو انتقال دیو حجت نه بل حجت ته کیدې شی.یا**جواب** دادې چه دا انتقال دیو حجت نه بل حجت ته ندې بلکه دنمروذ ددې قول رد دې چه «انا احی وأمیت» پدې شان چه ته داحیاء په اثر چه هغه حرکت دې قادرنه ئی اوپه محسوس نمرکښې تصرف نشې کولې نواحیاء او اماتت به څرنګه وکړې.

| أَوْ كَالَّذِي مَرَّ عَلَىٰ قَرْيَةٍ وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلَىٰ عُرُوشِهَا قَالَ أَنَّىٰ يُحْيِي |
|---|
| یاتهٔ نهٔ ګورې[1] هغه کس چې تیرشوېهٔ یوکلي، اوداغورزیدلې ووېهٔ خپلوچتونو.دهٔ اوونیل څرنګ بهٔ دا ژوندي کړي |
| هَٰذِهِ اللَّهُ بَعْدَ مَوْتِهَا فَأَمَاتَهُ اللَّهُ مِائَةَ عَامٍ ثُمَّ بَعَثَهُ قَالَ |
| الله روستودمړکېدلو ددېنه،پس مړاوساتهٔ دهٔ لره الله سل کاله بیائې راپورته کړو، ورته ئې اوونیل |
| كَمْ لَبِثْتَ قَالَ لَبِثْتُ يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ قَالَ |
| چې تاڅومره وخت تیرکړو، نوده اوونیل چې ماوخت تیر کړویوورځ یا بعضې حصه دورځې، نواوفرمائیل ورته الله |
| بَلْ لَبِثْتَ مِائَةَ عَامٍ فَانْظُرْ إِلَىٰ طَعَامِكَ وَشَرَابِكَ لَمْ يَتَسَنَّهْ وَانْظُرْ إِلَىٰ حِمَارِكَ |
| چې نهٔ بلکه تاوخت تیر کړېدې سل کاله، پس تهٔاوګوره خپل طعام تهٔ اوڅکاک تهٔ نهٔ دي سخاشوي، اوګوره خرخپل تهٔ |
| وَلِنَجْعَلَكَ آيَةً لِلنَّاسِ وَانْظُرْ إِلَى الْعِظَامِ كَيْفَ نُنْشِزُهَا ثُمَّ |
| او دپاره ددې چې مونږاوګرزؤتانښهٔ اونمونهٔ دپاره دخلقو، او وګوره هډوکودخرتهٔ چې څرنګه ئې راخوزؤمونږبیا |

1 - دریمه قصه په اوله قاعده متفرع.

| نَكْسُوهَا | لَحْمًا ؕ | فَلَمَّا | تَبَيَّنَ | لَهٗ ۙ | قَالَ | اَعْلَمُ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اغوندو دوئ ته غوښه. | پس هرکله چې ښکاره شوده ته حال، | | | | نووې وئیل چې ماته علم یقیني دې ددې خبرې | |

اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ۝

چې بېشکه الله پهٔ هرڅیز قادردې.

﴿ أَوْ كَالَّذِي مَرَّ عَلَىٰ قَرْيَةٍ ﴾ دا دویمه قصه ده متفرع ده په قانون اول باندې چه حضرت عزیر ﷺ ته تردد لاحق شوچه په منزله دظلمة دې نو الله ﷻ ئی مدد وکړو او دتردد دظلمة نه ئی نور داطمینان ته راوباسه. اوکاف په «کالذی» کښې یا زائد دې او دا عطف دې په «الذی» باندې په «الم ترالی الذی» کښې نوتقدیری عبارة دارنګه دې «الم ترالی الذی مرعلی قریة» . یا کاف په معنی دمثل دې «ای الم تر الی مثل الذی» اومثل ددې لپاره ذکرشو چه تنبیه راشی په تعدد دشواهدو لکه دا قول دصرفیانو «الماضی مثل ضرب» اود «الذی» نه مراد بنا بر قول مشهورحضرت عزیر ﷺ دې اودقریه نه مراد بیت المقدس دې چه بخت نصر مسمارکړې وو اوبنی اسرائیل ئی ډیرقتل کړی وو اوبعض ئی قیدکړی ؤو نوچه عزیر ﷺ پدې قریه تیرشو اودا منظرئی ولیده نوده ته دکیفیت داحیاء دمشاهدې کولوشوق پیدا شو لیکن هرکله چه دا دظاهری حالاتو په اعتبارسره مستبعده وه اوپه تورات کښې دا پیشین ګوئی موجوده وه چه بنی اسرائیلو ته به غلبه حاصلیږی اوبیت المقدس به دوباره آبادشی نوحضرت عزیر ﷺ د خپل اشتیاق اظهاروکړو او د ظاهری حالاتومطابق ئی اشعار دَ یأس اود استبعاد هم وکړو چه «انّٰی یحی» نو الله ﷻ جواب داسې وکړو چه دخپل لوئ قدرت اظهارئی وکړو چه کوم شې زرخرابیدو والاؤو یعنې طعام اوشراب نوهغه سل کاله په خپل حال ؤو اوچه کوم شې زرخرابیدووالانه ؤو نوهغه خراب شوې وؤ، لیکن الله ﷻ دده په حضورکښې را معادکړو. یا دسوال مطلب داؤو چه دوباره ژوندی کول به څنګه وی، نوجواب ئی داسې وشوو چه روح دانسان نه فناکیږی دهغې مثال طعام اوشراب دی اوبدن به یې فانی کیږی دهغې مثال حمار او دهغه هډوکی دی او دَ دې تشریح وروستو را روانه ده.

﴿وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلَىٰ عُرُوشِهَا﴾ یعنې اول ئی چتونه پرې وتی ؤو اوبیاپه هغې باندې دیوالونه غورزیدلی ؤو.

﴿ أَنَّىٰ يُحْيِي هَٰذِهِ اللَّهُ بَعْدَ مَوْتِهَا ﴾ په «هذه» کښې قریه ته اشاره ده اوحیات اوموت په

معنى مجازى سره دي يعني آبادى ، او ورانيدل، ياپه هذه كښې مجاز بالحذف دې اى اهل هذه القرية نو بيا حياة اوموت په معنى حقيقى سره دې

﴿فَأَمَاتَهُ ٱللَّهُ مِاْئَةَ عَامٍ﴾ ددې معنى دا نده چه مړ يې كړو سل (١٠٠) كاله څكه مړكول خو په لړ وقت كښې كيږى بلكه معنى ئى داده چه دمړكولو نه وروستوى يې سل كاله مړوساته.

﴿ ثُمَّ بَعَثَهُۥ ﴾ سل كالو نه بعد ژوندې شو اوعمر يى په وخت دوفات كښې څلويښت كاله وو اوپه بل روايت كښې دى چه پنځوس كاله ؤو اوچه جوندې شو نوپه هيئت دڅلويښتو يا پنځوس كالو باندې ؤو اوبچى ئى بوډاگان ؤو، او د ابن عباس ﷺ نه مروى دى . هركله چه دې ژوندې شونو په حمار باندې سورشو اوخپلې محلې ته لاړ، نوهيڅ چا نه پيژندلو .يوه ړنده بوډئ وه دشپږ شلوكالو (١٢٠) هغې ته چاوويل چه عزير«عليه السلام» راغې نو هغې وه ويل چه سل كاله شوى دى چه هغه زمونږ نه جدا شويدې، او وې ويل چه عزيرﷺ مستجاب الدعاء وو كه چرې دا عزيرﷺ وى نو ماته دې دعاء وكړى چه زما په سترگوكښې نظر راشى نوزه به يې وپيژنم، نو عزيرﷺ دعاء وكړه اوپه سترگوئى ورنه لاس راښكلو نودا ړنده بوډئ بينا شوه اوعزيرﷺ ئى وپيژندلو اوعزيرﷺ يو زوئ چه عمرئى دسلوكالونه زيات ؤو هغه خپل پلار عزيرﷺ په هغه نشانې سره وپيژندلو چه د دواړو اوږوپه مينځ كښې يې وه چه تورنشان په شان دشكل هلالى ؤو، اوبخت نصرچه كله غلبه كړې وه په.بيت المقدس باندې نوبيت المقدس ئى هم مسماركړې ؤو او دتورات نسخى ئى سيزلې وى اوډيرلږو كسانوته توراة يادؤو نوحضرت عزير ﷺ بنى اسرائيلوته دتورات صحيح تلاوت وكړو اوصحيح نسخه ئى ورته وليكله نوبنى اسرائيل پدې سره ډيرزيات خوشحاله شو او دده سره ئى ډيرمحبت شروع كړو اوپه محبت كښې ئى دومره افراط وكړو چه حضرت عزيرﷺ ته يې ابن الله ويل شروع كړه .

﴿قَالَ لَبِثْتُ يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ﴾ حضرت عزيرﷺ چه كله ژوندې شو نوالله ﷻ ترينه تپوس وكړو چه تاڅومره وخت تيركړو؟ نو ده وويل چه پوره يوه ورځ يا بعضې ورځ څكه چه دې مړكيده نوهغه وخت دضحىٰ ؤو او بياچه كله را ژوندې شو نو دا وخت دمازديگرؤو نوده خيال وكړو چه دا هغه يوه ورځ ده نوچونكه اكثرې حصې د ورځې ته پوره ورځ ويلې شى اوپه حقيقت كښې پوره ورځ نوى، نوددې وجه نه ئى اول يوماً وويل اوبيائى «بعض يوم» وويل. نوالله ﷻ ورته وفرمايل چه دا هغه يوه ورځ نه ده بلكه په درميان كښې سل كاله (١٠٠)

تیرشویدی، **سوال** واردیږي چه دا خو کذب شو اونبي خو د کذب نه معصوم وی، **جواب** دا دې چه دا اخبار دخپل علم نه وو او د واقع نه نوؤ اودخپل علم سره خومطابق دې نوخبر دخپل مخبرعنه سره مطابق شو نو کذب نه شو اوددې نظیرهغه دې چه نبی ﷺ په قصه دذوالیدین کښې فرمایلی ؤو (لم اقصر ولم انس) بعضې علماء وائی چه دلته حقیقت دکذب راغلیدې ځکه چه خبره د واقع نه مخالف ده خوپدې کذب کښې مواخذه نشته لکه په سهو او نسیان کښې چه مواخذه نشته، لیکن جواب اول اصح دې.

﴿فَانظُرْ إِلَىٰ طَعَامِكَ وَشَرَابِكَ﴾ طعام اوشراب غذاء ده نو داپه منزله دروح ده، او ارواح نه خرابیږي نوطعام اوشراب ځکه نه ؤو خراب شوی، دطعام نه مراد چا ویلی دی چه عنب (انګور) دی اوچا ویلیدی تین (انځر، انجیر) دی اودشراب نه مراد عصیرالعنب یالبن دی.

﴿ لَمْ يَتَسَنَّهْ ﴾ دلته «ها» اصلیه ده اومجزومه ده، «یقال سانهتُ فلانا»، چاویلی دی چه (ها) په اصل کښې نون وو او اصل ئی «لم یتسنّن» ؤ کمایقال حماء مسنون ، اوکله چه درې حروف متجانس جمع شي نویوترینه په حرف علت سره بدلیږي «کمافی تقضّیت» اصله تقضّضت او«دسّاها» اصله «دسّسها» دلته «یتسنّن» نون اخیرپه (یاء) سره بدل شو او(یاء) په الف سره اوالف دجزم په وجه حذف شوې دې او(هاء) دسکته لپاره ده نو (لم یتسنّه) ترې جوړ شو.

﴿وَانظُرْ إِلَىٰ حِمَارِكَ﴾ حمارخاورې شوې وو هډوکی ئی جدا جدا شوی ؤو نوچه الله ﷻ ورته حکم وکړو نوهغه جداجداشوی هډوکی ـ دخپل خپل ځائ سره ولګیدل او اعصاب اورګونه پرې راغلل او بیا پرې لپاسه غوښه څرمن راغلل اوحضرت عزیر ﷺ ورته کتل او مشاهده ئی ورله کوله اوبیا پکښې روح راغې نو را پورته شو اوخپل آواز (ډره قا) ئی وکړو.

﴿وَلِنَجْعَلَكَ﴾ واؤ زائده دې، یامناسب معطوف علیه ورله مقدردې مثلاً، «اریناك ذالك لتعلم قدرَ قدرتنا وَ لِنَجْعَلَكَ ...... الایه»، ﴿نُنشِزُهَا﴾ دزمکې نه راپورته کول اوخوزول. ﴿قَالَ أَعْلَمُ﴾ دلته مراد دعلم نه مشاهده ده

| قَالَ | الْمَوْتَىٰ ۖ | تُحْيِ | كَيْفَ | أَرِنِي | رَبِّ | إِبْرَاهِيمُ | قَالَ | وَإِذْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| نو الله اوفرمائیل | | کوې مړي | چې ژوندي ته ځرنګ | اوښایه | ای خماربه(امانه | ابراهیم | اوونیل | اوکله [۱] چې |

1 - دریمه قصه متفرع په اول قانون.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَوَلَمْ | تُؤْمِنْ ؕ | قَالَ | بَلٰى | وَلٰكِنْ | لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِىْ ؕ |

چې ولې ستا یقین نشته څۀ، نو اوئیل ابراهیم ولې نۀ بلکه یقین مې شته دې لیکن غواړم چې تسلي اوشي دزړۀ خما

قَالَ فَخُذْ اَرْبَعَةً مِّنَ الطَّيْرِ فَصُرْهُنَّ اِلَيْكَ ثُمَّ اجْعَلْ عَلٰى كُلِّ جَبَلٍ مِّنْهُنَّ

اوفرمائیل الله پس اونیسه څلور دمرغانو نۀ پس رانژدې ئې کړه خپل خان ته بیا کېده پۀ هر یو جدا جدا غر باندې ددوئ نۀ

جُزْءًا ثُمَّ ادْعُهُنَّ يَأْتِيْنَكَ سَعْيًا ؕ وَاعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ۝

یوه حصه، بیا راؤبله دوئ رابۀ شي تاتۀ پۀ منډه ، اوپوهه شه چې بېشکه الله زورآور اوحکمت والا دې

﴿وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهٖمُ رَبِّ اَرِنِيْ كَيْفَ تُحْيِ﴾ دا دریمه قصه ده اومرتبه ده په اول قانون باندې، چه د ابراهیم ﷺ داسوال ﴿وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهٖمُ رَبِّ اَرِنِيْ كَيْفَ تُحْيِ الْمَوْتٰى﴾ په ظاهر کښې تردد دې چه مشابه دې دظلمة سره، اوجواب دالله ﷻ اومشاهده داحیاء، اخراج من الظلمٰت الی النور دې، او دحضرت ابراهیم ﷺ داسوال چه «رب ارنی کیف تحی الموتی» دشك دوجې نه ندې بلکه دوئ ته دقدرت علی الاحیاء پوره پوره یقین ؤو خو دکیفیت مشاهده کولو یې شوق ؤو دمزید تسلی اواطمینان لپاره او ددې وجې نه په حدیث کښې دنبی کریم ﷺ ارشاد دې چه: ((نحن احق بالشك من ابراهيم)) یعنې دحضرت ابراهیم ﷺ شك نه ؤو که چرې وې نوزمونږ به شك وې لیکن زمونږخوشك نشته دې نو د ابراهیم ﷺ شك هم نه ؤو او د «نحن» نه مراد یا خو معشرالانبیاء دی سوی د ابراهیم نه او یا ترینه مراد امت محمدیه دې یعنې هرکله چه دنوروانبیاؤ شك نشته دې یا د امت محمدیه شك نشته دې نو دحضرت ابراهیم په طریقه اولی سره شك نشته دې، ځکه چه دده په حق کښې وارد دی ﴿وَلَقَدْ اٰتَيْنَآ اِبْرٰهِيْمَ رُشْدَهٗ مِنْ قَبْلُ﴾ او دارنګه یې فرمایلی دی:

﴿وَكَذٰلِكَ نُرِيْٓ اِبْرٰهِيْمَ مَلَكُوْتَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلِيَكُوْنَ مِنَ الْمُوْقِنِيْنَ﴾ او ددې حقیقت د اظهارلپاره الله ﷻ ترینه تپوس کوی ﴿قَالَ اَوَلَمْ تُؤْمِنْ﴾ «ای اتسئل ولم تومن» یعنې آیا نه داسوال لدې وجه نه کوې چه ستایقین نشته دې. ﴿قَالَ بَلٰى﴾ نوحضرت ابراهیم ﷺ وائی چه یقین مې شته دې خوتپوس ددې لپاره کوم چه ﴿وَلٰكِنْ لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِيْ﴾ چه دسترګو په مشاهده مزید اطمینان مې راشی اوعلم یقینی اومشاهده دواړه راته حاصل شی. علم الیقین اوعین الیقین مجموعه زیاته قوی وی دیونه ، نو دا سوال جواب ددې لپاره ذکر شو چه په سامعینو کښې دحضرت ابراهیم ﷺ په باره کښې دچا څه غلط فهمی پیدانه شی.

﴿قَالَ فَخُذْ أَرْبَعَةً مِّنَ ٱلطَّيْرِ﴾ څلورمارغان پشان دڅلورو هغه عناصرو دی چه انسانی بدن ترینه جوړشویدې نودد وئ تفریق اوجمع دحشرنشرنمونه ده، مفسرین وائی چه دا څلور مارغان، طاؤس، چرګ، کارغه او کونتره دی.

﴿فَصُرْهُنَّ إِلَيْكَ﴾ صرهن په دوه معانیوسره راځی یو په معنی دقطع کولوسره اودویم په معنی دضم کولوسره، دلته دویمه معنی زیاته مناسبه ده، یعنې خپل ځان ته ئی نیژدې کړه چه کمال معرفت ئی درته حاصل شی او اشتباه درته رانه شی.

﴿ثُمَّ ٱجْعَلْ عَلَىٰ كُلِّ جَبَلٍ مِّنْهُنَّ﴾ دلته مخکښې عبارت مقدر دې چه «اذبحهن واخلط لحمهن وریشهن ثم اجعل ـــ الایه».

الله ﷻ حضرت ابراهیم ﷺ ته وفرمایل چه دا مرغان خپل ځان ته نیژدې کړه اوبیا ئی وپیژنه اوبیائی ذبحه کړه اوسرونه ئی دځان سره وساته اوغوښې، هډوکی، ریش (بڼې) ئی یوځائ خلط کړه دقیمې پشان اوبیائی لږلږ په غرونو باندې کیږده اوبیائی راؤبله. ﴿يَأْتِينَكَ سَعْيًا﴾ نودا به تاته په منډو راشی د «سعیا» نه معلومیږی چه په الوتوسره به نه راځی بلکه په زمکه باندې به روان رازی.

﴿أَنَّ ٱللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ﴾ الله غالب دې په هرڅه قدرت لری اوپه هرکارکښې ئې ډیرحکمتونه وی.

| |
|---|
| مَثَلُ الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ كَمَثَلِ حَبَّةٍ اَنْبَتَتْ سَبْعَ سَنَابِلَ |
| مثال [1] دهغه کسانوچې خرچ کوي مالونه خپل په لار دالله کښې پشان دهغه دانې دې چې زرغون کړې اوه وږي |
| فِيْ كُلِّ سُنْبُلَةٍ مِّائَةُ حَبَّةٍ ؕ وَاللهُ يُضٰعِفُ لِمَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ﴿٢٦١﴾ |
| په هر وږي کښې سل دانې وي ، اوالله دوچندور کوي هغه چاتهٔچې اوغواړي، اوالله واسع دې فضل دهٔ، عالم دې |
| اَلَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ ثُمَّ لَا يُتْبِعُوْنَ مَآ |
| هغه کسان چې خیرات کوی خپل مالونه په لار دالله کښې بیا نه تابع کوي اونهٔ لیږي دوئ پهٔ هغه څیزپسې |

---

۱ - ترغیب داخلاص پهٔ اتفاق کښې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَنْفَقُوْا | مَنًّا | وَّلَآ اَذًى ۙ | لَّهُمْ | اَجْرُهُمْ | عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚ |

چې دوئ خیرات کړي وي بارول داحسان، اونه رسول دآزار، مقرردي ددوئ دپاره اجر ددوئ په نیزدرب ددوئ

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ | وَلَا | هُمْ | يَحْزَنُوْنَ ۝ | قَوْلٌ | مَّعْرُوْفٌ | وَّمَغْفِرَةٌ |

اونشته هيڅ ويره په دوئ «دکموالي دثواب» اونه به دوئ غمژن وي، خبره خوږه اونرمه اوبخښنه سائل ته ئې بي ادبي الحاح اوکړي

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| خَيْرٌ | مِّنْ | صَدَقَةٍ | يَّتْبَعُهَآ | اَذًى ؕ | وَاللّٰهُ | غَنِيٌّ |

ډېره غوره ده دهغه صدقې اوخیرات نه چې په هغې پسې وي آزار رسول، اوالله غني دي«حاجت نه لري ستاسوصدقونه»

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| حَلِيْمٌ ۝ | يٰۤاَيُّهَا | الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | لَا تُبْطِلُوْا | صَدَقٰتِكُمْ | بِالْمَنِّ |

صبرناک دي «جلتی نه کوي په سزا ورکولو کښې»، اې ایمان والو[1] مه بربادوئ خپل خیراتونه په بارولوداحسان

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَالْاَذٰى ۙ | كَالَّذِيْ | يُنْفِقُ | مَالَهٗ | رِئَآءَ | النَّاسِ | وَ لَا | يُؤْمِنُ | بِاللّٰهِ |

اورسولودآزارسره. په شان دهغه سړي«منافق» چې خرچ کوي مال خپل دپاره دخودنې خلقوته اوایمان نه لري په الله

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ؕ | فَمَثَلُهٗ كَمَثَلِ | صَفْوَانٍ | عَلَيْهِ | تُرَابٌ | فَاَصَابَهٗ | وَابِلٌ |

اوپه ورځ دآخرت، پس مثال دده په شان دخویه کاڼي «تیږې» دي چې په هغې بناوره وي پس ورسیږي دې ته سخت باران

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| فَتَرَكَهٗ | صَلْدًا ؕ | لَا يَقْدِرُوْنَ | عَلٰى | شَيْءٍ | مِّمَّا | كَسَبُوْا ؕ |

پس پریږدي دې لره صفاستره، دوئ به نه قادریږي په هیڅ څیزدثواب دهغه عملونو چه دوئ کسب کړې وو

وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ ۝

اوالله هدایت نه ورکوي قوم کافرا نوته.

﴿مَثَلُ الَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ﴾ «ای مثل نفقة الذین» ددینه بعد مسئله د انفاق فی سبیل الله ذکرکیږی په تفصیل سره، پدې آیت کښې په اخلاص نیت سره دالله تعالی لپاره دهغه په لاره کښې دخرڅ کولو ترغیب دې چه په ضمن دیومثال کښې بیانیږی ، او **دهغې حاصل** دادې چه په اخلاص سره دصدقې مثال داسې دې چه څوك یوه دانه په زمکه کښې واچوی اودهغې نه اووه ۷ بوټی بناخونه پیداشی اوپه هربوټی اوښاخ کښې خوشه «وګې » وی اوپه هره خوشه کښې سل «۱۰۰» دانې وی نو د یوې دانې نه اووه سوه «۷۰۰» دانې جوړې شی، نودغه شان د

۱ - انفاق کښې د ریاء اومن د اجتناب حکم.

اخلاص والا صدقې نه اووه سوه (۷۰۰) نیکئ جوړ یږي اودا ادنیٰ درجه ده.

﴿وَٱللَّهُ يُضَٰعِفُ لِمَن يَشَآءُ﴾ يعنې اووه سوه خوملاويږي ليکن که چرې دصدقه کونکي تقوی اواخلاص او دمال پاکيزګي چه څومره زياتيږي نو اجر اوثواب به نورهم زياتيږي. اوضعف په اصل لغت کښې زيادت غيرمحصوره ته وائي يعنی دزيادت ئې څه حدنشته

﴿ٱلَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمۡوَٰلَهُمۡ﴾ په دې کښې دهغه امورونه دبچ کيدلوحکم دې چه په هغې سره صدقه باطليږي يعنی «من، اذی» په چاباندې دصدقې په وجه سره احسان اړول ياورته تکليف رسول په طعن وغيره سره لکه خدمت اخستل شو.

﴿قَوۡلٞ مَّعۡرُوفٞ﴾ يعنې سائل ته نرمه خبره کول، اوکه سائل په سوال کښې سخته لهجه اختيارکړي نوهغه ته مغفرت اوبخشش کول اګرکه صدقه ورته ورنه کړي دا افضل دې دهغه صدقې نه چه د «من اواذی» سره وي.

﴿وَٱللَّهُ غَنِيٌّ﴾ يعنې الله ﷻ غنی دې نو دځان لپاره ستاسونه صدقه نه غواړي خوستاسو ددنيوی اواخروی فائدې لپاره تاسوته دصدقې حکم کوي.

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تُبۡطِلُواْ صَدَقَٰتِكُم﴾ يعنې صدقه اوخيرات برباديږي په «من او اذی» سره ﴿كَٱلَّذِي يُنفِقُ مَالَهُۥ رِئَآءَ ٱلنَّاسِ﴾ دا دهغه صدقاتو بيان دې چه په هغې کښې شرط دصحت نوی موجود يعنی ريا، اوکفر، دواړه يا يو، اوپه ماقبل آيت کښې بيان دهغه صدقاتو وو چه شرط دصحت پکښې موجودؤو خوشرط دبقاء پکښې نه ؤو يعنی په من. اذی، سره برباد شوی ؤو «رئآءالناس» مفعول له دې دينفق لپاره ﴿وَلَا يُؤۡمِنُ﴾ مراد ترينه کافر اومنافق اعتقادی دې، يا دامعنی ده چه يقين نه لري په ثواب د آخرت.

﴿فَمَثَلُهُۥ كَمَثَلِ صَفۡوَانٍ﴾ دا مثال دصدقې درياکار دې، او ضمير دريا صدقه کونکی ته راجع دی «صفوان» صافه اوښويه ګټې ته وائی چه په هغې کرونده نه کيږي نودغه شان رياء کارته صحيح فائده نه رسي، او د رياء کار ستايلې کيدل په شان دهغه خاورو دی چه پدغه ښويه ګټی باندې وی چه بې فائدې وی، اوپه آخرت کښې د اجر اوثواب نه محروم پاتې کيدل پشان دسخت تيز باران دی چه دغه ګټه صفا پريږدی ﴿صَلۡدٗا﴾ هغه ګټه چه بالکل صفا وی او ګرد او غبار پرې نوی ﴿لَّا يَقۡدِرُونَ﴾ يعنې ددې عمل به ورته هيڅ اجر اوثواب نه ملاويږي اګرکه دوئ پدې طمع وی چه مونږنيك عمل کړيدې ﴿وَٱللَّهُ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلۡكَٰفِرِينَ﴾ مراد

دادې چه دوئ ته په آخرت کښې ثواب نه ورکوي، يا دا چه په دنيا کښې ورته د ايمان توفيق نه ورکوي اوجبراً ورته هدايت نه ورکوي.

| |
|---|
| وَمَثَلُ الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمُ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ وَتَثْبِيْتًا مِّنْ اَنْفُسِهِمْ |
| اومثال[1] دهغه خلقوچې خيرات کوي خپل مالونهٔ دپاره دطلب درضا دالله اودوجې ديقين نهٔ دنفسونوددوئ نهٔ |
| كَمَثَلِ جَنَّةٍۭ بِرَبْوَةٍ اَصَابَهَا وَابِلٌ فَاٰتَتْ اُكُلَهَا ضِعْفَيْنِ |
| پشان ديوباغ دې چې پهٔ اوچته زمکه باندې وي چې اورسيږي دېته باران ډېر ،نوورکړي داباغ ميوې خپلې دوچند |
| فَاِنْ لَّمْ يُصِبْهَا وَابِلٌ فَطَلٌّ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ۝ اَيَوَدُّ |
| پس کچرې اونهٔ رسي دېته ډېرباران نو (پرخهٔ يعنى لږباران ورله کافي دې) اوالله ستاسوعملونه ښهٔ ويني . آيا خوښوي |
| اَحَدُكُمْ اَنْ تَكُوْنَ لَهٗ جَنَّةٌ مِّنْ نَّخِيْلٍ وَّاَعْنَابٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۙ لَهٗ |
| يوکس په تاسو کښې داخبره چې وى دهٔ لره باغ دکهجورو اودانګورو، بهيږي لاندې ددهٔ نهرونه، ددهٔ دپاره وي |
| فِيْهَا مِنْ كُلِّ الثَّمَرٰتِ ۙ وَاَصَابَهُ الْكِبَرُ وَلَهٗ ذُرِّيَّةٌ ضُعَفَآءُ ۚ |
| پدې باغ کښې نورې هرقسمه ميوې،اورسيدلې وي دهٔ ته بوډاوالى،اوددهٔ دپاره اولاد وي ضعيفان يعنى ماشومان |
| فَاَصَابَهَآ اِعْصَارٌ فِيْهِ نَارٌ فَاحْتَرَقَتْ ؕ كَذٰلِكَ |
| پس پدې حالت کښې اورسي دې باغ تهٔ تيزباد(بربرکئ)چې پدې کښې اور وي نوپس داباغ اوسيزي، دغه شان |
| يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُوْنَ ۝ |
| بيانوي الله ستاسو دپاره آياتونهٔ دپاره ددې چې تاسوفکر اوکړئ |

﴿وَمَثَلُ الَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمُ﴾ دا دويم مثال دې د اخلاص والا نفقې لپاره، دا دواړه مثالونه د يو ممثل لپاره دى، بعضې مفسرين وائى دا دويم مثال دهغه صدقې لپاره دې چه دجهاد او ددعوت ددين نه علاوه په بل مصرف خير کښې وشي، او ماقبل مثال دهغه صدقې لپاره ؤو چه د جهاد اودعوت دين اواعلاء دين لپاره وشى لکه قرطبى دمخکښې آيت په تفسير کښې وائى : «بيان مثال لشرف النفقة فى سبيل الله وحسنها».

---

١ - مثال دپاره د اخلاص دانفاق.

## دَ اونچاس کروړ ((یوکم پنځوس کروړو)) ثواب ثبوت

ابن کثیر او صاحب د روح المعانی د تیرشوی آیت په تفسیر کښې حدیث د انفاق فی سبیل الله نقل کوی چنانچه روح المعانی وائی چه دعلی ﷺ اوبوالدردا ﷺ ابوهریرة ﷺ عمران بن حصین ﷺ ابوامامة ﷺ عبدالله بن عمر ﷺ اوجابربن عبدالله ﷺ نه روایت دې چه حضور ﷺ فرمایلی دی چه څوك نفقه ولیږی دالله تعالی په لارکښې اوپه خپله په کورکښې پاتې شی اودالله ﷻ په لارکښې لاړنه شی نوده ته دهرې یو روپئ په بدله کښې اووه سوه (۷۰۰) روپئ اجر ملاویږی اوڅوك چه په خپله دالله ﷻ په لارکښې لاړشی اونفقه وکړی دالله ﷻ په لارکښې اودالله ﷻ په رضاء کښې نو دده لپاره دهرې روپئ په بدله کښې اووه لاکهـ (۷۰۰۰۰۰) روپئ اجر دې.

((وَعَن معاذبنِ جبلٍ ﷺ اِنَّ غزاةَ الْمُنفقِین قدخبّاء الله تعالی لَهُمْ مِنْ خَزَائِنِ رَحْمَتِهِ مَایَنْقَطِعُ عَنه عِلمُ العبادِ)) . اوپه ابوداؤد کښې دحضرت معاذ ﷺ روایت پدې الفاظوسره دې ((قال رسولُ اللهِ ﷺ إن الصلوةَ والصِّیامَ والذکرَیضاعَفُ علی النَّفقةِ فی سبیلِ الله عزّوجلّ بسبعمائةِ صعفٍ)). نو وه سوه چه په اووه لاکهـ کښې ضرب شی نویوکم پنځوس کروړه ترینه جوړیږی، پدې حدیث باندې ابوداؤد سکوت کړیدې نوقابل احتجاج دې او زبان بن فائد راوی ضعیف دې لیکن شدت ضعف ((چه کذب او اتهام کذب دې)) هغه پکښې نشته بلکه دده په حق کښې صدوق ویلې شوی دی، نودا دویم مثال دهغه انفاق دې چه په غیر دجهاد کښې وی.

﴿ٱبۡتِغَآءَ مَرۡضَاتِ ٱللَّهِ﴾ یعنې مقصود ئی طلب درضاء الهی وی دا مفعول له دې چه دده دحصول لپاره فعل مذکورشوی دې . ﴿وَتَثۡبِيتٗا﴾ په معنی دتیقنًا سره دې یعنی دزړه یقین ئی وی دالله ﷻ په وعدو باندې نو ځکه انفاق کوی، نو دا هم مفعول له دې چه دده دوجود لوجه نه فعل مذکورشویدې یا د((تثبیتًا)) معنی کلکوالې دې یعنی نفقه کوی لپاره دمحکم کولو اوکلکولو دزړونو په ایمان اودین باندې ځکه چه صدقه سبب دې لپاره دتثبیت په ایمان اودین باندې. ﴿بِرَبۡوَةٍ﴾ ((ربوه)) وایی ((ما ارتفع من الارض لاماءَ فیها)) ته، یعنې غونډئ، اوتشبیه د ربوة سره لدې وجې نه ورکړې شوه چه دهغې ونې خائسته ښکاریږی او دکثرت حرارت اوبرودت نه په امن کښې وی نونماً په کښې ډیره وی، اوکه د اوبو قلت وی نود ونو د وچ کیدلو خطره نه وی ((وابل)) مطرشدید ته وائی او ((فَطَلٌّ)) شبنم ته وائی، خودلته ترینه مراد

مطرقلیل دې ځکه شبنم (پرخه) دفصل لپاره کافي نوی، حاصل دادې چه څوك چه صدقه وکړی اومقصودئی (۱) طلب درضأ الهی وی او ریأ ئی مقصودنوی (۲) اوکلك والې ئی په ایمان اودین مقصود وی نوده ته دا نفقه خامخا نفع ورکوی نوکه دواړه شرطونه په کمال درجه کښې وی نواعلی نفع به ورته ملاویږی، نو داپه مثل د «وابل» شو اوکه چرې په کمه درجه کښې ؤو نودا د «طل» مثال شو.

﴿أَيَوَدُّ أَحَدُكُمْ﴾ دا مثال دې دهغه چالپاره چه خپل صدقات برباد کړی په من او اذی ریاء سره. مطلب ئی دادې چه لکه دیوسړی باغ دې . کهجورې ، انګور هرقسم میوې په کښې وی اودا سړې په خپله بوډا وی ګټه مزدوری نشی کولې اواولاد ئی ماشومان وی، خرچه ترینه غواړی اوګټه نشی کولې نوددې سړی لویه اسره اوسرمایه دا باغ دې نو آیا په داسې حال کښې څوك دا خبره پسندکوی چه پدې باغ باندې داسې هوا اوسیلۍ راشی چه په هغې کښې اورهم وی او دا باغ وسوزوی او والوزوی ئی، دغه شان اعمال صالحه خصوصاً صدقه د انسان لپاره لویه سرمایه ده، اوانسان ورته ډیرمحتاج وی، نوکه داسرمایه درياء اومن او اذی یا د شرك اوبدعت په هوا سره ضایع کړی نودا دلوئ افسوس ذریعه ده .

دحضرت ابن عباس ﷺ نه روایت دې چه دا مثال دهغه چا دې چه نیك اعمال ئی کړی وی خوشیطان ورته راشی اوداسې معاصی ترینه صادرکړی (لکه شرك بدعت) چه اعمال ئی ضائع اوبربا دشی

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَنفِقُواْ مِن طَيِّبَٰتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّآ أَخْرَجْنَا

اې دایمان خاوندانو (۱) تاسوخرچ کړئ دپاك هغه مال نه چې تاسو ګټلې وی اودهغه څیزنونه چې مونږ پیداکړي دي

لَكُم مِّنَ ٱلْأَرْضِ ۖ وَلَا تَيَمَّمُواْ ٱلْخَبِيثَ مِنْهُ تُنفِقُونَ وَلَسْتُم بِـَٔاخِذِيهِ

ستاسودپاره دزمکې نه. اوتاسو قصد مه کوئ ردي مال ته چې دېنه تاسوخرچ کړئ اوحال داوي چې تاسو يې پخپله نه اخلئ

إِلَّآ أَن تُغْمِضُواْ فِيهِ ۚ وَٱعْلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ غَنِىٌّ حَمِيدٌ

مګر داچې تاسوچشم پوشي اوکړئ په هغې کښې. اوپوهه شئ چې بېشکه الله بې حاجته دې ستائیلې شوې دې

---

۱ - ترغیب د انفاق پاك مال ته

| ٱلشَّيْطَٰنُ يَعِدُكُمُ ٱلْفَقْرَ وَيَأْمُرُكُم بِٱلْفَحْشَآءِ ۖ وَٱللَّهُ يَعِدُكُم مَّغْفِرَةً مِّنْهُ |
|---|
| شیطان تاسو ویروي د تنګدستۍ نه او امر کوي تاسو ته د بخل، او الله ستاسو سره وعده کوي د بخښنې د خپل طرفنه |
| وَفَضْلًا ۗ وَٱللَّهُ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ |
| او د فضل (یعني د برکت) ورکولو، او د الله فضل ډېر واسع دې او عالم دې |

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ أَنفِقُوا۟ ﴾ دا امر د وجوب لپاره دې او ددینه مراد زکات مفروضه دې ﴿مِن طَيِّبَٰتِ مَا﴾ د طیبات نه مراد عمده مال او حلال مال دې او د ﴿مَا كَسَبْتُمْ﴾ نه مراد مال تجارت دې او د ﴿وَمِمَّآ أَخْرَجْنَا لَكُم﴾ نه مراد د فصلونو او میوؤ عشر یا نصف عشر مراد دې او لفظ د «ما» عام دې خضراواتو ته هم شامل دې او قلیل د خمسة اوسق ته هم شامل دې، او د ﴿ ٱلْخَبِيثَ ﴾ نه مراد ردی مال دې او ﴿مِنْهُ﴾ متعلق دې د «تنفقون» پورې او هغه حال دې د فاعل د «تیمموا» نه ، یعنې د الله په نوم باندې عمده مال ورکوئ او ردی مال مه ورکوئ .

او د ردی تفسیر دادې چه ﴿وَلَسْتُم بِـَٔاخِذِيهِ إِلَّآ أَن تُغْمِضُوا۟ ﴾ له دې نه چشم پوشی او مسامحه مراد ده ﴿ ٱلشَّيْطَٰنُ يَعِدُكُمُ﴾ دا دوعید نه مشتق دې په معنی د یرولو سره .

﴿وَيَأْمُرُكُم بِٱلْفَحْشَآءِ﴾ فحشاء هر بد او قبیح قول او فعل ته ویلې شی، دلته ترینه مراد بخل دې ﴿وَٱللَّهُ يَعِدُكُم﴾ دا د وعد نه مشتق دې په معنی دوعدې کولو سره ﴿مَّغْفِرَةً﴾ د آخرت سره تعلق لری ﴿وَفَضْلًا﴾ د دنیا سره تعلق لری چه په مال کښې ئی برکت واچولې شی .

| يُؤْتِى ٱلْحِكْمَةَ مَن يَشَآءُ ۚ وَمَن يُؤْتَ ٱلْحِكْمَةَ فَقَدْ أُوتِىَ |
|---|
| ورکوي پوهه (علم د دین) هغه چاته چې خوښه ئې شي، او چاته چې ورکړې شي حکمت نو په تحقیق سره ورکړې شوه ئه |
| خَيْرًا كَثِيرًا ۗ وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّآ أُو۟لُوا۟ ٱلْأَلْبَٰبِ ۝ وَمَآ أَنفَقْتُم مِّن نَّفَقَةٍ أَوْ نَذَرْتُم مِّن نَّذْرٍ |
| خیر ډېر، او نصیحت نهٔ قبلوي مګر د عقل خاوندان . او هغه چې تاسوئ خرچ کړئ د خیرات نه یا لازم کړئ په ځان څهٔ نذر |
| فَإِنَّ ٱللَّهَ يَعْلَمُهُۥ ۗ وَمَا لِلظَّٰلِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ ۝ إِن تُبْدُوا۟ ٱلصَّدَقَٰتِ |
| پس بېشکه الله عالم دې پهٔ هغې، او نشته دې ظالمانو دپاره هیڅوک مددګار . کچرې تاسو ښکاره ورکوئ خیراتونه |
| فَنِعِمَّا هِىَ ۖ وَإِن تُخْفُوهَا وَتُؤْتُوهَا ٱلْفُقَرَآءَ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۚ |
| نو ډېر خه کار دې دا، او که تاسوئې پټوئ او ورکوئ ئې فقیرانو ته نو دا ډېر غوره دې ستاسو دپاره. |

| وَ يُكَفِّرُ عَنْكُمْ مِّنْ سَيِّاٰتِكُمْ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ۝ |
|---|
| اولري به کړي «الله تعالی پدې سره» ستاسونه بعضې ګناهونه ستاسو، اوالله ستاسوپه ټولو عملونوخبردار دی |

﴿ يُؤْتِي الْحِكْمَةَ ﴾ دحکمت ډیرې معانی دی ((معرفة بالقرآن ، فقه فی القرآن ، الاصابة فی القول والفعل، تحقیق فی العلم، تدقیق فی العلم ، توفیق فی العمل)) یعنې چا ته چه الله ﷻ ددینی کارونو مثلا صدقه ورکولو پوهه ورکړی چه په کوم نیت سره، دکوم مال نه، چاته، په کومه طریقې سره، ددې امورو علم او دعمل توفیق ورکړی نوده ته خیرکثیرورکړې شو، ابو اللیث ﷫ فرمائی چه الله تعالی ټولې دنیاته متاع قلیل ویلې دې اوعلم ته ئی کثیر ویلی دې.

﴿وَمَآ أَنفَقْتُم ﴾ پدې آیت کښې بیان دضابطې کلیې کیږی یعنی چا چه په کومه طریقې سره نفقه یانذر ورکړو مثلاپه جائزه طریقه یا ناجایزه طریقه، یاقلیل یا کثیر نو دهغې مطابق به ورته بدله ملاویږی، انفاق دادې چه په ځان ئی لازم کړې نوی بلکه تبرعًا ئی ورکړی.

﴿اَو نَذَرْتُمْ مِّنْ نَّذْرٍ ﴾ اونذر دادې چه په ځان ئی لازم کړی اوداپه دوه طریقوسره کیږی یو دا چه تعلیق ئی وکړی مثلا که فلانې کارمې وشو یامریض جوړشو نو دومره صدقه به کوم، ددې قسم نذرپه حدیث کښې ذم راغلې دې «یستخرج به من البخیل»، **دویم** دا چه په غیر دتعلیق نه په ځان صدقه یا صوم وغیره لازم کړی.

«وما انفقتم» کښې «ما» متضمن دې معنی دشرط لره اوجزأ ئې مقدره ده په قرینې دمابعد سره «ای فان الله یعلمها» یعنې الله تعالی ته علم دې چه تاسو په کوم نیت سره صدقه ورکړیده اوچاته مو ورکړیده اوپه کومه طریقه سره مو ورکړیده نو دهغې مطابق به الله ﷻ تاسوته بدله درکوی ﴿فَإِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُهُ﴾ پدې کښې اشاره ده جزأ اوبدلې ورکولوته.

﴿إِن تُبْدُوا الصَّدَقَاتِ ﴾ پدې آیت کښې د صدقاتو ورکولو طریقه بیانیږی او دصدقاتو مصرف بیانیږی یعنې **دصدقاتو ورکولو دوه طریقې دی** : (۱) علانیه ورکول (۲) خفیه ورکول، د دویمې طریقې په حق کښې ئی «خیرٌ» وفرمایل چه دغه افضل ده اوعلمأ وائی که چرې په علانیه کښې بل چاته ترغیب ورکول مقصودؤو نوبیاعلانیه افضل ده اودارنګه په فرضی صدقه کښې علانیه ورکول افضل دی.

﴿وَتُؤْتُوهَا الْفُقَرَاءَ﴾ دا بیان دمصرف دې، فرضی صدقې خو دفقراؤ لپاره خاص دی او نفلی صدقې دفقراؤ لپاره خاص ندی خو افضل داده چه دوئ ته ورکړې شی.

﴿وَيُكَفِّرُ عَنكُم مِّن سَيِّئَاتِكُمْ﴾ یعنی الله ﷻ دصدقې په وجه گناهونه معاف کوي

| |
|---|
| لَيْسَ عَلَيْكَ هُدٰىهُمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ ۗ وَمَا |
| نه دي ستا په ذمه په سمه لار راوستل ددوئ لیکن الله سمې لارې ته راولي هغه څوک چې خوښه ئې شي، او هغه |
| تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ فَلِاَنْفُسِكُمْ ۗ وَ مَا تُنْفِقُوْنَ اِلَّا ابْتِغَآءَ |
| چې تاسوئ خرچ کړئ څهٔ مال، نو هغه دخپل خان دفائدې دپاره دې، او لاتق نه ده چې تاسو خرچ کړئ مگر دپاره دطلب |
| وَجْهِ اللّٰهِ ۗ وَ مَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ يُّوَفَّ اِلَيْكُمْ وَاَنْتُمْ |
| درضا دالله ، او هغه چې تاسو خرچ کړئ څهٔ مال نو پوره بهٔ درکولې شي تاسو تهٔ ثواب دهغې او پهٔ تاسو بهٔ |
| لَا تُظْلَمُوْنَ ۞ لِلْفُقَرَآءِ الَّذِيْنَ اُحْصِرُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ |
| ظلم نشي کیدې . صدقات دهغه فقیرانو دپاره دي چې بند کړې شوي دي په لار دالله کښې طاقت نه لري |
| ضَرْبًا فِي الْاَرْضِ ۫ يَحْسَبُهُمُ الْجَاهِلُ اَغْنِيَآءَ مِنَ التَّعَفُّفِ ۚ |
| دسفر کولو په زمکه کښې. گمان کوي پهٔ دوي باندې ناخبره دحال ددوئ نهٔ دَ غني، دوجې دنهٔ کولو دسوال او دطمع د چا نه |
| تَعْرِفُهُمْ بِسِيْمٰهُمْ ۚ لَا يَسْئَلُوْنَ النَّاسَ اِلْحَافًا ۗ وَمَا |
| تهٔ بهٔ پیژنې دوئ لره پهٔ نښو دڅهروسره، سوال نهٔ کوي دخلقونهٔ چې راچاپیره شي پهٔ چاپیره کیدلوسره، او هغه |
| تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ ۞ اَلَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ |
| چې تاسو خرچ کړئ څه مال نو بیشکه الله پهٔ هغې باندې عالم دې . هغه کسان چې خیرات کوي خپل مالونه |
| بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ سِرًّا وَّ عَلَانِيَةً فَلَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚ |
| دشپې هم او دورځې هم پهٔ پټهٔ هم او پهٔ ښکاره پس ددوئ دپاره اجر ددوئ دې په نیزدرب ددوئ |
| وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ۞ |
| اونهٔ به وي هیڅ یره پهٔ دوئ باندې او نهٔ بهٔ دوئ غمژن وي |

﴿لَيْسَ عَلَيْكَ هُدٰىهُمْ﴾ بعضې مسلمانانو خپلو کافرو رشته دارانو ته یدې خیال صدقه نه ورکوله چه دوئ به دتنگدستئ او مفلسئ په وجه په اسلام کښې داخل شی، نو الله ﷻ وفرمایل چه تاسو خپلو رشته دارو ته صدقه ورکوئ او صله رحمی ورسره کوئ تاسو ته به اجر

ضرور ملاویږي برابره خبره ده چه هغوئ په سمه لار رازي اوکنه، او دهغوئ په سمه لار باندې راوستل د الله تعالی اختیار دې تاسوته ضرور اجر ملاویږي.

﴿وَمَا تُنفِقُواْ مِنْ خَيْرٍ فَلِأَنفُسِكُمْ﴾ یعنې ستاسو د نفقې اوصدقې نه اګرکه محتاجانو ته فائده رسی خو دا دنیوی فائده ده اوپه آخرت کښې د هر چا صدقه دخپل ځان لپاره ده او دبل چالپاره نه ده، نو ددې وجه نه ردی شې مه ورکوئ اوعمده ورکوئ او «من او اذی» مکوئ **د آیت مفهوم** دادې چه دهرچا دصدقې ثواب هغه ته ملاویږي اوبل چاته نه ملاویږي مګر دا که په شرعی طریقه سره ئی بل چاته وبښي «دایصال ثواب نفی مرادنده».

﴿وَمَا تُنفِقُونَ إِلَّا ٱبْتِغَآءَ وَجْهِ ٱللَّهِ﴾ دا اخباراو شهادت دې دالله ﷻ دطرفه چه دصحابؤ انفاق دالله تعالی درضاء لپاره ؤو، یا دا نفی په معنی دنهی سره ده یعنې نفقه مکوئ مګر صرف دالله ﷻ درضاء لپاره یې کوئ.

﴿يُوَفَّ إِلَيْكُمْ﴾ یعنې دهغې ثواب به پوره درکولې شي.

﴿لِلْفُقَرَآءِ ٱلَّذِينَ﴾ دا بیان دمصرف دصدقاتو دې، للفقرأ خبر دمبتدأ محذوفې دې «ای هذه الصدقات للفقرأ ـ الایه» **دا آیت نازل دې** په حق د اصحاب صفه کښې چه دوئ تقریباً څلور سوه کسان ؤو، دوئ درحقیقت په مسجدنبوی کښې دحضور ﷺ طالبان ؤو. پدې آیت کښې ددوئ بعضې صفات اوعلامات مذکور دی **اودغه صفات دهر طالب علم لپاره مناسب دی**:

**اول صفت** اوعلامه یې داده چه ﴿أُحْصِرُواْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ﴾ طالب علم به دقیدی پشان پابند وی، **دویم صفت** ئی دادې چه ﴿لَا يَسْتَطِيعُونَ ضَرْبًا﴾ دضرباً معنی دسفر ده. صحابؤ سفر ځکه نشو کولې چه دکفارو تسلط ؤو په ټوله دنیا باندې یا ددې وجه نه چه دوئ په ځان باندې جهاد لازم کړې ؤو نوبل څه کارته فارغ نه ؤو ((لماقدالزموا انفسهم من الجهاد)) «قرطبی» نو طالب علم لپاره پکاردی چه خپل ځان ملازم کړی د طلب علم سره او د بې ضرورته ګرزیدلو او چکرونو نه دې ځان وساتی. ﴿يَحْسَبُهُمُ ٱلْجَاهِلُ أَغْنِيَآءَ﴾ دا **دریم صفت** اوعلامه ده چه طالب علم دې داسې مستغنی وی چه څوک دده دمال په حال خبرنشی ، دجاهل نه مراد هغه دې چه بې خبره وی دحال دفقر دده نه ﴿مِنَ ٱلتَّعَفُّفِ﴾ ددینه مراد ځان بچ کول دی دحرامونه

اودسوال نه ﴿ تَعۡرِفُهُم بِسِيمَـٰهُمۡ﴾ دا **خلورم صفت** اوعلامه ده، دطالب علم حلیه. هیئت دې د طالب علمئ وی او مظهر د انوارو دعلم دې وی اوچهره دې نوراني وی. ﴿لَا يَسۡـَٔلُونَ ٱلنَّاسَ إِلۡحَافًا﴾ **داپنځمه علامه** ده ((الحافا)) دیته وائی چه داسې په زاری اومبالغې سره سوال وکړی چه په سړی پورې ونخلی . را چاپېره شی ترینه، د آیت نه بظاهر داسې معلومیږی چه الحافاً سوال نه کوی او بغیر د الحاف نه سوال کوی. لیکن جمهور مفسرین وائی چه د دې معنې داده چه بالکل سوال نه کوی ((متعففون عن المسئلة عفة تامة)) (قرطبی) جلالین وائی چه الحافاً مفعول مطلق دفعل محذوف دې چه هغه مرتب دې په ماقبل فعل منفی باندې ((ای لایسئلون الناس، اصلا، فیلحفون الحافاً)) یعنې سوال بالکل نه کوی اوکه چرې سوال ئی کولې نوفقر به یې دومره زیات ؤو چه را چاپیره شوې به وې په راچاپیره کیدلو سره.

﴿فَإِنَّ ٱللَّهَ بِهِۦ عَلِيمٌ﴾ نو الله تعالی به دهغې پوره بدله درکوی.

﴿ ٱلَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمۡوَٰلَهُم﴾ پدې کښې ترغیب دې انفاق ته اوپه تقدیم د ((لَيۡل)) کښې په ((نَهار)) باندې اود ((سِراً)) په ((علانية)) باندې اشاره ده دیته چه په نفلی صدقاتو کښې اخفاء بهتره ده، اودارنګه پدې آیت کښې تعمیم د اوقاتو د انفاق ته اشاره ده په ذکر د ((لیل)) او ((نَهار)) سره چه انفاق په هروقت کښې کیدې شی نه ورته یووخت مخصوص شته دې اونه ورته یووخت ممنوع شته دې نو افراط او تفریط اوتشدیدپه یوجانب کښې ندې پکار. البته درسوماتو اصلاح او د بدعاتو رد ضروری دې، اوبل پدې آیت کښې اشاره ده تعمیم د احوالوته په ذکر د سراً اوعلانيةً سره.

| ٱلَّذِينَ | يَأۡكُلُونَ | ٱلرِّبَوٰاْ | لَا يَقُومُونَ | إِلَّا كَمَا | يَقُومُ | ٱلَّذِي | يَتَخَبَّطُهُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هغه کسان ([1])چې خوري سود نه بهٔ پاسيږي دقبرونونهٔ مګريشان دپاسيدلودهغه چاچې ليونې کړې وي دهٔ لره | | | | | | | |
| ٱلشَّيۡطَٰنُ | مِنَ | ٱلۡمَسِّۚ | ذَٰلِكَ | بِأَنَّهُمۡ | قَالُوٓاْ | إِنَّمَا | ٱلۡبَيۡعُ |
| شيطان (پيريانو) پهٔ سبب دمسه کولوسره، داپهٔ سبب ددې سره دې چې دوئ (يعنی سودخورو) بهٔ ونيل چې يقيناً بيع | | | | | | | |

[1] - زجر دهغه خلقو چې انفاق نه کوي بلکه سود خوري.

| مِثْلُ الرِّبٰوا ۘ وَ اَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبٰوا ؕ فَمَنْ جَآءَهٗ مَوْعِظَةٌ |
|---|
| خوبشان د ربوا ده، او حالانکه چې الله بیع حلاله کړې ده او ربٰی نې حرامه کړې ده، پس هغه څوک چې راشي هغه ته نصیحت |
| مِّنْ رَّبِّهٖ فَانْتَهٰى فَلَهٗ مَا سَلَفَ ؕ وَاَمْرُهٗۤ اِلَى اللّٰهِ ؕ |
| د طرفه درب دده نه نو دې منع شي پس دهٔ لره دی هغه چې مخکښې تیر شوي وؤ. او کار ددهٔ الله ته حواله دې |
| وَ مَنْ عَادَ فَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ۝ |
| او څوک [۱] چې واپس شي (سودخوړلوته) نو پس دغه کسان خاوندان داور دي، دوئ به پدې کښې همېشه وي |
| يَمْحَقُ اللّٰهُ الرِّبٰوا وَيُرْبِي الصَّدَقٰتِ ؕ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ اَثِيْمٍ ۝ |
| بې برکته کوي الله مال د سود او زیاتوي او برکتي کوي مال د خیرات، او الله محبت نهٔ کوي د هر غټ کافر گناهگار سره |

﴿اَلَّذِيْنَ يَاْكُلُوْنَ الرِّبٰوا﴾ دا زجر بیانیږی هغه خلقو ته چه د الله تعالی په لار کښې خرچ نه کوی او قرض حسنه ورکولو ته هم تیار نه وی، بلکه په قرض باندې سود اخلی . ((یأکلون)) په معنی د ((یأخذون)) سره دې چه سود اخلی ،لیکن چونکه مقصود اعظم أکل دې د اخذ نه نو ددې وجه نه ((یأکلون)) ذکر شو . او ربیٰ په اصل لغت کښې مطلق زیادت ته وائی، او په عرف د شرع کښې هغه زیادت دې چه د معاوضه مالیه په مقابله کښې نه وی مثلاً دیوې روپئ په بدله کښې دوه روپئ اخستل ربیٰ ده او دیوې روپئ والا کپړه په دوه روپئ خرڅول ربیٰ نه ده ځکه دا زیادت دیوٌ درهم د معاوضه مالیه په مقابله کښې دې.

﴿لَا يَقُوْمُوْنَ﴾ ای من قبورهم یوم القیمة ﴿اِلَّا كَمَا يَقُوْمُ الَّذِيْ﴾ ((ای الا قیاماً کقیام الذی ــ الایه)) . پدې آیت کښې **دسود خور دقیامت په ورځ دقبرونو نه د پاسیدلو مخصوص علامه** ذکر شوې ده، هغه دا چه دوئ به دقبرونو نه د لیونو په شکل پاسیږی یا پشان دهغه چا چه پیریان پرې راغلی وی . او سمه لار او جهت نه پیژنی، دا صرف ددوئ د تذلیل لپاره نښه ده او سزائی علاوه ده او ﴿كَمَا يَقُوْمُ﴾ نه مراد دادې چه دوئ به عین لیونی نه وی چه احساس او ادراك دعذاب نشی کولې ، او دا علامه ددوئ لپاره ځکه مقرر شوه چه دوئ په دنیا کښې په مال پسې لیونی وؤ نو سزا ئی د جرم سره مشابه ده .

---

۱ - تخویف اخروي

﴿يَتَخَبَّطُهُ ٱلشَّيْطَٰنُ مِنَ ٱلْمَسِّ﴾ يتخبط د تخبط نه مشتق دې اوتفعل په معنی دفعل سره دې او خبط په اصل کښې هغه رفتارته وائی چه مُتّسق نه وی کله يو طرف ته اړوی کله بل طرف نه اودا دحواسو دخرابيدلواوګډوډکيدلو په وجه کيږی. او دا هم يوقسم جنون دې. نوددې وجه نه د،،يتخبطه الشيطن،، داسې ترجمه هم کيدې شی چه دده حواس خراب کړی وی شيطن. پيريانو او داسې ترجمه هم کيدې شی چه ليونې کړې وی ده لره شيطن ،،من المس،، مس.لاس لګولوته وائی اواطلاق ئی په جنون باندې کيږی ځکه مس شيطانی سبب دجنون دې صاحب دروح المعانی وائی چه دا خبره مخالفه نه ده دقول د اطباؤ سره چه سبب دجنون لپاره فساد داخلاطواوغلبه دسوداء وی ځکه چه دغه ورته سبب قريب دې اومس ورته سبب بعيد دې. شيخ الهند رحمه الله ترجمه داسې ليکی : ،جس کے حواس کھودیے ہو جن نے لپٹ کر،

نو د آيت ترجمه داده چه ليونې کړې وی ده لره شيطن په سبب دمسه کولوسره يا يې د ده حواس خراب کړی وی شيطان په سبب دجنون سره او د دې آيت نه علماؤ دا ثابته کړيده چه انسانانو باندې پيريان راتلې شی او دهغه په ژبه يا بدن کښې داسې تصرف کولې شی چه هغه پرې پوهه نه شی

﴿إِنَّمَا ٱلْبَيْعُ مِثْلُ ٱلرِّبَوٰاْ﴾ مقتضی دظاهر داوه چه داسې ئی ويلې وې ،،انماالربوا مثل البيع،، خو دوئ تشبيه معکوسه کړه، د استهزاء او الزام لپاره ، چه بيع خوهم پشان د ربوا ده نوکه چرې ربواحرامه وی نوپکارده چه بيع دې هم حرامه شی ، نوالله تعالی په دوئ رد کوی ،،واحلّ الله البيعَ وَحَرَّمَ الربٰو،، چه مثليت نشته دې ځکه چه الله تعالی بيع حلاله کړې ده او ربوايې حرامه کړې ده

﴿فَلَهُۥ مَا سَلَفَ﴾ يعنې چاته چه دالله تعالی دطرفه وعظ راغې او د ربوا دحرمت حکم ورته معلوم شو اوربوا يې پريښودله نومخکښې جرم يعنې دحرمت نه مخکښې ئی چه کومه ربوا کړې ده نوهغه جرم ورته معاف دې او دارنګه هغه مال چه په ربوا سره يې اخيستې دې هغه ئی ملکيت دې ﴿وَأَمْرُهُۥٓ إِلَى ٱللَّهِ﴾ يعنې دباطن امر يې الله تعالی ته حواله دې اوالله جل جلاله ته معلوم دې چه ربوا ئی په اخلاص سره.پريښودلې ده يا په نفاق سره يا دا چه په مستقبل کښې د ده حال الله تعالی ته حواله دې چه دربوا نه ئی بچ ساتی يانه. ﴿وَمَنْ عَادَ﴾ دعود نه مراد عود دې دحرمت نه حل ته. ﴿يَمْحَقُ ٱللَّهُ ٱلرِّبَوٰاْ﴾ يعنې مال دربوا اګرکه په ظاهرکښې ډير وی خوهيڅ برکت پکښې نوی کله په دنيا کښې عنقريب تباه شی اوکه تباه نه شی خو د

مالك لپاره د راحت او سکون ذریعه نه ګرځي اوبرکت پکښې نوی اوکه صدقه ترینه وکړي یاحج یا بل څه کار دَ ثواب پرې وکړي نو ثواب پرې نه ملاویږي او د مال فائده خوصرف دا ده چه د راحت او سکون ذریعه شي یا د ثواب او د اجر د آخرت ذریعه شي اوپه مال د ربوا کښې دا دواړه کارونه نشته، نو دغسې مال که څرې په ظاهرکښې هلاك نشی لیکن در حقیقت هلاك دې، او دَ دې بالمقابل هغه مال چه حلال وی نو دَ هغې نه زکوة او صدقات ورکولې شی . نو دغه مال ترقی کوی او که په ظاهر کښې لږ وی خوبرکت پکښې ډیروی او د راحت او سکون ذریعه وی او د صدقې ثواب ئې ملاویږي.

﴿كَفَّارٍ﴾ هغه څوك چه ربوا حلاله ګڼړي. ﴿أَثِيمٍ﴾ چه ربوا اخلي اګرکه حلاله ئې نه ګڼړي

| إِنَّ الَّذِينَ اٰمَنُوا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ |
|---|
| بېشکه (١)هغه کسان چې ایمان ئې راوړې دې اوعملونهٔ کوي نیک اوقائم ساتي مونځ اوورکوي زکوة |
| لَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ۞ |
| نودوئ دپاره دې ثواب دَ (عملونهٔ ددوئ پهٔ نیزدرب ددوئ، اونهٔ بهٔ وي هیڅ ویره پدوئ باندې اونهٔ بهٔ دوئ غمژن وي |
| يٰٓاَيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَذَرُوْا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبٰوٓا اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۞ |
| اې ایمان والو ! ویره ساتئ دالله نهٔ اوپرېږدئ هغه چې پاتې سود دې کچرې یئ تاسو پهٔ ربښتیا مومنان |

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾ دا بشارت دې هغه چاته چه سود نه اخلي اوزکوة ادا کوی .

﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَذَرُوا۟ مَا بَقِىَ مِنَ ٱلرِّبَوٰٓا۟﴾ تقوی کول او د ربوا نه ځان بچ کول د ایمان تقاضا ده. دَ ثقیف قبیلې د ایمان نه مخکښې دبنومغیره سره سودی معامله کړې وه دسود دحرمت نازلیدلونه بعد ثقیفو داخیال کړې وو چه دسود هغه سابقه رقم چه زمونږ دبنو مغیره په ذمه باقی دې هغه به حلال وی نو لهذا د هغې مطالبه ئې کوله، اوبنومغیره ترینه انکار کولو ځکه چه دحرمت دنزول نه بعد هغه سابقه رقم هم حرام دې. دا معامله دنبی ﷺ حضورته پیش شوه نودا آیت نازل شو بنی ثقیفو چه دا آیت واوریدلونو مطالبه ئې پرېښوده .

---

١ - بشارت.

| |
|---|
| فَإِنْ لَّمْ تَفْعَلُوْا فَأْذَنُوْا بِحَرْبٍ مِّنَ اللهِ وَرَسُوْلِهٖ ۚ وَإِنْ تُبْتُمْ |
| پس[١] كه تاسو دا كار اونكړو نو خبر دار شئ په لوئي جنگ سره د طرفه د الله او د رسول د هغه نه، او كه تاسو توبه اوكړه |
| فَلَكُمْ رُءُوْسُ أَمْوَالِكُمْ ۚ لَا تَظْلِمُوْنَ وَلَا تُظْلَمُوْنَ ۝ وَإِنْ كَانَ ذُوْ عُسْرَةٍ |
| نو تاسو دپاره اصل مال ستاسو دې، دپاره د دې چې تاسو ظلم اونه كړئ او په تاسو ظلم اونشي اوكه قرضدار تنگدست وي |
| فَنَظِرَةٌ إِلٰى مَيْسَرَةٍ ۚ وَأَنْ تَصَدَّقُوْا خَيْرٌ |
| نو هغه ته انتظار كول دي دوخت د غني والي پورې، او دا چه تاسو خيرات اوكړئ يعنى معاف ئ كړئ نو دا ډېره غوره خبره ده |
| لَّكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝ وَاتَّقُوْا يَوْمًا تُرْجَعُوْنَ فِيْهِ إِلَى اللهِ ۖ |
| ستاسو دپاره كچرې تاسو پوهيږئ ، اوويريږئ[٢] دهغه ورځې نه چې تاسو به واپس كولې شئ په هغې كښې الله ته |
| ثُمَّ تُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ۝ |
| بيا به پوره وركولې شي هر سړي ته بدله دهغه عمل چې كړي ئې وي او پېدوئ به هيڅ ظلم نشي كولې |

﴿فَإِن لَّمۡ تَفۡعَلُواْ فَأۡذَنُواْ﴾ دا سخت وعيد دې سود خورته د ((فأذنوا)) معنى ده ((ايقنوا)) يعنې خبرشئ او تيارشئ د الله ﷻ او رسول ((صلى الله عليه وسلم)) جنگ ته. اسلامى بادشاه داحكامو شرعيؤ په نافذ كولو كښې د الله ﷻ اورسول نائب وى نو ددې وجه نه به هغه دسود خور سره قتال كوى نو كه چرې سود خور سود حلال گنړى نو دا مرتد دې نو د ارتداد په وجه به ورسره قتال كوى او كه حلال ئى نه گنړى نو باغى دې نو دبغاوت په وجه به ورسره قتال كوى.

﴿وَإِن تُبۡتُمۡ فَلَكُمۡ رُءُوسُ أَمۡوَٰلِكُمۡ﴾ يعنې چه تاسو چاته قرض وركړې وى او دسود نه خو مو توبه وكړه نوتا سورأس المال اخيستې شئ ليكن زيات به نه اخلئ ﴿لَا تَظۡلِمُونَ وَلَا تُظۡلَمُونَ﴾ رأ س المال به ځكه اخلئ چه په تاسو ظلم ونشى يعنې كه رأس المال در نكړې شى نو دا په تاسو ظلم دې او زيات له رأس المال نه به ځكه نه اخلئ چه تاسو په بل چاظلم ونكړى، يعنې دخپل اصلى رأ س المال نه زيات اخستل ظلم دې، پدې تفصيل سره يو مغالطه دفع شوه چه بعضې خلق وائى چه دبينك په سود كښې په چا ظلم نشته بلكه دواړوته گټه ده نوپكارده چه دا دې جائزشى . **جواب** دادې چه دخپل رأس المال نه زيات اخستلوته قرآن ظلم ويلې دې

١ - دسودخورو دپاره تخويف دنيوي.

٢ - تخويف اخروي.

نو د **بینک والا سود هم ظلم دي** او پدې آیت کښې ددې خبرې بیان دې چه دظالم کیدلو اومظلوم کیدلو دواړونه ځان ساتل پکاردي.

**﴿وَإِن كَانَ ذُو عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ﴾** یعني که مقروض تنګدست وی اومقرره میعاد باندې قرض نشی اداء کولې نوتاسو دسود خورو پشان طریقه مکوئ چه دسود لپاسه سود اخلئ بلکه مهلت ورکوئ ترهغه وخت پورې چه هغه قادرشی په قرض اداکولوباندې . «وان کان» کښې «کان» تامه دې او «ذوعسرة» ئې اسم دې اوددینه مراد مدیون دې «فنظرة» جزاء د شرط دې اوفعل پکښې مقدر دې «ای فیجب نظرة» یا «الواجب نظرة» یا «فعلیکم نظرة» .

او په حدیث کښې ددې ډیرفضائل راغلی دی، په یوحدیث کښې داسې راغلی دی چه مفهوم ئې دادې چه څوك دا غواړی چه دهغه په سرباندې دالله تعالی درحمت سورې وی په داسې ورځ (یعنی دقیامت په روځ) چه دالله تعالی درحمت دسوری نه علاوه بل هیڅ سورې نه وی نوهغه لره پکاردی چه دتنګدست مقروض سره نرمی وکړی یا دې معاف کړی، اوپه بل روایت کښې دی چه څوك مفلس مدیون ته مهلت ورکړی نوده ته هره ورځ د دومره صدقی برابر ثواب ملاویږی چه کومه دمدیون په ذمه ده، په بل روایت کښې دی چه څوك دا غواړی چه دده دعاء قبوله شی یا یی مصیبت لرې شی نوده لره پکار دی چه تنګدست مدیون ته مهلت ورکړی.

**﴿وَأَن تَصَدَّقُواْ﴾** ددینه مراد قرض معاف کول دی خوتعبیر ترینه په صدقې سره وشو چه اشاره شی چه معافی په حکم دصدقې کښې ده دثواب په اعتبارسره.

**﴿وَاتَّقُواْ يَوْمًا﴾** پدې آیت کښې د بدو اعمالو نه دبچ کیدلو او د نیکو اعمالو دکولو ترغیب دې اودیته اشاره ده چه که تاسو دا غواړئ چه په قیامت کښې الله ﷻ تاسو سره د آسانئ معامله وکړی نو دخپلومقروضینوسره په دنیاکښې آسانی کوئ، او دا آیت په قرآن پاك کښې دټولونه آخری آیت دې، ددې د نزول نه نهه ۹ ورځې بعد یا ۳۱ ورځې بعد حضور ﷺ وفات شوې دې «انا لله وانا الیه راجعون»

يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا تَدَايَنْتُمْ بِدَيْنٍ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى فَاكْتُبُوْهُ ۭ وَلْيَكْتُبْ

اې مومنانو! کله[1] چې تاسو معامله کوئ د قرض د نیټې مقررې پورې نو لیکئ ئې، او ولیکل دې اوکړي

بَّيْنَكُمْ كَاتِبٌۢ بِالْعَدْلِ ۠ وَلَا يَاْبَ كَاتِبٌ اَنْ يَّكْتُبَ كَمَا عَلَّمَهُ اللّٰهُ

ستاسو په مینځ کښې یو لیکونکې په انصاف سره، او منع دې نه کوي لیکونکې د لیکلو نه لکه چې زده کړې دې دۀ ته الله

فَلْيَكْتُبْ ۚ وَلْيُمْلِلِ الَّذِيْ عَلَيْهِ الْحَقُّ وَلْيَتَّقِ اللّٰهَ

نو دې اولیکي، او په کاتب د املاء یعني لیکل اوکړي هغه سړې چې دهغه په ذمه دې قرض او یریږی دې د الله نه

رَبَّهٗ وَلَا يَبْخَسْ مِنْهُ شَـيْـــًٔا ۭ فَاِنْ كَانَ الَّذِيْ عَلَيْهِ الْحَقُّ سَفِيْهًا اَوْ ضَعِيْفًا

چې رب دده دې او ونۀ دې کموي دحق نه هیڅ څیز، پس کچرې وي هغه کس چې په هغه قرضه وه، کم عقل یا ضعیف

اَوْ لَا يَسْتَطِيْعُ اَنْ يُّمِلَّ ھُوَ فَلْيُمْلِلْ وَلِيُّهٗ بِالْعَدْلِ ۭ وَاسْتَشْهِدُوْا

یائې طاقت نۀ وي دده چې بیان او اقرار اوکړي، دې، نو اقرار د اوکړي ولي (وکیل) دده په انصاف سره. او گواهان نیسئ

شَهِيْدَيْنِ مِنْ رِّجَالِكُمْ ۚ فَاِنْ لَّمْ يَكُوْنَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَّامْرَاَتٰنِ مِمَّنْ

دوه گواهان دسړو ستاسې نه، پس کچرې نه وي دوه سړي نو گواهي دې کوي یو سړې او دوۀ ښځې دهغه چانۀ

تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَاۗءِ اَنْ تَضِلَّ اِحْدٰىهُمَا فَتُذَكِّرَ اِحْدٰىهُمَا الْاُخْرٰى ۭ

چې ستاسو خوښ وي گواهان، ددې وجې نۀ چې که هیره شي یو دد واړونه نو یاد گیرنه به کوي یو ښځه بلې ښځې ته

وَلَا يَاْبَ الشُّهَدَاۗءُ اِذَا مَا دُعُوْا ۭ وَلَا تَسْــَٔـــمُوْٓا اَنْ تَكْتُبُوْهُ صَغِيْرًا

او منع دې نۀ کوي گواهان چې راؤبللې شي، او مه سترې کیږئ د دینه چې تاسو اولیکئ د اقرض وړوکې معامله وي

اَوْ كَبِيْرًا اِلٰٓى اَجَلِهٖ ۭ ذٰلِكُمْ اَقْسَطُ عِنْدَ اللّٰهِ وَاَقْوَمُ لِلشَّهَادَةِ

یا غټه د نیټې دهغې پورې، دا لیکل ستاسو بنه انصاف دې په نیزد الله او ډېر محکم دې د پاره د گواهئ

وَاَدْنٰٓى اَلَّا تَرْتَابُوْٓا اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً حَاضِرَةً تُدِيْرُوْنَهَا بَيْنَكُمْ

او ډېر نژدې دې د دېته چې شک به نۀ کوي، مگر دا چې وي معامله لاس په لاس چې تاسو گرځوئ په مینځ خپل کښې

---

١- د انتظامي امورو بیان بعد د جهاد او انفاق نه.

فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَلَّا تَكْتُبُوْهَا ؕ وَاَشْهِدُوْٓا اِذَا تَبَايَعْتُمْ

پس نشته دې په تاسو هيڅ گناه چې اونه ليکئ هغه، اوشاهدان نيسئ په هغه وخت کښې چې خرڅول اخيستل کوئ

وَلَا يُضَآرَّ كَاتِبٌ وَّلَا شَهِيْدٌ ؕ وَ اِنْ تَفْعَلُوْا فَاِنَّهٗ فُسُوْقٌ بِكُمْ ؕ

اوضرور دې نشي رسولې کاتب ته اونه گواه ته، اوکه تاسو اوکړو داکار پس بېشکه داکار دگناه ستاسونه دې

وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ وَ يُعَلِّمُكُمُ اللّٰهُ ؕ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ۝ وَاِنْ كُنْتُمْ عَلٰى سَفَرٍ

اوويرېږئ د الله نه، اوتاسوته تعليم درکوي الله داحکامو، اوالله په هرڅيزعليم دې . اوکچرې وئ تاسوپه سفرباندې

وَّلَمْ تَجِدُوْا كَاتِبًا فَرِهٰنٌ مَّقْبُوْضَةٌ ؕ فَاِنْ اَمِنَ بَعْضُكُمْ

اوانه مومندوتاسوليکونکې پس وثيقه گانړه ده چې قبض شوي وي، پس کچرې اعتماد کړې وڼ بعضې ستاسو

بَعْضًا فَلْيُؤَدِّ الَّذِى اؤْتُمِنَ

په بعضې باندې (اورهن ئې نه وؤاخيستې) نو پوره پوره دې اداکړي هغه خوک(مديون) چې اعتماد پرې کړې شوېدې

اَمَانَتَهٗ وَلْيَتَّقِ اللّٰهَ رَبَّهٗ ؕ وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ ؕ وَ مَنْ يَّكْتُمْهَا

امانت (دين)خپل او ودې يرېږي دالله نه چې رب ددهٔ دې، اومهٔ پټوئ گواهي، اوچاچې پټه کړه دا

فَاِنَّهٗٓ اٰثِمٌ قَلْبُهٗ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِيْمٌ ۝

نوپس بېشکه دې چې دې گناهکار دې زړه دهغه، اوالله په هغې چې تاسوئې کوئ عالم دې

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا﴾ دا ذکر د امورانتظاميو دې رابعا په تفصيل سره اودې آيت ته ((**آية المداينه**)) ويلې شی، او دا په قرآن پاك کښې د ټولو آياتونونه زيات طويل آيت دې، په ډيرو احکامو مشتمل دې.

﴿إِذَا تَدَايَنتُم بِدَيْنٍ﴾ يعنې کله چه تاسو معامله ددين کوئ يعنی اُدهار((قرض))، دا عام دې چه په مبيع کښې ادهار ((قرض)) وی اوکه په ثمن کښې، **تجارتی معامله په څلورقسمه ده** :
(۱) بيع العين بالعين: يعنې لاس په لاس ، ددې قسم ذکرپه ﴿إِلَّآ أَن تَكُونَ تِجَٰرَةً حَاضِرَةً﴾ کښې راځی ، (۲)بيع الدين بالدين : چه ثمن اومبيع دواړه ادهار وی . داقسم بيع ناجائزده ((نهى رسول الله ﷺ عن بيع الکالی بالکالی)) (۳) بيع العين بالدين : يعنی مبيع فی الحال اونقد وی اوثمن ئې فی المآل وی . (۴) بيع الدين بالعين : يعنې ثمن فی الحال اونقد وی اومبيع فی المآل وی، ديته بيع سلم ويلې شی . ددې دواړوقسمونوحکم پدې آيت کښې بيان شويدې يو

دا چه پدې کښې به اجل يعنې نيټه معينه وی **او دويم** دا چه دا وليکلې شی. اوداحکم چه «**فاکتبوه**» دې . د استحباب لپاره دې.

﴿وَلْيَكْتُب بَّيْنَكُمْ كَاتِبٌ بِالْعَدْلِ﴾ دا بيان دکيفية دکتابت مامور به دې يعنې کاتب دې، مسلمان، عالم او ديندار وی او د عدل او انصاف نه دې کار اخلی ، د يوجانب طرفداری او د بل نقصان دې نکوی. ﴿وَلَا يَأْبَ كَاتِبٌ﴾ دا دکاتب لپاره هدايت دې چه انکاردې دکتابت نه ، نه کوی. ﴿كَمَا عَلَّمَهُ اللَّهُ﴾ ای لاجل ماعلمه الله تعالی، ددينه معلومه شوه چه کتابت علم شرعی او احسان ربی دې. ﴿وَلْيُمْلِلِ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ﴾ پدې کښې بيان ددې خبرې دې چه دتحرير اودستاويز ليکلو ذمه داری اوخرچه په مديون باندې ده ځکه چه دا په منزله د اقرار دې او اقرارپه هغه چادې چه په هغه باندې حق وی «يملل» د املال نه مشتق دې او املال «القاء علی الکاتب مايکتبه» ته وائی د املال فعل ماضی «امللتُ» راځی نوپه مضاعف کښې کله دويم حرف په ياء سره بدليږی اوپه مصدرکښې چه په ياء سره بدل شی نو بيا دغه ياء په همزه سره بدليږی د وقوع فی الطرف دوجې نه نو داملاء اواملال يوه معنی ده، يعنی کاتب ته ويل اوپه هغه باندې ليکل. ﴿وَلْيَتَّقِ اللَّهَ﴾ يعنې مديون دې الله ﷻ نه خوف کوی اوپه اقرار دحق کښې دې کمې نه کوی . ﴿فَإِن كَانَ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ﴾ ددينه مراد مديون دې چه په ماقبل کښې ذکرشوې ؤودا موضع د اضمار وه خو تصريح پرې د زيادة الکشف لپاره شوې ده.

﴿سَفِيهًا﴾ کم عقل چه مال بيځايه خرچ کوی، ﴿أَوْ ضَعِيفًا﴾ کمزورې چه صغير وی يا ډير بوډا وی ﴿أَوْ لَا يَسْتَطِيعُ أَن يُمِلَّ هُوَ﴾ طاقت نه لری د بيانولو کاتب ته ځکه چه ګونګې وی يا په لغت عالم نه وی ﴿وَلِيُّهُ﴾ نه مراد وکيل او مترجم دې او په ﴿وَاسْتَشْهِدُوا شَهِيدَيْنِ﴾ سره اشاره ده عدد ته په شهادت کښې چه اقل نصاب دشهادت دوه دی . ﴿مِن رِّجَالِكُمْ﴾ حر، عاقل، بالغ، مسلمان به وی اوپه ﴿مِمَّن تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَاءِ﴾ کښې اشاره ده عدالت اوتقویٰ دګواهانوته. ﴿فَإِن لَّمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ﴾ ددينه مراد نفی العموم ده اوعموم النفی نده مراد.

﴿فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ﴾ ای فليشهد رجل وامرأتان. ﴿أَن تَضِلَّ إِحْدَاهُمَا﴾ د «اَنْ تَضل» نه مراد نسيان (هيره ول) دی او دا علت دې لپاره داعتبار دتعدد يعنې ((مرأتين ای اعتبارالتعدد فی المرءة لاجل ان تضلّ ـــ ـ اَیْ لاجلِ اِن ضلتْ ای نسيتْ احديهما فتذکر ـــ)) اوپدې کښې اشعار دې چه دښځوعقل اوضبط کم دې نوچه دوه وی نوضبط به مکمل وی اوعلت په حقيقت کښې ﴿فَتُذَكِّرَ﴾ دې ليکن چونکه نسيان سبب دې دتذکر لپاره نو دا هم علت وګرزولې شو ﴿وَلَا

﴿وَلَا يَأْبَ ٱلشُّهَدَآءُ إِذَا مَا دُعُوا۟﴾ اداء دشهادت واجبه ده اوتحمل دشهادت واجب ندې خو په بعضې صورتونو کښې هغه هم کله واجب شی نو که دلته اداء دشهادت مراد شی نو دا حکم وجوبی دې اواطلاق دشاهد حقیقة دې، اوکه تحمل دشهادت مراد شی نو بیا دا حکم استحبابی دې اواطلاق د شاهد پرې په اعتبار د مایؤل الیه سره دې. ﴿وَلَا تَسْـَٔمُوٓا۟﴾ یعنې هره معامله لیکل پکاردی خواه که وړوکې معامله وی اوکه غټه معامله وی لپاره ددې چه شك پیدا نه شی اوجګړې اوخفګان ته ونه رسیږی، اوشهادت آسان شی او په ﴿أَلَّا تَرْتَابُوٓا۟﴾ کښې اشاره ده دیته چه په وخت دخطرې دجګړې او د اختلاف پیدا کیدلو کښې دغه مذکور احکام واجب دی.

﴿إِلَّآ أَن تَكُونَ تِجَـٰرَةً حَاضِرَةً﴾ ای یدًا بید ،لاس په لاس معامله کښې ګواهانو ته حاجت نشته دې ﴿وَأَشْهِدُوٓا۟﴾ دا امر د استحباب لپاره دې ﴿وَلَا يُضَآرَّ كَاتِبٌ﴾ دا صیغه یا د معلوم ده یعنې کاتب اوګواه دې چا ته ضرر نه رسوی په غلط لیکلو او ګواهی سره، یا دا چه ډیر اجرت دې نه غواړی یا صیغه دمجهول ده، یعنی کاتب اوګواه ته به ضررنشی رسولې چه هغوئ ته خرچ او اجرت ورنکړې شی.

﴿وَإِن كُنتُمْ عَلَىٰ سَفَرٍ وَلَمْ تَجِدُوا۟ كَاتِبًا فَرِهَـٰنٌ مَّقْبُوضَةٌ﴾ «ای فالذی یستوثق به رِهانٌ» په رهان کښې قید دسفر او دکاتب دنه موندلو قید اتفاقی دې، او رهن په حضرکښې هم جایز دې اوکه کاتب موندلې شی نوهم جائز دې، په حدیث کښې راغلی دی چه نبی ﷺ په مدینه منوره کښې د یو یهودی سره خپله زغره ګانړه ایښې وه په عوض د دیرش اوړی «صاع» اوربشو کښې ، اومرهون شې صرف وثیقه وی اونفع ترینه اخستل جائز ندی.

﴿فَإِنْ أَمِنَ بَعْضُكُم﴾ یعنې که د اعتماد په وجه لیکل ونه کړی اوګانړه وانه خلی نو پکارده چه مدیون دې دامانت یعنې قرض ادا کولو زیات اهتمام وکړی او د الله ﷻ نه دې ویریږی ﴿ءَاثِمٌ قَلْبُهُۥ﴾ «قلبه» فاعل د «آثم» دې قلب ته نسبت وشو د مبالغې لپاره څکه قلب رئیس داعضاؤ دې نو چه دې آثم شو نو ټول بدن آثم شو .

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لِلّٰهِ | مَا | فِي | السَّمٰوٰتِ | وَمَا | فِي | الْأَرْضِ ط | وَ إِنْ تُبْدُوْا |
| خاص (۱) الله لره دي هرهغه څه چې په آسمانونو کښې اوهرهغه څه چې په زمکه کښې دي. اوکه تاسوښکاره کوئ | | | | | | | |
| مَا | فِيْٓ | أَنْفُسِكُمْ | أَوْ تُخْفُوْهُ | يُحَاسِبْكُمْ | بِهِ | اللّٰهُ ط | |
| هغه (۲) څه چې ستاسوپه زړونو کښې دي يائې پټ ساتئ نوحساب به کوي ستاسوسره په هغې باندې الله | | | | | | | |
| فَيَغْفِرُ | لِمَنْ | يَّشَآءُ | وَيُعَذِّبُ | مَنْ | يَّشَآءُ ط | وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ | قَدِيْرٌ |
| پس بخښنه کوي هغه چاته چې ئې خوښه شي اوعذاب ورکوي هغه چاته چې ئې خوښه شي اوالله په هرڅيزقادردي | | | | | | | |

﴿لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ﴾ دا دليل عقلي دې په توحيد باندې اوپه ﴿اٰمَنَ الرَّسُوْلُ﴾ کښې دمسئلې درسالت ذکردې. او ﴿لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا ۚ لَهَا مَا كَسَبَتْ﴾ الايه - کښې دجهاد، او انفاق ذکر.ضمنًا دې نو ګوياکښې **تمام مضامين دسورت معاد شو**، په «لله» کښې نفی دشرك فی التصرف ده يعنې دآسمانونو والؤ «ملائك» او د زمکې والؤ «انبياء اولياء وغيره» تصرف او واك خاص الله تعالى لره دې يعنې په کل کائناتو کښې تصرف کونکې صرف الله ﷻ دې بل څوك نشته دې، دا معنى د «لااله الاالله» ده.

﴿وَإِن تُبْدُوا﴾ يعنې که ښکاره کوئ په ژبه سره يا په عمل سره ﴿مَا فِيٓ أَنفُسِكُمْ﴾ هغه څه چه په زړونو کښې دی مثلا کفر،شرك په زړه کښې دې اوپه ژبه ئی څوك اظهاروکړی ياپه زړه کښې کبراوحسد دې اوعمل يا لسان سره ئی څوك اظهاروکړی ﴿أَوْ تُخْفُوهُ﴾ يا دغه امورپه زړه کښې پټ ساتئ ﴿يُحَاسِبْكُم بِهِ اللّٰهُ﴾ يعنې ددغه معاصی ؤ حساب به کيږی، اودحساب نه بعد چه کوم قابل دمعاف کيدلو وی نو دهغې معافی به الله ﷻ کوی هغه چاته چه وغواړی اوکه وغواړی نوعذاب به ورکړی، اود ﴿لِمَن يَشَآءُ﴾ او﴿مَن يَشَآءُ﴾ نه معلومه شوه چه معافی کول اوثواب ورکول ياعذاب ورکول واجب ندی په الله ﷻ باندې.

﴿وَاللّٰهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ نوپه معافی هم قادر دې اوپه عذاب ورکولو هم قادردې

په غير اختيارى امورو اوغيراختيارى تصوراتو او وساوسو باندې مؤاخذه اوعقاب

---

۱ - دليل عقلي په توحيد

۲ - اختياري عقائد مراد دي په قرينه دماقبل اومابعدسره.

نشته دي. دنبی ﷺ ارشاد دي ((ان الله تجاوزعن امتي ماحدثت به انفسهامالم تعمل اوتتكلم)) او د وساوسو په باره کښې ئی فرمايلی دی « ذاك صريح الايمان» اوپه عزم قلبی دګناه باندې مؤاخذه شته دې. لقوله تعالی ﴿وَلَٰكِن يُؤَاخِذُكُم بِمَا كَسَبَتْ قُلُوبُكُمْ﴾ . ليکن عزم دګناه کولو امر اختياری دې غلماء وائی چه د ارادې او دقصد ،مراتب پنځه دی :

۱- هاجس چه ديوعمل کولوتصوررزړه ته راشی اوقرارنه شی ، ۲- خاطر . دا هغه تصوردې چه لږ شان قرارپکښې وی، ۳- حديث النفس : دا هغه دې چه ديوعمل کولوتصور باربارزړه ته راشی، دا درې واړه که دګناه وی نومواخذه ئی نشته اوکه دنيکئ وی نوځه ثواب ئی نشته دې، ۴- هَمْ : داهغه دې چه ديوعمل کولواراده وشی، البته ډيره محکمه نه وی نوکه (هم) دنيکی وو نو ثواب پرې ملاويږی اوکه (هم) دګناه وو نو مواخذه پرې نشته دې. ۵- عزم : محکمه اراده ديوعمل ته وائی اوپدې باندې ثواب اوعقاب دواړه مرتب دی . شعر :

مراتب القصدِ خَمْسٌ هاجس ذكروا فخاطِرٌ فحديثُ النفس فاستمعا

يليه هَمٌّ و عزمٌ كلّها رُفِعَتْ سوى الاخير ففيه الاخذُ قدوقعا

ددې آيت په باره کښې دمفسرينودوه رأی دی : اول دا چه دا آيت منسوخ دې په مابعد آيت سره په روايت دمسلم کښې دی چه دحضرت ابوهريرة ﷺ نه مروی دی چه کله دا آيت نازل شو «وان تبدواماف انفسکم ــ الايه» نو دا ګرانه شوه په صحابه ؤ ﷺ باندې نو را غلل دحضور ﷺ حضورته اوعرض ئی وکړوچه (تراوسه پورې) مونږمکلف ؤو په هغه اعمالو چه مونږ دهغې طاقت لرلو چه «صلوة، صوم، جهاد، صدقه» دی، خواوس الله ﷻ په تا باندی دا آيت نازل کړو اومونږ ددې طاقت نه لرو. نونبی ﷺ دوئ ته اوفرمايل چه آيا تاسو دا اراده کوئ چه ووائی په مثل دهغې چه اهل کتابو ويلی ؤو «سمعنا وعصينا»، بلکه تاسو داسې وائی چه «سمعنا واطعنا غفرانك ربنا واليك المصير». نو دوئ دا شروع کړو او ژبې يې وسره مانوس شوې نوالله ﷻ ورستو بيا دا آيت نازل کړلو. ﴿ءَامَنَ ٱلرَّسُولُ﴾ اوبيامنسوخ کړوالله ﷻ دغه حکم اونازل ئی کړو داحکم چه ﴿لَا يُكَلِّفُ ٱللَّهُ نَفْسًا﴾ الايه. اوپه بخاری شريف کښې روايت دې د مروان اصغر نه چه دبعضې اصحابو ﷺ نه يې کړې دې چه غالباً ابن عمر دې هغه وائی چه «وان تبدواماف انفسکم» منسوخ دې په مابعد آيت سره.

دويم ليکن شاه ولی الله ﷫ اونورمحققين وائی چه دلته ناسخ منسوخ نشته دې بلکه

بیان اومبیّن، مفسر اومفسّر دی، یعنې په مخکښې آیت کښې اجمال ؤو اوپه حسب دظاهرسره غیر اختیاری تصوراتوته هم شامل ؤو، او دصحابو ﷺ تقوی، خشیة الهی ډیر زیات ؤو نو دوئ دخپلې خطرې اظهاروکړو، اونبی ﷺ ورته د ثُبات علی التقوی لپاره وفرمایل چه تاسو دا وایئ: «سَمِعنا واطعنا ــ الایه» او بیا چه الله تعالی نازل کړو دا آیت «لایکلف الله نفسًا ــ الایه» نو دا بیان او تفسیر شو. یعنی «ما فی انفسکم» اگرچه عام دې خو دلته ترینه مراد اختیاری اعتقادات دی لکه کفر، شرك وغیره.

| آمَنَ الرَّسُوْلُ بِمَآ اُنْزِلَ اِلَیْهِ مِنْ رَّبِّهٖ وَالْمُؤْمِنُوْنَ ۭ كُلٌّ |
|---|
| ایمان[1] راوړې دې رسول په هغه څه چې نازل کړې شوي دي ده ته دطرفه درب دده نه اومومنان هم، ټولو |
| اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَمَلٰۗىِٕكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ ۣ |
| ایمان راوړې دې په الله باندې اوپه ملائکو دالله باندې اوپه کتابونودالله اوپه رسولانودالله(وائي دوئ) |
| لَا نُفَرِّقُ بَیْنَ اَحَدٍ مِّنْ رُّسُلِهٖ ۣ وَقَالُوْا سَمِعْنَا |
| چې فرق نه کوؤمونږ په مینځ دهیڅ یوکس کښې دپیغمبرانو نه، اووائ دوئ چې واوریدومونږ(قول درب) |
| وَاَطَعْنَا ۡ غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَ اِلَیْكَ الْمَصِیْرُ ۝ |
| او تابعداري کوؤمونږ دامر د رب، غواړو بخښنه د ستانه ، یاربه زمونږه ، اوتاته زمونږ درتلل دي |

﴿ءَامَنَ ٱلرَّسُولُ﴾ دا ذکر د مسئله رسالت دې، او بیان د مدح درسول الله صلی الله علیه وسلم او د صحابؤ دې. هرکله چه دوئ «سمعنا واطعنا» وویل نو الله ﷻ ئی مدحه وکړه. دا دوه آیاتونه دسورة بقرې آخری آیتونه دی **اوپه حدیث کښې ددې ډیرفضائل راغلیدی**.

په یوروایت کښې دی چه ((من قرأ هما فی لیلة کفتاه)) څوك چه دا ولولی نوده لره کافی شی یعنې دقیام اللیل اوتهجدو قائم مقام گرځی، یا دا چه دحفاظت لپاره کافی شی. یا دمطالبې دقرآن نه کافی شی. اود ابن عباس ﷺ روایت دې چه نبی ﷺ فرمایلی دی چه دا دوه آیتونه الله ﷻ دجنت دخزانونه نازل کړیدی څوك چه دا دماسخوتن د مانځه نه بعد لولی نودده لپاره دقیام اللیل یعنی دتهجدو قائم مقام کیږی، په بل روایت کښې دی چه الله ﷻ سورة بقره په

---

[1] یعنې په دې مسئله چې توحید بآندې پیغمبران اومؤمنان هم ایمان لري.

داسې دوه آياتونو سره ختم کړيده چه هغه ئې ماته دهغه خاص خزانې نه راکړيدی چه هغه تحت العرش ده، نولهذا تاسو دا آيتونه پخپله زده کوئ او خپلو زنانو او بچوته ئې ښائي.

﴿ وَٱلْمُؤْمِنُونَ ﴾ داعطف دې په «الرسول» باندې او ددې اولين مصداق صحابه کرام ﷺ دی او بيانور مؤمنان دی. ﴿ كُلٌّ ءَامَنَ بِٱللَّهِ ﴾ دا تفصيل دايمان دهغوئ دې ﴿ لَا نُفَرِّقُ ﴾ له دې نه فرق په ايمان کښې مراد دې يعنې داسې فرق نه کوو چه په بعضو ايمان راوړو او په بعضو کفروکړو بلکه په ټولو باندې ايمان لرو ﴿وَقَالُوا﴾ داعطف دې په «آمن» باندې.

اود ﴿سَمِعْنَا﴾ نه مراد دايمان قبوليت دې يعنی مونږ ايمان قبول کړيدې اود ﴿وَأَطَعْنَا﴾ نه مراد عمل کول دی، په ايمان کښې دا دواړه څيزونه ضروری دی، ﴿غُفْرَانَكَ﴾ ای نطلب غفرانك يانستغفرك غفرانا، اوپدې کښې دخپل قصور اقرار دې ﴿وَإِلَيْكَ ٱلْمَصِيرُ﴾ بعد د موت نه ابتداء له تا نه ده او انتهاء تا ته ده.

لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا ۚ لَهَا مَا كَسَبَتْ

نۀ واجبوي الله په هيڅ نفس باندې مگر هغه مقدار چې دې ئې طاقت لري. دَ دې نفس دپاره دې ثواب دَهغه نيکی چې ده کړې وي

وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ ۗ رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَا إِن نَّسِينَا

اوپهٔ دهٔ باندې دې وبال دهغه گناه چې ده کړې وي. ياربهٔ زمونږ مه نيسه مونږ[1] که هيرکړو مونږ حکم ستا

أَوْ أَخْطَأْنَا ۚ رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَا إِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهُ عَلَى الَّذِينَ

يا خطا اوکړو مونږ ياربه زمونږ او مه اچوه په مونږ باندې درون بار لکه اچولې وۀ تاپه هغه کسانو

مِن قَبْلِنَا ۚ رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهِ ۖ

چې مخکښې ووزمونږ نهٔ. ياربه زمونږ اومهٔ بار کوه په مونږ هغه چې دهغې دبرداشت کولو طاقت نهٔ وي مونږ لره

وَاعْفُ عَنَّا ۗ وَاغْفِرْ لَنَا ۗ وَارْحَمْنَا ۚ أَنتَ مَوْلَانَا فَانصُرْنَا

اوعفو اوکړه مونږ نهٔ. اوبخښنه اوکړه مونږ تهٔ. اورحم اوکړه په مونږ، تهٔ ئې زمونږ مددگار نوغلبه راکړه مونږ نهٔ

عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ ۝

پهٔ قوم کافرانو باندې

١ - دتوحيد منلونهٔ بعد دالله ﷻ نه ددعا غوښتلو طريقه

﴿ لَا يُكَلِّفُ ٱللَّهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا ﴾ دا آيت دماقبل لپاره تفسيردي بناء په قول راجح باندې **دتکلیف معنی** داده چه : «الزام مافيه كلفة ومشقة» يعنې په چا باندې داسې كار واجبول چه په هغې كښې مشقت وی او «وُسع» دانسان طاقت اوقدرة ته ويلې شی او دارنګه «مايسهل من المقدور» ته هم ويلې شی يعنې دالله ﷻ سنت دادې چه په چاباندې داسې فعل نه لازموی چه هغه ئ طاقت نه لری بلکه هغه فعل لازموی چه طاقت ئی لری، ياپرې آسان وی لکه پنځه مونځونه چه بنده د شپږو طاقت هم لری يا روژه درمضان چه بنده دزيات طاقت هم لری.

﴿ لَهَا مَا كَسَبَتْ ﴾ لام د انتفاع لپاره دې اود«ما» نه مراد خيراونيكی ده يعنی دنيكئ نفع صرف بنده ته رسيږی نه الله ﷻ ته ځکه هغه مستغنی ذات دې.

﴿وَعَلَيْهَا مَا ٱكْتَسَبَتْ ﴾ «على» د اضرارلپاره دې اودلته د«ما» نه مراد شر اوګناه ده يعنې دګناه وبال اوضرر صرف بنده ته رسيږی د «لها» اود «عليها» تقديم دحصر فائده کوی، دحسناتوسره لام ذکرشو چه دانتفاع لپاره دې نواشاره شوه ديته چه حسنات نافع دی په دارينوکښې اودَ ذکر دَ سيئاتو سره «على» ذکرشوچه د اضرار لپاره دې پدې کښې اشاره شوه چه په معصيت كښې د دارينو ضرردې.اودحسناتوذکرسره«کسبت»» فعل دمجرد ذکرشو نو پدې کښې اشاره ده چه حسناتو کولو کښې تکلف نشته اودسيئاتو د ذکرسره «اکتسبت» فعل دمزيدو ذكرشو چه دلالت كوی په تكلف باندې نو پدې كښې اشاره ده ديته چه په سيئاتوكولوكښې تكلف دې ځکه سيئات خلاف فطرت اوخلاف د امر دالله ﷻ نه دی (قرطبی)

قاضی بيضاوی اوصاحب دروح المعانی وائی چه په كسب دشركښې دنفس دخل وې اونفس جاذب د شروی نوپه كسب دشركښې مبالغه زياته وی دكسب دخيرنه نو ددې وجې نه په يوځائ كښې مجرد ذكرشو او په بل ځائ كښې مزيد ، اوبعضې وايی چه دلته داعمالو جزا اوبدلې ته اشاره ده. اوحسنات دكولوپه لحاظ سره اګركه ګران دی خو د ثواب اوبدلې په اعتباز سره آسان دی اوسيئات دكولوپه لحاظ سره آسان دی خو د جزا او بدلې په لحاظ سره ګران دی. ﴿رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَآ ﴾ دا دمؤمنانومقوله ده يعنې مؤمنان داوائی چه «سمعنا واطعنا — الايه» او داسې وائی «ربنالاتؤاخذنا» يادلته كښې «قولوا» مقدر دې نوپدې كښې ارشاد اوتعليم دسوال دې.

﴿إِن نَّسِينَآ أَوْ أَخْطَأْنَا﴾ دنسيان نه مراد ترك دحسناتو دې اوخطأ نه مراد غلطی كول دی

په فعل دحسناتو كنبې. يا د خطأ نه مراد معاصي كول دي ﴿إِصْرًا﴾ «اصر» ضيق اوحبس ته وائي او ددينه مراد هغه تكاليف شاقه دي چه په بني اسرائيلو باندې ؤو لكه قطع دموضع دنجاست د ثوب (جامو) نه اوقتل دنفس خپل دقبول د توبې لپاره، يا لكه بني اسرائيل چه مسخ شوي ؤو اوقرده اوخنازير ترينه جوړشوي ؤو، ياترينه مراد هغه گناه ده چه قابل دمعافئ نوي لكه شرك يعني اې الله مونږ دشرك اوكفرنه بچ وساتې «اى اعصمنا من اقترافه» «روح».

﴿كَمَا حَمَلْتَهُ﴾ ((اى حملاً كماحملته على الذين من قبلنا اواصراً مثل الاصر الذى حملته على من قبلنا من قتل النفس فى التوبة اوفى القصاص بحيث لايجوز غيره وقطع موضع النجاسة من الثياب وغيرهاوقيل مطلقا صرف رُبع المال فى الزكوة)).

﴿وَلَا تُحَمِّلْنَا﴾ دلته باب تفعيل ځكه ذكرشوچه متعدي شي مفعو ل ثاني ته.

﴿مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهِۦ﴾ دا مفعول ثاني دې اوددينه مراد هغه سخت ابتلاء اومصيبتونه دي چه په انسان باندې راځي اوخصوصاً په وقت ددعوة وركولو دحق كنبې.

﴿وَٱعْفُ عَنَّا وَٱغْفِرْ لَنَا وَٱرْحَمْنَآ﴾ ددې درې وارو په مينځ كنبې فرق دادې چه «عفو» ترك العقوبة دې په گناه باندې او«غفر» ستر دقبيح اودمعصيت دې او«رحم» وركول دنعمت دي په ارتكاب دگناه اودقبيح باندې كه چرې الله جل جلاله عقوبت وركوي نودير اشد اوگران دى دبنده لپاره نوځكه اول سوال دعفو وشو، اوبيا اظهار دگناه دبنده اودقبائحو دبنده نورو مخلوقاتوته خصوصاً په يوم الحشركنبې بياهم ډيرسخت اوگران شې دې نو ددې وجې نه دعفو نه بعدسوال دمغفرت وشو د «غفر» معنى ده ستر، اوكه الله ﷻ په گنا باندې سزاورنه كړي اوپه گناه باندې پرده واچوي ليكن چه نوراحسانات نه كوي نوبياهم بنده تباه اوبرباد دې نو ددې وجه نه درحم سوال وشوو. ياد «وعف عنا» تعلق دسكرات الموت سره دې «اى واعف عنا فى سكرات الموت» او «وغفرلنا» تعلق دقبرسره دې «اى فى كلمة القبور» اود «وارحمنا» تعلق ديوم النشور سره دې.

﴿أَنتَ مَوْلَىٰنَا﴾ مولى په معنى د مالك اوسيّد سره دې ياپه معنى دمدد گاراومتولى داموروسره دې.

﴿فَٱنصُرْنَا عَلَى ٱلْقَوْمِ ٱلْكَٰفِرِينَ﴾ په وخت دمحاربه اوجنگ كنبې دكفاروسره، ياپه وقت دمحاجې اومناظرې كنبې د اهل باطلوسره.

تمت سورة البقرة بفضل الله وبكرمه

| رکوع | سورة آل عمران مدنية | آیتونه |
|---|---|---|
| ۲۰ | بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ | ۲۰۰ |
| | شروع کوم په نامه دالله چې بیحده مهربان او ډیررحم کوونکې دې | |

**وجه تسمیه** : دې سورت ته سورت آل عمران ځکه وائی چه په دې کښې دآل عمران ذکردې په څلورمه رکوع کښې .

**شان نزول** : دنصارئ ؤ دنجران یو وفد مدینې منورې ته دنبی ﷺ په بارګاه کښې حاضر شو چه په هغې کښې شپیته (۲۰) کسان ؤو دوئ دحضوراقدس ﷺ سره دحضرت عیسی ﷺ دألوهیة اوابنیت په باره کښې ګفتګوکوله «چه تفصیل ئی وروستو را روان دې» نوددې سورت ابتدائی آیاتونه تر آیت نمبر (۸۰) پورې نازل شول.

**ربط** : دسورت آل عمران دسورت بقرې سره ربط په درې طریقوسره دې :

۱- **اول ربط نامی اسمی** : ایاك نعبدوایاك نستعین (فاتحه) لانعبدولانستعین البقره کمافعل الیهود(بقره) لانعبدولانستعین آل عمران کمافعل النصاری (آل عمران) .

۲- **دویم ربط** : دسورت بقرې په آخرکښې ذکرشوی ؤو «فانصرناعلی القوم الکفرین» : دسورت آل عمران په ابتداء کښې دهغه کفارو ذکردې چه په وخت دمحاجه اومناظره کښې دهغوئ په مقابله کښې نصرت اومدد غوښتلې شوې ؤو چه نصاری دنجران دی .

۳- **دریم ربط** : سورت بقره په ډیرومضامینو مشتمل ؤو، دلته دهغې نه دَ څلورو اهمو مضامینو اعاده شوې ده : (۱)اول مضمون توحید (نفی شرك اعتقادی) ، (۲) دویم مضمون رسالت ، (۳) دریم مضمون جهاد، (۴) مضمون انفاق اوهمدارنګه په ماقبل سورة کښې دتوحید، رسالت بیان ؤواوپدې سورت کښې دتوحید اورسالت متعلق دشبهاتوجوابونه دی .

## دسورت دمضامینوخلاصه

ددې دوه تقریرونه دی : **اول تقریر**: پدې سورت کښې دمشرکینو، نصاری ؤ دشبهاتو جوابونه دی بعضې شبهات دتوحید په باره کښې دی اوبعض شبهات درسالت په باره کښې دی دتوحید متعلق پنځه ۵ شبهات دی او د رسالت متعلق درې شبهات، نودکل سورت خلاصه د دې شبهاتو جوابونه دی .

## د توحيد متعلق شبهات

**اوله شبه** نصارىٰ ؤوويل چه په قرآن كښې په حضرت عيسى ﷺ باندې دروح الله اوكلمة الله اطلاق شوېدې اوپه تورات كښې اطلاق دآبْ ( رب )، ابن راغلیدې نومعلومیږی چه حضرت عیسی ﷺ دالله ﷻ ابن دې اونائب دې په اُلوهیة كښې

**جواب** دا متشابهات دی او د متشابهاتو نه مدعی نه ثابتیږی بلکه دا د زائغینو کاردې .مأخذ . آیت ۷ ، ۸

**دويمه شبه** : حضرت عيسى ﷺ به اكمه يعنى مادرزاد ړوند، اودارنګه ابرص وغیره جوړولواواحیاء الموتی به ئی کوله اودا ټول صفات دأُلوهیة دی نومعلومه شوه چه حضرت عیسیﷺ اله دې

**جواب** : دغه ټول کارونه باذن الله ؤو دحضرت عیسی ﷺ په اذن اوامر سره نه ؤو، ماخذ . آیت ۵۱ ، ۴۹

**دريمه شبهه** : دوئ ويل چه مونږته دخپلومشرانونه داسې عبارتونه اوكلام رسیدلې دې چه حضرت عیسی ﷺ دخپل عبادت حکم کړې دې.

**جواب** : دا دروغ دی بلکه ﴿مَا كَانَ لِبَشَرٍ أَن يُؤْتِيَهُ ٱللَّهُ ٱلْكِتَٰبَ وَٱلْحُكْمَ وَٱلنُّبُوَّةَ ثُمَّ يَقُولَ لِلنَّاسِ كُونُوا۟ عِبَادًا لِّى مِن دُونِ ٱللَّهِ﴾ مأخذ آیت : ۷۹- ۸۰ - ، دا درې شبهات دحضرت عیسی ﷺ په باره کښې وو

**څلورمه شبهه** : دحضرت مريم عليها السلام متعلق ده چه حضرت مريم ته به بې موسمه میوې راتلې اوڅوك راوړلووالا به هم نه ؤو، نومعلومیږی چه دا پخپله صاحب اختیار او تصرف وه نومعلومه شوه چه هغه اله وه .

**جواب شبهه** : حضرت مريم عليها السلام پخپله وائی ((قالت هومن عندالله)) چه ما سره خپل اختیارتصرف نشته مأخذ ، آیت نمبر : ۳۷ .

**پنځمه شبهه** دحضرت زكريا ﷺ متعلق دوئ ويل چه دحضرت زکریا ﷺ بې موسمه اولاد پیداکیدل دلیل ددې خبری دې چه دوئ ته هم غیبی تصرفات او اختیارات حاصل ؤو

**جواب شبهه** : دحضرت زکریا ﷺ اولاد پیدا کیدل دالله ﷻ نه د دعاء غوښتلو په نتیجه کښې ؤو «هنالك دعازکریاربّه» الایه : ۳۸- ۴۱ .

ددې پنځه شبهاتو دوه مشترك جوابونه هم ذکرکیږی .

**اول** ﴿إِنَّ ٱللَّهَ ٱصۡطَفَىٰٓ ءَادَمَ﴾ نه تر . ﴿ذُرِّيَّةَۢ بَعۡضُهَا﴾ پورې یعنې دغه تمام حضرات بلاشك اوشبهه الله تعالی غوره کړی ؤو ، لیکن آلهه اومعبودان نه ؤو ځکه چه دوئ دیوبل نه پیداؤو او مخلوق او اِله اومعبود داسې نشی کیدې.

**دویم** داچه ﴿وَٱللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ﴾ دهرڅه اوریدونکې اوپه هرڅه عالم صرف الله دې، دوئ نه دی لهذا دوئ معبودهم نه دی آیت (۳۴) اوهمدارنګه دلته دحضرت عیسی ﷺ پوره نسب نامه بیان شوه دپاره ددې چه په پوره وضاحت سره معلومه شی چه حضرت عیسی ﷺ ابن الله نه دې بلکه عبدالله یعنی د الله بنده دې.

## درسالت متعلق شبهات

**اوله شبهه** : نصاریٰ ؤویل چه داوښ غوښه اوشوده په مخکنو انبیاؤ باندې حرام ؤو او دا نبی (حضرت محمد ﷺ) ورته حلال وائی دا دتمام انبیاؤ مخالف دې لهذا دا نبی ندې .

**جواب** دا دعوه غلطه ده بلکه ﴿كُلُّ ٱلطَّعَامِ كَانَ حِلاًّ لِّبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ﴾ الایه : ۹۳

**دویمه شبهه**: بیت المقدس دمخکنو تمامو انبیاؤ قبله وه نوکه چرې دا نبی (حضرت محمد ﷺ) برحق نبی وې نو د تمامو انبیاؤ قبله به ئی نه پریخودله .

**جواب** : بیت الله اول عبادتګاه اوقبله ده دحضرت آدم ﷺ نه دحضرت اسماعیل ﷺ پورې ﴿إِنَّ أَوَّلَ بَيۡتٖ وُضِعَ لِلنَّاسِ﴾ الایه، ۹۲- ۹۷ .

**دریمه شبهه** : په جنګ احد کښې په ظاهرکښې مسلمانانوته شکست ملاؤشو نواهل کتابو ؤ ویل چه که چرې دا نبی (حضرت محمد ﷺ) برحق نبی وې نو دوئ به شکست نوې خوړلې د دوئ د شکست نه دامعلومیږی چه دانبی ندې .

**جواب** : داوقتی شکست خو دحضور ﷺ دحکم دخلاف ورځئ په وجه دې نو دا خو رسالت دحقیت دپاره دلیل دې ، او د ابطال رسالت دلیل نه دې، ﴿وَإِذۡ غَدَوۡتَ مِنۡ أَهۡلِكَ﴾

الایه. ماخذ آیت نمبر (۱۲۰) تا آخر

## دویم تقریر

## د مضامینو خلاصه

پدې سورت کښې څلورمضامین بیان شوی دی: ۱- توحید ۲- رسالت ۳- جهاد ۴- انفاق فی سبیل الله . د سورة د شروع نه دآية : ۸۰ رکوع : ۸ پورې مسئله دتوحید بیانیږی او جوابو نه دشبهاتونه ذکرکیږی .

اود دینه بعد مسئله درسالت ذکرکیږی تر رکوع ۱۰ آیت : ۱۰۱ پورې . پدې کښې اثبات دَ رسالت او جوابونه د شبهاتو نه په رسالت باندې بیانیږی. د دینه بعد ذکر کیږی مسئله دجهاد او انفاق تر رکوع نمبر : ۱۹ آیت : ۱۸۹ پورې. او په آخری رکوع کښې ده څلورواړو مضا مینو اعا ده ده او په آخری آیت کښې بیا ټولو مضا مینو ته اجمالاً اشاره ده .

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| الٓمّٓ ۙ | اللّٰهُ | لَآ | اِلٰهَ | اِلَّا | هُوَ ۙ | |
| الله عالم دې په مرادخپل سره ددې حروفونه، الله چې دې نیشته دې بل څوک دعبادت لائق مګر همدې دې | | | | | | |
| الْحَیُّ | الْقَیُّوْمُ ۙ | نَزَّلَ | عَلَیْكَ | الْكِتٰبَ | | |
| ژوندې دې (په ذاتي دائمي حیات سره) تمام عالم سنبالونکې تدبیرکوونکې دې، نازل کړی ئ دې په تاباندې کتاب | | | | | | |
| بِالْحَقِّ | مُصَدِّقًا | لِّمَا | بَیْنَ | یَدَیْهِ | وَاَنْزَلَ التَّوْرٰىةَ | وَالْاِنْجِیْلَ ۙ مِنْ قَبْلُ |
| په حق سره، تصدیق کوونکې دې دهغه کتابونوچې وړاندې دې ددېنه اونازل کړئ دې تورات اوانجیل، پخوادقران نه | | | | | | |
| هُدًى | لِّلنَّاسِ | وَاَنْزَلَ | الْفُرْقَانَ ۬ | اِنَّ | الَّذِیْنَ | كَفَرُوْا |
| لاره خودونکې خلقوته، اونازل کړېدې قران چې جدا کوونکې دې دحق اوباطل، بېشکه هغه خلق چې کفرکوي | | | | | | |
| بِاٰیٰتِ اللّٰهِ | لَهُمْ | عَذَابٌ | شَدِیْدٌ ؕ | وَاللّٰهُ | عَزِیْزٌ | ذُوانْتِقَامٍ ۝ اِنَّ اللّٰهَ |
| په آیاتونودالله باندې دوئ دپاره مقرردې عذاب سخت . او الله زورآوردې اوبدله اخیستونکې دې . بېشکه الله | | | | | | |
| لَا یَخْفٰى | عَلَیْهِ | شَیْءٌ | فِی الْاَرْضِ | وَلَا فِی السَّمَآءِ ۝ | هُوَ الَّذِیْ | یُصَوِّرُكُمْ |
| چې نه دې پټ پده باندې هیڅ څیزپه زمکه کښې اونه په آسمان کښې . دې هغه ذات دې چې جوړوي صورتونه ستاسو | | | | | | |

| فِي الْأَرْحَامِ | كَيْفَ | يَشَآءُ | لَآ | إِلٰهَ إِلَّا | هُوَ الْعَزِيزُ | الْحَكِيمُ ⑥ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په رحمونو كښې، څهٔ رنګ چې ئې خوښهٔ شي، | | | نشته دې هيڅ معبود بغير ددهٔ نهٔ همدې غالب حكمت والا دې | | | |

﴿ الٓمٓ ۞ ﴾ د دې تحقيق په سورة بقره كښې تير شويدې ميم په «الم» كښې ساكن دې خو په وخت د اتصال كښې متحرك كيږي په حركت د فتحې سره نو په صورت د وَصل كښې «مِيمَ اللّٰه» ويلې شي.

﴿ اَللّٰهُ لَآ إِلٰهَ إِلَّا هُوَ ﴾ دا دعوه د تو حيد ده او د دې د اثبات دپاره درې قسمه دلائل ذكر شويدی: (١) عقلی (٢_ نقلی (٣) وحی.

﴿ اَلْحَيُّ اَلْقَيُّومُ ﴾ دا خبر د مبتدا مقدرې دې «ای هو الحی القيوم» پدې كښې دوه عقلی دليلونه ذكر شويدی: **اول** دا چه اله اومعبود بر حق يعنې لائق د بندګۍ هغه څوك كيدې شی چه «حی» وی په حياة ذاتی دائمی سره او دا خو صرف الله تعالی دې، نو معبود بر حق هم صرف يو الله تعالی دې، **دويم**: دا چه معبود برحق صرف هغه څوك كيدې شی چه ټول مخلوق سنبالوونكې او د هغوئ حاجتونه، ضرورتونه پوره كونكې وی او دا خو صر ف الله تعالی دې نه عيسی ﷺ او نه مر يم ﷺ او نه بل څوك، نو معبود بر حق هم صر ف يو الله تعالی دې.

اهل سيرو ليكلی دی چه **د نجران نه د عيسائيانو يو وفد** چه په هغې كښې شپيته ٦٠ كسان وو مدينې ته حاضرشول، پدوئ كښې درې كسان «سركرده» مشران ؤو

١ ـ عبدالمسيح عاقب امير ؤو ٢ ـ ايهم السيد ذی رأی مدبر ؤو ، ٣ ـ ابو حارثه بن علقمه لوئ مذهبی عالم او رهنما ؤو ، دا دريم سړې په اصل كښې عر بی ؤو. د بنی بكر بن وائل قبيلې نه ؤو. نصرانی شوې ؤو، لوئ عالم نصرانی ؤو، نو سلاطين د روم به د ده ډير تعظيم كولو په لوئ منصب يی مأمور كړې ؤو او ډير زيات مالونه ئ ورته وركړی ؤو. د دوئ عقيده ده چه حضرت عيسی ﷺ عين خدائ دې، يا د خدائ تعالی ځوې دې يا دريم خدائ دې نو دوئ د نبی ﷺ سره په باره د ابنيت يا د الوهيت د عيسی ﷺ كښې مناظرې كولو دپاره را غلی وو. **نو دا آياتونه نا زل شو** نو نبی ﷺ دوئ ته وويل چه:

«(اَلَسْتُمْ تَعْلَمُونَ اَنَّ اللّٰهَ حَيٌّ لَايَمُوتُ وَاَنَّ عِيسَى يَاْتِي عليه اَلْفَنَاءُ)» نو دوئ اقرار و كړو چه **بلی**» بيا ور ته نبی ﷺ اوفر مايل چه «(اَلَسْتُمْ تَعلَمُونَ اَنَّ رَبَّنَا قَيِّمٌ عَلٰى كُلِّ شيءٍ يَكْلُوءُ هُ

وَيحفظُهُ وَيرْ زُقُهُ قالوُا بلى قَال فَهَلْ يَملِك عيسىٰ مِن ذلك شيئًا، قالوالاَ، قال الَستُم تعلمُون اَنَ الله لاتخفىٰ عليهِ شيءٌ فِي الارضِ ولافِي السّماء قا لو ا بلىٰ، قال فَهَل يعلمُ عيسىٰ مِن ذٰلِكَ شيئًا اِلاَّما عَلِمَ قالوا لاَ، قالَ الستُم تعلمُونَ انّ ربّنَا صوّرَعيسىٰ فِي الرّحمِ كيفَ شاءَ ، وَاِنّ رَبّنَا لَاياْكل الطّعامَ ولايَشربُ الشّرابَ ولا يُحدِثُ الحدَثَ، قالوا بلىٰ ، قال الستُم تعلمون اَنّ عيسى حملتهُ امُّهُ كما تحملُ المرأةُ ثُمّ وضَعَتْهُ كما تضعُ المرأةُ ولد هَا ثُمّ غُذِىَ كمَا يُغذىٰ الصَّبِىُّ ثُمّ كان يا كلُ الطّعامَ ويَشربُ الشّرابَ ويُحدِثُ الحَدَث ، قالوا بلىٰ ، قال فكيفَ يكونُ هذاَ كما زَعمتُم فعرفُوا ثُمّ اَبَوا الا جُحُوداً ــ الخ)) (روح عن ابن جرير)

حضرت مولانا شبير احمد عثماني رحمه الله فرمايي چه داكثرعيسايانو عقيده دا وه چه په عيسى ﷺ باندې موت او فنا راغليده او ځمونږ دپاره كفاره دَسيئاتو گرځيدلې دې خودلته دوئ اقرارو كړو د ((يأتى عليه الفناء)) نوكيدې شى چه د بعضې عيسايانو عقيده د اهل اسلام په شان وى يا دا چه كه چرې دوئ اقرارده ((اتىٰ عليه الفناء)) كړې وې نو ډير زيات ملزَم شوى به ؤو نو گويا چه دوئ ((يأتى عليه الفناء)) د خپل ځان لپا ره غنيمت وگنړلو، اقرارئ و كړو چه صرا حةً ملزم نشى.

﴿نَزَّلَ عَلَيْكَ ٱلْكِتَـٰبَ﴾ دا دليل وحى دې. ﴿وَأَنزَلَ ٱلتَّوْرَىٰةَ وَٱلْإِنجِيلَ﴾ دا دليل نقلى دې د كتب سا بقونه. مقصود دادې چه توحيد په عقل اونقل او وحى ټولو سره ثا بت دې.

﴿وَأَنزَلَ ٱلْفُرْقَانَ﴾ قرآن ته فر قان ځكه وائى چه كامل فرق ئى راوستې دې د حق او باطل په مينځ كښې . دلته دا وصف راوړل بعد د ((نزل عليك الكتب)) نه اشاره ده ديته چه قرآن امتيازى شان لرى په بيا ن د توحيد كښې په نسبت د نورو كتب سماويۆ سره او بل ديته اشاره ده چه قر آن پا ك د حضرت عيسى ﷺ په شان كښې ډير په وضا حت سره بيا ن كړيدې او د ((نَزَّلَ)) او ((اَنزَلَ)) توجيه مشهوره اومعروفه ده . ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ﴾ دا تخويف دې منكرينو د توحيد ته ﴿إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَخْفَىٰ عَلَيْهِ شَيْءٌ﴾ دا بل دليل عقلى دې.

﴿هُوَ ٱلَّذِى يُصَوِّرُكُمْ﴾ دا هم دليل عقلى دې په توحيد باندې، د دې دواړو تفصيل په ما قبل كښې ذكر شويدې ﴿لَآ إِلَـٰهَ إِلَّا هُوَ﴾ دا د دلائلو نتيجه ده .

| مُّحْكَمَـٰتٌ | ءَايَـٰتٌ | مِنْهُ | ٱلْكِتَـٰبَ | عَلَيْكَ | أَنزَلَ | ٱلَّذِىٓ | هُوَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

دې هغه ذات دې چې نازل كړې ئې دې په تاباندې كتاب (قرآن) بعضې ددېنه محكم دي (يعني واضحه)

| هُنَّ أُمُّ الْكِتٰبِ وَأُخَرُ مُتَشٰبِهٰتٌ ؕ فَأَمَّا الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ زَيْغٌ |
| --- |
| دغه اصل دکتاب دی او ځینې نورمتشابهات دي، پس هغه کسان چې دهغوی په زړونو کښې کوږوالې دې |
| فَيَتَّبِعُوْنَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ ابْتِغَآءَ الْفِتْنَةِ وَابْتِغَآءَ تَأْوِيْلِهٖ ۚ |
| نوپس دوی به متشابهاتودکتاب الله پسې شي، دپاره دطلب دفتنې، اودپاره دطلب دمراددهغې، |
| وَمَا يَعْلَمُ تَأْوِيْلَهٗٓ اِلَّا اللّٰهُ ؕ وَالرّٰسِخُوْنَ فِي الْعِلْمِ يَقُوْلُوْنَ اٰمَنَّا |
| اوحال داچې نه پوهیږی په مرادهغې مګر الله، اوهغه کسان چې محکم دي په علم کښې هغوی وائي چې ایمان راوړې دې مونږ |
| بِهٖ ۙ كُلٌّ مِّنْ عِنْدِ رَبِّنَا ۚ وَمَا يَذَّكَّرُ اِلَّآ اُولُوا الْأَلْبَابِ ۞ |
| په دې متشابهاتو، داټول «متشابهات محکمات» د طرفه درب زمونږ نه دي، اونصیحت نه قبلوی مګر خاوندان دعقل |

﴿هُوَ ٱلَّذِىٓ أَنزَلَ عَلَيْكَ ٱلْكِتَٰبَ﴾ د اثبات د مدعیٰ نه بعد د شبها تو جوابونه ذکر کیږی دا داولې شبهې جواب دې، د شبهې اودجواب تفصیل یې ذکرشویدې، ﴿مِنْهُ ءَايَٰتٌ مُّحْكَمَٰتٌ﴾ محکمات هغه دی چه دلالت ئی په مراد باندې واضح وی عام لدینه چه محکم په اصطلاح د اصولینو سره وې یا نه وې، لکه ظاهر، نص، مفسر، یا خاص، عام وغیره او په بل آیت کښې چه ټول قرآن ته محکم ویلی دې «اُحْكِمَتْ آياته» نو هغه په بله معنی سره دې یعنی محفوظ د تناقض او د خلاف واقع نه او په ظاهری، باطنی خوبیانوسره اراسته او د فصاحت، بلاغت نه ډك. او په بل آیت کښې یی چه ټول قر آن ته متشا به ویلې دې «کتابا متشابها» نو هغه په معنی د یشبه بعضه بعضا فی البلاغة والاعجاز سره دې.

﴿هُنَّ أُمُّ ٱلْكِتَٰبِ﴾ ام اصل او مر جع ته وائی محکماتوته ام الکتب ځکه وائی چه دوئ ته رجوع کولې شی دپاره د اثبات د احکامو، او دارنګه دوئ ته ر جو ع کیږی په وخت د بیان د معنی دمتشابه کښې یعنی د متشابها تو به داسې معنی کولې شی چه موا فق وی د محکماتو سره او مخالف به ترینه نه وی لکه د «یدالله» معنی به په اعضاء جوارحو سره نه کیږی ځکه دا مخالف دی ده «لیس کمثله شیئ» سره. حاصل دا دې چه د عقیدې اوعمل د دواړو دپاره محکمات بنیاد دی. اثبات د عقیدې او د عمل به صرف په محکماتو سره کیږی او د متشابهاتو نه به داسې معنی نشی مراد کیدې چه د محکماتو نه مخالف وی.

**﴿وَأُخَرُ مُتَشَٰبِهَٰتٌ﴾** ((**اى وآيات أخر متشابهات**)) د متشابهات تعريف بعضې داسې کړې چه متشابهات هغه دی چه مراد ئی دالله تعالی نه ماسویٰ هيچاته معلوم نه وی، او بعضې ئی دا تعريف کوی چه مراد دادې چه د الله تعالی او د رسول صلی الله عليه وسلم نه ماسویٰ بل هيچا ته نه وی معلوم بلکه دا يو راز وی په ما بين د الله او رسول کښې. **او دا دوه قسمه دی** : **اول** غير معلوم المعنی، غيرمعلوم المراد، **دويم** معلوم المعنی، غير معلوم المراد، اول لکه مقطعات قرآنيه چه نه د دې معنی لغوی معلومه ده او نه ترينه مراد معلوم دې جزمًا، نو د دې قسم حکم دادې چه ((يجب تفويض علمه الحقيقي الى الله تبارك وتعالى))، او دويم قسم بيا په دوه قسمه دې : **اول** قسم دادې چه : د هغې مدلول لغوی واحد وی لکه : سمع، بصر، چه مدلول لغوی ئی واحد دې يعنې هغه جارحه (اعضاء) چه په هغې سره ليدل او اوريدل کيدې شی نو د دې حکم دادې چه د دې تفسير به کيږی او معنی حقيقی لغوی به ئی مراد وی، ليکن د دې قيد سره چه : ((له سمعٌ لاکسمعنا له بصرٌ لا کبصرنا))، او بل قسم دا دې : چه د هغې مدلول لغوی د متعدد وجوهو معانيو محتمل وی، نو د دې حکم دا دې چه کچرې په دغه متعدد معانيؤ کښ د يوې معنی تر جيح نوی راغلې په دليل قطعی يا ظنی سره نو دا واجب السکوت او واجب التفويض دې، او که يو معنی ته تر جيح ورکړې شوې وه نو تعبير ترينه په منصوصی لفظ سره بالاتفاق جائز او اولی دې، لکه د استواء علی العرش نه تعبير پدې لفظ منصوص سره اوکړې شی او ترجمه ئ ونکړې شی، بلکه داسې وويلې شی چه الله پاك استواء علی العرش کړيده ((کما يليق بشانه)) او که په غير منصوصی لفظ سره ئی تفسير وکړې شی نو پدې کښې دوه قوله دی **يو د سلفو قول** دې چه دا به په معنې حقيقی باندې محمول کيږی برابره خبره ده چه د دغه معنی حقيقی تعين په دليل قطعی سره وی اوکه په دليل ظنی سره وی مثلاً ((استواء))، د دې تفسير بعضې په علو سره کړيدې اوبعضو په استيلاء سره کړيدې او چا په اقبال سره کړيدې اودا ټولې معانی حقيقيه لغويه دی کما يظهر من کتب اللغة ليکن هر تفسير سره ((کما يليق بشانه)) قيد لګول پکاردی.

**اودويم قول ده متاخرينو علما**ؤ دې هغوئ وائی چه اصل مسلك د سلفو دې ليکن ضعفاء العقول د تشويش دفع کولو دپاره مجاز يا کنايه هم اراده کولې شی چه د دې مختلف وجوهات دی. دا تحقيق د حضرت مولنا اشرف علی تهانوی رحمه الله دې، دوئ مخکښې ليکی په بعضې خلقو چه ظاهريت پرې غالب دې نو هغوئ چه کله د متشابهاتو تفسير کوی

نو په درجه دَ اجمال کښې خو په مسلك دَ سلفو باندې قول کوی لیکن دوئ څلور (۴) قسمه غلطئ کوی : **اوله** دا چه په ظنی تفسیر کښې د قطعیت قائل شی، **دویم** دا چه کله تفصیل کوی نو داسې عنوانات او تعبیرات اختیاره وی چه مو جب د تکیف او د تجسیم وی، **دریم** دا چه مسلك د تاویل ته علی الاطلاق با طل وائی او د دې وجې نه ډیرو اهل حقو ته نسبت د ضلال «گمراهی» کوی، حالا نکه د اهل حقو د مسلك د صحت دپاره احادیث هم مبنیٰ ده او قواعد شرعیه هم . **څلورم** دا چه تفسیر د «استواء علی العرش» په استقرار سره تفسیر د سلفو گڼړی او نور تفسیرونه، تأویل د خلفو گڼړی. حالانکې داسې نده، حضرت مولانا محمد یوسف بنوری رحمه الله په معارف السنن «جلد : ۴» کښې د علماء سلفو او محققینو ډیر عمده اقوال په باره د «نزول الرب تبارك و تعالی او استواء علی العرش» وغیرهما متشابهاتو کښې نقل کوی، وائی چه : (۱) د جمهور سلفو او أئمو اربعه وو مذهب د استواء علی العرش، نزول الرب تبارك و تعالی وغیره په باره کښې دادې چه مونږ به په دې امورو ایمان لرو په طریقه د اجمال سره ځکه چه الله تعالی مونږ نه یو مکلف کړی په تفصیل معلومولو دنزول باندې یا د استواء وغیره په معانیو باندې، نو مونږ به په دې امورو ایمان لرو په طریقه د اجمال سره او الله تعالی به منزه اوپاك گڼړو د تشبیه او تکییف نه، لقوله تعالی «لیس كمثله شئ» او دا مذهب اصح او اسلم دې

(۲) بعضې سلفو او اکثرو متکلمینو یې تاویل کړیدې فی الفتح ، ص : ۲۵ ، ج : ۳-

((وقد اختلف فی معنی النزول علی اقوال فمنهم من حمله علی ظاهره وحقیقته وهم المشبهة تعالی الله عن قولهم، ومنهم من انکر صحة الاحادیث الواردة فی ذالك جملة وهم الخوارج والمعتزلة وهومکابرة ۰۰۰ ومنهم من اجراه علی ماورد مو منا به علی طریق الاجمال منزها الله تعالی عن الکیفیة والتشبیه وهم جمهور السلف ونقله البهیقی وغیره من الائمة الاربعة والسفیانین والحما دین والاوزاعی واللیث وغیر هم و منهم من افرط فی التا ویل حتی کادان یخر ج الی نو ع من التحریف و منهم من فصّل بین ما یکون تا ویله قریبا مستعملا فی کلام العرب وبین ما یکون بعیدا مهجورا فاوّل فی بعض و فوّض فی بعضٍ و هو منقول عن ما لك و جزم به من المتا خرین ابن دقیق العبد قال البیهقی واسلمها الایمان بلا کیف والسکوت عن المراد، وفی العمدة ((جلد ۳ صفحه ۴۲۳)). لاشك ان النزول انتقال الجسم من فوق الی تحت والله منزه عن ذلك فماورد من ذالك فهو من المتشا بهات فالعلماء فیه علی قسمین الاول المفوضة یو منون بها ویفو ضون تا ویلها الی

الله عز وجل مع الجزم بِتَنْزِهِيهِ عن صفات النقصان، والثا نى المو ولة يو و لو نها على ما يليق به ــ الخ . قال النووى فى سرح مسلم —الاول مذهب جمهور السلف و بعض المتكلمين والثانى مذهباكثر المتكلمين وجما عة من السلف قال و هو محكى هَهُنَا (مسلة النزول) عن ما لك والاوز اعى ــ الخ )) د دې عباراتو نه معلومه شوه چه د متشابهاتو تاويل نه كول اسلم او اصح دی، او تاويل صحيحه كول يې خصو صا چه تا ئيد ئی د بل روايت نه معلو ميږی دا هم غلط ندې، او خروج ندې د مذهب د اهل سنت والجما عت نه، او د تاويل صحيحه كونكو تضليل جا ئز ندې بلكه تاويل صحيحه منقول دې د بعضې سلفو نه، البته **د نصوصو نه ظاهری متعارفه معنى اراده كول د مشبه وو مذهب دې** نه د اهل سنت والجما عت مذهب. ((كمامرفى عبارة الفتح فمنهم من حمله على ظاهره وحقيقته وهم المشبهة تعالى الله عن قولهم))

نو څوك چه دهغې په ظا هری اومتعارفه معنى حمل كولو ته مذهب د سلفو وائی نو ذا قول غلط دې او په كلام د بعضې سلفو كښې چه اجراء على الظاهر راغلې ده نو د دې معنى داده چه تا ويل ئی ندې پكار لكه چه قول ده سلفُ تير شو، حضرت علامه بنوری رحمه الله چه په شرح د ترمذی ((**جلد ۴ صفحه** ۱۳۹)) كښې د بعضې علما ؤنه نقل كوی:

((واذاسمعت فى عبارات بعض السلف انما نومن بان له وجها لا كالوجوه ويدا لا كا الايدى فلا تظن انهم ارادو ا ان ذاته العلية منقسمة الى اجزاء وابعاض فجزء منهايد وجزء منهاوجه غيرانه لايشا به الا يدى والو جوه التى للخلق و حاشاهم من ذالك وما هذا الا التشبيه بعينه وانما ارادو ا بذالك ان لفظ الو جه واليد قد استعمل فى معنى من المعانى وصفة من الصفات التى تليق با لذات العلية كا لعظمة والقدرة غير انهم يتور عون عن تعين تلك الصفات هيبا من التهجم على ذالك المقام الاقدس و انتهز المجسمة والمشبهة فى مثل هذه العبارة فغررو ا بها العوام ــ الخ))

**تنبيه** د موجوده زمانې د مدعيان حديث (غير مقلدينو) مذهب قابل غور دې ، د اهل حديثو د مذهب ترجمان علامه وحيد الزمان خان په شرح د بخاری كښې ليكی دی :

اہل حدیث ان سب صفات کے قائل ہیں وہ کہتے ہیں اللہ کی ذات مقدس (عرش کے اوپر ہے) جہاں چاہتا ہے (اُترتا ہے) تجلی فرماتا ہے پھر عرش کی طرف چڑھ جاتا ہے

((وعند اهل السنة والجما عة ذاته تعالى منزه عن الجهة والمكان والنزول والصعود و كل ما هو من صفات المخلوقين ))

بیا لیکی اسکے (ہاتھ) ہیں، (پاؤں) ہیں (منہ) ہیں (انگلیاں) ہیں (کمر) ہے جیسے اس کی ذات مقدس کو لائق ہیں، ((نعوذ بالله من ذالك))

دا د غیر مقلدینو خود ساخته عقیده ده او نسبت یی کوی سلفو ته، وحاشاهم عن ذلك.

او حضرت علامه بنوری رحمه الله لیکی: ((وكلام ابن القيم وكلام شيخه ابن تيميه فى كتبه مضطرب جداً فى هذا الصدد ولاريب انهما يكثران من نقول السلف واقوالهم ولكن ثم يصرحان بما يناقض اقوالهم ويحملانها فى غير محل وليس هذا مو ضع بيانه — آه )).

او په بل ځائ کښې لیکی: ((وباالجملة كتُبه (ابن تيميه) فيها فوايد ونفائس كما ان فيها مداحض و مزال الاقدام و اشيا ء يتعجب مثلها من مثله)).

او حضرت شاه انو رشاه کشمیری رحمه الله په فیض الباری جلد۴ صفحه ۴۷۳ کښې یو ځائ لیکی: ((وعلى نقاضته (شيخ اشعرى)الحافظ ابن تيميه فانه لمابالغ فى اثباتهاوشدد فيه قارب المشبهة فى التعبير فهذا حال التجاوز عن الحدود ومن اتى عليه لايخلص عن العدول عن الصواب)).

اوپه ص :۵۱۹ ج : ۴ کښې لیکی: ((قال الحا فظ ابن تيميه من انكرالجهة لله فهوكمن انكر و جو ده عزبر هانه فان و جود الممكن كما لايكون الا فى جهة وانكار الجهة يوء وّل الى انكار وجو ده كذا لك الله سبحانه لا يكون الا فى جهة و هى العلو و انكار ها ينجر الى انكار و جو ده قلت ويا للعجب ويا للأسف كيف سوّى امرالممكن والواحب، اما كان له ان ينظران من اخرج العالم كله من كتم العدم الى بقعة الو جود كيف تكون علاقته معه كعلا قة سائر المخلوقات، فان الله تعلى كان ولم يكن معه شئ فهو خالق الجهات واذن كيف يكون استواءه فى جهةٍ كاِستواء المخلوقات بل استوائه كمعيته تعالى با لممكنات و كاقربيته، والغلو فى هذ الباب يشبه القول بالتجسم والعياذبا لله — الخ )).

**خلاصه د کلام داده** چه متشابهات په دوه قسمه دی: **یو دا** چه نه یی معنی لغوی معلو مه وی او نه یی معنی مراده معلومه وی قطعا، یعنې «غير معلوم المعنى وغير معلوم المراد» وی، نو د دې قسم علم مفوض دې الله تعالی ته ((الله اعلم بمراده بذالك)) الله ښه پو هیږی په مراد خپل سره د دینه. **دویم** قسم دا دې چه معلوم المعنى وی لیکن معلوم المراد نه وی لکه «استوى على العرش، يد الله، وجه الله» و غیره، نو پدې قسم متشابهاتو کښې

د اهل حق دوه قوله دی : (١) جمهور سلف او آئمه أربعه : دوئ وائی چه پدې امورو به ایمان لرو په طریقې دَ اجمال سره څکه چه الله مونږ نه یو مکلف کړی په تفصیل معلومولو دَ نزول یا د استواء علی العرش وغیره باندې، نو مونږ به پدې امورو یعنی استوی علی العرش -نزول الرب - ید الله، وجه الله - ساق - و غیره ایمان لرو په طریقه د اجمال سره او الله تعالی به منزه ګڼږو ده تشبیه او تکییف نه (٢) اکثر متکلمین او بعضې سلف د دې تأویل صحیحه کوی چه موافق دې د قواعدو شرعیه او نصوصو شرعیه سره، البته د دې نصوصو نه داسې ظاهره اومتعارفه معنی اراده کول چه هغه د خواصو د مخلوقاتو نه وی نو دا مفضی کیږی قول ته په جسمیت د الله تعالی باندې، او په نیز د اهل سنت والجما عت باندې الله تعالی منزه دې د جسمیت نه او ذی اجزاء یعنی الله پاك ذی ابعاض نه دې، او د ید الله، و جه الله نه اجزاء، اعضاء ، ابعاض مراد ندی بلکه صفات مراد دی، لیکن معلوم ندې حقیقت ئی مونږ ته، د حافظ ابن تیمیه په باره کښې مشهوره ده چه دې د مجسمؤ مشبهؤ نه دې، یا قریب دې هغوئ ته څکه چه د ده نه نقل شوی دی چه دَه حدیث د نزول الر ب تشریح کولو نو د ممبر د اُچتې پوړئ نه ښکته راکوز شو اووې ویل چه : ((ینزل کنزولی هذا)) ، زمو نږ د اکا برو رأیه دا ده چه دا قصه صحیح نده څکه چه علامه ابن تیمیه په خپله په خپل تصنیف کښې (په شرح دحدیث النزول ، ص : ٥٨ کښې) د تشبیه او تجسیم رد کړیدې ویلی ئی دی ((ولیس نزوله کنزول اجسام بنی آدم من السطح بحیث یبقی السقف فو قهم بل الله منزه عن ذالك)) .

حافظ ابن تیمیه شیخ الاسلام دې او د جور علم خاوند دې لیکن د دې با وجود دهغه بعضې تشددات اوتفر دات داسې دی چه دې د جمهورو علماؤ نه په هغې کښې مخالف دې، پدې مسله کښې دې د مجسمو اومشبهو موافق ندې البته بنا ء په قول د شاه انورشاه صاحب تعبیر ئی داسې دې چه هغه قریب دې تجسم ته. ((تشدد فیه حتی قارب المشبهة فی التعبیر)) ((جلد ۴ صفحه ٥١٩ فیض الباری)) او بناء په قول د حضرت تهانوی رحمه الله چه بعضې خلق چه ظاهریت په هغوئ غالب دې نو په اجمال کښې هغوئ په مسلك د سلفو باندې قول کوی، لیکن چه تفصیل کوی نو داسې تعبیرات اوعنو انات اختیاروی چه وهم د تکییف او تجسیم پکښې وی. حا فظ ابن تیمیه او د هغه اتباع په ډیر زور اوشور سره دا دعویٰ کوی چه د دوئ قول د سلفو سره موافق دې لیکن عام علماء وائی چه **دَ ابن تیمیه دَ قول او دَ جمهورو او محدثینو د قول په در میان کښې یو باریک فرق دې** اوهغه دا دې چه د جمهورو محدثینو او

سلفو په نيز : نزول، استواء، و غيره متشابهات دی. نو د دې ثبوت الله تعالی لره حق دې لیکن د دې تشریح بالکل نه کوی چه حقیقی معنی مراد ده یا مجازی. کنایی معنی مراد ده او که حقیقی، او دا معنی د دې قول د امام ما لك رحمه الله ده چه ((الاستواء معلوم ای معلوم اطلاقه علی الله تعالی و کونه صفةً لله - والکیفیة مجهول - والایمان به وا جب والسوال عنه بد عة)) او **حا فظ ابن تیمیه** وائی چه د نزول یا د استوی حقیقی معنی مراد ده خو د نزول یا استوی هغه معنی نده مراد کومه چه د صفاتو د مخلوق نه ده لکه علم چه صفت د الله تعالی دې او د مخلوقاتو هم دې لیکن حقیقت د دواړو جدا جدا دې نو لکه څنګه چه د علم د الله تعالی نه حقیقی معنی مراد ده، نو دغه شان د نزول او استوی نه هم حقیقی معنی مراد ده.

باقی پاتې شو لفظ د ید، ساق وغیره نو د جمهورو محدثینو او سلفو په نیز باندې د دینه اعضا ء ، ابعاض، جوارح ندی مراد ، لقوله تعالی «لیس کمثله شیء» ، نو که دحافظ ابن تیمیه هم دغه رأیه وی نو بیا قول د ده موافق دې دې سلفو سره لکه مخکښې ذکر شو، لیکن د موجوده زمانې غیر مقلدین د دینه «ید اوساق» نه معنی متعارفه حقیقی مراد کوی او دا بعینه تشبیه او تجسیم دې او ضلالت دې ((اللهم ارنا الحق حقا وار زقنا اتبا عه وارنا الباطل با طلا و ارزقنا اجتنا به)).

﴿ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمۡ زَيۡغٌ ﴾ مخکښې تقسیم د کتاب وشو دوه قسمو نو ته «**من قبیل تقسیم الکل الی اجزائه لا الکلی الی جزئیاته**» یو محکمات اوبل متشابهات، دلته تقسیم د اهل علمو کیږی دوه قسمونو ته : **یو** زائغین **او بل** راسخین، زائغین تابع د متشابهاتو دی او راسخین تا بع د محکماتو دی : روی البخاری عن عائشة قالت تلا رسول الله ﷺ هذه الآیة : ((هوالذی انزل علیك الکتب منه آیت محکمات ـ الایة)) قالت : قال رسول الله ﷺ : فاذا رئیتِ الذین یتبعون ماتشابه منه فأولئك الذین سمی الله فاحذروهم)) .

**ترجمه** : حضرت عائشه رضی الله عنها فر مایی چه نبی کریم ﷺ وسلم دا آیت تلاوت کړو او وې فرمایل چه : اې عائشه ! کله چه ته داسې خلق ووینې چه د متشا بهاتو اتباع کوی ( یعنی په متشابهاتو سره یوعقیده یا عمل ثابتول غواړی اوپدې سره استدلال کوی لپاره د یوې عقیدې یا عمل ) نو دا هغه خلق دی چه الله تعالی مسمی کړی دی دوئ په زائغین سره. نو تاسې د دوئ نه ځان ساتئ

﴿ٱبۡتِغَآءَ ٱلۡفِتۡنَةِ﴾ دا مفعول له دې د «یتّبعون» دپاره او د «فتنة» نه مراد گمراهی ده یعنې د

متشابهاتو داسې مطلب بيانول چه مخالف وی د محکماتو نه.

﴿وَٱبْتِغَآءَ تَأْوِيلِهِۦ﴾ د تاويل نه مراد دلته معهود او مخصوص تاويل دې چه مخالف وی د محکم نه اوموافق وی د خواهشاتو د زائغينو سره چه دا تحريف دې په حقيقت کښې.

﴿وَمَا يَعْلَمُ تَأْوِيلَهُۥٓ﴾ دلته د تأويل نه حقيقی تفسير مراد دې، او وقف په نيز د احنافو په ((الاالله)) باندې دې، او دا مروی دې داکثر و صحا بو او تا بعينو نه، او په نيز د شوافعو وقف په ﴿فِى ٱلْعِلْمِ﴾ باندې دې او دا عطف دې په لفظ د ((الله)) باندې، ای ((وما يعلم تاويله الاالله والا الراسخون فى العلم)) او ((يقولون)) جمله مستأنفه ده، نو په نيز د احنافو علم د متشابهاتو مختص دې په الله تعالى پورې اوپه نيز د شوافعو راسخين فى العلم هم عالمان دی په تا ويل د متشا بهاتو، او بعضې اصولينو ويلی دی چه دا نزاع لفظی ده، ځکه چه په نيز د احنافو باندې علم قطعی مختص دې په الله تعالى پورې او علم ظنی يعنې داسې تا ويل د متشابهاتو چه مخالف نه وی د محکماتو نه نو دا راسخين فى العلم ته هم حاصل دې، او شوافع چه وايی چه راسخينو ته تاويل د متشابهاتو معلوم دې نو مراد د هغوئ تاويل ظنی او علم ظنی دې نو فی الحقيقت نزاع نشته.

﴿وَٱلرَّٰسِخُونَ فِى ٱلْعِلْمِ﴾ دا مبتدا ده او ﴿يَقُولُونَ﴾ ئی خبر دې، راسخين فی العلم اهل سنت والجماعت دی چه دوئ تشريح ده قرآن او حديث په هغه طريقه سره کوی چه منقول وی د صحا به کرامونه او د سلفو صالحينو نه ، اودمتشابهاتونه داسې معنی نه اراده کوی چه مخالف وی د محکماتونه سره، او د دوئ په مزاج کښې فتنه انگيزی نشته دې، په حديث د حضرت انس رضی الله تعالى عنه کښې دی چه : سوال وکړې شو د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه د راسخين فی العلم په باره کښې ، نو وې فرمايل چه : ((من صدق حديثه و بر فى يمينه و عف بطنه و فر جه فذلك الراسخون فى العلم)) يعنې هغه څوك چه رشتيا وی خبرې د هغه او د دروغو قسمونه نکوی او خيټه، او فرج د حرامو نه ساتی نو دغه راسخين فی العلم دی

﴿يَقُوْلُوْنَ آمَنَّا بِهِ كُلٌّ مِّنْ عِنْدِ رَبِّنَا﴾ يعنې د راسخين فی العلم يوصفت او علامه داده چه داسې وائی ﴿ءَامَنَّا بِهِۦ﴾ مونږ په متشابهاتواو په محکماتو ايمان لرو او متشابهات اومحکمات ټول له طرفه د رب څمونږ نه دی، نو د دوئی په مينځ کښې تنا قض نشته دې، نو مونږ د متشابهاتو داسې معنی نه اراده کوؤ چه هغه مخالف او مناقض وی د محکما تو، سره

په حدیث کښې دی (ان القرآن لم ینزل لیکذب بعضه بعضا فما عرفتم منه فاعملوا به وماتشابه فآمنوا به) «روح»

| رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوبَنَا بَعْدَ إِذْ هَدَيْتَنَا وَهَبْ لَنَا مِنْ لَّدُنْكَ رَحْمَةً |
|---|
| ائې ربهٔ زمونږ مه کږوه زړونهٔ زمونږ پس دهغې نهٔ چې تاهدایت کړیدې مونږ ته اوراکړه مونږ ته دخپل طرفنهٔ رحمت |
| إِنَّكَ أَنْتَ الْوَهَّابُ ۝ رَبَّنَآ إِنَّكَ جَامِعُ النَّاسِ لِيَوْمٍ |
| بېشکه صرف هم تهٔ ورکوونکې ئې«دهرڅهٔ» . یاربهٔ زمونږ ! بېشکه تهٔ جمع کوونکې ئې دخلقوپهٔ هغه ورځې کښې |
| لَّا رَيْبَ فِيهِ ۚ إِنَّ اللّٰهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيعَادَ ۝ |
| چې نشته دې هیڅ شک پهٔ هغې کښې، بېشکه الله خلاف نهٔ کوې دوعدې نهٔ |

﴿رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوبَنَا﴾ داد راسخینو بله علامه ده یعنې دا چه دوئ په خپل کمال علمی او قوت ایمانی باندې مغرور او مطمئن نوی بلکه همیشه د الله تعالی نه د استقا مت طلبګار وی او په حدیث کښې دی چه بنی کریم ﷺ به «تعلیمًا للامت» دا دُعا ډیره ډیره کوله ((یا مقلب القلوب ثبت قلبی علی دینك)).

﴿وَهَبْ لَنَا مِن لَّدُنكَ رَحْمَةً ﴾ د رحمت نه تثبت «کلکوالې» فی الدین مراد دې ، اهل زیغ چه کله زیات شی نو دا دعا ډیره ډیره ویل پکار دی: ﴿رَبَّنَا﴾ دا منادی ده په تقدیر د حرف نداء سره او مقصود بالنداء مقدر دې چه : «لا تخزنا بالزیع یوم القیمة» دې .

﴿إِنَّكَ جَامِعُ ٱلنَّاسِ لِيَوْمٍ ﴾ (ای لحساب یوم او جزاء یوم ) ، په دنیا کښې خلق په جدا جدا زمانو او وطنونو کښې وؤ او د قیا مت په روز به په یو مکان کښې جمع شی.

| إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَنْ تُغْنِيَ عَنْهُمْ أَمْوَالُهُمْ وَلَآ أَوْلَادُهُمْ مِّنَ اللّٰهِ |
|---|
| بېشکه هغه کسان چې کفرئې کړیدې هرګزبهٔ دفع نه کړي ددوئ نهٔ مالونهٔ ددوئ اونهٔ اولاد ددوئ دعذاب دالله نه |
| شَيْئًا ۚ وَأُولٰٓئِكَ هُمْ وَقُودُ النَّارِ ۝ كَدَأْبِ اٰلِ فِرْعَوْنَ ۙ وَالَّذِينَ |
| هیڅ څیز، اودغه کسان دوئ خشاک داور دي . حال ددوئ پشان دحال دفرعونیانودې، اودهغه کسانو |
| مِنْ قَبْلِهِمْ ۚ كَذَّبُوا بِاٰيٰتِنَا ۚ فَأَخَذَهُمُ اللّٰهُ بِذُنُوبِهِمْ ۚ |
| چې مخکښې تیرشوي دي دوئ نهٔ، نسبت ددروغوئ کړي وؤ زمونږ آیاتونو ته، نواونیول دوئ لره الله پهٔ سبب دګناهونو ددوئ |

| وَاللّٰهُ | شَدِيدُ | الْعِقَابِ ۝ | قُلْ | لِّلَّذِينَ | كَفَرُوا | سَتُغْلَبُونَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوالله سخت عذاب و ركوونكې دې، اووايه هغه كسانوته چې كفرئې كړېدې زردة چې تاسوبه كمزوري كړی شئ (پدنيا كښې) | | | | | | |

| وَتُحْشَرُونَ | إِلَىٰ | جَهَنَّمَ ۚ | وَبِئْسَ | الْمِهَادُ ۝ |
|---|---|---|---|---|
| اوجمع بهٔ كړئ شئ (آخرت كښې) جهنم ته ، اوډېر بد ځائې تيار كړې شوېدې (داجهنم) | | | | |

﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا﴾ دا تخويف دې يعنې كافر په مال اولاد سره نشى بچ كيدې د الله تعالى ده عذاب نه، د مشرك او كافر صدقه قابل قبول نده او كه اولادئ نيكان وی نو د هغوئ په دعاء او صدقې سره هم ورته څه فائده نشى رسيدلې.

﴿كَدَأْبِ آلِ فِرْعَوْنَ﴾ داخبر د مبتداء مقدرې دې ((ای دا هم كداب ــ)) دأب په معنى ده حال او عادت سره دې. ﴿وَالَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ﴾ يعنې هغه كفار چه مخكښې وؤ د فرعون نه يا مخكښې وؤ د دې موجوده كفارونه چه په زمانه د نبى عليه السلام كښې دی، ﴿كَذَّبُوا﴾ دا تفسير د ((دأب)) او دعادت د كفارو دې ﴿فَأَخَذَهُمُ اللَّهُ﴾ دا تفسير د هغه دأب دې چه الله تعالى د هغوئ سره كړې وؤ يعنې عقاب او سزا ﴿بِذُنُوبِهِمْ﴾ نه مراد تكذيب او كفر دې.

﴿قُل لِّلَّذِينَ كَفَرُوا سَتُغْلَبُونَ﴾ دا دتخويف دنيوی نمونه ده اوپيشين گوئی ده چه عنقريب به داسې وخت راشى چه كفار، يهود، نصارى، مشركين به داسلامی لښكروپه مقابله كښې مغلوب شى، دا خو په دنياكښې ددوئ سزا ده، اوپه آخرت كښې به ټول دجهنم په جليخانه كښې جمع كړې شى، په بعضې رواياتوكښې راغليدی چه دفتح د بدر نه بعد نبى كريم ﷺ يهوديانوته اوفرمايل چه تاسوهم دا حق دين ومنئ كه نه نوستاسې حال به هم هغه سې شى لكه چه دقريشُ شو ! نو دوئ وويل چه : اې محمد ﷺ ! تاسو پدې دهوكه كيږئ چه دقريشو يوڅو بې تجربې خلقو باندې موغلبه موندلې ده، كه چرې ستاسو مقابله زمونږسره وشى نوتاسو به پوهه شئ چه مونږ رجال يعنى بهادر ، جنگياليان يو . **نو دا آيت نازل شو،** اوپه بعضې رواياتو كښې داسى راغلى دى چه دفتح بدرنه بعدبعضې يهوديان ايمان طرف ته مائيل شو خو نورو ورته ووېل چه جلتى مه كوئ اوصبروكړئ چه بعد ددينه څه پيښيږی، نوپه دويم كال د احدپه جنگ كښې مسلمانانوته ظاهری طور باندې عارضی شكست ملاوشو نو يهوديان په كفرباندې كلك شول او دمسلمانانو دجنگ دپاره ئې تيارې وكړو، كعب بن

اشرف د شپیته کسانوسره مکې معظمې ته لاړو د ابوسفیان سره چه پدغه وخت کښې مسلمان شوې نه ؤو او دنورو کفارو دمشرانو سره ملګرې شول اودنبي ﷺ خلاف جنګیدلو منصوبه ئې جوړه کړه نو **دا آیتونه نازل شو.** څه وخت بعد الله تعالی دا خبره واضحه کړه چه په جزیرة العرب کښې به دمشرکینو نوم هم پاتې نشي، بني قریظه عهد ماتوونکی یهودو ته خپله سزا ورسیدله، بني نضیرله مدینې منورې نه وشړل شول او د نجران عیسایانو جزیه تسلیم کړه او ذلیل شول چه په سورة احزاب کښې د دې ذکر دې.

| قَدْ كَانَ لَكُمْ اٰيَةٌ فِيْ فِئَتَيْنِ الْتَقَتَا ۖ فِئَةٌ تُقَاتِلُ فِيْ سَبِيْلِ |
|---|
| په تحقيق سره شته دې ستاسودپاره عبرت په هغه دوه ډلو کښې چې مخامخ شول دواړه، يوډله جنګيدله په لار |
| اللهِ وَ اُخْرٰى كَافِرَةٌ يَّرَوْنَهُمْ مِّثْلَيْهِمْ رَاْيَ الْعَيْنِ ۖ وَاللهُ يُؤَيِّدُ |
| دالله کښې اوبله ډله وه کفر کوونکې ليدل دوئ هغولره دوچند خپل، په ليدلو دسترګوسره، اوالله مضبوطوي |
| بِنَصْرِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ۖ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّاُولِي الْاَبْصَارِ ۝ |
| پخپل مددسره هغه چالره چې خوښه ئې شي، بېشکه پدې کښې خامخاعبرت دې خاوندانو دعقل لره |

﴿قَدْ كَانَ لَكُمْ ءَايَةٌ فِى فِئَتَيْنِ ٱلْتَقَتَا﴾ دا تتمه د ماقبل ده اؤد «قل» ماتحت داخل دې.

پدې کښې جنګ بدرته اشاره ده چه پدې کښې دکفارو عدد تقریباً زر ۱۰۰۰ ؤو اوه سوه ۷۰۰ اوښان، سل آسونه ۱۰۰ وو ، او د مسلمانانو عدد څه لپاسه درې سوه ۳۰۰ ؤو، اویا ۷۰ اوښان او دوه ۲ آسونه او شپږ۶ زغرې او اته ۸ تورې وې، ددې باوجود الله ﷻ مسلمانانوته غلبه ورکړه اوکفاروته ئې شکست ورکړو.

﴿فِئَةٌ تُقَـٰتِلُ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ﴾ دا د الله ﷻ دطرفه دصحابؤ د اخلاص او د ایمان لوئ شهادت دې، ﴿يَرَوْنَهُم مِّثْلَيْهِمْ﴾ پدې کښې مختلف توجیهات دی: ۱- دواړه ضمیرونه، یعنی ضمیر د «یرون» اود «هم» دواړه کفاروته راجع دی، یعنې کفارولیده خپل خان لره دوچند دمسلمانونه. ۲- ضمیرد «یرون» راجع دې مؤمنانوته اوضمیرد «هم» راجع دې کفاروته یعنې مؤمنانو لیدل کافرانو لره خپل دوچند چه په حقیقت کښې درې چند ؤو نو دوئ کم ولیدل اوهرکله چه ددوئ یقین ؤو پدې وعده باندې ﴿فَإِن يَكُن مِّنكُم مِّائَةٌ صَابِرَةٌ يَغْلِبُوا۟ مِائَتَيْنِ﴾ نوتسلی اواعتماد ئې پیدا شو.

(۳) ضمیرد ((یرون)) راجع دي کفاروته اوضمیرد ((هم)) راجع دي مؤمنانو ته يعني کفاروچه کتل نومؤمنان ورته خپل دوچندپه نظر راتلل ځکه چه دمؤمنانو امداد لره فرشتي راغلي وي اوپه کفارو رعب هم زيات راغلې ؤو نولږ ورته ډیرښکاریدل او دا مخالف ندي د ((وَيُقَلِّلُكُمْ فِي أَعْيُنِهِمْ)) (انفال اية ۴۴) سره. ځکه چه په وقت دابتداء دقتال کښې الله ﷻ مؤمنان کفاروته کم ښکاره کړل، ددې دپاره چه دوئ دميدان جنګ نه ونه تختي اوکله چه جنګ شروع شو نو بيائي ورته ډيرښکاره کړل چه مرعوب شي.

﴿لِأُولِي الْأَبْصَارِ﴾ ابصارجمع د بصرده په معنی دبصيرت سره، يعنې دخاوندانو دعقل دپاره يا بصر په معنی د نظر سره دي ((اى لمن ابصرهم ورآهم بعينى رأسه)). يعني چاچه دا منظر ليدلي ؤو په سترګو د سر خپل سره.

| زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوٰتِ مِنَ النِّسَآءِ وَالْبَنِيْنَ |
|---|
| ښائسته (۱) کړې شوېدي انسانانوتۀ محبت کول دهغه څيزونوچې نفس ئې غواړي چې ښځې دي اوځامن دي |
| وَالْقَنَاطِيْرِ الْمُقَنْطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ وَالْأَنْعَامِ وَالْحَرْثِ ؕ |
| اوخزانې جمع کړې شوي دي دسروزرواوسپينوزرواوآسونۀ نشانداربنائسته اوځاروي اوفصلونۀ |
| ذٰلِكَ مَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَاللّٰهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الْمَاٰبِ ۞ قُلْ |
| دغه څيزونۀ (۲) معمولي اولږه فائده ددنيوي ژوندده، اوالله سره ښۀ ځائې دواپسئ دې . تۀ اووايه (اې پيغمبره) |
| اَؤُنَبِّئُكُمْ بِخَيْرٍ مِّنْ ذٰلِكُمْ ؕ لِلَّذِيْنَ اتَّقَوْا عِنْدَ رَبِّهِمْ جَنّٰتٌ |
| آيا خبردرکړم تاسوتۀ په ډېرغوره سره ددېنه، دپاره دهغه کسانو چې تقوی ئې کړېده پۀ نيزدرب ددوئ جنتونۀ دي |
| تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا وَاَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ وَّ رِضْوَانٌ |
| چې بهېږي بۀ لاندې دهغې نۀ نهرونه همېشه بۀ وي دوئ پۀ هغې کښې، اوبيبيانې پاکې ساتلې شوي اورضامندي |
| مِّنَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌ ۢ بِالْعِبَادِ ۞ اَلَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اِنَّنَآ اٰمَنَّا |
| دالله دطرفنه، اوالله ليدونکې دې بندګانولره، هغه کسان چې وائې ياربه زمونږ بېشکه مونږ ايمان راوړې دې |

۱ - دنصارئ د علماؤ دَ توحيد نه منلو وجه.

۲ - دَ مشرکينو دَ دولتمند کيدلو نه دهوکه مه خورئ دا قليل دی او حقري دی.

| فَاغْفِرْ | لَنَا | ذُنُوبَنَا | وَقِنَا | عَذَابَ | النَّارِ ۞ | اَلصّٰبِرِيْنَ | وَالصّٰدِقِيْنَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| نوبخښنه اوکړه مونږته دګناهونونه زمونږاوبچ اوساته مونږدعذاب داورنه . چې صبر کوونکي دي اورښتيا ويونکي دي | | | | | | | |
| وَالْقٰنِتِيْنَ | | وَالْمُنْفِقِيْنَ | | وَالْمُسْتَغْفِرِيْنَ | | بِالْاَسْحَارِ ۞ | |
| اوتابعداري کوونکي دي اوخرچ کوونکي دي اوبخښنه طلب کوونکي دي په وخت د سحر(پيشمني) کښې | | | | | | | |

﴿ زُيِّنَ لِلنَّاسِ ﴾ دنصارى ۇ د توحيد نه دانكار وجه داده چه ددوئ په زړونوکښې دشهواتو محبت خائسته کړې شويدې، شهوات هغه اشياء دى چه كله دسړى تعلق دهغوئ سره راشي نودغه انسان د الله ﷻ نه غافل شي، اوپدې وجه په حديث كښې راغلى دى ((ماتركتُ بعدى فتنةً اضرُعلى الرِّجالِ من النّساء)) مانه ده پريښودلې يوه فتنه ورستودخپل ځان نه چه زياته ضرر رسوونکې وى نارينۇ ته له ښځونه، البته که چرې دښځونه مقصود ،عفت او د اولاد كثرت وى نومذموم نه دې، بلكه مطلوب اومندوب دې، لكه دحديث مفهوم دې چه د دنيا ډيرښه متاع هغه ښځه ده چه كه خاوند هغې ته وګورى نوخوشحاله شى اوكه حكم ورته وکړى نو حكم منى اوكه ترينه غائب شى نومال اوخپله حيا اوعفت په ښه شان سره ساتى، هم دغه شان دا نور اشياء دى چه ذكردى په آيت كريمه مذكوره كښې چه د ټولو ښه والې او بدوالې دنيت اودعمل په اعتبارسره دې ليكن هركله چه اكثرخلق د دنيا دعيش عشرت په سامانونو كښې ډوب پراته دى اوالله ﷻ اوخپل انجام ئى هيردې نوځكه كلام په ظاهركښې عام راوړې شو

﴿وَٱلْبَنِينَ وَٱلْقَنَٰطِيرِ ٱلْمُقَنطَرَةِ ﴾ «قناطير» دقنطار جمع ده مال كثير ته وايى.خزانې ته هم ويلې شى او «مقنطرة» دقنطارنه مأخوذ دې او د عربو عادت دې چه دبيان دمبالغې دپاره مأخوذ دمأخوذ منه دپاره صفت ګرځوى لكه «ظل ظليل ، حجرا محجوراً ، نسيامنسيا» دلته «مقنطرة» په معنى دجمع کړې شوې سره دې، دانسان خواهش دبلوغ نه قبل دلهو اولعب وى اوبيائى اول خواهش دښځې وى. بيا د اولاد، بياد دراهمو او دنانيرو. بيا د سواريانو.آسونه ،موټر، وغيره، بيا نور حيوانات غوا، ميښه بيزه وغيره، بيافصلونه وى. ليكن الله ﷻ فرمائى چه ابدى فلاح اوكاميابى پدې اشياؤ سره نه راځى، بلكه څو ورځې وقتى فائده ترينه اخستې شئ اوكه تاسو مستقل او ابدى كاميابى او خوشحالى غواړئ نوهغه الله ﷻ سره موندلې كيږى نو تاسو دهغه دمرضياتو فكر اوكوشش وکړئ اوتقوىٰ اختياركړئ نو ابدى

فلاح به ومومئ لکه چه مابعد آیت کښې مذکوردی. جَنّٰتٌ دامبتدا مؤخره ده او «لِلَّذِيْنَ اتَّقَوْا» خبرمقدم دې.

﴿وَأَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ﴾ دهرقسم ظاهری باطنی ګندګی بد اخلاقی نه به پاکې وی.

﴿وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللَّهِ﴾ په تمامو نعمتونوکښې لویٔ نعمت رضاء الهی ده «اللهم ارزقناه بفضلك وكرمك» اوپه حدیث کښې دی چه الله ﷻ به دجنتیانو نه تپوس (پوښتنه) وکړی چه «هل رضيتم» یعنې آیا تاسو راضی ئی، نو دوئ به ووائی چه مونږ به ولې راضی نه یو او حال داچه تا مونږ ته هغه نعمتونه راکړی دی چه هغه دې بل هیڅ چا ته ندی ورکړی، نو الله ﷻ به وفرمائی چه آیا ددینه زیات غوره نعمت درکړم؟ نودوئ به ووائی چه: اې ربه! ددینه غوره نور څه دی. نو الله ﷻ به اوفرمائی چه هغه څما رضا ده. «احل عليكم رضواني فلا سخط عليكم ابداً»

﴿الَّذِينَ يَقُولُونَ﴾ دا مرفوع دې خبر دې لپاره دمبتداء مقدرې «ای هم الذین» یا منصوب بنابر مدح دې، یامجرور دې د «للذين اتقوا» دپاره یا ترینه بدل دې.

﴿إِنَّنَا آمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا﴾ دلته «فاغفر» مرتب دې په «آمنا» باندې، ددینه معلومه شوه چه صرف ایمان هم ذریعه دمغفرت کیدې شی، یعنې بنده مستحق دمغفرت په نفس ایمان سره کیدې شی اګرکه طاعات یې نه وی، اود «ذنوب» نه صغائر اوکبائر دواړه مراد دی. ﴿الصَّابِرِينَ﴾ دماقبل دپاره نعت یا بدل دې نو مجرور دې یا منصوب، اوکه ماقبل «الذين» مرفوع وی نو دا منصوب بنا بر مدح دې، مراد ترینه صبرعلی الطاعات اوصبرعن المعاصی دې، یعنې د الله ﷻ په طاعت اواحکامو منلوکښې او دالله ﷻ په لاره کښې لویٔ لویٔ تکلیفونه مصیبتونه برداشت کوونکی اودګناه اومصیبت نه ځان ساتونکی، اود ﴿الصَّادِقِينَ﴾ نه په ژبه، زړه، نیت اومعاملاتوکښې رېښتنی مرادی، اود ﴿الْقَانِتِينَ﴾ نه مراد دالله ﷻ حکم پوره کوونکی دی په پوره تسلیم اوانقیاد سره، او د ﴿وَالْمُنفِقِينَ﴾ نه مراد مال خرچ کوونکی دی په صحیح مصرف کښې.

﴿وَالْمُسْتَغْفِرِينَ بِالْأَسْحَارِ﴾ «سحر» آخر اللیل ته وائی. اوتخصیص ددې ځکه وشو چه دا وخت دقبول ددعاء دې لکه چه په حدیث کښې دی چه دنبی ﷺ نه تپوس وشو چه کومه دعاء ډیره ښه قبلیږی؟ نو وې فرمایل چه «جوف الليل الآخر» اوپه مشهورحدیث کښې راغلی

دی چه الله ﷻ نزول فرمائی (ینــزل ربنا) ای ینزل ملك ربنا ، (وعندالقرطبی هذااصح ماقیل فی هذالحدیث) فی ثلث اللیل الاخیرفیقول من یدعونی فاستجیب له من یسآلنی فاعطیه من یستغفرنی فاغفرله فلایزال کك حتی یطلع الفجر))، د انس ﷺ نه روایت دي وائی چه ما اوریدلی دی د رسول الله ﷺ نه چه فرمایل ئی چه الله ﷻ فرمائی چه بیشکه زه خامخا اراده وکړم دعذاب لیږلو په زمکه والو باندې لیکن چه کله وګورم آبادونکو دکورنو خما ته یعنې مسجدونه اوخما لوجهٔ نه دیوبل سره محبت کوونکوته اوتهجدکوونکوته اواستغفارکوونکوته په وقت دسحر (آخر اللیل) کښې نو ددوئ د وجهٔ نه عذاب لرې کړم دځمکې والونه (قرطبی)

قال رسول الله ﷺ قال الله تعالی : یا ابنَ آدمَ انكَ مادعوتَنیْ ورَجَوْتَنی غَفَرْتُ لَكَ عَلی ماکان منك ولا اُبالی یاابنَ آدمَ لَوبَلَغَتْ ذنوبكَ عِنان السَّمَاءِ ثم استغفرتَنی غفرتُ لَكَ یابن آدم انكَ لَواَتَیْتَنیْ بِقرابِ الارضِ خَطَایَا ثم لقیتَنی لاتُشرِكْ بِی شَیْئًالاتیتك بقرابهامغفرة (ترمذی)

بعضې وائی چه په : (۱) ﴿ اَلصّٰبِرِیْنَ ﴾ کښې دحضورﷺ دور ته اشاره ده ځکه چه د حضور صلی الله علیه وسلم صبر په تمامو امورو کښې بی مثاله دي اوپه (۲) ﴿وَالصّٰدِقِیْنَ﴾ کښې د ابوبکرﷺ خلافت ته اشاره ده او په (۳) ﴿وَالْقٰنِتِیْنَ﴾ دحضرت عمرﷺ خلافت ته اشاره ده ځکه چه دي په قنوت او اطاعت کښې خاص مقام لری. «وکان وقافا عند کتاب الله». اوپه (۴) ﴿وَالْمُنْفِقِیْنَ﴾ کښې حضرت عثمان ﷺ ته اشاره ده. او په (۵) ﴿وَالْمُسْتَغْفِرِیْنَ﴾ کښې حضرت علی ﷺ ته اشاره ده.

**تنبیه** دا دابتداء دسورت نه ددې ځایه پورې دعویٰ دتوحید سره له دلیل نه ذکر شوه او په دعویٰ دتوحید باندې دشبهې جواب ذکرشو او دمنکرینو دتوحید دپاره تخویف اودهغې نمونه ذکرشوه. بیا د هغه امورو ذکر وشوچه باوجود د وضاحت دحق نه هغه امور انسان لره دتوحیداو د ایمان دشرافت نه محروم اوبی برخې کوی چه هغه «حب الشهوات» دي. ددینه بعد بیا دتوحید ذکر کیږی.

| شَهِدَ | اللّٰهُ | اَنَّهٗ | لَآ | اِلٰهَ | اِلَّا | هُوَ ۙ | وَالْمَلٰٓئِکَةُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

ګواهي [۱] کړېده الله پدې خبره چې نشته دې لائق اوحقدار دعبادت مګرصرف دې دې. اوګواهي ورکړېده فرښتو

---

۱ - د مضمون توحید ذکر دویم (۲) وار

| وَ اُولُوا | الْعِلْمِ | قَآئِمًا | بِالْقِسْطِ ؕ | لَآ | اِلٰهَ |
|---|---|---|---|---|---|

اوخاوندانو دعلم پداسې حال کښې چې محکم اوکلک ولاړدې په عدل وانصاف سره. نشته لائق دعبادت هيڅوک

اِلَّا هُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿١٨﴾ اِنَّ الدِّيْنَ عِنْدَ اللّٰهِ الْاِسْلَامُ ۗ وَمَا اخْتَلَفَ

ماسوا دده نه، دې زورآور اوحکمت والا دې، بېشکه مقبول دين په نيزد الله صرف اسلام دې. اواختلاف ندې کړې

الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًاۢ

هغه کسانو چې ورکړې شوې وؤ هغوئ ته کتاب مگر روستو دهغې نه چې راغلې وؤ دوئ ته علم دد وجې دضدنه

بَيْنَهُمْ ؕ وَمَنْ يَّكْفُرْ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ فَاِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ﴿١٩﴾

په مينځ ددوئ کښې. اوچاچې کفر اوکړ په آياتونو دالله نوبېشکه الله زرحساب کوونکې دې

﴿شَهِدَ اللّٰهُ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ﴾ دادويم ځل د دعوې توحيدذکردې سره ددلائلو نه. دلته په توحيد باندې: ﴿١﴾ دليل نقلي دکتب سابقونه. ﴿٢﴾ اودليل نقلي دملائکونه. ﴿٣﴾ اودليل نقلي دانبياؤ سابقينو اودهغوئ دمننونکوعلماء ربانينو نه ذکرکيږي.

﴿شَهِدَ اللّٰهُ﴾ اى بَيَّنَ الله وَاَعْلَمَ فى الكتب السابقة.دا **اول دليل** نقلي دې دکتب سابقونه اومدعیٰ داده چه ﴿ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ﴾ او ﴿وَالْمَلٰٓئِكَةُ﴾ دا **دليل دويم** نقلي دې دملائکونه، او ﴿وَاُولُوا الْعِلْمِ﴾ دا **دريم دليل** نقلي دې دانبياء سابقينو او د هغوئ دمتبعينو نه، د «**اولوالعلم**» نه مراد انبياء دى او دهغوئ متبعين دی، قرطبى وائى چه الله ﷻ دا**هل علمو** شهادت دخپل شهادت سره مقارن ذکرکړيدې نو پدې کښې دعلم اودعلماؤ ډيرلوئ فضيلت اوشرف ته اشاره ده.

﴿قَآئِمًا بِالْقِسْطِ﴾ دا حال مؤکد دې دفاعل د «شهدالله» نه او دمعطوف عليه نه حال راتلل پغير دمعطوف نه جائز دى په هغه وخت کښې چه قرينه موجوده وی، «قائما» په معنى دثابت اومقيم سره دې يا په معنى د «حاکم» سره دې، يعنى الله تعالى ثابت دې، حاکم دې په تدبير دمصنوعاتو په عدل اوانصاف سره، علماء وائى چه پدې آية کښې دعيسائيانو دعقيدې رد دې چه دوئ وائى چه حضرت عيسى ﷺ قتل شويدې زمونږ دګناهونو دکفارې دپاره، يعنى دا کوم انصاف دې چه دټولو مجرمانوجرمونه يواځې په پاکه هستئ باندې بار کړې شو اوټول مجرمان پاك اوبرى شو

﴿لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ﴾ دا ذکر د نتيجې دې بعد د دلائلو نه.

**فضیلت**: سعیدبن جبیر ﷺ وائی چه د خانه کعبې نه چاپیره درې سوه شپیته (۳۶۰) بتان ؤو هرکله چه دا آیت نازل شو نو هغه ټول را پریوته په سجده باندې، کلبی ﷺ وائی چه هرکله نبی کریم ﷺ مدینې منورې ته راغې نو دوه احبار (عالمان دیهودو) داحبارو دشام نه راغله. نوهرکله چه دوئ مدینه منوره ولیدله نوېوبل ته یې وویل چه دا خوډیر مشابه بلد (کلې) دې دصفت دبلد دنبی آخرالزمان سره، نوهرکله چه دوئ داخل شو په نبی ﷺ باندې نو هغه تمام صفات چه په تورات کښې مذکورؤو هغه ئی په نبی ﷺ کښې ؤموندل. نو وې ویل چه آیا ته محمد ئی؟ نونبی ﷺ وه ویل چه هو: نوبیا دوئ وه ویل چه آیا ته احمد ئی؛ نو نبی ﷺ وه ویل چه هو! نو دوئ وه ویل چه مونږستانه دیوشهادت تپوس کوو که چرې تامونږته خبر راکړو دهغې نومونږ به ایمان راوړو، نونبی ﷺ اوفرمایل تپوس وکړئ، نو دوئ وه ویل چه مونږته خبر راکړه دلوئ شهادت نه په کتاب دالله تعالی کښې، **نودا آیت نازل شو**، نو دوئ ایمان راوړو په نبی ﷺ باندې.

غالب القطان ددې آیت دفضیلت دیو روایت دمعلومولو دپاره داعمش په خدمت کښې یوکال تیرکړو، نودیوکال نه بعد ورته هغه دغه روایت بیان کړو. چه کوم سړې ددې آیت دتلاوت نه بعد دا وایئ چه: ((واناعلی ذالك من الشاهدین)) اوپه بل روایت کښې دی چه داسې ووائی چه ((وانا اشهد بماشهدالله به واستودع الله هذه الشهادة وهی لی عندالله ودیعة)). نو الله ﷻ به دقیامت په ورځ فرشتوته وه وائی چه ځما بنده یوعهدکړیدې او زه دهرچانه عهدپوره کوونکې یم ځما بنده جنت ته داخل کړئ، اوپه یو روایت کښې د ابو ایوب انصاری ﷺ نه مروی دی چه کوم سړې دهرفرض مونځ نه بعد آیة الکرسی او ((شهدالله .... الحکیم)) پورې، او ((قل اللّهم مالك الملك .... بغیرحساب)) پورې وه وائی نو الله ﷻ به دده ټول ګناهونه معاف کړی اوپه جنت کښې به ورته ځائ ورکړی او اویا ۷۰ حاجتونه به ئی پوره کړی، چه په هغې ټولونه کم مغفرت دې.

او قرطبی په روایت دانس ﷺ سره نقل کړی دی چه څوك دا آیت: ((شهدالله)) په وخت دخوب (اوده کیدلو) کښې لولی نو الله ﷻ به ورته اویازره (۷۰۰۰۰) فرشتې پیدا کړی چه دده دپاره مغفرت غواړی د ورځې دقیامت پورې.

﴿إِنَّ ٱلدِّينَ عِندَ ٱللَّهِ ٱلْإِسْلَٰمُ﴾ یعنې دین مقبول اوهغه دین چه موجب د تقرب الی الله

وی هغه صرف دین اسلام اوتوحید دي اويهوديت اونصرانيت محرف اوتمام شركي مذاهب موجب دتقرب الى الله ندي. نو دلته حصر د مسندالیه دي په مسند پوري او د «عندالله» نه مراد مقبول او مرضي عندالله دي، اواسلام اطلاق كله په صرف ظاهري انقياد باندي كيږي. لكه په سورة حجرات آيت نمبر ١۴ كښې ((قل لم تؤمنوا ولكن قولوا اسلمنا)) اوكله ئې اطلاق په انقياد باطني اوظاهري دواړو باندې كيږي اودلته دا دويمه معنى مراد ده. نوپدې آيت كښې رد دې په نصارى ؤ د نجران باندې چه هغوئ نصرانيت محرّف ته مقبول دين ويلو

﴿وَمَا ٱخۡتَلَفَ ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡكِتَٰبَ﴾ دا جواب دسوال مقدر دې اوهغه دا چه په بعضې مخكنو كتابونو كښې دغيرالله عبادت لكه دحضرت عيسى ﷺ اودحضرت عزير ﷺ عبادت اودهغوئ نه حاجات غوښتل مافوق الاسباب ديته ئې جائز ويلى دى، اوبعضې علماء «سوء» ددې شهادت كړيدې، نوآيا دغه هرڅه غلط دى ؟ **حاصل د جواب** دادې چه دين مقبول اومرضي عندالله صرف توحيد دې نوپه كوموكتابونوكښې يا په اقوالوكښې چه ددې خلاف دې هغه دباغيانواوعلماء سوء «ناكاره علماء» خودساخته خبرې دى او د الله ﷻ كلام ندې.

حضرت الشيخ ﷫ فرمائي چه پدې آيت كښې او ذغه رنګې په نورو آياتونوكښې لكه سوره بقره «آيت: ٢١٣»، سورة بيّنه «آيت: ٣» سورة شورى «آيت: ١۴٠»، سورة جاثيه «آيت: ١٧» وغيره شو د درې اموروبيان دې: «١» اختلاف چا وكړو «٢» كله ئې وكړو «٣» ولى ئې وكړ **جواب** اختلاف ١- «أتوالكتٰب» اهل علمو وكړ ٢- «إلاّ مِنْ بعد ما جاءهم العلم» بعد دعلم نه ئې وكړو ديده اودانسته ٣- «بغيًا بينهم» دضد او تعصب دوجه نه ئې وكړو، نومعلومه شوه چه هغه اختلاف چه د اجتهاد په وجه وى يا د لاعلمى په وجه وى هغه په دې وعيدكښې ندې داخل. او «بغيًا» مفعول له دې او «بينهم» په معنى د ((خارجاً بينهم)) سره دې ، يا دلته تقدير داسې دې ((اى بينهم وبين اهل الحق)) .

﴿وَمَن يَكۡفُرۡ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ﴾ پدې آيت كښې ديته اشاره ده چه د اختلاف مذكورنه مراد اختلاف دې په اصولو كښې چه موجب دكفر دې او د آيات الله نه مراد دلائل دتوحيد دى

| وَمَنِ | لِلّٰهِ | وَجْهِىَ | اَسْلَمْتُ | فَقُلْ | حَآجُّوْكَ | فَاِنْ |
|---|---|---|---|---|---|---|

پس كه بباهم دوئ جګړه «مكابره»، كوي ستاسره نوته ورته اووايه ماتابع كړېدې خان خپل دپاره دالله اوهغه څوك

| اتَّبَعَنِ ۗ وَقُلْ لِّلَّذِيْنَ أُوْتُوا الْكِتٰبَ وَالْأُمِّيّٖنَ ءَأَسْلَمْتُمْ ۗ فَإِنْ |
|---|
| چې خماتابعداري ئې کړېده، اووایه اهل کتابوتهٔ اوامیانوتهٔ (اهل عربوتهٔ) آیا تاسواسلام قبلوئ، نوکچرې |
| أَسْلَمُوا فَقَدِ اهْتَدَوْا ۚ وَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلٰغُ ۗ |
| دوئ اسلام راوړې نوبه تحقیق سره دوئ هدایت اوموندلو، اوکچرې دوئ مخ اوګرزولونوبېشکه ستاپهٔ ذمه رسول دي |
| وَاللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِالْعِبَادِ ۝ |
| او الله لیدونکې دې بندګانو لره |

﴿فَإِنْ حَآجُّوكَ﴾ پدې کښې دوه توجیه دی : (١) دا قطع دمحاجې ده، لکه قانون دادې چه هرکله اثبات دمدعیٰ په تفصیل سره وشی اوجوابات دشبهاتو وشی نوخصم ته ویلې شی چه ستاخپله لار او زما خپله لار ده، نو دلته هم اثبات د توحید وشو او بیا د هغوئ دشبهاتو جوابونه وشول، نو په آخرکښې یې اوفرمایل چه زه خو په توحید باندې محکم یم او د حق تابع یم باقی ستاسو خوښه ده که موافقت کوئ اوکه مخالفت.

(٢) دا محاجه ده یعنې تاسو په حجت کښې د باغیانواومتعصبینو اقوال پیش کوئ اوزه وحی الهی پیش کوم اوظاهره خبره ده چه د وحی الهی په مقابله کښې د باغیانو قول هیڅ اعتبار نه لری

﴿وَمَنِ اتَّبَعَنِ﴾ «ای من اتّبعنی» نو«یا» دمتکلم حذف شوې ده او دا عطف دې په «تاء» دمتکلم باندې، په «اسلمتُ» کښې، او«من اتبعن» اګرکه حقیقةً فاعل دفعل (اسلمتُ) دپاره نه شی کیدې لیکن ادعاءً کیدې شی ځکه چه پدې کښې د اتحاد ادعاء ده یعنې دمتبعینو انقیاد بعینه څما انقیاد دې، یا دا مفعول معه دې.

﴿وَقُل لِّلَّذِينَ﴾ یعنې اهل کتابوته دعوت ورکړه دایمان «والأُمِّيِّين» اودارنګه اُمیینو ته یعنې مشرکین عرب ته هم دعوت ورکړه، دوئ ته اُمیین ځکه وائی چه دوئ منسوب دی ام القری یعنی مکې معظمې ته یا منسوب دی ام ته یعنی ان پړه ځکه چه څوك چه دمور نه پیداشی نولیکلو او لوستلو والا نه وی اوعرب اکثر دغه شان ؤو یا دا چه ددوئ سره نه آسمانی کتاب شته اونه ئې دعوی کوی، اواُمیین پدې معنې سره یعنې هغه خلق چه دهغوئ سره آسمانی کتاب نه وی دا شامل دې هندوانو، سکهانو وغیره ته. ﴿ءَأَسْلَمْتُمْ﴾ دا استفهام په معنی دطلب سره دې یعنې اسلام قبول کړئ.

﴿فَإِنْ أَسْلَمُوا فَقَدِ اهْتَدَوا﴾ يعني دصحيح اسلام منلونه بعد مونږ دچا مقابله نه کؤو. ددعوت نه بعديا قبول وى نو دا هدايت دي. ددې ذکرؤشو. اويا انکار او اعراض وى نو دهغې ذکر پدې قول کښې وشو چه ﴿وَإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلَاغُ﴾ جزأ مقدره ده او دا مذکوريې قائمقام دې «اى لاتحزن» يا «تبعة عليك».

﴿وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِالْعِبَادِ﴾ يعنى الله ﷻ هرچا ته دهغه دعمل مطابق بدله ورکوى

| |
|---|
| إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ وَيَقْتُلُونَ النَّبِيِّينَ بِغَيْرِ حَقٍّ وَيَقْتُلُونَ الَّذِينَ يَأْمُرُونَ |
| بېشکه هغه کسان چې کفرکوي په آياتونودالله اوقتلوي پيغمبران په ناحقه، اوقتلوي هغه کسان چې حکم کوي |
| بِالْقِسْطِ مِنَ النَّاسِ فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ۝ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ حَبِطَتْ |
| په انصاف سره دخلقونه، نوزيرې ورکړه دوئ ته په عذاب دردناک سره داهغه کسان دي چې بربادشوي دي |
| أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَمَا لَهُمْ مِنْ نَاصِرِينَ ۝ |
| نيک عملونه ددوئ په دنيا اوآخرت کښې، اونشته ددوئ دپاره هيڅوک مددګاران |

﴿إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ﴾ دا زجراو تخويف اخروى دي هغه خلقوته چه د توحيدنه منکرؤو او مبلغين دتوحيدئى قتلول. اول جرم په حقوق الله کښې دې، دويم په حقوق العبادکښې دې اومراد داهل کتابونه هغه خلق دى چه موجود ؤو په زمانه دنبى ﷺ کښې ځکه زجز او تخويف حاضرينوته کيږى اوقتل د انبياؤ اګرکه دوئ نه ؤو کړې بلکه د دوئ آباؤ کړې وو ليکن چونکه دوئ پرې راضى ؤو نوځکه فعل د آباؤ دوئ ته منسوب شو. او «بغيرحق» حال مقيده ندې. يعنى مقصود ددينه تقييد ندې چه دا قيداحترازى شى او مطلب داشى چه قتل د انبياؤ کله په په حقه سره وى اوکله په ناحقه سره وى ځکه چه قتل د انبياؤ نه وى مګر په ناحقه سره وى. بلکه دا حال مؤکده دې لپاره د اظهار د مزيد قباحت. يا د «بغيرحق» مطلب دادې چه

ددوئ په نيز هم دا قتل بغيرحق ؤو. اوالف لام په ﴿النَّبِيِّينَ﴾ کښې د استغراق دپاره نه دې ځکه چه دوئ خو ټول انبياء ندى قتل کړى. بلکه دعهد دپاره دې او معهود په دې سره هغه انبياء دى چه دوئ قتل کړى ؤو. لکه زکريا ؑ اويحيى ؑ او ارمياء ؑ اوحزقيل ؑ وغيرهم شو

روح المعانى په روايت دابن جرير او ابن ابى حاتم سره د ابوعبيده بن جراح ؓ نه نقل

کړی دی چه ماتپوس وکړو چه یارسول الله ! **دقیامت په ورځ به ډیرسخت عذاب چالره وی؟** نورسول ﷺ اوفرمایل چه هغه سړې چه قتل کړی نبی لره، یاهغه چالرهٔ چه امربالمعروف او نهی عن المنکر کوی. بیائی دا آیت تلاوت کړو او وې فرمایل چه اې ابوعبیده بنی اسرائیلو د ورځې په اول کښې درې څلویښت ۴۳ انبیاء علیهم السلام په یوساعت کښې قتل کړل نو بیا راپورته شول یوسل اویا ۱۷۰ کسان دعبادو «نیکانو» دبنی اسرائیلونه چه امربالمعروف او نهی عن المنکرئ کولو دغه خلقوته چه انبیاء ئی قتل کړی وُو، نو دوئ دورځې په آخر کښې هغه ټول هم قتل کړل. نو دا هغه دی چه ذکر کړی دی الله ﷻ په دې آیت کښې.

﴿فَبَشِّرْهُم﴾ دا خبر د «اِنَّ» دې اوبشارت دخوشحالئ خبرته وایی نو د عذاب په خبر باندې دبشارت اطلاق په طور د تهکم سره دې.

﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ﴾ دا دفع د توهم ده چا به دا توهم کولو چه څرنګه بهٔ دوئ ته دردناك عذاب ورکولې شی حال داچه دوئ نیك اعمال، صله رحمی وغیره هم کړیدی. **جواب** دادې چه په سبب د کفرسره دغه اعمال حبط «ضایع» شوی دی. په دنیا او آخرت کښې. په دنیاکښې حبط دادې چه مدح اوثناء ددوئ په ذم اولعنت سره بدل شو. او د جان اومال حفاظت ئی ختم شو، قتلولې، قیدکولې به شی، او په آخرت کښې حبط دادې چه دغه اعمال ددوئ سبب دنجات نه ګرځی.

﴿وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ﴾ یعنې ددوئ مزعومه آلهه ددوئ مدد اوشفاعت نشی کولې.

| أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتَابِ يُدْعَوْنَ إِلَىٰ كِتَابِ اللَّهِ |
|---|
| آیا ته ! نهٔ ګورې هغه کسانوته چې ورکړې شوېده هغوئ ته حصه دعلم دکتاب، رابللې شي دوئ کتاب دالله ته |
| لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ يَتَوَلَّىٰ فَرِيقٌ مِّنْهُمْ وَهُم مُّعْرِضُونَ ﴿٢٣﴾ |
| دپاره ددې چې فیصله اوکړي په مینځ ددوئ کښې بیامخ ګرزوي یوه ډله ددوئ نهٔ اودوئ همېشه مخ ګرزونکي دي |
| ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا لَن تَمَسَّنَا النَّارُ إِلَّا أَيَّامًا مَّعْدُودَاتٍ |
| دا پدې وجه چې بېشکه دوئ به وئیل چې هرګز نهٔ رسیږی مونږ تهٔ اور مګریوڅوورځې شمارلې شوې |

| وَّ غَرَّهُمْ | فِيْ | دِيْنِهِمْ | مَّا | كَانُوْا | يَفْتَرُوْنَ۝ |
|---|---|---|---|---|---|
| اودهوكه وركړېده دوئ ته په باره ددين ددوئ كښې[1] هغه خبروچې دوئ دخانه جوړې كړې دي | | | | | |

| فَكَيْفَ | إِذَا | جَمَعْنٰهُمْ | لِيَوْمٍ |
|---|---|---|---|
| نوپس څۀ رنګ به وي حال ددوئ په هغه وخت كښې چې راجمع كړومونړ دوئ لره په هغه ورځ كښې | | | |

| لَّا رَيْبَ | فِيْهِ | وَوُفِّيَتْ | كُلُّ | نَفْسٍ | مَّا | كَسَبَتْ | وَهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| چې هيڅ شک نشته په هغې كښې ، اوپوره به وركړېشي هرنفس ته بدله دهغه عمل چې كړې وي اوپدوئ باندې | | | | | | | |

| لَا يُظْلَمُوْنَ ۝ |
|---|
| هيڅ ظلم نشي كيدې |

﴿ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِيْنَ ﴾ دا زجردې، په اهل كتابو كښې دوه طبقې وى : **يوه طبقه هغه** مشران ؤو چه دحق خلاف وو او د بغى ((فساد)) بنياد يى ايښودلې ؤو، نو د هغوئ ذكر په ماقبل كښې وشو ((وماختلف الذين ....بغيا ــ الايه))، **دويمه طبقه** ددوئ هغه وه چه د دوئ اتباع وؤ چه پوره علم ورسره نه وؤ بلكه د مشرانو د درغو جوړې كړې قصې اومسئلې به ئى په دليل كښې پيش كولې، دلته پدې آيت كښې ددې قسم خلقو ذكردې.

﴿ أُوْتُوْا نَصِيْبًا مِّنَ الْكِتٰبِ ﴾ ((**جهوتى مولوى**)).(ازشيخ رحمه الله ) دكتاب نه مراد تورات دې، روح المعانى په روايت د ابن اسحاق وغيره يوجماعت سره نقل كړى دى چه رسول الله ﷺ داخل شو بيت المدراس ته په يوجماعت ديهودو، نودوئ ته ئى دعوت الى الله وركړو نو نعمان بن عمرو او حارث بن زيد ورته وويل چه ته په كوم دين باندې ئى؟ نونبى ﷺ اوفرمايل چه څه په ملت ابراهيمى باندې يم، نوهغوئ دواړو ورته وه ويل چه ابراهيم عليه السلام خويهودى ؤو نونبى ﷺ اوفرمايل نو تا سو راوړئ تورات چه هغه زمونړ او ستاسو په مينځ كښې فيصله وكړى. نو دوئ دواړو انكاروكړو **نودا آيت نازل شو**، اوپه بل روايت كښې دى چه په يهودو كښې يوسړى زناكړې وه د يوې ښځې سره او ددغه وقت پورې حكم درجم نه ؤونازل شوې په قرآن كښې، نو دوئ فيصله راوړله نبى ﷺ ته دپاره دتخفيف په دغه زناكارو باندې ځكه چه دوئ شرفاء ؤو. نو نبى ﷺ ورته اوفرمايل چه زه حكم كوم ستاسو په كتاب سره، نو

1 - بې سنده من ګړت قيصې.

دوئ انکار وکړو دحکم درجم نه، نو چه تورات راوړې شو نو ددوئ لوئ عالم ابن صوریا په آیت درجم لاس کیښودلو. نوعبدالله بن سلام ورله لاس لرې کړو او آیت د رجم ښکاره شو، نو دوئ رجم شول. نویهود په غصه شول **نو دا آیت نازل شو**.

اوپه بل روایت کښې دی چه یوجماعت دیهودو انکار وکړو دنبوت دحضورﷺ نه، نو نبی ﷺ ورته اوفرمایل چه راوړئ تورات په هغې کښې ځما صفت دې نودوئ انکاروکړو او بیا دغه آیت نازل شو.

﴿وَهُم مُّعْرِضُونَ﴾ اشاره ده چه اعراض دحق نه ددوئ عادت مستمره دې.

﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ﴾ پدې آیت کښې د اعراض کولو دوه علتونه بیانیږی: **اول** دا چه ددوئ دعوی دا وه چه جنت صرف زمونږ دپاره دې خالصةً، ځکه چه زمونږ دین حق دې اومنسوخ نه دې، البته دبعضې ورو ګناهونو په وجه کیدې شی چه جهنم ته دځو ورځو دپاره لاړشو **دویم**: افتراء: یعنې دا چه ددوئ مشرانو دوئ ته دا دهوکه ورکړې وه پدې خود ساخته او دروغو روایتونو سره ((ان الله عهد الی یعقوب ان لایعذب بنیه الا تحلة القسم)) یعنې الله تعالی وعده کړیده دیعقوب ﷺ سره چه دده اولاد ته به عذاب نه ورکوی، دارنګه دوئ به ویل «نحن ابناء الله واحبائه».

﴿فَكَيْفَ إِذَا جَمَعْنَاهُمْ﴾ دا دغه دهوکه شوؤ یهودوته تخویف اخروی دې په «کیف» کښې عظمت اوهیبت دشان دقیامت ته اشاره ده «لیوم» «لام» په معنی د «فی» سره دې «ما کسبت» دلته مضاف مقدردې «ای جزاء ماکسبت» او ماکسبت عام دې شامل دې خیراوشر دواړو لره اوجزاء دهر یو جداجدا ده.

| قُلِ اللَّهُمَّ مَالِكَ الْمُلْكِ تُؤْتِي الْمُلْكَ مَن تَشَاءُ وَتَنزِعُ |
|---|
| ته اووایه چې[1] یاالله چې ته اختیارمنداوواکداردبادشاهۍ ئې ورکوې بادشاهي هغه چاته چې اوغواړې اواخلې |
| الْمُلْكَ مِمَّن تَشَاءُ وَتُعِزُّ مَن تَشَاءُ وَتُذِلُّ مَن تَشَاءُ |
| بادشاهي دهغه چاته چې ته اوغواړې، اوعزت ورکوې هغه چاته چې اوغواړې اوذلت ورکوې هغه چاته چې ته اوغواړې |

١- ذکر د توحید دریم وار.

| بِيَدِكَ الْخَيْرُ ۖ إِنَّكَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٢٦﴾ تُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَتُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ |
|---|
| په لاس ستا کښې خير دی، بېشکه ته په هرڅۀ قدرت لرې، ته ننباسې شپه په ورځ کښې اوننباسې ورځ په شپه کښې |
| وَتُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَتُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ ۖ وَتَرْزُقُ مَن تَشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٢٧﴾ |
| اوراؤباسې ژوندې دمړي نه اوراؤباسې مړله دژوندي نه، اوروزي ورکوې هغه چاته چې اوغواړې بغير دحساب نه[1] |

﴿قُلِ اللَّهُمَّ﴾ دا ذکر دتوحيد دې دريم ځل اوثمره د تيرشؤو دلائلوده ((اللهم)) دفراء په نزد په اصل کښې ((يا الله أمنا بخير)) دې ليکن دا قول ضعيف دې اوپه نزد دخليل اوسيبويه او دنحويانو دبصري باندې دا په اصل کښې ((ياالله)) دې نو (ياء) په اول کښې حذف شوه اوميم مشدد چه دوه حرفه دی اوقريب المخرج دی واو ته عوض شو د ((ياء)) نه چه دوه حرف علته دی او دا دخصوصياتو د لفظ دالله ﷻ نه دې. او﴿مَٰلِكَ ٱلْمُلْكِ﴾ منصوب دې نوپه نزد دسيبويه دا مستقله منادیٰ ده او حرف نداء ورته مقدره ده، او دماقبل دپاره صفت يا بدل نشی کيدې ځکه لحوق دميم مشدده مانع دې دصفتية نه په نزد دسيبويه باندې اوپه نزد دنورو نحويانو ميم مشدد مانع نه دې دصفتية نه، نو دا صفت دې د لفظ د ((الله)) دپاره چه منادی مفرده معرفه ده. او توابع چونکه مضاف منصوب وی، نو ددې وجه نه ((مالك الملك)) منصوب دې او دغه شان مابعد جملې ﴿ وَتَرْزُقُ مَن تَشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴾ پورې هره يوه جمله صفت دې دلفظ د ((الله)) دپاره نو د منادیٰ دپاره تول دولس ١٢ صفات ذکرشوی دی اومقصود بالنداء مقدر دې چه هغه دادې ((اقض حاجتى)).

﴿بِيَدِكَ ٱلْخَيْرُ﴾ دلته ((والشر)) هم مراد دې خو تخصيص بالذکر دخيروشو نوپدې کښې اشاره ده چه کوم په ظاهرکښې شروی نوهغه په نسبت سره مجموعه نظام عالم ته خيروی.

﴿وَتُخْرِجُ ٱلْحَيَّ مِنَ ٱلْمَيِّتِ﴾ يعني : ١- حيوان دنطفې نه ٢- چرګه دهګۍ نه ٣- شين بوټې دوچ تخم نه ٤- شين بوټی دوچې زمکې نه ٥- مؤمن دکافرنه ٦- عالم دجاهل نه.

---

١ - دلته مقصود بالنداء محذوف دې چې **اقض حاجتي** دې.

﴿ وَتُخْرِجُ ٱلْمَيِّتَ مِنَ ٱلْحَيِّ ﴾ يعني ۱- نطفه دحيوان نه ۲- هگئ دچرګې نه. ۳- وچ تخم د شين بوټي نه ۴- دميوې نه وچ هډوکې ۵- کافر د مؤمن نه ۲- جاهل دعالم نه

﴿وَتَرْزُقُ مَن تَشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴾ «بغيرحساب» په درې ۳ معانيوکښې مستعمل شوې دی ۱- بغيرعدد يعنې بې شماره .کنايه ده د کثرت نه لکه دلته پدې آيت کښې ۲- بغيرتعب يعنې په غير دسترې کيدلونه لکه په قول دمريم ﷺ کښې ((ان الله يرزق من يشاء بغيرحساب)) . «آيت ۳۷» ۳- بغيرمناقشة وتعبة . لکه داوٗد ﷺ ته الله ﷻ فرمائی ((فامنن اوامسك بغيرحساب))

**ددې آية شان نزول** قرطبی ، روح المعانی وغيرهما د انس ﷺ اوابن عباس ﷺ نه نقل کړی دی چه هرکله رسول الله ﷺ مکه فتح کړه اووعده ئی وکړه دخپل امت سره دملك دفارس .اوروم نومنافقانو او يهوديانو وه ويل ((هيهات،هيهات. من اين لمحمد ملك فارس والروم)) . يعنی داخبره ډيره بعيده ده چرته دوئ دروم اوفارس بادشاهی اخستې شی. ځکه چه هغوئ خو ډير غالب، زورآور او طاقت وردی ، آياکافی نه ده محمد ﷺ لره مکه اومدينه. چه دې طمع لری دملك فارس اوروم؟ نو دا آيت نازل شو.

بل روايت دې چه په جنگ خندق کښې چه کله صحابوٗ ﷺخندق کنستلو نو دحضرت سلمان فارسی ﷺ په حصه ځائ کښې سخت کانړې راووتلو نوحضور ﷺ ورته راغې اوجبل «کوداله» ئی په خپل لاس را واخستلو او يوضرب ئی ورکړو نو يو روښنی ترينه خارجه شوه. بيادغه شان نور دوه ضربونه ئی ورکړل اوپه هرضرب سره به روښنی ښکاريدله چه دلرې پورې به ليدلې شوه نو بيا نبی ﷺ اوفرمايل چه د اول ضرب نه چه کومه روښنی «رڼا» ظاهره شوه نو پدې کښې ماته دملك فارس محلات، عمارات . وښودلې شول چه دا به ځما امت ته ورکولې شی. او په دويم ضرب سره چه کومه روښنی ظاهره شوه نو وې فرمايل چه په دې سره ماته دروميانو سره محلات ښکاره شول. او ددريم ضرب سره چه کومه روښنی ظاهره شوه نو اوفرمايل چه ماته دصنعاء يمن عظيم محلات وښودلې شول او وې فرمايل چه زه تاسوته زيرې درکوم چه ماته جبرئيل امين خبر راکړو چه ځما امت به پدې تمامو ممالکو غالب کيږی. منافقينو چه دا واوريدل نومسخرې ئی شروع کړې او وې ويل چه مونږ خو په داسې حالت

کښې يو چه خوراك راته نه ملاويږي او دخپل ځان حفاظت ددشمن نه راته مشکل دې نوځرنګه به مونږ دفارس او روم او ديمن په مملکتونو قابض شو . نو دا آيت نازل شو .

**فضيلت** معاذبن جبل ﷺ فرمائي چه ماته ښودلي دي رسول ﷺ يوڅو کلمات ، يا آياتونه دقرآن . نشته په زمکه کښې يو مسلمان چه دې مکروب ، پريشان يا مقروض وي او دا ولولي نو خامخا به الله ﷻ دهغه قرض اداکوي او پريشاني به ئي زائله کوي او وې فرمايل چه يوه ورځ زه ورستو شوم اودجمعې مونځ ته حاضرنشوم نوما ته رسول الله ﷺ اوفرمايل چه اې معاذ ! څه شي منع کړې وې دمونځ نه؟ نو ما عرض وکړوچه : يارسول الله ﷺ ! د (يوحنا) يهودي په ماقرض ؤو اوپه دروازه کښې راته ولاړؤو او زما انتظارئي کولو نوزما خطره وه که چرې څه راوتلې وې نو زه به ئي حصارکړې وې ، نو نبي ﷺ ورته وفرمايل چه آيا ته دا غواړې اې معاذ چه ستا قرض اداکړې شي؟ نو ما وويل چه هو ! نو وې فرمايل : هره ورځ دا وايه . ((قل اللهم مٰلك الملك ...بغيرحساب)) . رحمٰن الدنياوالآخرة ورحيمهما تعطي منهما من تشاء وتمنع منهما من تشآ ء اقض عني ديني)) . نوکه دټولې زمکې برابر سره زرپه تا قرض وي نوخامخابه ئي الله ﷻ اداء کړي لتانه (قرطبي)

علمأ دې آيت ته آية العزة وائي ځوك چه آية الکرسي او ((شهدالله)) اودا آيت دهرمونځ نه بعد لولي نوالله جل جلاله به ورته عزت ورکوي اوذلت نه يې محفوظ ساتي اوپه دشمنانو ورله فتح ورکوي وغيره ډير دنيوي فوائد دي پکښې .

| لَا يَتَّخِذِ | الْمُؤْمِنُوْنَ | الْكٰفِرِيْنَ | اَوْلِيَآءَ | مِنْ دُوْنِ | الْمُؤْمِنِيْنَ ۚ | وَمَنْ | يَّفْعَلْ | ذٰلِكَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| نه [1] دې نيسي | مومنان | کافرانولره | دوستان | ماسوا | دمومنانونه | اوچاچې | اوکړو | داکار |
| فَلَيْسَ | مِنَ اللّٰهِ | فِيْ | شَيْءٍ | اِلَّآ | اَنْ | تَتَّقُوْا | مِنْهُمْ | تُقٰىةً ۗ |
| نونه دي | دالله دعهداودوستۍ نه ، | په هيڅ | کښې ، | مګرهغه وخت | کښې چې | تاسوخان بچ کوئ | ددوئ دشرنه ، | خان بچ کول |
| وَيُحَذِّرُكُمُ | اللّٰهُ | نَفْسَهٗ ؕ | وَاِلَى اللّٰهِ | الْمَصِيْرُ ۞ | قُلْ | اِنْ | تُخْفُوْا | مَا |
| اوويروي تاسولره | الله | دخپل ذات نه . | اوخاص الله طرفته | ګرځېدل دي | اووايه | چې | کچرې تاسويټ ساتئ | هغه |

---

١ - دمشرکانو سره د قطع تعلق حکم.

| فِيْ صُدُوْرِكُمْ اَوْ تُبْدُوْهُ يَعْلَمْهُ اللّٰهُ ؕ وَ يَعْلَمُ مَا |
|---|
| چې په سینوستاسو کښې دي یائې ښکاره کوئ نوعالم دې په هغې باندې الله، اوعالم دې په هر هغه څه |
| فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ |
| چې په آسمانونو کښې دي او په هرهغه څه چې په زمکه کښې دي، اوالله په هرڅیزباندې قدرت لرونکئ دې |

﴿لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُوْنَ الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ﴾ ((لایتخذ)) نهی ده ((المؤمنون)) فاعل دې دَ ((لاَ يَتَّخِذُ)) او ((الکافرین)) مفعول اول دیې ((من دون المؤمنون)) په موضع دنصب کښې دې صفة د اولیاء دې. پدې آیة کښې حکم دقطع تعلق دې دکفاروسره . **شعر**:

دور شو از اختلاط یاربد　　یاربد بدتر بود از ماربد

ماربد تنهاهمین برجان زند　　یاربد برجان و برایمان زند　((مثنوی))

حضرت تهانوی رحمه الله فرمائی چه دلته **درې اموردی**: ۱- موالات یعنی قلبی دوستی ۲- مداراة یعنې ظاهری خوش خلقی . ۳- مواسات . یعنی احسان ،نفع رسانی، نوپس دَ کافرانو سره موالات په هیڅ حال کښې جائزندې: لقوله تعالی ((لاتتخذوالیهودوالنصاری اولیاء بعضهم اولیاء بعض ومن یتولهم منکم فانه منهم)) (مائده : ٥١) وقوله تعالی ((لاتتخدوا وعدوی وعدوکم اولیاء)) ، (ممتحنه : ۱) .

اومدارات په درې حالتونو کښې جائز دې : ۱- ددفع دضرر دپاره کمافی هذه الآیة : ((الاان تتقوامنهم ــ الایه)) په مستثنی منه کښې دمولات منع ده اوپه مستثنی کښې دمدارات اجازت دې لیکن پشرط سره، ۲- دکافر دمصلحت دینی دپاره یعنی توقع دهدایت، ۳- اکرام ضیف دپاره، اودخپل منفعت مالی یا د جاه دپاره جائز ندې، په جواز د مدارات باندې ډیر احادیث دال دی : ((وفی البخاری عن عائشه رضی الله عنها قالت استأذن رجل علی رسول الله ﷺ واناعنده فقال رسولُ الله ﷺ بئسَ ابنُ العشیرةِ اواخوالعشیرةِ ثم اذن لَهُ فَالاَنَ لَهُ القولُ فلماخرج قلتُ یارسولَ الله ﷺ قلتَ ماقلتَ ثم النتَ له القول فقال یاعائشةُ اِنَّ من اشرّالناس من یَترکهُ الناسُ اتقاء فحشه، وفی روایة الدیلمی قال رسول الله ﷺ ان الله امرنی بمداراة الناس کماامرنی باقامة الفرائض، وفی روایة بعثت بالمداراة، وفی روایة ابن ابی الدنیا رأس العقل بعدالایمان بالله تعالی مداراة الناس، واخرج الطبرانی، مداراة الناس صدقة وغیرذالك مِن الاحادیث)).

او **د مواسات حکم** دادې چه د اهل حربو سره ناجائز دې اودغیراهل حربوسره جائز دې کمافی سورة الممتحنة : ((لاینهاکم الله عن الذین ....الی قوله .... الظّلمون)) باقی معاملات دتجارت، ملازمت، صنعت، حرفت دا هم دتمام غیرمسلمینو سره جائز دی، مگر دا که پدې کښې عامو مسلمانانو ته ضرر او نقصان ؤو نوبیا جائز نه دی، او دا حکم د فساقو اواهل بدعت هم دې

﴿ وَمَن يَفۡعَلۡ ذَٰلِكَ﴾ یعنی څوك چه دکفارو سره قلبی محبت اودوستی کوی ﴿فَلَيۡسَ مِنَ ٱللَّهِ فِي شَيۡءٍ﴾ داسخت وعیددې په موالات دکفارو، په ((من الله)) کښې مضاف مقدردې ((ای من عهدالله ، دین الله، حزب الله)) او ((فی شیٔ)) خبر د لیس دې ((ای فلیس فی شیٔ من عهدالله وامانه ودینه وحزبه)) او((من الله)) په موضع دنصب کښې دې بنا برحالت دشیٔ نه ځکه دا صفت دنکره دې مقدم شویدې پرې.

﴿ إِلَّآ أَن تَتَّقُواْ مِنۡهُمۡ تُقَىٰةً﴾ دا استثناء د اعم الاحوال نه ده((ای لاتتخذوهم اولیاء فی حال من الاحوال الاّحال الاتقاء))، یامستثنی ده دمفعول له مقدرنه ((ای لاتتخذوهم اولیاء لوجهٍ من الوجوه الاللتقیة)) او ((تقةً)) مصدردې منصوب دې بنا پدې چه دامفعول مطلق دې یا حال مؤکده دې ځکه دا جمع ده او د ((تقاةٌ)) معنی ده یره کول یاځان بچ کول، یعنی مگر دا چه تاسو یره کوئ دهغوئ نه یره کول، یا داچه تاسوځان بچ کوئ دهغوئ نه په موالات سره پداسې حال کښې چه تاسو یره کوونکی یئ، ددینه مراد حالت د اکراه دې لکه په سورة نحل کښې دی ﴿إِلَّا مَنۡ أُكۡرِهَ وَقَلۡبُهُۥ مُطۡمَئِنُّۢ بِٱلۡإِيمَٰنِ﴾ ددې آیت نه معلومیږی جواز د تقیه او تعریف ئی مفسرینو دا کړیدې چه ((محافظة النفس اوالعرض اوالمال من الاعداء)) یعنې خپل ځان ، ابرو اومال بچ کول دشر ددشمنانو نه نو د آیت مطلب دادې چه که چرې دکفارو دطرفه ستاسو دجان، مال، ابرو او عزت ضائع کیدو خطره وی نو ددوئ سره ظاهری مدارات جائزدی

**فایده** : خوارج وائی چه تقیه په هیڅ حال کښې جائز نده نو دوئ وائی که چرې یوسړې مونځ کوی اوسارق یا غاصب دده مال سرقه کوی یا یی غصب کوی ، نو دده دپاره قطع دصلوة جائزه نده او ددې وجې نه دبخاری شریف په یوروایت کښې دی چه یو خارجی په حضرت بُریدة اسلمی طعن کړې ؤو چه هغه دحفاظت دخپل فرس دپاره قطع دصلوة کړې وه، او شیعه گان وائی چه تقیه فرض ده او ډیرلوئ کارثواب دې. نو د دوئ په نزد په سُنی پسې

مونځ جائز ندي ليكن كه چاپه طريقه دتقيه سره په سنی پس مونځ اداكړو نو دا دومره لوئ ثواب دي لكه په نبی پسې مونځ كول. والتفصيل فی الروح، اوخلاصه ددغه تقيه منافقت اوكذب عظيم دي اوهم دا بنياد دي دمذهب دشيعه گانو. نو څه حال به وی دهغه آبادئ چه بنياد يی كذب اومنافقت وی

حضرت تهانوی رحمه الله فرمائی چه ددې آيت نه تقيه دشيعه گانو نه ثابتيږی ځكه چه ددې آيت مطلب دادي چه دكفارودطرفه چه كله غالب احتمال اوخوف دضرر وی نو دهغوئ سره ددوستی اظهار اودعداوت اخفاء جائزه ده اودشيعه گانو تقيه اظهاردكفراو اخفاء د ايمان ده يعنې هغه شئ چه كفردې عندهم نو دهغې اظهاركول دی لكه په سنی پسی مونځ كول اوكوم چه ايمان دې عندهم لكه په سنی پسی مونځ نه كول دهغې اخفاء ده

﴿وَيُحَذِّرُكُمُ ٱللَّهُ نَفْسَهُۥ﴾ دلته مضاف مقدر دې ((ای عقاب نفسه)) او بعضې وائی چه تقدير ته حاجت نشته او دا تهديدعظيم دې. اونفس په معنی د ذات سره دې اوكه معنی متعارفه ترينه مرادشی نو بيا دا دمتشابهاتونه دې، اومذهب داهل سنتُ پدې كښې مخكښې تيرشوې دې. ﴿إِن تُخْفُواْ﴾ دا تخويف دنيوی دې او د ﴿مَا فِى صُدُورِكُمْ﴾ نه مراد هر ما فی الصدور دې چه شامل دې موالات لره، او دارنگه د ((تبدوه)) نه مراد هر ظاهر دې چه شامل دې مدارات اوتقيه ته. ﴿يَعْلَمْهُ ٱللَّهُ﴾ دا كنايه ده دبدل وركولونه ﴿وَيَعْلَمُ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾ دا ذكر دعام دې بعد د خاص نه.

| يَوْمَ | تَجِدُ | كُلُّ | نَفْسٍ | مَّا | عَمِلَتْ | مِنْ | خَيْرٍ | مُّحْضَرًا | وَمَا | عَمِلَتْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| پۀ هغه ورځ چې اوبه مومي هر يونفس هغه چې څه عمل ئې كړې وی دخيراونيكئ نۀ، حاضر، اوهغه چې عمل ئې كړې وي | | | | | | | | | | |
| مِنْ | سُوٓءٍ | تَوَدُّ | لَوْ | أَنَّ | بَيْنَهَا | وَبَيْنَهُۥٓ | أَمَدًۢا | بَعِيدًا | | |
| دبدئ اوگناه نۀحاضر، غواړي به چې ارمان دې چې وې پۀ مينځ ددې نفس اوددغه عمل كښې مزل لرې | | | | | | | | | | |
| وَيُحَذِّرُكُمُ ٱللَّهُ نَفْسَهُۥ وَٱللَّهُ رَءُوفٌۢ بِٱلْعِبَادِ | | | | | | | | | | |
| اوويروي تاسولره الله دخپل ځان نۀ، اوالله ډيرمهربان دې پۀ بندگانو | | | | | | | | | | |

﴿يَوْمَ تَجِدُ﴾ دا تخويف اُخروی دې، د ((يوم)) عامل ((تودّ)) دې او ((تجد)) د وجدان (موندل) نه مشتق دې او يومفعول غواړی چه هغه ((ماعملت)) دې او ((مُحضَرًا)) حال دې، يا تجد په

معنى دعلم سره دي نودوه مفعوله غواړی نو «محضراً» يې مفعول ثانی دې «محضرًا» حاضربه وی ليکلي شوې په عمل نامه کښې يا حاضرپه صورتونوسره. ياجزاء د اعمالو به حاضره وی «تود» يعنی دقيامت په ورځ چه کله دهرچانيك اوبدعمل ده ته مخامخ اوحاضر کړې شی اوحساب، کتاب شروع شی نو هر سړې به دا تمناکوی چه ارمان دې چه څما او دبدو اعمالو په مينځ کښې لرې فاصله وې او ما دا بد اعمال نه ليدلې.

﴿وَٱللَّهُ رَءُوفُۢ بِٱلۡعِبَادِ﴾ يعنې دا دالله ﷻ مهربانی ده چه بندګان دخپلې نافرمانۍ نه يره وی او د اطاعت ترغيب ورته ورکوی.

| اللهُ | يُحۡبِبۡكُمُ | فَٱتَّبِعُونِي | اللهَ | تُحِبُّونَ | كُنتُمۡ | إِن | قُلۡ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| تاسوسره الله | نومحبت به اوکړي | خما[1] | اوکړئ | نوتابعداري | دالله سره | ځي تاسومحبت کوئ | ته اووايه ائي پيغمبره کچړې |
| أَطِيعُوا | قُلۡ | رَّحِيمٌ ۝ | غَفُورٌ | وَٱللهُ | ذُنُوبَكُمۡ ط | لَكُمۡ | وَيَغۡفِرۡ |
| تابعداري کوئ | ورته اووايه چې | او رحم کوونکې دې | بخښنه کوونکې | اوالله | دګناهونوستاسو | تاسوته | اوبخښنه به اوکړي |

| ٱلۡكَٰفِرِينَ ۝ | لَا يُحِبُّ | فَإِنَّ ٱللهَ | تَوَلَّوۡا | فَإِن | وَٱلرَّسُولَ | ٱللهَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دکافرانو سره | محبت نه کوي | بېشکه الله | واړولو نو | پس که تاسومخ | اودرسول . | دالله |

﴿قُلۡ إِن كُنتُمۡ تُحِبُّونَ ٱللَّهَ فَٱتَّبِعُونِي﴾ يعنی لکه څرنګه چه ما دخپل مشرك رشته دارانو سره خپل تعلق اوموالات اومحبت ختم کړيدې نودغه شان تاسوهم وکړئ اوځما اتباع وکړئ او زما په اتباع کولوسره به تاسوته دوه فائدې حاصلې شی، **اول** دا چه تاسو به دالله ﷻ محبوب وګرزئ. يعنې په اتباع دمحبوب ﷺ سره انسان دالله ﷻ محبوب ګرځی. **دويم** داچه الله ﷻ به ستاسوګناهونه معاف کړی. نومعلومه شوه **چه اتباع سنت د دوه خيرو دپاره ذريعه** ده محبوبيت ،مغفرت . اوپدې آيت کښې رد دې په هغه چا باندې چه دعویٰ دمحبت دالله کوی اوخلاف کوی دطريقې دمحمد ﷺ نه لکه جاهلان پيران ،ملنګان يا بدعتيان. مدارك وغيره ليکلی دی چه څوك دالله ﷻ دمبحت دعوی کوی او بيا خلاف کوی دسنت نه نو دغه سړې سخت دروغژن دې او دالله ﷻ کتاب دهغه تکذيب کوی.

---

[1] څما به شان: دخپل مشرک رشته دارانو سره قطع تعلق اوکړئ.

قال الوراق:

| | |
|---|---|
| تعصی الا الهَ و انتَ تُظهِرُ حُبَّهُ | هذا لعمری فی القیاس بدیعُ |
| لو کان حبُّكَ صادقا لاطعتَهُ | اِنَّ المحبَّ لِمَنْ یُحِبُّ مطیعُ |
| ان کنتَ فی دَعوی المحبةِ صَادِقًا | لا ان دعـوی الحب منكَ شنیعُ |
| فا ختر متابعةَ الرسولِ فَاِنَّهُ | مستشفعٌ و مشفعٌ و شفیعُ |

((قال رسول الله ﷺ کل امتی یدخلون الجنة الامن ابی قیل ومن یابی یارسول الله ﷺ قال من اطاعنی دخل الجنة ومن عصانی فقدابی)) «رواه البخاری».

﴿قُلْ أَطِيعُوا اللَّهَ وَالرَّسُولَ﴾ دا دماقبل دپاره تاکیددي

**فایده**: **اتباع** په عمل اوطریقه کښې په چا پسې تللو کښې مستعملیږی و اطاعت په اقوالو کښې یعني دچا قول منلوکښې مستعملیږی اوکله عام مستعملیږی په قول او طریقه دواړو کښې، نوددې وجې نه دلته د «اطیعوا» سره ذکرد الله او د رسول دواړو وشو، اوپه اول مقام کښې ذکر د اتباع سره ذکر د رسول وشو، یعني اتباع، دعمل اودطریقې دواړو اقتداء ته ویلې شی اوپه عمل کښې اقتداء دپیغمرکیدې شی دالله نشی کیدې اوپه قول کښې اقتداء دالله تعالی اودپیغمبر ددواړو کیدې شی.

﴿فَإِن تَوَلَّوْا﴾ دا یا صیغه دماضی غائب ده یا مضارع مخاطبه ده په حذف د احدی التائین سره او «تولی» اعراض کولوته وائی نو بالکلیه اعراض کول حقیقةً کفردې او اعراض په غیر دانکار نه کفرحقیقی نه دې.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ | اللَّهَ | اصْطَفَىٰ | آدَمَ | وَنُوحًا | وَآلَ | إِبْرَاهِيمَ | وَآلَ عِمْرَانَ عَلَى الْعَالَمِينَ ۝ |
| ببشکه [1] الله غوره کړېدې آدم ﷺ اونوح ﷺ او آل دابرهیم ﷺ او آل دعمران په ټولو خلقوباندې | | | | | | | |
| ذُرِّيَّةً | بَعْضُهَا | مِن | بَعْضٍ ۗ | وَاللَّهُ | سَمِيعٌ | عَلِيمٌ ۝ | |
| پداسې حال کښې چې داجماعت نسل وؤبعضې دهغوئ نه پیداشوې دې دبعضونه، اوالله هرڅهٔ آورې اوپهٔ هر څه عالم دې | | | | | | | |

1 - دتوحید ذکرڅلورم ځل باندې چې انبیاء کرام علیهم السلام غوره وؤ لیکن معبود نه وؤ ځکه چې (۱) دیوبل نهٔ پیدا وؤ (۲) هرڅهٔ آوریدونکې او علیم صرف الله دې دوئ نه دې.

﴿إِنَّ ٱللَّهَ ٱصْطَفَىٰٓ ءَادَمَ وَنُوحًا﴾ دا ذکر دمسئله توحید دې خلورم ځل ، حاصل ئې دادې چه ((انبیاء علیهم الصلوات والتسلیمات)) بیشکه برګزیده اوغوره ؤو لیکن آلهه اومعبودان نه ؤو د دوه وجوه نه : ١- ((ذُرِّيَّةً)) مخلوق او پیدا ؤو، اومخلوق اله نشی کیدې، ٢- ﴿وَٱللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ﴾ دهرڅه اوریدونکې اوپه هرڅه عالم صرف الله ﷻ دې، دوئ نه دی، او((ذُرِّيَّةً)) منصوب دې بنا پدې چه بدل دې د آل ابراهیم اوآل عمران نه یا حال دې ددې دواړونه یا بدل دې د نوحاً او دمابعد نه، او دا هم جائزه ده چه بدل شی د آدم نه سره دمعطوفاتونه، لیکن ابوالبقاً پدې توجیه رد کړې دې چه حضرت آدم ﷺ خو ((ذُرِّيَّةً)) ندې، **جواب** دادې چه د ذریت اطلاق په آباؤ باندې هم کیدې شی لکه په سورة ((یٰس)) کښې دی چه : ((وآية لهم انا حملنا ذُرِّيَّتهم في الفلك المشحون)) چه ډیرو مفسرینو دا معنی لیکلې ده ((ای آبائهم في الفلك المشحون مع نوح)) وجه داده چه ((ذريَّة)) مشتق د ((ذرء)) نه دې په معنی دخلق سره اود آب نه خلق شویدې د ولد، نو ځکه پرې اطلاق د ذریت کیدې شی او دارنګه د ولد خلق شویدې د آب نه نوپه هغه ئې هم اطلاق کیدې شی مګر دومره خبره ده چه متبادر ترینه نسل دې ((روح)).

په ذکر د ((ذرية)) کښې یوخو نفی دالوهیة د دوئ ((پیغمبرانو)) ته اشاره ده، اوبل ددې خبرې بیان دې چه دالله ﷻ ابن هیڅ څوك نشته بلکه مخلوق دیوبل نه پیدا شوې دې، دالله ﷻ نه ندې پیدا شوې نو عیسی ﷺ ابن الله نه دې

| إِذْ | قَالَتِ | امْرَأَتُ | عِمْرَانَ | رَبِّ | إِنِّي | نَذَرْتُ | لَكَ | مَا | فِي | بَطْنِي |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هرکله [١] | چې اوونیل ښځې | دعمران | | | بیشکه ما | منخته کړې ده | خاص تالره | دهغه ولدچې | | خمابۀ خیټۀ کښې دې |

| مُحَرَّرًا | فَتَقَبَّلْ | مِنِّي | إِنَّكَ | أَنْتَ | السَّمِيعُ | الْعَلِيمُ | فَلَمَّا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| آزادکړې شوې،ددین دپاره، | نوقبول ئې کړه | خمانه، | بیشکه | ته خاص | هرڅه آورې | پۀ هرڅۀ باندې عالم ئې. | پس هرکله |

| وَضَعَتْهَا | قَالَتْ | رَبِّ | إِنِّي | وَضَعْتُهَا | أُنْثَىٰ | وَاللَّهُ | أَعْلَمُ | بِمَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| چې هغې اوزیږوله هغه، | وې وئیل | یاربه | بیشکه ما | اوزیږوله هغه | جینۍ؛ | اوالله | ښۀ عالم دې | په هغه |

| وَضَعَتْ | وَلَيْسَ | الذَّكَرُ | كَالْأُنْثَىٰ | وَإِنِّي |
|---|---|---|---|---|
| چې هغې زیږولې ده، | اوندې | هغه نارینه چې دې طلب کړې وۀ | پشان دهغه زنانۀ چې ورته ورکړې شوه، | اوبیشکه |

١ حضرت مریم معبود نه دې.

| سَمَّيْتُهَا مَرْيَمَ وَ إِنِّيْٓ أُعِيْذُهَا بِكَ وَ ذُرِّيَّتَهَا مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ ۝ |
| --- |
| مانوم ایخودې هغې لره مریم، اوبېشکه څه پناه غواړم هغې لره په تاسره اواولاددهغې لره دشیطان رټلې شوي نه |

﴿ إِذْ قَالَتِ امْرَأَتُ عِمْرٰنَ ﴾ دمسئله توحید بیان څلورم وارې وشو نواوس دڅلورمې شبهې جواب ذکرکیږی کومه چه وارديږی په مسئله د توحید باندې. او هغه دا چه عیسائیانو ویل چه حضرت مریم ته بې موسمه میوې راتلل دلیل ددې خبرې دې چه دکائناتو دتصرف اختیار دې ته ملاوٚ وۀ نوځکه دا اله اومعبوده وه ، حاصل دجواب دادې چه حضرت مریم پخپله فرمایلیدی چه دا څما په اختیاراوتصرف سره ندی، بلکه دا دطرفه دالله ﷻ نه دی.

﴿ قَالَتْ هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ﴾ اوهمدارنګه دلته الله ﷻ دحضرت عیسی ﷺ تفصیلی نسب نامه ذکر کوی دپاره ددې چه دعیسائیانو ددغه قول ﴿وَقَالَتِ النَّصٰرَى الْمَسِيْحُ ابْنُ اللّٰهِ﴾ تفصیلی رد وشی، اوشکوك اوشبهات یې ختم شی. او ابنیة لله دعیسی ﷺ عقیده رد شی او دارنګه دهغه عیسائیانو عقیده ردشی چه حضرت مریم ﷺ ته اله وائی پدې شان چه تاسې وګورئ چه حضرت مریم دڅومره دعاګانونه بعدپیداشوه اوبیائی څرنګه تربیت وشونو آیا څوك چه په خپل پیدا کیدلو کښې اوپه تربیت کښې بل چاته محتاجه وی نوهغه څرنګه اله کیدی شی.

﴿إِذْ قَالَتِ امْرَأَتُ عِمْرٰنَ﴾ دا بیان دتفصیلی نسب دحضرت عیسی ﷺ اودمریم بی بی دې دپاره ددې چه واضحه شی چه عیسی ﷺ ابن الله نه دې او دارنګه عیسی ﷺ اومریم بی بی آلهه (خدایان) نه دی .

**دعمران په نوم سره دوه شخصیتونه مشهوردی** یو د حضرت موسی ﷺ پلارچه عمران بن یصهردې، اوبل دحضرت مریم پلار. دعیسی ﷺ دمور دطرفه نیکه چه عمران بن ماتان دې او دعمران بن یصهرنه څوصدئ بعد پیدا شوې دې، دلته دعمران نه مراد دا دویم عمران دې او دا قول صحیح دې اوبعضو ویلی دی چه کیدې شی چه اول مراد شی او دا قول مرجوح دې او «امرأة عمران» (دعمران ښځه) چه دعیسی ﷺ جده (ام الام) نیا ده نوم ئی حنّه بنت فاقوذا دې او ددې بله خورچه نوم ئی ایشاع بنت فاقوذا دې هغه دحضرت زکریا ﷺ بی بی (ښځه ، وه

اوذ يحي ﷺ موروه، **نويحيى ﷺ اومريم بى بى اولاد دخاله (ماسى) دى**، نوعيسى ﷺ زوي دلوردخاله ديحيى ﷺ دي اودا خبره اهل سيروذكركړي ده.

اوحديث دابوهريرة ﷺ نه ئى تائيدمعلوميږى چه نقل كړي دي امام حاكم، ليكن په دي باندي قوى اشكال دي هغه دا چه په حديث دمعراج كښي چه روايت ئى كړي دي شيخينو داسي الفاظ دى: ((فاذا انا بابنى الخالة عيسى بن مريم ويحيى)) نو دا تصريح ده پدي چه دوئ دواړه اولاد دخاله دى، **جواب** دادي چه پدي حديث كښي مجاز دي څكه ډير واري اطلاق كيږى دخاله په بنت الخاله باندي دكرامت اواعزاز په وجه، دلته هم حديث پدغه استعمال وارد دي اوپه حقيقت كښي دوئ ابنى الخالة نه دى بلكه عيسى ﷺ ابن د بنت الخاله ديحيى ﷺ دي (زوي دلوردخاله ديحيى ﷺ).

پس هركله چه امرأة عمران يعني دحضرت مريم بى بى والده په اميد شوه نو دي نذروكړو چه يا الله څما دبطن (ګيډي) نه چه كوم بچي پيداشى هغه به ستا د عبادت اوستا دكور دخدمت دپاره وقف وى، ددوئ په شريعت كښي داسي نذرجائزوو.

نو دا **سوال** وارد نه شوچه نذرخو دمملوك كيدي شى او دغيرمملوك نذرنشى كيدى ((لقوله ﷺ لانذر فيما لا يملكه ابن آدم)) او ولد مملوك ندي، يا دا **جواب** دي چه دا نذرحقيقى شرعى ندي بلكه صرف مقرركول اوالتزام كول دئ چه دا متوقع بچي به ددين دخدمت دپاره وقف وى ((محررًا)) دا حال دي دمفعول نه چه ((ما فى بطنى)) دي، (ما) په معنى د ((الذى)) سره دي او د ((محررًا)) معنى داده چه آزاد به وى ددنيا دكارونونه خالص دعبادت اودخدمت دبيت المقدس دپاره به فارغ وى، بعضو ويلى دى چه دلته لفظ دغلاماً موصوف مقدر دي ((اى غلاماًمحرراً)) څكه چه دخدمت دبيت المقدس دپاره نارينه وقف كيدي شى.

﴿فَلَمَّا وَضَعَتْهَا﴾ ضمير د (ها) راجع دي ((مافى بطنى)) ته او تانيث ئى په اعتبار دمعنى سره دي

﴿قَالَتْ رَبِّ إِنِّي وَضَعْتُهَآ أُنثَىٰ﴾ دا جمله خبريه د اخبار وركولو دپاره نه ده بلكه مقصود ترينه اظهار دحسرت دي نوحضرت حنه چه دمريم بى بى مورده په ډيرحسرت او افسوس سره ئي دالله ﷻ سره مناجات وكړ چه يا الله زما نذر به پوره نشى څكه دا جينئ ده نو خدمت دبيت

المقدس دپاره وقف کيدې نشي اوکه چرې نارينه بچې وې نو ځما نذر به پوره شوې وې.

﴿وَٱللَّهُ أَعۡلَمُ بِمَا وَضَعَتۡ﴾ دا جمله معترضه ده، دلته دوه قرائته دی : يوپه سکون د تاء سره لکه دا زمونږ متعارف متواترقرأت دې، نو پدې تقديرسره دا کلام دالله ﷻ دې، يعنی الله فرمائی چه مور دمريم ﷺ دخپل خيال مطابق حسرت کولو، حالانکه الله ﷻ زيات عالم دې په شان دهغه جينۍ چه پيداشوه او د دې وجې نه «ما» مبهم ذکرشو نو دا تنبيه ده په لوئ والی دقدر ددې جينۍ باندې، چه ددې شان په نزد دالله ﷻ ډيراوچت دې ، ځکه چه دا دعيسی ﷺ مورده ((وجعلناها وابنهاآية للعلمين)) دا دواړه دعالمينو دپاره لويې نشانې دقدرت دالله ﷻ دی، اومور دمريم ددينه نوه خبره نوځکه ئی اظهار دحسرت وکړو .

**دويم** قرأت په ضمه د تاء سره صيغه دمتکلم ده، «والله اعلم بماوضعتُ» نو دا عذرپيش کوی الله ﷻ ته چه زما داسې بچې پيداشو چه الله پرې عالم دې چه هغه صلاحيت ځما دغرض نه لری، يا تسلی خپل ځان ته ورکوی، نو بنا پدې قرأت دا کلام دالله ﷻ نه دې، بلکه دامرأة عمران کلام دې، ليکن **سوال** واردیږی چه بيا نفی دناقص پکار وه دکامل نه، يعنې داسی ويل پکاروو ((ليس لانثی کالذکر)) . **جواب** دادې چه : دلته پکلام کښې قلب دې يا دغه قانون کلی ندې کما فی قوله تعالی : ﴿يَا نِسَآءَ ٱلنَّبِيِّ لَسۡتُنَّ كَأَحَدٖ مِّنَ ٱلنِّسَآءِ﴾ .

﴿وَلَيۡسَ ٱلذَّكَرُ كَٱلۡأُنثَىٰ﴾ داهم جمله معترضه ده اوقو ل دالله ﷻ دې او دليل دې دپاره دعظمت شان د مولود، اولام په «الذّ کر» کښې عهدی دې، يعنې ندې هغه نارينه اولاد چه هغې طلب کړې وُو «کالانثی» پشان دهغه جينۍ چه هغې ته ورکړې شوه، بلکه دغه جينۍ په عظمت شان کښې دنارينه ولد نه ډيره غوره ده، ځکه چه ددې کمالات عجيب اوغريب دی، بعضې مفسرين وائی چه دا کلام د امرأة عمران دې اوغرض ترينه تحسر او افسوس کول دی په ولادت دجينۍ باندې، او پدې توجيه باندې سوال اوجواب تيرشو .

﴿وَإِنِّي سَمَّيۡتُهَا مَرۡيَمَ﴾ دمريم معنی ده عابده چه اسم دمسمیٰ سره برابرشی او ددينه معلومه شوه چه بچې له په ورځ د ولادت نوم وضع کول پکار دی او ډير تاخير پکښې ندې مناسب او مور دمريم چه دا کلام پيش کړو الله تعالی ته، حالانکه هغه علام الغيوب دې نو پدې کښې اشاره ده ديته چه دا وائی چه زه دخپل عزم نه واپس شوې نه يم نوکه دا جينۍ دبيت

المقدس دخدمت صلاحيت نه لري نوعابده خوكيدې شي، او دمريم معنى ده عابده، اوتقديم د «انّي» چه مسند اليه دې دلالت كوي په تخصص دتسمية باندې، نو دا د دې وجې نه چه پلار ئې وفات شوې ؤو، يعنى التسمية منى لايشاركنى فيها ابوها فعلم انه كان قد ماتَ .

﴿ وَإِنِّىٓ أُعِيذُهَا ﴾ دا دعاء دمور دعاء ده په حق دمريم اودعيسى ﷺ كښې اوقبوله شوې ده، لكه په حديث دصحيحينو كښې دى چه هر بچې په وقت د ولادت كښې شيطان ئې مسه كوي نوهغه آواز اوچت كړي او په چغوسره وژاړي، مگر مريم اوعيسى ﷺ ددې نه محفوظ دي د الله تعالى په اذن سره او د مور د دعاء په بركت سره.

**سوال** : شيطان خومَسْ په وقت د ولادت كښې كوي او دعاء خو وروسته شوې ده نو ممكن ده چه د دعاء نه مخكښې به مس شيطاني شوې وي. **جواب** : دا دعاء د ولادت سره يوځاى شوې وه، نو په دغه وقت كښې مس شيطانى نه وه واقع شوې، (تهانوى رحمه الله).

حضرت عثمانى رحمة الله عليه فرمائي چه ضرورى نه ده چه دغه حديث دې د دې آيت تفسيرشى اوكه تفسيرشى لكه حديث دابوهريرة رضي الله عنه كښې تير شو نوكيدې شى چه واؤ د ترتيب دپاره نه وى، يعنى په آيت كښې دا تصريح نشته چه دعاء خامخا د ولادت نه بعد وه، بلكه كيدې شى چه قبل وى، ځكه چه دا دعاء په واؤ سره ذكرشوې ده، واؤ په ترتيب دلالت نكوى، يا دا چه ذكر دمريم تمهيداً دې مقصود بچ كيدل دعيسي دى، لكه پدې دلالت كوى بل روايت چه په هغې كښې ذكر دمريم بى بى نشته دې.

**سوال** : ددينه خو فضيلت دمريم او دعيسى ﷺ لازم شو په نبى ﷺ باندې .

**جواب** : دا فضيلت جزئى دې ددينه فضيلت كلى نه معلوميږى .

حضرت مولانا شبير احمد عثمانى رحمه الله فرمائي چه دحديث مطلب دادې چه بچې په اصل فطرت صحيحه باندې پيداكيږى او ددې ظهور دعقل اوتميزنه بعدكيږى ليكن كله د خارجي اثراتو اوماحول دوجې نه اصل فطرت خراب شى لكه : «فابواه يهوّدانه ـ الحديث» نو لكه څرنګه چه دايمان تُخم په فطرت كښې اينودلې شوې دې نو دغسې دخارجي اثراتو ابتداء دولادت نه بعدشروع كيږى چه په هغې كښې يوقسم مسِ شيطانى دې چه غيرمحسوس دې، خو دا ضرورى نه ده چه هرڅوك دې دا اثرقبول كړى، ياكه ئې قبول كړى نوضرورى نه ده چه باقى دې پاتى شى اوچونكه دتمامو انبياؤ دعصمت ذمه وارى الله ﷻ اغستې ده نوكه

بالفرض په ابتداء ولادت کښې دمس شیطان صورت پیش شوې وی اومستثنیٰ نه وی دعیسی ﷺ اومریم بی بی پشان، نو بیاهم پدې مقدسو هستیانو باندې دشیطان ددې حرکت څه مُضر اثرنه پریوزی.

حضرت مریم بی بی چه کله پیداشوه نو ددې موردا بیت المقدس ته یوړه، هلته مجاورینو اوعابدینو، چه په هغوئ کښې حضرت زکریا ﷺ هم ؤو، هغو ته ئی وویل چه دا جینئ ما خاص دالله ﷻ دپاره نذرکړې ده نو تاسو یې واخلئ او پرورش ئی وکړئ نوچونکه دمریم بی بی پلار عمران امام مسجدهم ؤو اوددې پلارهم ؤو نو هغه حقدارؤو ددې دپرورش لیکن هغه قبل دپیدایش ددینه وفات شوې ؤو، نو مورئی نورو مجاورینو اوعابدینو ته ورکړه نوحضرت زکریا ﷺ وویل چه زه زیات حقداریم ددې دپرورش ځکه چه دَ ده ښځه دَمریم بی بی خاله وه اوخاله په منزله دمور وی مگر نور مجاورین پدې خبره راضی نه ؤو، نو آخرپه قرعه باندې اتفاق راغې اوقرعه اندازی هم په عجیب اوغریب طریقې سره طې شوه لکه ددې بیان بعد کښې راځی، غرض داچه حضرت مریم بی بی حضرت زکریا ﷺ ته حواله شوه نوپه بعضې روایاتو کښې دی چه حضرت زکریا ﷺ ددې دپاره نوکر مقررکړو چه د هغه ښځې دې ته تئ ورکولو اوپه بعضې روایاتوکښې دی چه دیته دَ تی ورکولو ضرورت نه ؤو راغلې «روح».

اوهرکله چه دا په (کیناستو پاسیدلو) شوه نو دائی دمسجدپه یوکمره عبادت گاه کښې دیره کړه اوچه زکریا ﷺ به باهرته چرته تللو نودروازه به ئی دباهرنه بنده کړه اوقفل (تاله) به ئی کړه، نوچه دباهرنه به زکریا ﷺ راغې اوتاله به ئی خلاصه کړه اودروازه به ئی کولاؤ کړه نوتازه او بې موسمه میوې به حضرت مریم علیه السلام سره موجودې وې، ددې ذکر به وروسته آیت کښې راځی ، ان شاء الله تعالی.

| فَتَقَبَّلَهَا | رَبُّهَا | بِقَبُوْلٍ | حَسَنٍ | وَّ اَنْۢبَتَهَا | نَبَاتًا | حَسَنًا ۙ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نوپس قبوله کړه دې لره | رب ددې | په قبولولوښائسته سره | | اوزرغون ئې کړه هغه | په زرغونولوښائسته سره | |
| وَّكَفَّلَهَا | زَكَرِيَّا ۚ | كُلَّمَا | دَخَلَ | عَلَيْهَا | زَكَرِيَّا | الْمِحْرَابَ ۙ |
| اواوسپارله ئې هغه | حضرت زکریاته ، | هروخت چې | داخل به شو | په هغې باندې | زکریا | عبادت خانې ته |

| وَجَدَ عِنْدَهَا رِزْقًا ۚ قَالَ يٰمَرْيَمُ اَنّٰى لَكِ هٰذَا ؕ قَالَتْ هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ؕ |
|---|
| موندلويه ني هغې سره رزق، اوونيل هغه چه اې مريم دکوم خائې نه تالره دادې، اوونيل هغې دا دَ (۱) طرفه دَ الله نه دې |
| اِنَّ اللّٰهَ يَرْزُقُ مَنْ يَّشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ۝ |
| بېشکه الله رزق ورکوي چاته چې اوغواړي بې حسابه |

﴿فَتَقَبَّلَهَا رَبُّهَا بِقَبُولٍ حَسَنٍ﴾ يعنې ددوئ په ملت کښې غلام نذرکول قبليدې شو او جينئ نذرکول نه شو قبليدلې ليکن دمريم دمور اخلاص اوتضرع او زارى الله ﷻ ته قبوله شوه نو دا يې قبوله کړه په خائسته قبلولو سره، خائسته قبلولونه مراد ددين لپاره قبلول دى يا دحضرت زکريا ﷺ کفالت اوتربيت دې.

﴿وَأَنبَتَهَا نَبَاتًا حَسَنًا﴾ ددينه جسمانى انبات مراد دې لکه روايت دې دابن عباس ﷺ نه چه دا به يوه ورځ دومره لوئيدله لکه نوربچى چه په کال کښې لوييږى او دارنګه روحانى، اخلاقى، علمى، تربيت اوترقى ترينه هم مراد دى. ﴿وَكَفَّلَهَا زَكَرِيَّا﴾ اوحضرت زکريا ﷺ ددې سرپرست شو.

﴿ كُلَّمَا دَخَلَ عَلَيْهَا زَكَرِيَّا الْمِحْرَابَ ﴾ «محراب» خلوت ګاه ، عبادت ګاه ته وائى اود «حرب» نه مأخوذ دې، عبادت ګاه هم آله دحرب مع الشيطان وى «کلما» په تکرار دفعل دلالت کوى، يعنى دا مذکوره کرامت دحضرت مريم نه باربارظاهر شويدې، او تنوين په «رزقا» کښې دتعظيم دپاره دې ځکه دغه رزق دغيب نه محض کرامةً راغلې ؤو او د رزق نه مراد په نزد داکثرو سلفو رزق ظاهرى يعنې خوراك مراد دې چه بې موسمه ميوې وې، لکه ژمى کښې دګرمئ دموسم ميوې او دارنګه بالعکس، او د مجاهد نه په يوروايت کښې ددينه علمى صحيفې او روحانى غذا مراد ده.

﴿ أَنَّىٰ لَكِ هَٰذَا﴾ چونکه دا رزق خلاف عادت په غير داسبابونه راتلو نو ددې وجې حضرت زکريا ﷺ دتعجب په طورسره تپوس وکړو چه «أَنَّىٰ لَكِ» نوحضرت مريم بى بى جواب ورکوى ﴿قَالَتْ هُوَ مِنْ عِندِ اللَّهِ﴾ چه دا بې موسمه ميوې اوپه غير د اسبابو نه راتلل زما داختيار اوتصرف په وجه ندى بلکه دا د الله عطيه اوفضل دې او پدې سره دعيسائيانو

1 - جواب شبه متعلق دمريم.

دشبهې ازاله وشوه.

﴿مَن يَشَآءُ بِغَيۡرِ حِسَابٍ﴾ فراخ رزق، يا په غير دتعب اوسترپا نه، رزق بغيرحساب حاصلیږی په تقوی سره. اللهم ارزقنا التقوی

| هُنَالِكَ | دَعَا | زَكَرِيَّا | رَبَّهُۥ | قَالَ | رَبِّ هَبۡ لِي |
|---|---|---|---|---|---|
| دغلته (١) | دعاء اوغوښتله | زکریا | د خپل رب نه ، | وې وئیل | اې ربه خمارا وبخښې ماته |
| مِن | لَّدُنكَ | ذُرِّيَّةً | طَيِّبَةًۖ | إِنَّكَ | سَمِيعُ الدُّعَآءِ |
| دخپل طرفه (يعني محض دخپل فضل نه) | اولاد (خوئي) | پاکيزه، | بېشکه ته | آوريدونکي (قبلوونکي) | د دعائې |

﴿هُنَالِكَ دَعَا زَكَرِيَّا﴾ لفظ د (هنالك) دمكان دپاره هم راځی او د زمان دپاره هم راځی دلته دواړه صحيح دی، اودا **دپنځمې شبهې جواب دې**، شبهه دا وه چه دحضرت زکریا ﷺ په نهايت بُډاوالی کښې اولاد پيداکيدل دليل ددې خبرې دې چه دده سره اختيارات اوتصرفات ؤو لهذا هغه اله دې. **جواب**: د اولاد پيدا کيدل په دعاء او غوښتلوسره ؤو دالله تعالي نه، حضرت زکریا ﷺ بُډاشوې ؤو اوبی بی ئی هم بوډئ وه د اولاد دپيداکيدو قابله نه وه ليکن چه کله حضرت زکریا ﷺ وليدل چه مريم بی بی ته الله ﷻ بی موسمه ميوې ورکوی نوماته هم بې موسمه اولاد («ثمرة القلب») راکولې شی، نو دعاء يې وکړه چه يا الله ماته خاص دخپل طرفه يعنې په غير د اسبابو ظاهريونه پاکيزه او ديندار اولاد راکړې.

| فَنَادَتۡهُ | الۡمَلَٰٓئِكَةُ | وَهُوَ | قَآئِمٞ | يُصَلِّي | فِي | الۡمِحۡرَابِ | أَنَّ | اللَّهَ | يُبَشِّرُكَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| نوآواز ورکړو | هغه ته ملائکواو | دې ولاړ ؤو | | مونځ ئې كولو | په عبادت خانه كښې، | | چې بېشکه | الله | زيرې درکوي تاته |
| بِيَحۡيَىٰ | مُصَدِّقَۢا | بِكَلِمَةٖ | مِّنَ | اللَّهِ | وَسَيِّدٗا | وَحَصُورٗا | وَنَبِيّٗا | | |
| په يحيى | سره تصديق كوونكې به وي. | دكلمې | | دالله | اوسرداربه وي | اوپاک لمنې (پاکباز)به وي | اوپيغمبربه وي | | |
| مِّنَ | الصَّٰلِحِينَ | | | | | | | | |
| د اعلى كاملو نيكانو نه به وي | | | | | | | | | |

---

١ - جواب شبه متعلق دزكريا ﷺ.

﴿فَنَادَتْهُ ٱلْمَلَـٰٓئِكَةُ﴾ يعنې د دعاء نه بعد متصلاً اجابت وشوو. (فا) دلالت كوي په تعقيب مع الوصل باندې، ندا كونكې حضرت جبرئيل ﷺ دې خوجمع ذكرشويده تعظيماً يا ددې وجه نه چه نور اتباع هم ورسره ؤو.

﴿ يُصَلِّى فِى ٱلْمِحْرَابِ ﴾ محراب نه مراد ځائ د وقوف د امام دې په مسجد كښې يا هغه غرفه اوكمره مراد ده چه حضرت مريم په كښې وه، او دا كلام چونكه د الله ﷻ د طرفه ؤو نو پدې سره حضور د مونځ نه فوت كيدلو بلكه نور زياتيدلو .

﴿ يُبَشِّرُكَ بِيَحْيَىٰ﴾ يحيى لفظ عجمي دې غيرمنصرف دې دوجهِ دعجمه اوعلميت نه يا لفظ عربي دې صيغه دفعل مضارع ده، غيرمنصرف دې دوجې د وزن فعل اوعلميت نه، **وجه دتسميه په يحيى** سره داده چه الله ﷻ د ده زړه جوندې كړى دې په ايمان او هدايت سره، يا به دې جوندې كوى دين دالله ﷻ ﴿ مُصَدِّقًۢا ﴾ داحال دې، ﴿بِكَلِمَةٍ مِّنَ ٱللَّهِ﴾ دكلمة الله نه مراد عيسى ﷺ دې ځكه چه دې پيدا شويدې په كلمه د (كن) سره، او ددينه معلومه شوه چه اول تصديق كوونكې دعيسى ﷺ، يحيى ﷺ ؤو يا مراد دكلمة الله نه تورات او انجيل او نور آسمانى كتابونه دى.

﴿وَسَيِّدًا﴾ مقتدا، سردار، اوهغه څوك چه جامع د اخلاقُ حسنه ؤ وى، نورې متعددې معانى هم ددې ذكر شوى دى (ذكرهالى الروح) ﴿وَحَصُورًا﴾ د«حصور» معنى يا داده چه د ګناه نه بچ كيدونكې يا هغه څوك چه زنانه ته راتلل نشى كولې، يعنى ډير پاكباز چه زنانه ته به په زنا سره راتلل نشى كولې يا دا چه نكاح به نه كوى، نو **سوال** واردیږى چه نكاح كول خوسنت دى نو دا خوصفت مدح نشو، **جواب** دادې چه نكاح نه كول دهغه سرى دپاره صفت دَ مدح دې چه فكر دآخرت اوددين پرې داسې غالب وى چه دحقوقُ اداء كولوطرف ته ئى توجه نه وى، بعضو ويلى دى چه دا د ده خصوصيت ؤو. ﴿مِّنَ ٱلصَّـٰلِحِينَ ﴾ روايت دې چه يحيى ﷺ نه څه ګناه كړيده اونه ئى تصورد ګناه كړيدې

| قَالَ | رَبِّ | اَنّٰى | يَكُوْنُ | لِىْ | غُلٰمٌ | وَّقَدْ | بَلَغَنِىَ | الْكِبَرُ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوونيل زكريا | انې ربه | خماڅرنګ | به پيداشي | خماځوئې | اوبه تحقيق | سره | رسيدلې دې ماته | بوډاتوب |

| وَامْرَاَتِىْ | عَاقِرٌ ط | قَالَ | كَذٰلِكَ | اللّٰهُ | يَفْعَلُ | مَا يَشَآءُ ۝ | قَالَ | رَبِّ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوبنځه خما | شنډه ده | اوونيل (ملائک) | دغسې (به ئې ته) | الله | كوي | څه چې غواړي | اوونيل | چې انې ربه خما |

| جْعَلْ لِّيْٓ | اٰيَةً ؕ | قَالَ | اٰيَتُكَ | اَلَّا تُكَلِّمَ | النَّاسَ | ثَلٰثَةَ | اَيَّامٍ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوگرزوه څمادپاره یونخښه(علامت)اوویل هغه نښه ستاداده چې خبرې به نشې کولې دخلقوسره درې ورځې | | | | | | | |

| اِلَّا رَمْزًا ؕ وَاذْكُرْ رَّبَّكَ كَثِيْرًا وَّ سَبِّحْ بِالْعَشِيِّ وَ الْاِبْكَارِ۠ |
|---|
| مګرپهٔ اشارې سره، او یادوه رب خپل ډېر ډېراو تسبیح وایه بیګاه صبا |

﴿قَالَ رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِىْ غُلٰمٌ﴾ ددې سوال مقصود انکار یا استبعاد ندې د قدرت دالله ﷻ نه بلکه مقصود تپوس دې دکیفیت د پیدا کیدلو دَ وَلَد چه په څهٔ طریقه به ولد پیدا کیږی چه آیا مونږ به بیا څوانان کیږو او که بل واده به کوم اوکه پدې حال کښې به مې اولاد کیږی، نو جواب ورته راغې چه په دغه حالت به تاسویئ او اولاد به موکیږی، یا دا صورت د انکاردې اومقصود ترینه تجدید دبشارت دې یعنی ظاهراً اوصورة ئی انکاروکړو دپاره ددې چه الله ﷻ دوباره بشارت راکړی او د ډیرې خوشحالۍ په خبرکښې داسی کیږی.

﴿وَقَدْ بَلَغَنِىَ الْكِبَرُ﴾ لفظ د «بلغ» داسې هم ویلې شی «بَلغتُ الکبَر» او داسې هم ویلې شی «بلغنی الکبرُ» پدې وخت کښې دحضرت زکریا ﷺ عمر (۱۲۰) کاله یا (۹۲) کاله ؤو.

﴿وَامْرَاَتِىْ عَاقِرٌ﴾ قرطبی وائی عاقر په اصل کښې دشګو هغه غونډئ ته ویلې شی چه شین بوټی پکښې نه پیداکیږی اوپه عرف کښې هغه ښځه ویلې شی چه اولاد ئی نه کیږی نارینه وی اوکه ښځینه، اوعقیم ورته هم ویلې شی، صاحب دروح المعانی وائی چه عاقر، عقیم ته وائی «التی لاتلد» د عقرنه مشتق دې په معنی دقطع سره څکه ذات عقر وی د اولاد نه، اوعاقر صیغه داسم فاعل د نسبة دپاره دې، اودا قسم اسم فاعل په معنی کښې مفعول وی «ای معقورة» اوددی وجه نه «تاء» د تانیث ورسره نه ملحق کیږی، اوعمر دښځې ئی ۹۸کاله وو . ﴿قَالَ﴾ فاعل ئی لفظ د «الله» دې ﴿كَذٰلِكَ﴾ «ای انتما کذالك» یعنې تاسو به دغه شان یئ ﴿اللّٰهُ يَفْعَلُ مَا يَشَآءُ﴾ دا تعلیل دې «ای اذ الله یفعل مایشاء».

﴿قَالَ رَبِّ اجْعَلْ لِّىْٓ اٰيَةً﴾ حضرت زکریا دالله ﷻ نه سوال وکړو چه ماته یوه نښه اوعلامه راکړه چه څما ښځه حامله شوې ده اوکه نه، او ددې علامې طلب ئی یاد «استعجالاً للسرور» دَ وجې نه وکړو څکه چه خوشئ ته دَ انسان جلدی وی، یا ددې دپاره چه شکر ډیر ادا کړی، نو الله ﷻ وفرمایل چه علامه داده چه ﴿اَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ﴾ چه ژبه به دې بې اختیاره دخبرونه بنده شی، او **پدې کښې حکمت** داؤو چه هر کله ژبه بغیر د ذکراوشکرنه په بل

څه نه چليږي نو خامخا به ذکر اوشکر ډير ډير کوی اوهم دا دده مقصود ؤو، بعضې مفسرين وائی چه د «ان لاتکلم الناس» نه مراد اختياراً کلام بندول دی دا الله ﷻ دحکم دوجې نه څکه چه په بنی اسرائيلو کښې دصوم السکوت يعنې دچُپې روژې حکم ؤو، نو ددوئ په صوم کښې امساک دکلام نه هم وو، نو دا کنايه دصوم نه ده ليکن دا قول ضعيف دې، څکه چه په سورت مريم کښې ثلث ليالٍ ذکردې اوظاهره ده چه دشپې روژه نه وی.

﴿ إِلَّا رَمْزًا ﴾ دا استثناء منقطع ده څکه چه «رمزا» دجنس دکلام نه ندې اوبعضې وائی چه رمز صوت خفی ته هم شامل دې نو دا استثناء متصله ده، ليکن قولِ اوّل اصح دې.

﴿بِالْعَشِيِّ وَالْإِبْكَارِ ﴾ «عشی» د زوال نه غروب پورې او «ابکار» دفجرنه دضحیٰ پورې وخت ته وائی اومراد ترينه دوام دې، بعضې مفسرينو دتسبيح نه مونځ مراد کړې دې، اوبعضې مفسرينو دذکرنه ذکرقلبی اوتسبيح نه ذکرلسانی مرادکړيدې.

| |
|---|
| وَإِذْ قَالَتِ الْمَلَٰٓئِكَةُ يَٰمَرْيَمُ إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَىٰكِ وَطَهَّرَكِ وَاصْطَفَىٰكِ |
| اوکوم وخت چې اوونيل ملائکو ائې مريم بيشکه الله غورکړې ئې ته اوپاکه ساتلې ئې ته اوغوره والئ ئې درکړې دې تاته |
| عَلَىٰ نِسَآءِ الْعَٰلَمِينَ ۝ يَٰمَرْيَمُ اقْنُتِى لِرَبِّكِ وَاسْجُدِى وَارْكَعِى مَعَ الرَّٰكِعِينَ ۝ |
| په زنانؤدجهان باندې اې مريم ! تابعداري کوه درب خپل اوسجده کوه اورکوع کوه درکوع کوونکو سره |
| ذَٰلِكَ مِنْ أَنۢبَآءِ الْغَيْبِ نُوحِيهِ إِلَيْكَ ۚ وَمَا كُنتَ لَدَيْهِمْ |
| داچې ذکرشو[1] بعضې دخبرونودغيب نه دي چې مونږئې وحې کوؤ تاته، اونه وې ته دوئ سره حاضر |
| إِذْ يُلْقُونَ أَقْلَٰمَهُمْ أَيُّهُمْ يَكْفُلُ مَرْيَمَ وَمَا كُنتَ لَدَيْهِمْ |
| کله چې دوئ غورزول قلمونه خپل «يعنی قرعه» چې کوم يو ددوئ به پالنه کوې دمريم، اونه وې ته دوئ سره حاضر |
| إِذْ يَخْتَصِمُونَ ۝ |
| کله چې دوئ بحث او ګفتګو کوله په باره دساتلودمريم کښې |

﴿وَإِذْ قَالَتِ الْمَلَٰٓئِكَةُ يَٰمَرْيَمُ﴾ دحضرت مريم رضي الله عنها او دحضرت عيسى عليه السلام په حق کښې ديهودو اونصارئ ؤ نظريې په ډير افراط اوتفريط کښې وې، يهوديانو ملعونانو په حضرت

1 - جمله معترضه بيان دصداقت درسول الله ﷺ.

مریم صدیقه باندې طعن او دبدکارئ تهمت لګولو او د حضرت عیسی ﷺ دنبوت نه ئی انکار کولو او دهغه په نسب ئی طعن کولو، او د دې برعکس عیسائیانو حضرت مریم بی بی ته اله ویلو او حضرت عیسی ﷺ ته ئی ((عین الله یا ابن الله یاثالث ثلاثة)) ویلو اودحضرت مریم کرامت او دعیسی ﷺ معجزات ئی د دوئ د اُلوهیة دلیل ګرزول، نوالله ﷻ ددواړو فرقو رد کوی چه دیهودیانو نظریه غلطه ده بلکه مریم پسندیده اوپاکیزه اوپه ټولوزنانوٴ دخپلې زمانې باندې غوره اوافضله وه، لیکن معبود او اله نه وه، بلکه عابده اوساجده او راکعه وه.

﴿عَلَىٰ نِسَآءِ ٱلۡعَٰلَمِينَ﴾ **دپنځو زنانوفضیلت** په احادیثوکښې ذکر دې: ۱- حضرت مریم: بعضو ددې دنبوت قول کړې دې، ۲- آسیه امرأة فرعون، ۳- حضرت خدیجه، ۴- حضرت فاطمه ۵- حضرت عائشة، ددوئ په مابین کښې د تفاضل په باره کښې اقوال مختلف دی، یقیناً او قطعاً فضیلت دیوپه بل باندې په دلیل قطعی سره ثابت ندې.

﴿ ٱقۡنُتِي لِرَبِّكِ﴾ قنوت هر طاعت او بندګی ته ویلې شی نو «وَٱسۡجُدِي وَٱرۡكَعِي» ذکر دسجدې اورکوع ددینه بعد ذکردخاص دې بعد دعام نه، اوسجده په ذکرکښې مقدمه شوه په رکوع باندې دشرافت دوجه نه، ځکه دا اشرف جزء دې په اجزاؤ دصلوة کښې او د رکوع د ذکرسره ﴿مَعَ ٱلرَّٰكِعِينَ﴾ ځکه ذکر شو چه بعضې یهودیانو په مونځ کښې رکوع کوله اوبعضې پرینښودلې وه، نو دوئ ته حکم وشو چه رکوع کوئ، بعضې مفسرین وائی چه دمعیت نه مراد اشتراك دې په اقتدا کښې نو مراد ددینه مونځ دجماعت دې، یعنې په جماعت سره مونځ کوه او دا مقصود په «واسجدی مع الساجدین» سره اګرکه ادا کیدې شو لیکن په تخصیص درکوع کښې اشاره ده دیته چه مدرك درکوع مدرك دجماعت او د رکعت دې په خلاف دمدرك دسجدې نه اوهرکله چه په جماعت د ښځو کښې غوره داوه چه په سرو پسې دې اقتداء کوی په شرط دسترسره، نو د دې وجې نه ﴿مَعَ ٱلرَّٰكِعِينَ﴾ ذکرشو او ((مع الرکعات)) ذکرنه شو، بعضې وائی چه هرکله بی بی مریم قبوله شوه پشان دنارینوٴ نوځکه صیغه دمذکر ذکر شوه، ((ذَٰلِكَ)) داجمله معترضه ده دپاره دبیان دصداقت دنبی ﷺ اوپه ((ذَٰلِكَ))کښې اشاره ده واقعاتو دمریم اودزکریا ﷺ اودیحیی ﷺ ته لیکن په تاویل دمذکور سره نو مطابقت داسم اشاره او مشارالیه په مابین کښې حاصل شو. ﴿مِنۡ أَنۢبَآءِ ٱلۡغَيۡبِ﴾ «انباء» جمع ده یعنې خبرونه، قصې، او دغیب معنی ده «ماغاب عنك وعن قومك» «روح»

يعنى هغه خبرونه چه غائب ؤو ستا دعلم نه ځکه چه تا كتاب لوستلې نه دې او يهوديانو اونصارى ؤ ددې كتمان كولو، يهوديانوځكه كتمان كولو چه په دوئ باندې ثناء صفت دمريم اودعيسى اودزكريا ﷺ بدلګيده، اونصارى وو ئى كتمان ځكه كولو چه په دې كښې دمريم اودعيسى ﷺ دعبديت او د احتياج ذكردې اوهغوئ ددوئ د اُلوهيت قائل ؤو. ددينه معلومه شوه چه **نبى ﷺ ته دكل مغيباتو علم حاصل نه ؤو** اونه په هرځائ، مكان او زمان كښې حاضر او ناظر ؤو اونه په هرشى باندې عالم ؤو.

﴿ يُلْقُونَ أَقْلَامَهُمْ ﴾ دحضرت مريم والد د دې د پيدايش نه قبل وفات شوې ؤو ، نو هركله چه مورئى دا راوستله نو دهيكل سليمانى تول خادمان، مجاوران ددې دپرورش دپاره مختلف شو، نوحضرت زكريا ﷺ وويل چه ددې حقدار زه يم، ځكه چه زما بى بى ددې خاله ده، ليكن دا خبره نورومجاورينو تسليم نه كړه او د هر يوخواهش داؤو چه دمريم بى بى كفالت ورته حاصل شى نو دجګړې او اختلاف ختمولو دپاره دا صورت طى شو چه قرعه اندازى وشى،اوهرمدعى دې خپل قلم راوړى اوپه بهيدونكو اوبو كښې ئى دې واچوى نو چه دچاقلم دابوسره ونه بهيږى نوهغه به حقداروى نودحضرت زكريا ﷺ قلم دغه شان شو . اودا دحضرت زكريا ﷺ معجزه وه نوهغه ته مريم ﷺ حواله شوه او دقلمونونه مراد هغه قلمونه دى چه په هغې سر ئى تورات ليكلې ؤو او دجاهليت دطريقې پشان استعمال د ازلامُ ندې مراد.

﴿إِذْ يَخْتَصِمُونَ ﴾ اختصام «جګړې» نه اظهار د رغبت مراد دې په كفالت دمريم كښې چونكه رغبت دهر چا زيات ؤو نوتعبير ترينه په اختصام سره وشو .

| إِذْ قَالَتِ | الْمَلٰٓئِكَةُ | يٰمَرْيَمُ | إِنَّ اللّٰهَ | يُبَشِّرُكِ | بِكَلِمَةٍ | مِّنْهُ ۙ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اوكوم وخت[١] چې اووئيل ملائكو ائې مريم ابېشكه الله تعالى زېرې دركوي تاته په كلمې سره دخپل طرفنه | | | | | | |
| اسْمُهُ الْمَسِيحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ وَجِيهًا فِي الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ وَمِنَ الْمُقَرَّبِينَ ۙ | | | | | | |
| نوم دهغه مسيح عيسى ؑ خوئې دمريم، لوئ قدر عزت والا په دنيا اوآخرت كښې اوالله ته دنزدې كړې شوؤ نه به وي | | | | | | |
| وَ يُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ وَكَهْلًا وَّ مِنَ الصّٰلِحِينَ | | | | | | |
| اوخبرې به كوي دخلقو سره په غيږ د موركښې دمور اوپه وخت دپوخ عمر كښې اوداعلى كاملونيكانونه به وي | | | | | | |

١ جواب شبهٔ متعلق دحضرت عيسى ﷺ.

﴿ إِذْ قَالَتِ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ يَٰمَرْيَمُ إِنَّ ٱللَّهَ يُبَشِّرُكِ﴾ پدې کښې دعیسی ﷺ دپیدایش پوره قصه اوپوره نسب بیانیږی دپاره د رد دعقیدې دیهودو اود نصاریٰ ؤ چه طعن په نسب دعیسی ﷺ هم غلط دې او ده ته ابن الله ویل هم غلط دی.

**خلاصه دکلام** داده چه الله ﷻ حضرت جبرئیل په انسانی شکل کښې حضرت مریم ته را ولیږه دپاره ددې چه دبچی خوشخبری ورته ورکړی نوحضرت جبرئیل خوشخبری ورکړه او دائی ورته واضحه کړه چه محض په کلمه د «کن» سره به پیدا کیږی اوعیسی به ئی نوم (اسم محضه) وی او «مسیح» به ئی لقب وی اومورته به منسوب وی ځکه چه هغه به په غیر د پلار نه پیدا کیږی .

﴿ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ ﴾ صیغه دجمعې ده مراد ترینه جبرئیل ﷺ دې اوجمع تعظیماً ذکرشوې ده او دا هم کیدې شی چه پدغه وقت کښې دجبرئیل ﷺ سره نورملائك هم ؤو.

﴿ بِكَلِمَةٍ مِّنْهُ ﴾ (من) د تبعیض دپاره نه دې بلکه د ابتدأ دغایه د پاره دې یعنې دا کلمه صادره وه دطرفه دالله ﷻ نه **اوعیسی ﷺ ته کلمة الله ځکه وائی** چه دې محض په کلمه دکن سره پیدا شوي دې په غیر د توسط د اب نه په خلاف د نورو انسانانو . ځکه هغوئ هم بلکه هرشئ اگرکه په کن سره پیدا شویدې لیکن په توسط د اب سره پیدا شوي دې، نو گویا کښې تاثیر دکلمة د (کن) په حضرت عیسی علیه السلام کښې زیات دې د نورو انسانانو او اشیاؤ په نسبت ، او بعضې وایی چه «کلمة الله» په معنی د وعدې د الله ﷻ سره دې.

او دحضرت عیسی ﷺ په باره کښې وعده په تورات کښې ذکروه، اوبعضې وائی چه کلمة الله ورته ځکه وائی چه دې هروخت دکلمې د توحید دعوت ورکوونکې ؤو.

«اِسمه» ضمیر د مذکر «کلمة» ته راجع دې په اعتبار دمعنی سره چه «ولد» دې اولفظ د اسم په معنی عامې سره دې چه شامل دې اسم «علم» اولقب اوکنیه لره، ځکه دا درې واړه وروستو ذکر دی، او که د اسم نه فقط اسم محضه (عَلَم) مراد شی نو بیا حمل دمسیح اوابن مریم پرې نه صحیح کیږی. «المسیح» پدې لفظ کښې دوه احتماله دی : **اول** دا چه دا عبرانی لفظ دې نقل شوې دې عربی ته، او **دویم** احتمال دادې چه دا لفظ عربی دې، نو چه دا عبرانی لفظ شی نو په اصل کښې (مشیحا) ؤو، په معنی دمبارك سره، اوچه دا لفظ عربی شی نو دا

فعيل په معنى المفعول سره دي . ۱- په معنى دممسوح الملائكة ،يا ممسوح په وزر دجبرئيل ﷺ سره، يا ۲- ممسوح په تيلو د بركت سره چه په هغې سره به انبياء مسح كيدې شول ، ۳- ممسوح په معنى دپاك كړې شوى سره دې دګناهونونه، يا دا فعيل بمعنى الفاعل دې نو پدې كښې يو څو وجوه دى : ۱- مسح كوونكې يدن دمريضانو لره چه آفتونه اومرضونه ترينه زائل شي، ۲- مسح كوونكې زمكې لره په سياحت كولو اوسفركولو سره ، ۳- چاويلى دى چه په معنى د صديق (ډير رينښتيا ويوونكى) سره دې وغيرذالك، او دجال ته چه مسيح ويلې شى نو هغه پدې معنى سره دې چه يوه سترګه ئى مسح كړې شوې ده، يعنې ړنده ده، يا په معنى دممسوح الخير سره دې يعنې خيراوبركت ترينه سلب كړې شوې دې، خالص اومحض شردې ((عيسى)) داهم معّرب دې په عبرانى ژبه كښې ((ايشوع)) يا ((يسوع)) دې په معنى دسيد سره او په عربئ ژبه كښې عيسى مأخوذ دې د ((عاس يعوس)) نه په معنى دسياست اوانتظام كولوسره ، قرطبي وائى ((وان جعلته عربيا لم ينصرف فى معرفة ولانكرة لان فيه الف وتانيث ويكون مشتقا من عاسه يعوسه ،اذا ساسه وقام عليه)).

﴿ٱبْنُ مَرْيَمَ﴾ دا اسم كنيه ده اوهركله چه دعيسى ﷺ پلارنه وُو نومنسوب شومورته او مشهور شو پدې نسبت سره ((وَجِيهًا)) خاوند دجاه او دشرف (بڑے شان والے) ((شيخ ﷺ)) او دا منصوب دې بنا پدې چه دا حال مقدره دې د ((كلمة)) نه او وجاهت په دنياكښې په نبوت سره دې اوپه ابرأ الاكمه والابرص اواحياء الموتى سره، اوبچ كول دقتل اوصليب نه اوپه آخرت كښې په قبول دشفاعت سره دې.

﴿وَمِنَ ٱلْمُقَرَّبِينَ﴾ ((اى ومقربامن المقربين يوم القيمة)) يا ((رفع الى السماء)) ته اشاره ده اودا عطف دې په وجيهًا باندې .

﴿وَيُكَلِّمُ ٱلنَّاسَ﴾ دا هم عطف دې په وجيهًا باندې ﴿فِى ٱلْمَهْدِ﴾ ((مهدمضجع الصبى في الرضاع)) ته وائى، ددينه مراد هغه كلام دې چه په سورت مريم كښې ذكر دې ((قال انى عبدالله اٰتٰنى الكتاب ــ الايه)) (مريم : ۳۰- ۳۲)، ﴿وَكَهْلًا﴾ زمانه دكهولت ((مابين الشباب والشيخوخة)) ته ويلې شى ((اكتهل النبت، اذاطال وقوى)) (روح)، (اكتهال) په لغت كښې پورته كيدلوته وائى. كاهل هغه ته وائى چه (ولې- اوږه) ئى پورته وى او ډيرو اهل لغت ويلى دى چه شباب مابين دثلثين اواربعين ته ويلى كيږى، يعنې دديرش اوڅلوينښت كالو په درميان كښى زمانه دشباب ده او ددينه بعد دشپيته كالو پورې زمانه دكهوليت ده اوددې نه بعد بيا

زمانه د شیخوخة اوهرم شروع شی. دلته یو **سوال** واردیږی چه زمانه دطفولیت کښې خبرې کول خرق عادت دی نوذکر د «فی المهد» مفید دې لیکن په زمانه دکهولت کښې خبرې هرڅوك کوی نوذکر د «وکهلاً» دځه مقصد دپاره وشو.

**جواب**: ۱- حضرت تهانوی ﷫ فرمائی چه په دې کښې اشاره ده چه کلام دعیسی ﷺ په مهد کښې به داسې وی لکه کلام په زمانه دکهولت کښې، یعنی حکمت اوعبرت والا کلام به وی. نه عبث کلام پشان د ماشومانو. ۲- بعضې حضرات فرمائی چه پدې کښې اشاره ده دعیسی ﷺ نزول من السماء ته یعنې حضرت عیسی ﷺ په آسمانونو کښې ژوندې دې او اخیر زمانه کښې به راکوزیږی ځکه چه عیسی ﷺ آسمان ته دپورته کیدوپه وخت کښې کهولت (پوخ عمر) ته نه وو رسیدلې، ۳- بعضې حضرات وائی چه پدې کښې اشاره ده چه یهودیان ئې نشی قتلولې بلکه دکهولت زمانې ته به رسیږی، ۴- بعضې حضرات فرمائی چه پدې کښې رد دالوهیة ته اشاره ده، ځکه چه په چا باندې طفولیت اوکهولت زمانه راځی نو هغه اله نه شی کیدې.

﴿وَمِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ﴾ دا هم حال دې اومراد ددینه اعلی درجه دصلوح ده.

| |
|---|
| قَالَتْ رَبِّ أَنَّىٰ يَكُونُ لِي وَلَدٌ وَلَمْ يَمْسَسْنِي بَشَرٌ ۖ قَالَ |
| اوونیل مریم ائې ربهٔ خما! څنګه بهٔ اوشي خماخونې اولاس نهٔ دې لګولې ماسره هیڅ بنده، اوونې جبریل |
| كَذَٰلِكِ ٱللَّهُ يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ ۚ إِذَا قَضَىٰ أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ |
| دغسې بهٔ ئې تهٔ. الله پیداکوي هغه څهٔ چې ئې اوغواړي، کله چې اراده اوکړي دیوکار نو هغه ته صرف داوائې |
| كُن فَيَكُونُ ﴿٤٧﴾ |
| چې اوشه، نوهغه اوشي |

﴿قَالَتْ رَبِّ أَنَّىٰ يَكُونُ لِي وَلَدٌ﴾ دا تعجب دمریم په اعتباردعادت اوظاهری اسبابوسره وو.

**فایده**: حضرت مریم چه کله د اسبابو ماحول ته نوه راغلې نوچه زکریا ﷺ ترینه تپوس وکړو «انی لك هذا» نو دې بلا تأمل جواب ورکړو چه ﴿هُوَ مِنْ عِندِ ٱللَّهِ﴾ اوکله چه د اسبابو ماحول ته راغله نوچه جبرئیل ﷺ ورته دبچی بشارت ورکړو نودې تعجب وکړو چه «انی یکون لی ولد» نومعلومه شوه چه انسان دماحول نه متأثر کیږی.

﴿وَلَمْ يَمْسَسْنِي بَشَرٌ﴾ (مس) كنايه ده دوطى نه. ﴿قَالَ كَذَٰلِكِ﴾ يعنى انت كذلك.

﴿اللَّهُ يَخْلُقُ﴾ دا جمله د ماقبل دپاره تعليل دي ﴿إِذَا قَضَىٰ أَمْرًا﴾ ((اى اراد شيئا)) يعنى الله ﷻ اسبابو ته محتاج نه دي.

| |
|---|
| وَيُعَلِّمُهُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرَاةَ وَالْإِنجِيلَ ۝ وَرَسُولًا إِلَىٰ بَنِي إِسْرَائِيلَ |
| اوعلم به ورکوي ده ته دکتاب اودحکمت(قران وسنت)اودتورات اوانجيل. اوګرزوي به دې رسول بنى اسرائيلوته |
| أَنِّي قَدْ جِئْتُكُم بِآيَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ ۖ أَنِّي أَخْلُقُ لَكُم مِّنَ الطِّينِ |
| وائي به چې بېشکه ما راوړى دى تاسوته معجزې ستاسودرب دطرفنه. هغه داچې زه جوړوم تاسولره دختې نه |
| كَهَيْئَةِ الطَّيْرِ فَأَنفُخُ فِيهِ فَيَكُونُ طَيْرًا بِإِذْنِ اللَّهِ ۖ وَأُبْرِئُ |
| پشان د شکل دمرغۍ پس پوکې به کوم په هغې کښې پس شي به الوتونکى مرغۍ په حکم دالله سره. اوجوړومه |
| الْأَكْمَهَ وَالْأَبْرَصَ وَأُحْيِي الْمَوْتَىٰ بِإِذْنِ اللَّهِ ۖ وَأُنَبِّئُكُم بِمَا |
| دمورنۍ پېداشوي ړوند اوبرګي والا اوژوندي کوم مړولره په حکم دالله سره. اوخبردرکوم تاسوته په هغه څه |
| تَأْكُلُونَ وَمَا تَدَّخِرُونَ فِي بُيُوتِكُمْ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً |
| چې خورئ ئې اوهغه څه چې ذخيره کوئ ئې تاسو په کورونو کښې. بېشکه په دې کښې نښه ده |
| لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ۝ |
| ستاسودهدايت دپاره کچرې يئ تاسو ايمان راوړنکي |

﴿وَيُعَلِّمُهُ الْكِتَابَ﴾ دابيان دنورو احوالو دعيسى ﷺ دي. په ماقبل کښې احوال تکوينيه ذکرشوى وُو او دا دتشريعى احوالو ذکردې او دا عطف دې ياپه ((وجيهًا)) باندې يا په ((يبشرك)) باندې يا په ((يكلم)) باندې او دکتاب نه مراد قرآن دي، او د حکمت نه مراد حديث دي. يعنې عيسى ﷺ به د تمام آسمانى علومو حامل وى، علم د تورات اوانجيل ورته مخکښې ورکړې شوې دې او علم دکتاب يعنې د قرآن او سنت به ورته بعد کښې ورکړې شي، ليکن ذکر دکتاب اوحکمة اولاً وشو دوجې د اشرفيت نه اوبل ددې وجې نه چه دا ناسخ دي مخکنيو اديانو اوکتابونولره ((وَرَسُولًا)) دا منصوب دې په فعل مقدر سره ((اى ويجعله رسولاً)) نو پدې کښې اشاره ده دې خبرې ته چه دهغه رسول ګرځيدل بدکار ندې لکه چه

یهودیان وائی، اواله یا ابن الله هم ندي لکه چه نصاری وائی اود ((اِلٰی بَنِیۤ اِسْرَآءِیْلَ)) نه معلومه شوه چه حضرت عیسی ﷺ رسول ؤو تولو بنی اسرائیلو ته. لکه چه په سورة صف آیت ٦ کښې دی.

﴿اَنِّیۤ اَخْلُقُ﴾ دا متعلق دي د «رسولاً» سره په تقدیر د «باء» سره «ای رسولاً بانی اخلق» یا کلام په «رسولاً الی بنی اسرائیل» باندې تام شو. اودلته په طور د «ادماج» سره دا کلام مقدر دي چه الغرض حضرت عیسی ﷺ پیدا شو او بیا ورته وحی وشوه او رسول شو، نو بنی اسرائیلو ته لاړ اوهغوئ ته ئی وویل چه ﴿اَنِّیْ قَدْ جِئْتُكُمْ بِاٰیَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ﴾ اومراد د «بآیة» نه تمام هغه معجزات دی چه په مابعد کښې مذکوردی، نو مفرد په معنی دجمع سره دي.

﴿اَنِّیۤ اَخْلُقُ﴾ دابیان دمعجزاتو دعیسی ﷺ دي،هرنبی ته دوخت مناسبه معجزه ورکولې شوه لکه دموسی ﷺ په زمانه کښې دسحر اوجادو چرچه وه او د صالح ﷺ په زمانه کښې دصنعت اوحرفت چرچه وه نوموسی ﷺ ته معجزه د «عصا» ورکړې شوه اوحضرت صالح ﷺ ته ناقة ورکړې شوه، نودغه شان په زمانه دحضرت عیسی ﷺ کښې دطب یونان ډیره لویه چرچه وه اوپه دې کښې انتها درجې مهارت ته خلق رسیدلی ؤو او دهرمرض علاج به ئی کولو. خومرې به ئی په علاج سره نشو ژوندې کولې او د «اکمه» او «ابرص» علاج ئی نشوکولې او د باقی تمامو مرضونوعلاج ئی په آسانه سره کولې شو، نوالله عیسی ﷺ ته داسې معجزه ورکړه چه دوئ ته معلومه شوه چه دا معجزه ده ، او «اَخْلُقُ» په معنی دصورت اوشکل جوړولوسره دې، او لام په «لکم» کښې اجلیه دي یعنی دپاره دایمان راوړلو ستاسو نو حضرت عیسی ﷺ به دمرغئ شکل جوړکړو اوشُف به ئی پرې وکړو نو هغه به مرغئ شوه او د دوئ په مخکښې به الوتله او چه د دوئ نه به غائبه شوه نو بیا به پریوتله.

مفسرینو ویلی دی چه بنی اسرائیلو ورته وویل چه مونږ دپاره خفاش «شاپیرک» جوړکړه ځکه چه دا عجیبه خلقت والا دي چه بنړې ئی نشته او وزرې ئی شته او الوځی اوپه رڼاکښې څه نه وینی اوپه تیاره کښې وینی اوتولد ئی کیږی یعنې دبیضه «هګی» نه، نۀ پیدا کیږی ((وله اسنان ویلد وله اذان وثدی وضرع ویخرج منه اللبن ویری ضاحکا کما یضحك الانسان)) «روح».

﴿بِاِذْنِ اللّٰهِ﴾ دا جواب دشبهې ددوئ دې او دا جار اومجرورمتعلق د «اَخْلُقُ» اود

«فيكون طيرا» تېولوسره دي. نومعلومه شوه چه شكل دطيرجوړولوجائز ؤو اوزمونږپه شريعت كښې منسوخ شوې دي.

﴿وَأُبْرِئُ الْأَكْمَهَ﴾ «برء» د مرض نه جوړيدلوته وائی او «اكمه» هغه ړوند دې چه دمورنه ړوندپيداشوې وی،اوبعضو ويلی دی چه داهغه دې چه دسترګوظاهری نقشه «دهانچه» ئی هم نه وی. او ويلی شويدی چه نه ؤو پدې امت كښې اكمه. پدې معنی سره مگر قتاده بن دعامة سدوسی چه امام تفسيرؤو. او «الابرص» هغه دې چه برص بيماری ورته لګيدلې وی. مفسرين وائی چه سپين داغونه چه په څرمن كښې ښكاره شی نوكه په څرمن كښې دننه داخل وی نو دا «برص» دې او لاعلاج بيماری ده اوكه په څرمن كښې دننه نه وی نو دا «بهق» دې نو بعضې حكيمان چه دسپينو داغونوعلاج كوی اوجوړشی نو دغه «بهق» دې او د برص علاج نشی كيدلې . پدې آيت كښې د دؤو بيمارو ذكر دې او دا دلالت نكوی په نفی دنوروبيمارو باندې روايت دې چه عيسی ﷺ به د نورو بيمارو علاج هم كولو د ګوډانو، ړندو مجانينو اونورو مريضانو علاج به ئی كولوپه شرط د ايمان راوړلوسره **اوكومه دعاء به ئی چه ويله هغه داوه** «اللهم انت اِله من فی السماء و اِله من فی الارض لا اله فيهما غيرك قدرتك فی الارض كقدرتك فی السماء وسلطانك فی الارض كسلطانك فی السماء اسئلك باسمك الكريم ووجهك المنيرو ملكك القديم انك علی كل شئ قدير» وهب رحمه الله وائی چه د خواصو ددې دعانه داده چه په فزع «يريدونكی» اومجنون باندې ولوستلې شی يا وليكلې شی اوڅكلې شی نونفع وركوی «روح».

﴿وَأُحْيِ الْمَوْتَىٰ﴾ مراد ژوندی كول په دعاء سره دی. روايت كړيدې محی السنة دابن عباس رضی الله عنه نه چه دعيسی ﷺ په دعاء سره څلوركسان ژوندی شوی ؤو. **يو** «عازر» چه دعيسی ﷺ دوست ؤو. **دويم** دبوډئ زوئ چه مړؤو اوكفن ورته وركړې شوې ؤ اوپه سرير باندې ددفن دپاره وړلې شو نو په دعاء دعيسی ﷺ سره ژوندې شو او راكوزشو دسريرنه .**دريم** بنت العاشر لور دعشر اخستونكی. چه مړه وه اودعيسی ﷺ په دعاء سره ژوندئ شوه اوډيره زمانه پاتې شوه او اولاد ئی وشو. **څلورم** سام بن نوح ﷺ ، بنی اسرائيلوعيسی ﷺ ته وويل چه دا ستاپه دعاء چه ژوندی شوی دی نو تازه مړه ؤو مونږته دپخوانئ زمانې مړې را ژوندې كړه. يعنی سام بن نوح ﷺ نوده ورته ووېل چه ماته ئی قبر وښائی نو هغوئ ورته قبر وښودلو نو چه عيسی ﷺ دعاوكړه اوونئ ويل «قم باذن الله» نو دې ژوندې شو اودسر وينښته ئی

سپين ژو نو عيسى ﷺ ورته وويل چه ستا دسروينبته خنگه سپين دى؟ اوحال دا چه ستاسوپه زمانه كنبې د ويښتوسپين والي نه ژو «بلكه د ابراهيم ﷺ دوقت نه شروع شوې دې». نوسام ورته وويل چه تا كله ماته حكم وكړو چه راپورته شم، نو ما گمان وكړو چه قيامت دې نودقيامت ديرې او دغم دوجې نه مې سرسپين شو. نوعيسى ﷺ ورنه د نزع «زنكدن» دسختئ تپوس وكړو نو هغه وويل چه دنزعې تريخ والي تر اوسه پورې زما په مرئ كنبې دې اوحال دا چه دمرگ ئې څلور زره كالو نه زيات شوى ژو «قرطبى، روح المعانى»

﴿وَأُنَبِّئُكُم بِمَا تَأْكُلُونَ﴾ دا معجزه د اخبارعن المغيبات ده.

| لَكُم | وَ لِأُحِلَّ | التَّوْرٰىةِ | مِنَ | يَدَىَّ | بَيْنَ | لِمَا | وَ مُصَدِّقًا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوراغلې يم تصديق كوونكې دهغه چې خمانه مخكښې نازل شوېدې چې تورات دې، اوچې حلال كړم تاسولره | | | | | | | |
| رَّبِّكُمْ | مِّنْ | بِاٰيَةٍ | وَجِئْتُكُمْ | عَلَيْكُمْ | حُرِّمَ | الَّذِىْ | بَعْضَ |
| بعضې هغه څۀ چې حرام كړې شوى وؤ په تاسواوراوړې دې ماتاسوته نورې نښې «معجزې» دطرفه درب ستاسونه | | | | | | | |
| فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَأَطِيعُوْنِ ۞ إِنَّ اللّٰهَ رَبِّىْ وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْهُ ؕ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ ۞ | | | | | | | |
| نويره كوئ دالله نه اوخماتابعداري اوكړئ، بېشكه الله رب خمااورب ستاسودې نوصرف دهغه بندگي كوئ دالارنيغه ده | | | | | | | |

﴿وَمُصَدِّقًا﴾ ((اى وجئتكم مصدقا)) ﴿وَلِأُحِلَّ لَكُم بَعْضَ الَّذِى حُرِّمَ عَلَيْكُمْ﴾ ددينه مراد نسخ دحرمت دهغه بعضې اشياؤ ده چه په بنې اسرائيلو حرام شوى ؤو لكه په سورت انعام كنبې چه ذكر دى ((وَعَلَى الَّذِيْنَ هَادُوْا حَرَّمْنَا كُلَّ ذِى ظُفُرٍ)) ، آيت : ۱۴۲ يامراد دا دې چه بعضې احبارو دبعضې اشياؤ دځان نه تحريم كړې ؤو نو دهغې حرمت رد ئې وكړو.

﴿وَجِئْتُكُم بِآيَةٍ﴾ دا تاكيد دې، اوبعضې وايئ چه تأسيس دې بنا پدې چه مراد دآية نه انجيل دې.

﴿إِنَّ اللَّهَ رَبِّى وَرَبُّكُمْ﴾ يعنې زما معجزات زما د الوهيت دليل نه دې، رب زما اوستاسو دټولو صرف الله ﷻ دې. ﴿هَٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ﴾ توحيد صراط مستقيم دې.

| أَنصَارِىْٓ | مَنْ | قَالَ | الْكُفْرَ | مِنْهُمُ | عِيسٰى | أَحَسَّ | فَلَمَّآ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| پس كله چې اوليدو«ښه معلوم كړو» عيسى ددوئ نه كفرنو وې وئيل چې څوك دې خمامددمرسته كوونكې | | | | | | | |

| اِلَى اللّٰهِ ؕ | قَالَ | الْحَوَارِيُّوْنَ | نَحْنُ | اَنْصَارُ اللّٰهِ ۚ | اٰمَنَّا |
|---|---|---|---|---|---|
| پۀ لار دالله كښې، اووئيل حوارينو (اخلاصي ملګرو) مونږ مرسته مدد كوونكي د دالله ددين يو ، ايمان راوړې دې مونږ | | | | | |
| بِاللّٰهِ ۚ | وَاشْهَدْ | بِاَنَّا | مُسْلِمُوْنَ ۞ | رَبَّنَآ | اٰمَنَّا |
| په الله باندې، اوته ګواه شه په دې خبره چې بېشكه مونږ تابعداري كوونكي يو. اې ربه زمونږ ايمان راوړې دې مونږ | | | | | |
| بِمَآ | اَنْزَلْتَ | وَاتَّبَعْنَا | الرَّسُوْلَ | فَاكْتُبْنَا | مَعَ | الشّٰهِدِيْنَ ۞ |
| په هغه چې نازل كړيدى تا اوتابعداري كړېده مونږ ددې رسول پس اوليكه مونږ دګواهي كوونكو (دتوحيد رسالت) سره | | | | | | |

﴿فَلَمَّآ أَحَسَّ عِيسَىٰ مِنْهُمُ ٱلْكُفْرَ﴾ پدې كښې هم د حضرت عيسى ﷺ دالوهية رد دې چه دمخالفينو په مقابله كښې ئى دحوارينو نه نصرت اومدد طلب كړو نومعلومه شوه چه اِله ندي (فا) په (فلما) كښې د تعقيب دپاره ده اودلته (ادماج) دې يعنى عيسى ﷺ پيدا شو اورسول شو اوبنى اسرئيلوته ئى دعوت وركړو نو د دعوت نه ورستو بنى اسرائيل دوه ډلې شو، يوې ډلې كفر او دشمنى اختياركړه دوئ مشهورشو په يهودو سره اوبلې ډلې ايمان راوړو او اعلان ئى وكړو دايمان او دنصرت دعيسى ﷺ نودوئ مشهور شو په نصارىٰ ؤسره، د (احس) معنى، معلومول دى په حواسو سره، يعنى عيسى عليه السلام ته د دوئ كفربنه معلوم شو اود دوئ مخالفت ئى په ستركوولید او په غوږونوئى واوريدو.

﴿مَنْ أَنصَارِىٓ إِلَى ٱللَّهِ﴾ د (الى الله) معنى ده ((ذاهباالىٰ الله)) يا ((فى الدعوة الى الله))، او مدد غوښتل په امر ددين كښې د انبياؤ سنت دى.

﴿قَالَ ٱلْحَوَارِيُّونَ﴾ دا جمع دحوارىّ ده اوحوارى مفرد دې جمع نده، دحوارى معنى ده مخلص اورازدار دوست، او دا مأخوذ دې دحورنه په معنى دبياض سره او دوئ ته حواريين ددې وجه نه وائى چه زړونه ئى پاك اوسپين ؤو دكفر او دضد نه، اومشهوره داده چه دوئ دوبيان ؤو جامې به ئى صفا كولې نوحضرت عيسىﷺ ورته اوفرمايل چه راشئ دجامو دصفا كولو په ځائ دخلقو زړونه صفاكړئ په ايمان سره، اوبعضې وائى چه دا مأخوذ دې د حار يحور، نه په معنى د ((رجع)) سره او دوئ رجوع كوونكى ؤو الله ﷻ ته، اوبعضو ويلى دى چه دوئ دخپلې علاقې سرداران ؤو (قوطبى ،كبير).

﴿نَحْنُ أَنصَارُ ٱللَّهِ﴾ مضاف پكښې مقدر دې ((اى انصار دين الله، نبى الله))

﴿رَبَّنَآ ءَامَنَّا بِمَآ أَنزَلْتَ﴾ دا دعا اوتضرع دحوارییںُ ده بعد د اظهار د ایمان نه ﴿وَٱتَّبَعْنَا ٱلرَّسُولَ﴾ مراد ترینه عیسی ﷺ دي، ﴿مَعَ ٱلشَّٰهِدِينَ﴾ مراد ترینه یا امت محمدیه ﷺ دي، او یا ورنه ګواهي کوونکي د توحید او رسالت مراد دی.

| وَمَكَرُوا وَ مَكَرَ اللهُ ۚ وَاللهُ خَيْرُ الْمَاكِرِينَ ﴿٥٤﴾ |
|---|
| اوچلونه جوړکړۀ دوئ دقتل دعیسی اوپټ تدبیراوکړو الله دهغه دبچ کولو، اوالله بهترین تدبیرکوؤنکې دي |
| إِذْ قَالَ اللهُ يٰعِيسٰى إِنِّي مُتَوَفِّيكَ وَرَافِعُكَ إِلَيَّ وَمُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِينَ |
| اوکله چې اووئیل الله، ائې عیسی بېشکه زه پوره اخلم تا اوپورته کوم تاخانتهٔ اوپاکوم تالره د(تهمت اوطعن) |
| كَفَرُوا وَ جَاعِلُ الَّذِينَ اتَّبَعُوكَ فَوْقَ الَّذِينَ كَفَرُوا |
| دکافرانونهٔ اوګرزوم هغه کسان چې ستاتابعداردي غالب پهٔ هغه کسانوچې کفرئې کړېدې پهٔ تاباندې |
| إِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ۚ ثُمَّ إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَأَحْكُمُ بَيْنَكُمْ فِيمَا |
| دورځې دقیامت پورې، بیا ماته واپسې ده ستاسو، پس فېصله به اوکړم په مینځ ستاسو کښې پهٔ هغه خبرو کښې |
| كُنْتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴿٥٥﴾ |
| چې تاسوپهٔ هغې کښې اختلاف کوئ |

﴿وَمَكَرُوا وَمَكَرَ ٱللَّهُ﴾ «مکر»خفیه تدبیرته ویلې کیږی نوکه چرې دا دنیك مقصد دپاره ؤو نوښه دې اوکه دغلط مقصد دپاره ؤو نو بد دې او ددې وجې نه په ((ولایحیق المکرالسیئ)) کښې یی دمکر سره قید دسیّئ لګولې دې، اودلته ئی الله تعالی ته﴿خَيْرُ ٱلْمَٰكِرِينَ﴾ ویلی دی، د «مکروا» ضمیر یهودو ته راجع دې چه دوئ دحضرت عیسی ﷺ درسالت نه او دتوحید نه انکاروکړو. اودحضرت عیسیﷺ دتوحیدپرستئ او دَ حق بیانولو په وجه دهغه دشمنان جوړشو. اوپده باندې ئی دمُلحد او دبې دینه اوتورات بدلوونکې وغیره الزامات ولګولو او په خپل مذهبی خود ساخته عدالت کښې په هغه باندې د کافر او واجب القتل فیصله صادره کړه. لیکن یهودیان چونکه د رومی مشرك بت پرست حکومت ماتحت ؤو نو دهغوئ دمنظورئ نه په غیرچاته ئی دقتل سزا نشوه ورکولې نو ددې وجې نه دوئ په حضرت عیسی ﷺ باندې دبغاوت د درغو مقدمه دائره کړه او د رومی نام نهاد (تش په نوم) عدالت

نه ئی دقتل حکم حاصل کړو، پدغه وقت کښې سخت سزائی موت قتل په صلیب را زوړوندل ؤو نو ددې وجې نه دوئ حضرت عیسی ﷺ په صلیب سولی کولو دپاره. څوکسان ولیږل چه حضرت عیسی ﷺ گرفتارکړی لیکن الله ﷻ حضرت عیسی ﷺ بچ کړو او آسمان ته ئی اوچت کړو او پدغه کسانوکښې ئی یوکس دعیسی هم شکل جوړکړو نو دوئ په هغه باندې دعیسی ﷺ گمان وکړو اوهغه یې قتل کړو

او دا واقعه په فلسطین کښې پیښه شوې وه اوفلسطین پدغه وقت کښې دملك شام یوه صوبه وه اوپه شام باندې درومیانوسلطنت وواوپه فلسطین باندې والی (وائسرا) دشام ؤو او ددغه ځائ یهودیانوته په خپلومعاملاتوکښې نیمه آزادی حاصله وه لکه چه د انگریزی حکومت ماتحت والیانو ((وزیرانو) ته چه د ریاست نه حاصله وی، یهودیانوته صرف دومره اختیارحاصل ؤو چه دخپلو کسانو مقدمات، خپل مذهبی عدالت ته راوړی لیکن سزا نافذ کول درومیانوپه اختیارکښې ؤو.

﴿إِذْ قَالَ ٱللَّهُ يَـٰعِيسَىٰٓ إِنِّى مُتَوَفِّيكَ﴾ پدې آیت کښې دعیسی علیه السلام درفع الی السماء ذکر دې، اود الوهیة ردئی هم دې ځکه چه وفات چه په چا راتلې شی نو هغه معبود او اله نشی کیدې **ددې آیت تشریح** علماؤ په ډیرتفصیل اومتعددو وجوهو سره کړیده، وجه داده چه قادیانی دجال ددینه دا ثابتوی چه حضرت عیسی ﷺ وفات دې لکه دیهودیانو دعوه وه چه مونږ عیسی ﷺ قتل کړیدې او دبعضو عیسائیانو هم داعقیده وه چه عیسی ﷺ زمونږدپاره خپل ځان قتل ته ورکړیدې اوقتل شویدې او زمونږ دپاره کفارهٔ دَ سیئاتو گرزیدلې دې او دبعضې عیسائیانو عقیده د اهل اسلام سره موافقه ده او هغه دا چه عیسی ﷺ ژوندې آسمان ته ختلې دې .

## دقادیانانواوملعون غلام محمد قادیانی درې ۳ دعوې

**اوله دعوی** : نبوت ختم ندې اود **سیدالکونین خاتم النبیین حضرت محمد رسول الله** ﷺ نه بعد بل نبی هم راتلې شی . دلیل یی دا دې چه : نبوة رحمت دالله ﷻ دې اورحمت دالله ﷻ نه ختمیږی لهذا نبوت ختم ندې ، **جواب** : نبوت دحضورﷺ بیشکه رحمت دې اوهغه دقیامت پورې دائم دې، لیکن نبوت دقادیانی یا د یو بل کاذب لعین رحمت ندې بلکه لعنت دې .

**دویمه دعوی** : حضرت عیسی ﷺ وفات شویدې، دلیل دوفات یی دا آیت دې «**انی متوفیک**» ددې جواب تفصیل وروسته ذکرکیږي.

**دریمه دعوی** : قادیانان، غلام محمد قادیانی، معلون دجال ته نبی وائی اومقصود اصلی ددوئ هم دادریمه خبره ده او اول دواړه ددې دپاره تمهیداولارسمول دی.

علماء کرام فرمائی چه ددوئ سره دبحث مباحثې کولو په وخت کښې به اول تعیین د موضوع دبحث کولې شی، نودوئ به په وخت دبحث اومناظرې کښې اوله یا دویمه خبره موضوع دبحث گرزوی، نو تاسو ورته وه وایئ چه مونږ به موضوع دبحث سیرت دمیرزا قادیانی گرزؤ، ځکه چه مقصود دانکار دختم نبوت نه، اودحیات جسمانی دعیسی ﷺ نه نبوت ثابتول د قادیانی دی، نوراشئ چه ؤگوروسیرت دمیرزا قادیانی چه آیا دې نبی کیدې شی یا نشی کیدې؟ **نو دامختصره طریقه دبحث ده** اوکه اول یادویمه مسئله موضوع دبحث شی نو بحث به طویل شی اودوئ ته به مهلت ملاؤشی.

ددې بحث **مختصره شان خاکه داده** : (قادیانی دجال دخپلې فتوىٰ مطابق ۱- بې اعتماده ۲- اوشیطان ۳- ملعون ۴- دروغجن دې ، نودې څرنگه نبی کیدی شی )

قادیانی لیکلی دی (۱) : (ظاھر ہے کہ جب ایک بات میں کوئی جھوٹا ثابت ہو جائے توپھر دوسری باتوں میں اعتبار نہیں رہتا (چشمہ معرفت، ص: ۲۲۲ مطبوعہ قادیان). (۲) جھوٹ بولنا ایک شیطانی اور لعنتی کاکام ہے (حقیقۃ الوحی، ص: ۲۰۹) (۳) جھوٹ بولنا اورگوں کھانا ایک برابر ہے، (حقیقۃ الوحی، ص: ۲۰۶ مطبوعہ قادیان) .

ددې مذکوره حوالونه معلومه شوه چه دقادیانی خپله فتوی اوخپل قول دادې چه څوك دروغ وائی نوهغه (۱) بې اعتماده وی (۲) هغه شیطان وی (۳) هغه لعنتی وی (۴) هغه گندگی خوړونکې دې ، نواوس وگورئ دده دروغ «مشت نمونه خروار».

۱- اگر قرآن میں میرانام ابن مریم نہیں رکھاتو میں جھوٹا ہو، تحفۃ الندوہ، ص: ۱۴ مطبوعہ ربوہ.

۲- میں نے کہاکہ تین شھروں کانام اعزازکیساتہ قرآن شریف میں درج کیاگیاہے مکہ، مدنہ، قادیان، معلوم ہواکہ فی الحقیقۃ قرآن شریف کی دائیں صفحہ مین شاید قرب نصف کی موقعہ پریہی الہامی عبارت لکھی ھوئی موجود ہے (اناانزلناہ قریبامن القادیان) ازالہ اوہام، ص: ۳۴ مطبوعہ ربوھ.

۳ - ہمارے نبی صلی اللہ علیہ وسلم کے گیارہ لڑ کے فوت ہوئے تھے ، تجلیات الٰھیہ ، ص : ۳۰ مطبوعہ ربوہ .

دالړ نمونه د دروغو د قادياني ده نو د ده دخپل قول اوفتوی مطابق دي بی اعتماده شيطان ،معلون او مُردارخوردي ، نوڅرنګه نبی کيدي شی.

**ددې آيت نه د قاديانيانو استدلال اودهغې جواب**

قاديانيان وائی چه حضرت عيسی ﷺ وفات شوي دي اوپه احاديثوکښې چه نزول دعيسی ﷺ ذکر دي نو دنزول نه مراد پيداکيدل دی اودعيسی ﷺ نه مراد مثيل عيسی ﷺ دي اودمثيل عيسی ﷺ مصداق خپل ځان ګرزوی، اوپه دغه مذکور آيت سره استدلال کوی ځکه چه په دي کښې د ﴿مُتَوَفِّيكَ﴾ معنی مميتك ده.

**جواب** : دلته دوه خبرې دی : اول اثبات دحيات دنيوی دحضرت عيسی ﷺ اوبل جواب ددې استدلال نه، د اولې خبرې تفصيل دادې چه يهوديان منکر دی دحيات دعيسی ﷺ نه او دارنګه دنبوت دهغه نه اونصاری وائی چه عيسی ﷺ پهانسی شوي دي اوبيا دفن شوي دي ليکن يوه ورځ يا درې ورځی پس ژوندې شوې دې آسمان ته ختلې دي، او ددې دواړو اقوالو په رد کښې الله ﷻ فرمائيلی دی ﴿وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ وَلَٰكِن شُبِّهَ لَهُمْ﴾ اود مسلمانانو عقيده دا ده چه حضرت عيسی ﷺ په جسد عنصری سره ژوندې دې په حياة دنيوی سره په آسمانانو کښې اوقيامت ته قريب به په حيثيت د امتی دحضور ﷺ سره زمکې ته راکوزيږی اوپدې عقيده باندې دليل ، قرآن ،حديث او اجماع دی، هرچه دې **دليل دقرآن نه** نوهغه دادې (۱) ((ويكلم الناس فی المهدو كهلاً)) (۲) ((ومكروا ومكرالله)) ددې معنی داده چه يهوديانو د ده دقتل تدبيروکړو نوالله ﷻ دخلاصولو اودقتل نه دبچ کولوتدبيروکړو، نومعلومه شوه چه قتل شوي ندې(۳) ﴿إِنِّي مُتَوَفِّيكَ وَرَافِعُكَ إِلَيَّ﴾ نومعلومه شوه چه آسمان ته ختلې دي، هلته ژوندې دي (۴) ((وماقتلوه وماصلبوه)) (۵) ((بل رفعه الله اليه)) رفع په معنی حقيقی سره مراددہ، (۶) ((وانه لعلم للساعة)) ،زخرف ۶۱ ضميرد ((انه)) راجع دې عيسی ﷺ ته، يعنې نزول دهغه دآسمان نه علامه دقيامت ده، اوهر چه دې **دليل د احاديثونه** نوهغه دادې چه په حديث

دبخاری کښې چه هغه مروی دې دحضرت ابوهریرة ﷺ دَ هغې الفاظ دادی. ((قال رسول الله والذی نفسی بیده لیوشکن ان ینزل فیکم ابن مریم حکماً عدلاً فیکسرالصلیب ویقتل الخنزیرویضع الجزیة)) . **بخاری ص۲۹۶ ج ۱ ص ۴۹۰ ج ۱**

پدې حدیث کښې تصریح ده دعیسی ﷺ ، اوپه هیڅ روایت کښې مثیلِ عیسی ﷺ ندی راغلی او احادیث په باره دنزول دعیسي ﷺ کښې متواتر دی، علماؤپه مختلفو رسائلو کښې جمع کړیدی. لکه ((**عقیدة الاسلام فی حیاة عیسی علیه السلام**)) للشاه انورشاه او دحضرت مفتی محمدشفیع رساله ((**التصریح بما تواتر فی نزول المسیح**)) قابل دید کتابونه دی.

اوهرچه دې دلیل د اجماع نوهغه دادې چه په سلف صالحینو کښې، صحابه ﷺ، تابعین ،تبع تابعین أئمه مجتهدینو کښې څوك هم دموت دعیسی ﷺ قائل نشته دې، بلکه ټول قائل دی دحیاة دهغه ، **سوال** واردیږی چه په مجمع البحارکښې ئی ویلی دی ((قال مالك مات عیسی علیه السلام)) **جواب** دادې چه دا قول بې سنده دې ځکه چه په ((مُدوّنه کتاب )) کښې په خپله د امام مالك ﷺ قول دَ عدمِ وفات ذکر شوې دې او امام مالك ﷺ اثر مرفوعه دنزول عیسی ﷺ ذکرکړیدې اوبعضو دا جواب کړیدې چه دا په بعضونسخودمجمع البحارکښې دکاتب نه غلطی راغلې ده اصلی عبارت داسې ؤو : ((قال مالك ما مات عیسی علیه السلام))

**اوهرچه دې جواب داستدلال ددوئ نه** پدې آیت سره نوهغه په دوه طریقوسره دې : **اول** طریقه دجواب داده چه دلته ((**متوفیک**)) په معنی دموت سره نه دې بلکه معنی ئی داده چه پوره پوره اوچتوم تالره اوپوره اوچتول دادی چه بدن مع الروح اوچت شی، د ((**توفی**)) **معنی پوره** اخستل دی، موت ئی معنی نده ځکه تمام اهل لغت د توفی معنی ((اخذ وافیًا)) لیکی ، ((کان لی علیه دین توفیته واستوفیته)) محاوره ده. په کلیات دابوالبقاء کښې دی : ((التوفی الاماتة، وقبض الروح وعلیه استعمال العامة، اَوِالاستیفاء واخذالحق وعلیه استعمال البلغاء)) یعنې د توفی معنی موت سره کول د عوامو استعمال دې او دبلغاؤ په استعمال کښې دتوفی معنی په استیفاء سره شوې ده، اوپه قرآن پاك کښې وفات په مقابله دحیات کښې ندې راغلې بلکه په مقابله دحیات کښې موت راغلې دې لکه :

﴿وَكُنتُمْ أَمْوَٰتًا فَأَحْيَٰكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ﴾ ، «يُحيي ويُميت» ، «يُخرج الحي من الميت» ، «الم نجعل الارض كفاتا، احياء واموانا» بلکه په مقابله د توفي ،کښې بودن، باقي کردن، هونا ،رهنا ، يعني پاتې کيدل راغليدى لکه :﴿ وَكُنتُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا مَّا دُمْتُ فِيهِمْ فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِي كُنتَ أَنتَ ٱلرَّقِيبَ عَلَيْهِمْ﴾ ، بلکه لفظ دتوفي، يتوفى په موت اوحياة دواړو کښې مستعمل شوې دې لکه په سورت زمرکښې دى : ﴿ ٱللَّهُ يَتَوَفَّى ٱلْأَنفُسَ حِينَ مَوْتِهَا وَٱلَّتِي لَمْ تَمُتْ فِي مَنَامِهَا ﴾ البته اطلاق د «توفى» په موت باندې هم کيږى ځکه چه دا د اخذالشئ وافيا يو فرد دې.

**سوال** : دبخارى شريف په کتاب التفسيرکښې دحضرت عبدالله بن عباس ﷺ نه تفسير د «متوفيك» په «مميتك» سره منقول دې نومعلومه شوه چه په «اخذ وافيا» سره تفسيرکول صحيح ندى ،

**جواب** : دا تفسير د ابن عباس ﷺ نه په صحيح روايت سره ثابت نه دې ځکه ابن کثير ص ۳۲۱

اوجلال الدين سيوطى په درمنثور ، ص : ۳۲ ، ج : ۲ کښې دا قول نقل کړې دې اوپدې کښې دحضرت عبدالله بن عباس ﷺ نه روايت کوونکې على بن طلحه دې چه ده ته په تقريب اوتهذيب ص ۳۷۲ اوميزان الاعتدال ص ۲۴۷ ج ۴ اوتهذيب التهذيب ص ۳۳۹ ج ۷ کښې ضعيف ويلى شوى دى. اوضعف نه علاوه ئى دعبدالله بن عباس ﷺ سره ملاقات هم ندې شوې نو دا منقطع روايت دې نو د رواياتو دصحيحينوپه مقابله کښې ندې معتبر. او **دبخارى شريف اصح الکتب کيدلو مطلب** دادې چه پدې کښې احاديث مرفوعه نهايت صحيح اوقابل اعتماد دى پدې اجماع ده مگر دتعليقاتو اوموقوفاتو متعلق دا اجماع نده او دا روايت دتعليقاتو نه دې نودا اجماع نه خارج دې، دحافظ ابن الصلاح په مقدمه دعلم الحديث ، ص : ۴۰ ، اوص ۴۱ کښې ددې تصريح موجوده ده، بل داچه حضرت عبدالله بن عباس ﷺ دحيات عيسى قائل دې، په طبقات ابن سعد ، ص : ۲۲ ج ۱ کښې د ابن عباس ﷺ نه دا روايت موجود دې «ان الله رفعه بجسده وانه حى الان وسيرجع الى الدنيا فيكون فيهاملکاً ثم

یموت کمایموت الناس)) اوپه روح المعانی کښې دی : ((والصحیح کماقله القرطبی ان الله تعالی رفعه من غیروفات ولانوم وهواختیارالطبری وهوالروایة الصحیحة عن عبدالله بن عباس))

او که تسلیم کړو چه تفسیرد «ممیتك» روایت صحیح دې نو بیا دا **جواب** دې چه د «ممیتك» نه مراد موت فی الاستقبال دې نه فی الحال (کما سیجیئ تفصیله).

منکرین دحیاتِ عیسی ﷺ دا اعتراض کوی چه قانون دادې چه کله (توفی) باب تفعل وی اوفاعل ئی الله ﷻ وی او مفعول ئی ذی روح وی نودلته دقبض الروح یعنې موت نه علاوه بله معنی مراد نه وی. **جواب** : دا قانون مصنوعی اوخودساخته دې اوپه هیڅ کتاب کښې ندې ذکر او نه څه محاوره پدې ګواه ده، بلکه ددې په مقابله کښې مونږ قانون جوړولې شو چه (رفع) فعل وی او فاعل ئی الله وی اومفعول ئی ذی جسد وی اوصله ئی (الیٰ) وی نو ددې معنی رفع دجسد وی نه بله معنی او د دې نه هیڅ محاوره مخالفه نده ((والتفصیل فی رسالة عقیدة الاسلام)).

**اودویمه طریقه دجواب** داده چه (متوفیك) په معنی د (ممیتك) سره دې خو مراد دموت نه موت طبعی دې چه واقع کیږی به په استقبال کښې اوموت حالاً په صورت دقتل کښې ترینه ندې مراد.

او ددې تفصیل دادې چه دیهودو په شرارت سره بادشاه څه کسان ولیږل اوحکم ئی وکړو چه عیسی ﷺ ګرفتارکړئ اوپه صلیب (سولئ) یی پهانسی کړئ ،او داسې عبرتناکه سزا ورکړئ چه دده اتّباع کولو والاخوك هم پاتې نشی، اودارنګه یهودیانو دحضرت عیسی ﷺ د رسالت نه انکارکولو او په نسب ئی ورله طعن کولو نو پدې وقت کښې **الله ﷻ دحضرت عیسی ﷺ سره یوڅو وعدې وکړې**.

۱- **اوله وعده** داده چه ((**انی متوفیک**)) چه دوئ خو تا قتلول غواړی لیکن زه تا ددوئ دلاسه نه مړکوم، بلکه زه به تاپه طبعی موت سره په وقت موعود باندې مړکوم. ۲- **اودویمه وعده** داده چه ((رافعك الی)) چه دوئ تا پهانسی ته خیژول غواړی خو زه دې آسمان ته خیژوم نو دا دویمه وعده پدغه وقت کښې فی الحال پوره شوه او اوله وعده به په وقت موعودکښې پوره شی

او دا خلاصه دتفسیر دعبدالله بن عباس ﷺ ده چه (**توفی**) په معنی دموت طبعی سره دې

او په کلام کښې تقديم او تاخير دې «ورافعك» اول دې او «متوفيك» وروسته دې ليکن «متوفيك» مقدم شو ددې دپاره چه څوك توهم د اُلوهية ونه کړی. د «رافعك الیّ» معنی داده چه «الی سمائی ومقرّ ملائکتی» دا تفسير صاحب دکشاف ،بيضاوی . مدارك ، کبير وغيرهم مفسرينو کړيدې ، امام رازی رحمه الله وائی چه په قرآن کښې دا محاوره عامه ده چه کوم ځائ کښې تعظيم اوتفخيم مقصودوی نوالله ﷻ يې خپل جانب ته منسوب کوی لکه دهجرت ابراهيمی په باره کښې فرمائی ((انی ذاهب الی ربی)) حالانکه ظاهره خبره ده چه هجرت دابراهيم عليه السلام د عراق نه شام طرف ته ؤو، دا خبره تقريباً تمامو مفسرينو کړيده.

اوڅوك چه دلفظ «الیّ» نه دالله ﷻ دپاره جهت دعلم ثابتوی اوبيا ديته داهل سنت والجماعت مذهب وائی نو دا باطل قول دې او د اهل سنت والجماعت دمذهب سره خيانت دې، اهل سنت پدې متفق دی چه الله ﷻ منزه دې دجهاتونه، هغه محاط دجهاتو ندې بلکه خالق الجهات دې، دا جهات موجود نه ؤو او ذات دالله ﷻ موجودؤو «کان الله ولم يکن شيئا».

**دريمه وعده داده** چه ﴿وَمُطَهِّرُكَ مِنَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟﴾ يعنې د يهوديانو دَ غلط الزاماتو نه به دې صفا کوم، دا وعده دحضور ﷺ په تشريف راوړو لوسره اوپه نزول دقرآن سره پوره شوه چه الله ﷻ په قرآن کښې دحضرت عيسی عليه السلام دنبوت ذکر او دده عالی شان بيان کړو او ديهودو غلط الزامات ئې رد کړل.

**اوڅلورمه** وعده داده چه ﴿وَجَاعِلُ ٱلَّذِينَ ٱتَّبَعُوكَ فَوْقَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟﴾ چه دوئ خو غواړی چه ستا اتباع کولو والا څوك پاتې نشی ليکن دالله ﷻ وعده ده چه ستا اتباع کولو والا او ستا نوم اخستلو والاخواه که مسلمان وی اوکه عيسائيان وی، به په منکرينوباندې چه يهود دی دقيامت پورې غالب وی، اومراد دغلبې نه، غلبه په اعتبار دحجت اودليل اوعزت عندالله سره ده. لکه چه دا ظاهره ده اوپدې تقديرسره مراد د متبعينونه صحيح اتباع کوونکی دی چه د توحيد ، رسالت صحيح عقيده لری اوپه ايمان کښې دهغه اقتداء ئی کړی وی عام لدينه که دهغه دامت نه وی. اوکه ددې وروستنی امت نه وی او دا قول د اکثرو مفسرينو دې «معالم ،کبير» يامراد غلبه ملکی، سياسی، مادی ده اوپه دې تقدير سره مراد د اتباع کوونکونه دادې چه دحضرت عيسی عليه السلام دتقدس اودنبوت عقيده لری عام لدينه چه کامله اتباع ئی کړې

وی لکه مسلمانان یا په عیسایانو کښې صحیح العقیده او که ناقصه ظاهری اتباع ئې کړې وی لکه عام عیسائیان . دنجات اُخروی دپاره حقیقی اتباع ضروری ده او ددنیوی فوقیت دپاره ظاهری اتباع کافی ده او ددې وعدې ایفاء پوره کیدل مشاهد دی، ځکه چه دا واضحه خبره ده چه مجموعه دمسلمانانو اوعیسایانو غالب دی په مقابله دیهودو کښې.

**اوپنځمه وعده** داده چه : ﴿ثُمَّ إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ﴾ یعنې دقیامت پورې به ستا اتباع کوونکی په مخالفینو باندې غالب وی اوچه قیامت شی نو بیا به الله ﷻ ستاسوپه درمیان کښې عملی فیصله وکړی چه د هغې تفصیل په دې لاندې آیتونو کښې ذکر کیږی :

| |
|---|
| فَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا فَأُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَمَا |
| پس هغه کسان چې کفرئې کړېدې پس عذاب به ورکړم دوئ ته عذاب سخت پدنيااوآخرت کښې . اونشته دې |
| لَهُمْ مِنْ نَاصِرِينَ ۝ وَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ فَيُوَفِّيهِمْ |
| دوئ لره هيڅوک مددګاران . اوهغه کسان چې ايمان ئې راوړې دې اوعملونه کوي نيک نوپورا به ورکړي الله دوئ ته |
| أُجُورَهُمْ ۗ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الظَّالِمِينَ ۝ ذَٰلِكَ نَتْلُوهُ عَلَيْكَ مِنَ الْآيَاتِ |
| ثوابونه دعملونو ددوئ، اوالله محبت نه کوي دظالمانوسره . دا چې مونږئې لولو په تاباندې دآياتونونه(دليلونونه) |
| وَالذِّكْرِ الْحَكِيمِ ۝ |
| اونصيحت محکم(حکمت نه ډک) دې |

﴿فَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا فَأُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ﴾ نوپس داوعده به په ورځ دقیامت پوره شی

**سوال** : په قیامت کښې د((عذاباً شدیداً فی الدنیا)) څه مطلب دې؟.

**جواب** : مطلب ئې دادې چه ددنیوی عذاب سره سره به ورته په آخرت کښې عذاب شدید ورکوم او د دنیوی عذاب په وجه به ئې په اُخروی عذاب کښې تخفیف نه راځی. نودا آیت د ماقبل تفصیل هم دې اوتخویف هم دې.

﴿وَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا﴾ .الایه ـ دا بشارت دې. ﴿وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الظَّالِمِينَ﴾ یعنې څوك دې دا ګمان نکوی چه کفاروته اوظالمانوته چه الله ﷻ ترقی او انعامات ورکوی نو دا د الله ﷻ

له هغوئ سره محبت دې، بلکه دا ابتلاء او استدراج دې.

﴿ذَٰلِكَ نَتْلُوهُ عَلَيْكَ مِنَ الْآيَاتِ﴾ دا جمله معترضه ده «ذلك» مبتدأ ده او «من الايٰت» ورله خبر دې او «نتلوه» په درميان کښې جمله حاليه ده. يا بيان د «ذلك» دې يا «ذلك» مبتدأ ده او «نتلوه» خبر دې او «من الايٰت» خبر بعد خبر دې.

| |
|---|
| إِنَّ مَثَلَ عِيسَىٰ عِندَ اللَّهِ كَمَثَلِ آدَمَ ۖ خَلَقَهُ مِن تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَهُ كُن |
| بېشکه حال دعيسى په نيزد الله پشان دحال دآدم دې، جوړنې کړو دبناورونه بيائې اوونيل هغه ته چې شه(انسان پورا) |
| فَيَكُونُ ۝ الْحَقُّ مِن رَّبِّكَ فَلَا تَكُن مِّنَ الْمُمْتَرِينَ ۝ فَمَنْ حَاجَّكَ |
| نوهغه دغسې شو. دابيان حق دې دطرفه درب ستانه نومه کېږه ته دشک کوونکو نه. پس څوک چې جګړه کوي ستاسره |
| فِيهِ مِن بَعْدِ مَا جَاءَكَ مِنَ الْعِلْمِ فَقُلْ تَعَالَوْا نَدْعُ أَبْنَاءَنَا |
| پشان دعيسى کښې روستو دهغې نه چې راغلي دې تاته علم نوته ورته اووايه چې راشئ راوبلو مونږ خامن خپل |
| وَأَبْنَاءَكُمْ وَنِسَاءَنَا وَنِسَاءَكُمْ وَأَنفُسَنَا وَأَنفُسَكُمْ ثُمَّ نَبْتَهِلْ |
| اوخامن ستاسو. اوزنانه خپلې او زنانه ستاسو، اوخانونه خپل او خانونه ستاسو، بياتول په زارئ سره دعا وکړو |
| فَنَجْعَل لَّعْنَتَ اللَّهِ عَلَى الْكَاذِبِينَ ۝ |
| پس او غواړو لعنت دالله په دروغژنو خلقو باندې |

﴿إِنَّ مَثَلَ عِيسَىٰ عِندَ اللَّهِ﴾ دا تکميل دې دجواب دشبهې دنصارى ؤنه. چه دوئ ويل چه دحضرت عيسى ﷺ پلارپه انسانانوکښې خوخوك نشته دې نومعلومه شوه چه پلار ئې الله تعالى دې (معاذالله) ځکه چه بې پلاره خوخوك نه پيدا کيږي، نو دې ابن الله شو.

**حاصل دجواب دادې** چه په غير د پلارنه پيدا کول الله ﷻ ته څه مشکل ندى، آدم ﷺ ئې په غير د موراوپلار دواړو نه پيدا کړيدې اوکه په غير دپلار نه پيداکيدل دليل ددې خبرې وى چه دې ابن الله دې نوحضرت آدم ﷺ دې بطريق اولى لوئ ابن الله شى، پدې کښې تشبيه دغريب (نا اشنا) ده د اغرب (ډيرنا اشنا) سره.

﴿خَلَقَهُ مِن تُرَابٍ﴾ دا بيان دمثلية او دتشبيه دې، (خلق) په معنى دجوړولو دشکل انسانى سره دې ﴿ثُمَّ قَالَ لَهُ كُن﴾ د (کن) نه مراد (کن بشراً) دې او «ثم» د تراخى دزمانى

دپاره دې لکه روايت دی چه الله ﷻ دحضرت آدم ﷺ قالب د خاورې نه جوړکړو نوڅلويښت کاله پروت ؤو په دروازه دجنت کښې ددينه ورستوئی پکښې روح داخل کړو، اودلته ﴿فَيَكُونُ﴾ مضارع په معنی د «کان» ماضی سره دې.

﴿ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّكَ ﴾ دا خبردمبتدأ محذوفې دې «ای هذا هوالحق» پدې کښې دحصر معنی ده يعنی داچه مونږ ذکرکړه چه حضرت عيسی ﷺ رسول دې اوابن مريم دې.ابن الله ندې هم دا خبره حقه ده اوددې په مقابله کښې ديهوديانو نظريه يا د نصاری ؤو نظريه غلطه ده.

﴿فَلَا تَكُن مِّنَ ٱلْمُمْتَرِينَ﴾ دا خطاب نبی ﷺ ته دې، اومنع کول دشك نه مستلزم ندی دې خبرې لره چه نبی ﷺ شك کړې دې، يا خطاب نبی ﷺ ته دې اومراد ترينه امت دې يعنې تاسو ديهودو اونصاری ؤ دخبرونه په شك کښې مه پريوزئ.

﴿فَمَنْ حَآجَّكَ فِيهِ مِنۢ بَعْدِ مَا جَآءَكَ مِنَ ٱلْعِلْمِ فَقُلْ تَعَالَوْا۟﴾ دا دعوت د مباهلې دې نصاری ؤته ورستو دبيان ددلائيلواو د رفع دشبهاتونه، او دا آيت په باره دوفد د نصاری ؤ کښې نازل شوې دې چه دوئ ته نبی ﷺ دعوت ليږلی ؤو اودرې خبرې ئی ورته ترتيب وار فرمائيلې وې : ١- هغه داچه ايمان راوړئ ٢- يا جزيه راکړئ، ٣- ياجنګ ته تيارشئ، نو ددوئ وفد دنبی ﷺ حضورته حاضرشول او د حضرت عيسی ﷺ په شان کښې ئی ګفتګو کوله نودا آياتونه نازل شو، او دحضرت عيسی ﷺ شان ئی په ښه طريقې سره بيان کړو او ددوئ شکوك اوشبهات ئی زائل کړه، ليکن دوئ په خپل ضد باندې ولاړ وو، نو پدې آيت کښې الله تعالی نبی کريم صلی الله عليه وسلم ته اوفرمايل چه که چرې دوئ د دومره بيان نه بعد بيا هم نه منی نودعوت دمباهلې ورته ورکړه چه دهغې يومکمل اومؤثرصورت دادې چه هرفريق به په خپل ځان او اولادسره حاضرشو اوپه اخلاص سره به دعاوکړو چه څوك کاذب وی په هغه دې دالله تعالی لعنت اوعذاب راشی ، دوئ چه دمباهلې دعوت واوريدلو نومهلت ئی طلب کړو نونبی ﷺ ورته مهلت ورکړو اووخت ئی ورته مقررکړو چه پدغه وخت به تاسو حاضريږئ اومونږ به هم حاضريږو. دوئ په خپل مينځ کښې مشوره وکړه نو ددوئ تجربه کارانو، هوښيارانو. مشرانو، لکه شرحبيل وغيره ؤ وويل چه تاسوته معلومه ده چه دا نبی دې او دنبی سره چه څوك مباهله وکړی نو خامخا هلاکيږی اودنبی دبد دعاء اثرنسلونو ته رسيږی نوبهتره داده چه صلح وکړو، نو دوئ په هغه مقرروخت باندې دنبی ﷺ حضورته حاضرشو، اواهل سيروائی چه پدغه وقت کښې نبی ﷺ دمباهلې کولودپاره تياری کړې ؤو

اوحضرت علی ﷺ اوحسن ﷺ اوفاطمة ﷺ ئی بللی ؤو، نصاری ؤ چه دا نورانی شکلونه ولیدل نو ددوئ مشر پادری وویل : چه دا داسې مخلوق دي چه ددوئ په دعا سره غرهم زائله کیږی دخپل ځائ نه، د دوئ سره په مباهله کولوخپل ځان مه هلاکوئ او که نه یو نصرانی به هم په مخ د زمکې پاتې نشی، نومجبورشو صلح ئی وکړه اوسالانه جزیه ئی قبوله کړه او واپس شو، او په حدیث کښې دی که چرې دوئ مباهله کړې وې نو دا وادی به اورجوړشوې ؤو پدوئ باندې.

**صاحب دروح المعانی** وائی چه مباهله اوس هم جائزه ده په دلیل ددې چه د ابن عباس ﷺ اودبل سړی په مینځ کښې څه جګړه پیداشوه نوهغه دمباهلې دعوت ورکړو او دا آیت ئی ولوستلو .اولاسونه ئی پورته کړل اوحجراسود ته ئی مخ کړو، او دعبدالله بن مسعود ﷺ روایت په بخاری کښې مذکوردي ((من شاء باهلته ــ الخ)). **لیکن مباهله به دقطعی غلط په مقابله کښې کولې شی په مسائل اجتهادیؤکښې مباهله نشته او دا هم یوشرط دې چه اقامت دحجت په خصم شوې وی**

**فایده** : شیعه ګان وائی چه دا آیت دلیل دې په خلافت بلافصل دحضرت علی ﷺ باندې ځکه چه هرکله دا آیت نازل شو نونبی ﷺ حضرت علی ﷺ اوفاطمة ﷺ حسن اوحسین ﷺ راوبلل. نوحضرت حسن اوحسین ﷺ خوپه ((ابنائنا)) کښې داخل دی اوفاطمة ﷺ په ((نسائنا)) کښې داخله ده نومعلومه شوه چه حضرت علی ﷺ په ((وانفسنا)) کښې داخل دې نو دې حکمًا عین نفس درسول دې اود رسول دنفس په موجودګئ کښې بل چاته حق دخلافت نه وی نو د علی ﷺ په موجودګئ کښې هم بل چاته حق دخلافت نشته، نودې خلیفه بلافصل شو .**جواب** دا دشیعه ګانو دطرف نه سراسر یوه مغالطه ده او دیته استدلال من الآیة ویل غلط دی ځکه چه دې آیت سره چه دغه مذکور روایت ضم نه شی نومقصود دشیعه ګانو ترینه نه حاصلیږی، بلکه په آیت کښې ادنی اشاره هم دغه مطلوب طرف ته نشته دې اوچه دغه روایت ورسره ضم شی نو بیا حضرت علی ﷺ په ابناء نا کښې داخل دې ځکه چه ختن یعنی (زُم) په عرف کښې بچې شمارلې شی (وفی العرف یعدالختن ابنامن غیرریبة) (روح) اوکه تسلیم کړې شی چه حضرت علی ﷺ په ((انفسنا)) کښې داخل دې نو بیا **جواب** دادې چه دنفس نه مراد عین ذات دنبی ندې ځکه عرب دنفس اطلاق په ابن العم باندې هم کوی .

((والعرب تسمی ابن عمّ الرجل نفسه کماقال تعالی لاتلمزواانفسکم یریداخوانکم)) (معالم)

بلکه اصل خبره داده چه دغه حضرات دحضورﷺ نه په علیحده مکان کښې اوسیدل نو ددې وجهِ نه ئې په مباهله کښې دشریك کولو دپاره خپل کورته رابللی ؤو لیکن دمباهلې نوبت نه ؤو راغلې اوکه چرې د نجران عیسائیانو مباهله کولې نوحضورﷺ به ازواج مطهّرات او تمام مسلمانان دخپل اهل اوعیال سره دمباهلې دپاره باهرته را ویستلی ؤو.

﴿ ثُمَّ نَبْتَهِلْ﴾ دا د «بهلة» بالفتح والضم نه مشتق دې لعنة ته وائی په اصل کښې، بیائی استعمال کیږی په هرهغه دعاکښې چه په هغې کښې ډیرجهد او زاری شوې وی برابره خبره ده چه دعأ دخیر وی اوکه دعأ دشروی

| إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ الْقَصَصُ الْحَقُّ ۚ وَمَا مِنْ إِلَٰهٍ إِلَّا اللَّهُ ۚ وَإِنَّ اللَّهَ |
|---|
| بېشکه[۱] دا خامخا بیان حق دې، اونشته دې هیڅ څوک لاتق دبندګئ مګرصرف یوالله دې. اوبېشکه الله |
| لَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ۝ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِالْمُفْسِدِينَ ۝ |
| خامخادې زور آوردې او حکمتونووالا دې . پس کچرې دوئ مخ اوګرزولوپس بېشکه الله عالم دې په فساد کونکو باندې |

﴿إِنَّ هَٰذَا﴾ «هذا» اشاره ده مذکورتفصیلاتوته په باره دعیسی ﷺ کښې چه دې اِله ندې اوابن الله هم ندې بلکه ابن مریم دې او رسول دې «قَصَصَ» په معنی دخبرسره دې اودا په اصل کښې وایی تللو ته په نقش قدم باندې کمافی سورة الکهف ، آیت : ۶۴ او په عرف کښې په ترتیب سره پرله پسې واقعات ذکرکولوته ویلې شی، اودلته حصر دې یعنی صرف اوصرف دا مذکورخبرپه شان دعیسی ﷺکښې حق دې اویهودیان اونصاری چه څه وائی نوهغه حق ندی.

﴿وَمَا مِنْ إِلَٰهٍ إِلَّا اللَّهُ﴾ **داخلاصه دبحث** ده یعنی دماقبل بحث اوتفاصیلوخلاصه او نتیجه داده چه دالله ﷻ نه ماسویٰ څوك هم اِله او کارساز او حاجت روا اومشکل کشا نشته دې

﴿فَإِن تَوَلَّوْا﴾ دا شرط دې اوجزائی محذوفه ده چه «**فاعرض عنهم**» یعنی که چرې ددې مذکور دلائیلو نه بعد بیا هم دوئ حق نه منی نو بیا ورسره نورچهیږ اوبحث مکوه اوالله ﷻ ته ئې حواله کړه هغه پرې ښه‌پوهیږی.

۱ - خلاصه د بحث او د دلائلو نتیجه.

| قُلْ يٰٓأَهْلَ الْكِتٰبِ تَعَالَوْا اِلٰى كَلِمَةٍ سَوَآءٍۭ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ اَلَّا نَعْبُدَ |
|---|
| اووایه اې اهل کتابو ! راشئ داسې کلمې ته چې برابره زمونږ او ستاسو په مینځ کښې هغه داچې مونږ به بندګي نه کوو |
| اِلَّا اللّٰهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهٖ شَيْئًا وَّ لَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا اَرْبَابًا |
| مګر دالله او شریک به نه جوړو دهغه سره هیڅ څیز او نه به نیسی بعضې زمونږ بعضو لره رب (اختیار مند د حکم شرعي) |
| مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۭ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقُوْلُوا اشْهَدُوْا بِاَنَّا مُسْلِمُوْنَ ۞ |
| ماسوا دالله نه، نو کچرې دوئ مخ واړولو نو تاسو اووائې ګواه شئ چې بیشکه مونږ خو مسلمانان يو |

﴿قُلْ يٰٓأَهْلَ الْكِتٰبِ تَعَالَوْا﴾ دبحث په خاتمه باندې نصاریٰ ؤته دعوت دایمان دې.

﴿اِلٰى كَلِمَةٍ سَوَآءٍ﴾ سوا په معنی د (مُستو) سره دې، اود کلمة نه مراد نحوی کلمه نه ده بلکه کلام مفید مراد دې، ځکه چه د کلمة تفسیر په مابعد کښې کیږی چه ((ان لانعبد)) او دا مرکب تام دې. اومراد دبرابروالی نه دادې چه ددې کلمې، تعلیم په ټولو شرائعو او ادیانو کښې شویدې او کلمه بطور اجمال کلیاً دټولو په نزد مسلمه ده.

**فایده**: که چرې مسلمانان په موجوده دورکښې په اتفاقی امورو دعمل کولو اهتمام وکړی لکه کلمه، مونځ، ذکر وغیرها نو د اختلافی مسائلو حل به آسان شی.

﴿اَلَّا نَعْبُدَ اِلَّا اللّٰهَ﴾ دا دماقبل تفسیر دې او په دې کښې دشرک فی العبادت رد دې.

﴿وَلَا نُشْرِكَ بِهٖ شَيْئًا﴾ ((شیئاً)) یا مفعول به دې د ((لانشرك)) دپاره نومعنی ئی داده چه هیڅ شي به دالله ﷻ دپاره شریك نه ګرزؤ، برابره خبره ده چه ولی وی اوکه نبی یافرشته وی یابې جان (بت) وی یا بل څه شي وی، یا مفعول مطلق دې په اعتبار دموصوف مقدره سره ((ای لانشرك به شركًا شیئًا)) یعنې دالله تعالی سره به هیڅ قسم شرك نه کوؤ. نه شرك فی الذات، نه شرك په یوصفت کښې دصفاتو دهغه نه اونه شرك جلی اونه شرك خفی.

﴿وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾ دا رد دې دشرك فی التشریع چه شرك فی التحریم والتحلیل دې. روایت کړیدې ترمذی وغیره چه هرکله نازل شو ﴿اتَّخَذُوْٓا اَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾ نوعدی بن حاتم وویل یا رسول الله ﷺ چه مونږ خو د احبارو اورهبانو عبادت ندې کړې (هغوئ موپه ربوبیت سره ندی نیولی) نورسول الله ﷺ

وفرمایل چه آیا داسې نه وه چه هغوئ به تاسو دپاره څیزونه حلالول اوحرامول نوتاسوبه دهغوئ په خبره په مقابله دحکم دالله ﷻ کښې عمل کولو نوده وویل چه هو ! نونبی ﷺ وفرمایل چه دغه دهغوئ عبادت کول اورب ګرزول دی، نو دالله ﷻ دحکم په مقابله کښې بل څوك مالك او واكدار د تحلیل اوتحریم ګرزول شرك فی التشریع دې او **د دې آیت نه دتقلید رد نه ثابتیږی** . ځکه چه اهل تقلید دخپل امام قول دالله اورسول دقول په مقابله کښې نه منی اونه أئمه مجتهدینو ته شارع اوواکدار دتحریم اودتحلیل وائی اونه دائمو مجتهدینوقول دالله ﷻ اورسول ﷺ دقول په مقابله کښې دې، بلکه مقلدین خپل خپل امام ته شارح دقول دالله ﷻ اودقول درسول الله وائی او د أئمه مجتهدینوتشریح پسندکوی ځکه چه دا دخیرالقرون داهل علمو تشریح ده اوغیرمقلدین خپلې تشریح ته قرآن اوسنت وائی اود خیرالقرون تشریح ته تشریع وائی په مقابله دقول دالله ﷻ اود رسول کښې نودوئ فرق دتشریح اودتشریع په مینځ کښې اودشارح اودشارع په مینځ کښې نه کوی.

﴿فَإِن تَوَلَّوْا فَقُولُوا اشْهَدُوا﴾ یعنی که چرته تاسونه منئ نوموږخوپه خپل موقف (کلمة سواء) باندې کلك ولاړیو، یا مطلب دادې چه که چرې تاسو تسلیم او انقیاد نه کوئ نوشهادت خووکړئ (اګرنه مانوتم جانو) (تهانوی رحمه الله)

| |
|---|
| يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لِمَ تُحَاجُّونَ فِي إِبْرَاهِيمَ وَمَا أُنزِلَتِ التَّوْرَاةُ وَالْإِنجِيلُ إِلَّا مِن بَعْدِهِ |
| اې اهل کتابو ولې جګړه کوئ تاسوپه باره دابراهیم کښې اوندې نازل کړې شوې تورات اوانجیل مګرروستودهغه نه |
| أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٦٥﴾ هَا أَنتُمْ هَؤُلَاءِ حَاجَجْتُمْ فِيمَا لَكُم |
| آیا ! نوپس تاسو عقل نه لرئ . خبردار تاسوائې دغه کسانو! جګړه کوئ تاسوپه هغه خبره کښې چې تاسولره |
| بِهِ عِلْمٌ فَلِمَ تُحَاجُّونَ فِيمَا لَيْسَ لَكُم بِهِ عِلْمٌ |
| په هغې باندې علم شته دې نو ولې جګړه کوئ تاسو په هغه خبرو کښې چې نیشته تاسولره په هغې کښې هیڅ علم |
| وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴿٦٦﴾ |
| اوالله عالم دې (په حال دابراهیم اوپه هرڅه) اوتاسوعلم نه لرئ (په هرڅه) |

﴿يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لِمَ تُحَاجُّونَ فِي إِبْرَاهِيمَ﴾ دتوحید د اثبات په دلائلوعقلیو اونقلیو سره وشو او د توحید متعلق دشبهاتوجوابونه ذکرشو نواوس داهل کتابو یهودو اونصاری ؤ

نه پنځه شکوې اودهغې جوابونه ذکرکیږي، دا **اوله شکوې ده**، یهودیانو اونصارٰی ؤ دخلقو ددین نه دمتنفرکولو دپاره دا پروپیګنډه شروع وه چه دین اسلام ملت ابراهیمی ندې نو دیهودو دعوه داوه چه حضرت ابراهیم ﷺ یهودی ؤو، اودنصاری ؤ دعوه داوه چه حضرت ابراهیم ﷺ نصرانی ؤو، **حاصل دجواب** دادې چه یهودیت د تورات دنزول نه بعدجوړشوې دې اونصرایت دانجیل دنزول نه بعد جوړشوې دې اوحضرت ابراهیم ﷺ خو د تورات او انجیل دنزول نه ډیرمخکښې تیرشوې دې نو هغه څنګه یهودی یانصرانی شو

﴿إِلَّا مِنۢ بَعۡدِهِۦٓ﴾ دیو قول مطابق تورات (۱۰۰۰) زرکاله بعد او انجیل دوه زره (۲۰۰۰) بعد د ابراهیم علیه السلام نه نازل شوی دی.

﴿هَٰٓأَنتُمۡ هَٰٓؤُلَآءِ﴾ دا **دویم جواب دې** او د اهل کتابو دحماقت بیان دې چه دحضرت موسی ﷺ په باره کښې که چرې تاسوڅه دروغ او رښتیا وائی نوتاسوته څه ناقص علم خو شته دې لیکن دحضرت ابراهیم ﷺ په باره کښې تاسوته هیڅ علم نشته دې نوستاسو خبره بالکل بې دلیله ده اومحض حماقت دې.

﴿وَٱللَّهُ يَعۡلَمُ﴾ یعنې الله تعالی عالم دې په حال د ابراهیم ﷺ باندې اوتاسونه ئې خبر.

| مَا كَانَ إِبۡرَٰهِيمُ يَهُودِيّٗا وَلَا نَصۡرَانِيّٗا وَلَٰكِن كَانَ حَنِيفٗا مُّسۡلِمٗا وَمَا كَانَ مِنَ ٱلۡمُشۡرِكِينَ ۝ |
|---|
| نهٔ وؤ ابراهیم یهودي اونهٔ نصراني اولیکن وؤ هغه پوخ موحد، پوره تابعدار، اونهٔ وؤ هغه دمشرکانودډلې نهٔ |
| إِنَّ أَوۡلَى ٱلنَّاسِ بِإِبۡرَٰهِيمَ لَلَّذِينَ ٱتَّبَعُوهُ |
| بېشکه زیات نزدې اولائق پهٔ خلقو کښې پهٔ نسبت کولوابراهیم ته خامخا هغه کسان دي چې تابعداري ئې دَ هغه کړېده |
| وَهَٰذَا ٱلنَّبِيُّ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْۗ وَٱللَّهُ وَلِيُّ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ۝ |
| او دانبی ﷺ دې اوهغه کسان چې ایمان ئې راوړې دې، اوالله دوست دې مومنانو |

﴿مَا كَانَ إِبۡرَٰهِيمُ يَهُودِيّٗا وَلَا نَصۡرَانِيّٗا﴾ یعنې الله تعالی په حال د ابراهیم ﷺ خبردې چه هغه نه یهودی ؤو اونه نصرانی ؤو بلکه حنیف اومسلم ؤو، **حنیف** هغه ته وائی چه دحق په سیده لار روان وی او د باطل ټولې لارې ئې پریښودلې وی، په عرف کښې حنیف هغه ته ویلې شی چه مُتدیّن وی په دین ابراهیمی باندې.

﴿وَمَا كَانَ مِنَ ٱلۡمُشۡرِكِينَ﴾ دمشرکینونه مراد یامشرکین عرب دی چه هغوئ د ابراهیمیت دعوٰی کوله اوبعضې اعمال دملت ابراهیمی یې قائم ساتلی ؤو لکه ختنه ، دبیت الله طواف ،

حج ،قربانی وغیره او یا ترینه مراد یهود او نصاری دی .

﴿إِنَّ أَوْلَى ٱلنَّاسِ بِإِبْرَٰهِيمَ﴾ «اولی» صیغه د اسم تفضیل ده په معنی د اقرب او د احق سره، یعنی زیات نزدې اوزیات حقدار دنسبت کولو ابراهیم علیه السلام ته هغه خلق ؤو چه د ابراهیم ﷺ په زمانه کښې ئی دهغه تابعداری کړې وه ((وَهٰذَا النَّبِيُّ وَالَّذِيْنَ آمَنُوْا)) اوپه دې زمانه کښې دا نبی ﷺ او دا مؤمنان دی، باقی نورخلق اګرکه دنسل د ابراهیم ﷺ نه وی خو هغوئ لائق دنسبت کولو ابراهیم ﷺ ته ندی، نومعلومه شوه چه نبی ته نسبت دتابعداری کولوپه وجه کیدې شی دنسب په وجه نشی کیدې .

| وَدَّتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ لَوْ يُضِلُّوْنَكُمْ ۖ وَمَا يُضِلُّوْنَ إِلَّآ أَنْفُسَهُمْ |
|---|
| آرزوکوي یوډله داهل کتابونهٔ ددې چې ګمراه کړي تاسولره، اونهٔ ګمراه کوي دوئ مګر خانونه خپل |
| وَمَا يَشْعُرُوْنَ ۝ يٰٓأَهْلَ الْكِتٰبِ لِمَ تَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَأَنْتُمْ تَشْهَدُوْنَ ۝ |
| اودوئ نهٔ پوهیږي . اې اهل کتابو ولې کفرکوئ تاسو پهٔ آیاتونو دالله اوحال دادې چې تاسوعلم لرئ |
| يٰٓأَهْلَ الْكِتٰبِ لِمَ تَلْبِسُوْنَ الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ وَتَكْتُمُوْنَ الْحَقَّ وَأَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝ |
| اې اهل کتابو ولې ګډوډ کوئ تاسوحق دباطل سره او ولې پټوئ حق، اوحال دادې چې تاسو پوهیږئ |

﴿وَدَّت طَّآئِفَةٌ﴾ دا زجر دې ﴿لَوْ يُضِلُّونَكُمْ﴾ لو مصدریه دې او دا د «ودت» مفعول دې، او دضلالت نه مراد عام دې کفراوشرك اونورو اعمالو قبیحؤته شامل دې ﴿وَمَا يُضِلُّونَ﴾ د دینه معلومه شوه چه چا بل چاته دکفراوشرك تعلیم ورکړو نوپخپله مشرك کافر شو او څوك چه بل چاته دایمان اواطاعت تعلیم ورکوی نوالله تعالی ورته په ایمان اواطاعت کښې ترقی ورکوی.

﴿يَٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ﴾ دا **دویمه شکوه ده** . ﴿لِمَ تَكْفُرُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ﴾ امام رازی رحمه الله فرمائی چه اول دهغه فرقې ذکرؤو چه جاهلان ؤو، دلته دعلماؤ اهل کتابو سره خطاب دې او مراد «**د آیات**» نه هغه آیاتونه دی چه په هغې کښې ددې بیان ؤو چه دین حق په نزد دالله تعالی دین اسلام دې او د «تلبسون اوتکتمون الحق» تفصیل مخکښې په سورة بقره کښې تیرشوې دې .

| وَقَالَتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ اٰمِنُوْا بِالَّذِيْٓ أُنْزِلَ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا |
|---|
| اواووئیل[1] یوډلې داهل کتابونه ایمان ظاهرکړئ پهٔ هغې چې نازل کړې شوېدې پهٔ هغه کسانوچې ایمان ئې راوړې دې، |

---

۱ - دریمه شبه.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وَجْهَ | النَّهَارِ | وَاكْفُرُوٓا | اٰخِرَهٗ | لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ |

پهٔ اول دورخې كښې اوكفر پرې اوكړئ پهٔ آخرد ورځې كښې دپاره دې چې دوئ (يعنى مومنان) واپس شي (كفرتهٔ)

وَ لَا تُؤْمِنُوْٓا اِلَّا لِمَنْ تَبِعَ دِيْنَكُمْ قُلْ اِنَّ الْهُدٰى هُدَى اللّٰهِ

اوتاسو مهٔ منئ دهيچا خبره مګردهغه چا چې تابع وي ددين ستاسو، اووايه بېشكه حق دين صرف دالله دين دې

اَنْ يُّؤْتٰٓى اَحَدٌ مِّثْلَ مَآ اُوْتِيْتُمْ

(اودوئ[1] داهم وائ چې يقين مه كوئ په دې) چې وربه كړې شي هيچاتهٔ پشان دهغې چې دركړې شوېدې تاسوتهٔ

اَوْ يُحَآجُّوْكُمْ عِنْدَ رَبِّكُمْ قُلْ اِنَّ الْفَضْلَ بِيَدِ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ

يابه څوک غالب شي پهٔ تاسوپهٔ نيزدرب ستاسو، اووايهٔ چې بېشكه فضل(هدايت)دالله پهٔ لاس كښې دې، وركوي

مَنْ يَّشَآءُ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ يَّخْتَصُّ بِرَحْمَتِهٖ

هغه چاتهٔ چې خوښه ئې شي، اوالله فراخ فضل والادې عالم دې پهٔ هرڅهٔ، خاص كوي الله رحمت خپل (وحى نبوت)

مَنْ يَّشَآءُ وَاللّٰهُ ذُوالْفَضْلِ الْعَظِيْمِ

پهٔ هغه چاپورې چې اوغواړي، او الله لوئې فضل والادې

﴿وَقَالَتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ﴾ دا **دريمه شكوه ده**، د «طائفة» نه مراد ديهودو مشران دى او دلته مأمورلهم مقدر دې «اى لاتباعهم» او د «آمَنُوْا» نه مراد نفاقى ايمان دې اود «بالذى اُنزل» نه مراد قرآن دې اود «وجه النهار» نه مراد اول دورخې دې او د «وآخره» ضمير نهار ته راجع دې اومراد ترينه بعدالزوال (مازيګر) دې او د «لعلهم» ضمير راجع دې مؤمنانو ته ياهغه اهل كتابوته چه ايمان ئى راوړې وُو.

**حاصل دادې** چه يهوديانوچه كله داسلام ترقى وليدله نودوئ دامنصوبه تياره كړه چه مشرانو. ملايانو اوپيرانوخپلوكشرانو اتباعو اومريدانو ته وويل چه تاسو د ورځې په اوله حصه كښې ايمان ظاهركړئ اوپه آخر دورځې كښې كفربنكاره كړئ اوخلقوته دا واضحه كړئ چه د اسلام قبلولونه بعدمونږخپل كتابونه وكتل او دعلماؤ نه موتپوسونه وكړل نومعلومه

١ - دويمه ترجمه : دا هرڅه د دې وجې نه دى چه بل چا ته هم ولې وركړې شو مِثل دَ هغې چه تاسو ته ملاؤ شوې وُو يا ولې دوئ غالب راغله په تاسو په نزد دَ رب ستاسو.

شوه چه «العیاذبالله» دا دین صحیح ندي، او داپیغمبر ﷺ دپیغمبرانو او داولیاؤ ګستاخ دي نو پدې حیلې اومنصوبې سره به مؤمنان د اسلام اودنبی ﷺ نه بدظن شی اومتنفر به شی نو داسلام نه به واپس شی.لیکن الله ﷻ عالم الغیب والشهادة دي نومسلمانانوته ئی دیهودیانو دا منصوبه ښکاره کړه دپاره ددې چه دوئ ددې منصوبې نه متأثره نشی. اود یهودو ملایانو، پیرانو.غداری اوتعصب واضح شی.

﴿وَلَا تُؤْمِنُوٓاْ إِلَّا لِمَن تَبِعَ دِينَكُمْ﴾ دا آیت دمشکلاتو نه دي اوددې په حل کښې مختلف توجیهات دی : (۱) حضرت الشیخ دخپل شیخ قول داسې نقل کوی : «قال الشیخ رحمه الله والاولی ان قوله ((لاتؤمنوا)) مقولة اهل الکتب وقوله تعالی ((قل ان الهدی)) جملة واقعة بین کلامهم ((وان یؤتی)) بحذف همزة الانکارمقولة الیهود» **ددې توجیه حاصل** دادې چه «**لاتؤمنوا**» داهل کتابومقوله ده یعنی دوئ خپلوکشرانوته وویل چه تاسوظاهری اونفاقی طورسره په اسلام کښې داخل شئ لیکن دَ صدق دل نه ئی مه منئ بلکه دصدق دل نه دخپلو مشرانو ملایانو او پیرانو خبره منئ اودوئ ورته داهم وویل چه آیا چاته ورکولې شی مثل دهغې چه تاسوته درکړې شوې دې، یعنی مشری، پیغمبری، وحی زمونږحق دې بل چاته نشی ورکیدې، علم زمونږ زیات دې دهرچانه

(۲) «لاتؤمنوا» په معنی دیقین سره دې «ان یؤتی» سره دمعطوف نه مفعول به د «**لاتؤمنوا**» دې اومستثنی منه یا مقدره ده چه «لاحدٍ» دې یا «احدٌ» مستثنی منه مؤخره ده او «الالمن تبع دینکم» مستثنی مقدمه ده یعنی تاسوپدې یقین مکوئ چه چاته به ورکړې شی مثل دهغه فضائلو چه تاسوته درکړې شوې دې یا به څوك غالب شی په تاسو باندې.

نوچونکه دوئ دوه دعوې کړې وې : ۱- **اوله** داچه پیغمبری اونبوت زمونږحق دې بل چاته نشی ورکیدې. نوددې رد دادې چه ((قل ان الفضل بیدالله)) ۲- **دویمه** داچه علم زمونږ زیات دې بل څوك په مونږغالب نشی راتلې نوددې رد دادې چه ((قل ان الهدی هدی الله)) پدې دویم احتمال باندې تقدیم دمستثنی دې په مستثنی منه او دا په نزد دبعضو ضعیف دې.

(۳) دحضرت تهانوی رحمه الله اودمولاناعثمانی رحمه الله دتشریح خلاصه داده چه یهودیانو خپل مینځ کښې دا خبره وکړه چه په یهودوکښې کوم کسان چه نفاقی طورسره خپل ځان مسلمان ښکاره کوی نوهغوئ دې په رښتیا مسلمان نه جوړیږی بلکه یهودی دې وی او د زړه

نه دي د هغه خلقو خبره منی چه ددوئ په دین روان وی اودشریعت موسوی اتباع کوی، دا معنی ددې قول ده چه: ﴿وَلَا تُؤْمِنُوٓا۟ إِلَّا لِمَن تَبِعَ دِينَكُمْ﴾

(۴) **اوزه وایم**: که مطلب ئی داشي چه زمونږ ددې منصوبې اقرار مکوئ او دا حال هیڅ چاته مه وائئ مګرهغه چاته چه ستاسو ددین تابع وی، نو دا هم صحیح ده اګرکه دمفسرینو تصریح مونږ نده موندلې، نوددې نه بعدالله تعالی ددې تدبیراومنصوبې، بې هوده والې بیانوی چه ((قُل)) یعنې ته ووایه چه ستاسوددې چالاکئ نه هیڅ نه کیږی ځکه چه: ﴿إِنَّ ٱلْهُدَىٰ هُدَى ٱللَّهِ﴾ بندګانوته هدایت دالله ﷻ دطرف نه ملاویږی نوهرکله چه هدایت دالله تعالی په قبضه کښې دې نوهغه چه څوك په هدایت باندې قائم ساتل غواړی نوهغه ستاسو پدې تدبیرسره نشی ګمراه کیدې، ددینه بعد ددې تدبیرباطل اوددې منصوبې علت الله ﷻ بیانوی ﴿أَن يُؤْتَىٰٓ أَحَدٌ﴾ ((ای دبّرتُم هذاالتدبیر لاَجْلِ ﴿أَن يُؤْتَىٰٓ أَحَدٌ﴾ یعنې تاسو دا منصوبې اوتدبیرونه ددې وجې نه جوړوئ چه اوس بل چاته نبوت اوشریعت ورکړې شو نو تاسو حسد شروع کړو چه بل چاته ولې شریعت اونبوت ورکولې شی.

﴿مِّثْلَ مَآ أُوتِيتُمْ﴾ یعنې کوم شریعت اوکتاب اونبوت او دین سماوی چه تاسوته درکړې شوې ؤ د هغې په شان بل چاته ورکولې شی ﴿أَوْ يُحَآجُّوكُمْ﴾ یا بل څوك په تاسو باندې غالب رازی ددین حق په تعین کښې، یا په دینی ګفتګواومناظره کښې، یا دینی جد اوجهد کښې ﴿عِندَ رَبِّكُمْ﴾ تاسو مُلزم کوی دالله تعالی په مخ کښې.

ددینه بعد ددې حسد ردکیږی چه ﴿قُلْ إِنَّ ٱلْفَضْلَ بِيَدِ ٱللَّهِ﴾ دالله تعالی دفضل ټهیکداران تاسونه ئی نو حسد ندې پکار که الله ﷻ عرب اُمّیینُ ته نبوت ،شریعت ، ایمان او هرقسم روحانی فضائیل اوکمالات ورکړه نو دا هرڅه دهغه په لاس کښې دی اوخزانې ئی لامحدوده دی اولائق اومحل ددې فضائیلوورته معلوم دې ((اللّٰہ اعلمُ حیثُ یجعل رِسالته)) نو دا هرڅه ورکولې شی اودا ورکول دحکمت موافق دی.

| وَمِنْ أَهْلِ ٱلْكِتَٰبِ مَنْ إِن تَأْمَنْهُ بِقِنطَارٍ يُؤَدِّهِۦٓ إِلَيْكَ وَمِنْهُم |
|---|
| اوبعضې داهل کتابونهٔ هغه دي چې امانت ورکړې ته هغه تهٔ لويه خزانهٔ نودرکوي بهٔ ئې تاتهٔ، اوبعضې ددوئ نه |
| مَّنْ إِن تَأْمَنْهُ بِدِينَارٍ لَّا يُؤَدِّهِۦٓ إِلَيْكَ إِلَّا مَا دُمْتَ عَلَيْهِ |
| هغه دي چې امانت کېدې ورسره يواشرفئ نونهٔ ئې ادا کوي تاتهٔ پهٔ هيڅ وخت کښې، مګرترڅوچې تهٔ ئ دهغه |

| قَآئِمًا ۗ | ذٰلِكَ | بِاَنَّهُمْ | قَالُوْا | لَيْسَ | عَلَيْنَا | فِي الْاُمِّيّٖنَ | سَبِيْلٌ ۚ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|

پۀ خوا کښې ولاړ ، دا پۀ سبب ددې چې دوي وائی نشته پۀ مونږ باندې پۀ باره د مال دامیینو(عربو) کښې هیڅ گناه

وَ يَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ وَ هُمْ يَعْلَمُوْنَ ۝

او جوړوي دوئ پۀ الله باندې دروغ او دوئ پوهيږي

﴿وَمِنْ أَهْلِ ٱلْكِتَـٰبِ مَنْ إِن تَأْمَنْهُ﴾ **دا خلورمه شکوه ده،** په یهودیانوکښې دوه قسمه خلق ؤو بعضې دیانتدار ؤو لکه عبدالله بن سلام ﷺ چه دینی اوعلمی اعتبارسره هم دیانتدارؤو او د رسول الله ﷺ درسالت او د نورواحکامو دتورات لکه رجم وغیره، اظهار یې کولو اوکتمان ئې نه کولو، او دنیوی اومالی اعتبارسره هم دیانتدار دې چه که چرې ته ئې په قنطار امین وگرځوې نو تاته یې واپس کوی، مراد د قنطار نه ډیر مال دې، بعضې وایی چه قنطار دولس سوه (۱۲۰۰) اوقیه دی اوبعضې وائی چه دومره روپۍ چه دغوایه څرمن ترینه ډکه کړې شی وغیره اقوال دی، اوظاهره ده چه څوك په ډیرمال کښې امانت داروی نوپه لږ مال کښې په طریق اولیٰ سره وی، اوبعضې ددې یهودو او نصاری ؤ ؤ خیانت گر دی، هم په دین کښې کتمان دحق کوی اودا لوئ خیانت دې اوهم په دنیاکښې، نوکه دده سره لږمال یو دینار امانت کړې شی نوپه هغې کښې هم خیانت کوی نو په ډیرمال کښې په طریق اولیٰ سره خیانت کوی.

﴿إِلَّا مَا دُمْتَ عَلَيْهِ قَآئِمًا﴾ دا استثناء مفرغ ده «ای لایؤده الیك فی جمیع الاوقات الاوقت قیامك علیه دائما» یعنې نه ئې اداکوی تاته په ټولواوقاتوکښې مگرهله چه ته همیشه دهغه په سر ولاړ یې، اوپدې کښې اشاره ده چه دا اداء کول پدې طریقه سره د وجې دخوف دالله تعالی نه ندی بلکه دخلقو دشرم اوحیاء دوجې نه دی

﴿ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا۟ لَيْسَ عَلَيْنَا فِى ٱلْأُمِّيِّـۧنَ سَبِيلٌ ﴾ داعلت دخیانت دې او دبل قباحت بیان دې یعنې پدوئ کښې یوقباحت خیانت دې او پردې مال خوړل دی او بل هغې ته حلال ویل دی ﴿فِى ٱلْأُمِّيِّـۧنَ﴾ معنی ده «فی اخذ مال الامیین» د «اُمّیین» نه مراد غیراهل کتاب ا واهل عرب دی اود «سبیل» نه مراد گناه دې .

﴿وَيَقُولُونَ عَلَى ٱللَّهِ ٱلْكَذِبَ﴾ نسبت د استحلال الله ﷻ ته کوی اودا په الله ﷻ باندې افتراء د،ه ﴿وَهُمْ يَعْلَمُونَ﴾ سره دعلم نه گناه کول اوخیانت کول اوپه الله باندې افتراء کول زیاته گناه ده .

| بَلٰى مَنْ اَوْفٰى بِعَهْدِهٖ وَاتَّقٰى فَاِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِيْنَ ۝ |
|---|
| «داسي نده»بلکه څوک چې پوره کړي وعده خپله اوتقوي اوکړي پس بېشکه الله محبت کوي دمتقیانوسره |
| اِنَّ الَّذِيْنَ يَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَاَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيْلًا اُولٰٓئِكَ |
| بېشکه هغه کسان چې اخلي په عوض دوعدې دالله«کتاب الله» کښې اوپه قسمونو خپلوعوض لږ «دنیا» دغه کسان |
| لَا خَلَاقَ لَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ وَ لَا يُكَلِّمُهُمُ اللّٰهُ وَلَا يَنْظُرُ اِلَيْهِمْ |
| نشته هیڅ حصه ددوئ دپاره په آخرت کښې اوخبرې به نه کوي دوئ سره الله اونه به ګوري دوئ ته په نظردرحمت سره |
| يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَ لَا يُزَكِّيْهِمْ ۠ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝ |
| په ورځ دقیامت اونه به پاک کړي دوئ لره دګناهونونه، اودوئ دپاره عذاب دردناک دې |

﴿بَلٰى مَنْ اَوْفٰى﴾ «بلی» اثبات د نفی کوی، دوئ نفی وکړه چه «لیس علینافی الامیین سبیل» نو الله تعالی اثبات د اثم کوی «ای بلی علیهم سبیل» اوقانون دادې چه ((مَنْ اَوْفٰى)) یعنې چه څوک خیانت ونه کړی په مال کښې اوپه دین کښې ((وَاتَّقٰى)) اودخیانت نه ځان بچ وساتی په مال اودین کښې ﴿فَاِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِيْنَ﴾ حق د عبارت داسی ؤو چه «فان الله یحبهم» په ضمیر سره لیکن په اسم ظاهر راوړلو کښې اشاره ده سبب دمحبت ته چه تقوی ده.

﴿اِنَّ الَّذِيْنَ يَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ﴾ دا تخویف اخروی دې او د «عهدالله» نه مراد دایمان او دطاعت عهد دې یا عام دې اوداپکښې داخل دې اود ﴿ثَمَنًا قَلِيْلًا﴾ نه مراد دنیوی منافع دی که پیسی وی اوکه عهده اوجاه وی اود ﴿وَاَيْمَانِهِمْ﴾ ذکر بعد دعهد نه ذکر دخاص بعدالعام دې او مراد ترینه د درغوقسمونه دی او ﴿لَا خَلَاقَ﴾ نه مراد دثواب حصه ده.

﴿وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللّٰهُ﴾ مراد ترینه دخوشحالی او رضا والاخبرې دی ﴿وَلَا يَنْظُرُ﴾ مراد ترینه نفی دنظر رحمت ده ﴿وَلَا يُزَكِّيْهِمْ﴾ دګناه پاکول یا تعریفونه کول.

| وَاِنَّ مِنْهُمْ لَفَرِيْقًا يَّلْوٗنَ اَلْسِنَتَهُمْ بِالْكِتٰبِ |
|---|
| اوبېشکه بعضې ددوئ نه یوډله داسې ده چې راتاؤکړي ژبې خپلې«محرف ته» په وخت دلوستلو دکتاب کښې |
| لِتَحْسَبُوْهُ مِنَ الْكِتٰبِ وَمَا هُوَ مِنَ الْكِتٰبِ ۚ وَيَقُوْلُوْنَ هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ |
| دپاره ددې چې تاسوپرې ګمان اوکړئ دکتاب اونه وي هغه دَ کتاب دالله نه، اووائ دوئ چې داد طرفه دالله نه دې |

| |
|---|
| وَمَا هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ۚ وَيَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ۝ مَا كَانَ لِبَشَرٍ |
| اونهٔ وي هغه دطرفه دالله نهٔ، اوجوړوي دوئ په الله دروغ اودوئ پوهيږي . نهٔ دي مناسب[1] يوبنده لره |
| اَنْ يُّؤْتِيَهُ اللّٰهُ الْكِتٰبَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ ثُمَّ يَقُوْلَ لِلنَّاسِ كُوْنُوْا عِبَادًا لِّيْ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ |
| چې ورکړې وي هغه تهٔ الله كتاب او علم اوپيغمبري اوبيا اوواي خلقوتهٔ چې شئ تاسوبندګي کوونکي ځما سوادالله نهٔ |
| وَلٰكِنْ كُوْنُوْا رَبّٰنِيّٖنَ بِمَا كُنْتُمْ تُعَلِّمُوْنَ الْكِتٰبَ وَبِمَا |
| ليكن «داسې وائ» چې شئ تاسوخداي خلق په سبب ددې چې تاسوتعليم ورکوئ خلقوتهٔ دکتاب دالله او په سبب ددې چه |
| كُنْتُمْ تَدْرُسُوْنَ ۙ۝ وَلَا يَأْمُرَكُمْ اَنْ تَتَّخِذُوا الْمَلٰٓئِكَةَ وَالنَّبِيّٖنَ اَرْبَابًا ؕ |
| تاسوئ زده کوئ «لولئ». اولاتقه نهٔ ده چې امروکړي تاسوتهٔ ددې چې اونيسئ ملائكولره اوپيغمبرانولره پروردګاران |
| اَيَأْمُرُكُمْ بِالْكُفْرِ بَعْدَ اِذْ اَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ۝ |
| آيا امركوي تاسوتهٔ دكفركولوروستو ددېنهٔ چې مسلمانان يئ |

﴿وَاِنَّ مِنْهُمْ لَفَرِيْقًا﴾ **داپنځمه شکوه** ده اوپدې کښې ديهودو ددينی خيانت ذكردې.

﴿يَلْوٗنَ﴾ د «لَیّ» نه مشتق دې اړول دمنزّل نه محرّف ته مراد دی «ای يصرفون السنتهم من المنزل الى المحرف» په عربی محاوره کښې «لَیّ اللسان» دتلبيس، تحريف، كذب دپاره مستعمليږی «بالکتٰب» جار اومجرور په موضع دنصب کښې دې بنا برحاليت «ای حال كونهم متلبساً بقراة الكتب»، د «لتحسبوه» ضمير راجع دې محرف ته يعنې په اهل كتابو كښې ددينی خيانت كوونكو ملايانويوه ډله داسې ده چه دالله تعالی په كتاب كښې تحريف کوی او دخپل طرف نه جوړكړی عبارة دتورات سره ملاؤكړی يائی په داسې لهجه سره وائی چه مخاطب ګمان كوی چه دا دالله ﷻ كتاب دې اوحال دا چه دا د الله ﷻ كتاب نه وی بلكه ددوئ خپل جوړكړې عبارة وی لكه په موجوده دوركښې بعضې خلق چه انكاری كوی دبشريت درسول ﷺ نه نو دوئ «إنّما انا بشر» په داسې لهجه وائی «انّ ما انابشر» يعنې په تحقيق سره نه يم زه بشر وغيره داسې مثالونه پدې امت کښې هم ډيردی.

﴿مَا كَانَ لِبَشَرٍ﴾ دا دحضرت عيسی ﷺ دالوهية يا د ابنية متعلق د دريمې شبهی جواب

---

۱ - جواب د شبهې.

دي، شبه داوه چه دوئ ويل چه حضرت عيسى ﷺ پخپله ويلي دي چه زما بندگي کوئ، حضرت الشيخ ﷫ فرمايلي دي چه اهل باطل او اهل بدعت دخپلوخود ساخته مسئلو اثبات پدې طورسره کوي چه ددغه بدعت يا دشرك دخبري نسبت يومقبول مسلّم بزرگ ته کوي اووائي چه مثلاً حضرت شيخ عبدالقادر جيلاني ﷫ داسې ويلي دي، يالکه يهوديانو نسبت دسحر حضرت سليمان ﷺ ته کولو او نصارى ؤ د ابنية اود الوهية دعيسى ﷺ دعقيدې نسبت حضرت عيسى ﷺ ته کولو نوالله ﷻ ددې جواب په داسې طريقه ذکرکوي چه دا نسبت غلط دې اوکوم بشرته چه الله ﷻ کتاب اونبوت اوشريعت ورکړې نو داسې کيدې نه شي چه هغه خلقو ته وايي چه زما بندگي کوئ بلکه هغه ورته دالله تعالى دبندگئ اود توحيد دعوت ورکوي ((مَا كَانَ)) کله دنفى د امکان دپاره وى لکه : ((ما كان لكم ان تنبتوا شجرها)) اوکله په معنى د لاينبغى اولايناسب سره وى اوکله په معنى دنفى دوجودسره وى لکه : ﴿وَمَا كَانَ ٱللَّهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنتَ فِيهِمْ﴾ دلته دنفى دوجود يا دنفى دمناسب دپاره دې، او ((لبشر)) خبر د کان مقدم دې او ((أَن يُؤْتِيَهُ اللَّهُ الْكِتَابَ)) سره دملاحظې دمعطوف نه چه ((ثُمَّ يَقُولَ لِلنَّاسِ)) دې، اسم دکان دې اوپه معطوف باندې (ثم) داخل شوې، پدې کښې اشاره دعظمه دجرم د دې قول ته، اوديته عطف لازم ويلي شي ځکه چه په غيردملاحظې دمعطوف نه معنى نه صحيح کيږى اوخبر دکان په اسم باندې ځکه مقدم شو چه ضمير د ((يؤتيه)) او ((يقول)) ورته راجع شي.

﴿كُونُوا عِبَادًا لِّي﴾ دلته ((دعباد)) نه عبديت د تعبُّد مراد دې، عبديت دملکيت ندې مراد.

﴿وَلَٰكِن كُونُوا﴾ دلکن نه بعد ((يقول)) مقدر دې ((اى لكن يقول لهم كونوا)).

﴿رَبَّانِيِّينَ﴾ بعضې وايي چه داپه اصل کښې (ربّي) ؤو منسوب رب ته، بيا پکښې الف او نون دمبالغې دپاره زيات شو، لکه (لحياني) دعظيم اللحيه دپاره او(رقباني) دعظيم الرقبه دپاره او مبرد وائي چه ((ربانيين)) جمع د(ربّان) ده، معلم الخير ته وايي بعضو ددې تفسير په فقهاؤ اوعلماؤ سره کړيدې (بخاري) اوبعضې وائي چه دا ورستو کلام ئې تفسير دې.

﴿بِمَا كُنتُمْ تُعَلِّمُونَ ٱلْكِتَٰبَ﴾ په خپله زده کول مراد دى. ﴿وَبِمَا كُنتُمْ تَدْرُسُونَ﴾ نوروخلقوته ښودنه مراد ده، يا بالعکس، ((کما اختاره التهانوى ﷫))، امام رازى ﷫

فرمائی چه دتعلیم، تدریس نه مقصود دادې چه انسان «ربّانی» خدائی سړي «الله والا» جوړشی، اوکه داسې ونه شی نو دتعلیم، تدریس مشغله، تضییع د وخت اوعبث کار دې اوپه حدیث کښې ددغه رنګې علم نه پناه غوښتلې شوې ده ((نعوذبالله من علم لاینفع وقلب لایخشع)) «کبیر».

﴿وَلَا يَأْمُرَكُمْ﴾ دا منصوب دې عطف دې په **يقول** باندې په تکرار د «لا» سره دپاره دتاکید، او ضمیر راجع دې بشر«نبی» ته، یا لفظ د «الله» ته او د امرنه مراد یا اذن اواجازت دې یاترینه مراد تعلیم دې یعنې تاسوته دشرك اجازت یاتعلیم نه درکوی اوپه یوقرأت کښې ((وَلَايَأْمُرُكُمْ)) مرفوع دې نو دا کلام مستأنف دې.

| وَ اِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ النَّبِيّٖنَ لَمَآ اٰتَيْتُكُمْ مِّنْ كِتٰبٍ |
|---|
| اوکله چې واخسته الله کله وعده دمخکنوټولوپیغمبرانونهٔ خامخا هغه چې درکړېدې ماتاسوتهٔ څهٔ کتاب |
| وَّ حِكْمَةٍ ثُمَّ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مُّصَدِّقٌ لِّمَا مَعَكُمْ |
| اوعلم دشریعت بیاراشی تاسوتهٔ«آخری» رسول تصدیق کوؤنکې دهغه کتابونو چې تاسوسره دي |
| لَتُؤْمِنُنَّ بِهٖ وَ لَتَنْصُرُنَّهٗ ؕ قَالَ ءَاَقْرَرْتُمْ |
| نوضروربهٔ ایمان راوړئ پهٔ هغهٔ باندې اوضروربه امدادکوئ د هغه، اوفرمائیل الله آیا اقرار اوکړوتاسو؟ |
| وَ اَخَذْتُمْ عَلٰى ذٰلِكُمْ اِصْرِىْ ؕ قَالُوْٓا اَقْرَرْنَا ؕ قَالَ فَاشْهَدُوْا |
| اوقبوله کړه [1] تاسوپردې شرطونووعده خما، نواووئیل رسولانو چې مونږ اقرارکوؤ، اوفرمائیل الله پس ګواه شئ |
| وَ اَنَا مَعَكُمْ مِّنَ الشّٰهِدِيْنَ ۞ فَمَنْ تَوَلّٰى بَعْدَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ۞ |
| اوزهٔ تاسو سوره دَ ګواهی کوونکو نه یم .پس چاچې مخ واړولو روستو ددېنه پس دغه کسان دوئ لوئې نافرمان دی |

﴿وَإِذْ أَخَذَ ٱللَّهُ مِيثَٰقَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ﴾ دا دویم مضمون شروع شو، یعنی مضمون درسالت، دلته هم اثبات درسالت کیږی او درسالت متعلق شبهاتوجوابونه ذکرکیږی، درسالت اثبات په داسې طریقه سره کیږی چه الله تعالی دهرنبی نه داسې وعده واخسته چه مؤکده اوکلکه وه په قسم سره، یعنی تاسو وعده اوقسم وکړئ چه که چرې ستاسو په زندګئ کښې رسول یعنی

---

١- دویمه ترجمه: او واخسته تاسو د خپلو امتیانونه.

حضرت محمد ﷺ پیداشو نوتاسو به خامخا په هغه باندې ایمان راوړئ او دهغه مدد به کوئ نو ددې وعدې اوقسم نه ورستو انبیاؤته نبوت ورکړې شوې دې او بیا د رسولانو په واسطه سره د اُمتیانونه هم دغه وعده اخستې شوې ده، نوځوك چه دحضرت محمد ﷺ رسالت نه منی نوهغه فاسق اووعده خلاف دې.

**تنبیه**: دالله ﷻ علم پدې خبره باندې ؤو چه حضور ﷺ دانبیاؤ سابقینو په زمانه کښې نه پیداکیږی نوچه وعده ترینه په باره دحضرت محمد ﷺ کښې اخلی نوپدې کښې **دوه فائدې** دی: **یوه** اظهاردعظمت شان دسیّدالکونین ده، چه دومره لوئ شان والا نبی دې چه الله ﷻ مخکښو انبیاؤ ته نبوت ترهغه وختهٔ پورې ندې ورکړې ترڅوچه دسیدالکونین په باره کښې ترینه وعده نه وه اخستې شوې. **دویمه** فائده داده چه انبیاؤ ته به پدې عزم اواراده باندې لوئ اجر ملاؤشی اودرجات به ئې اوچت شی.

﴿مِيثَٰقَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ﴾ میثاق هغه وعدې ته وائی چه محکمه شی په قسم سره. او د «**النبیین**» نه مراد تمام انبیاء سابقین دی، او دا وعده یاپه ازل اوعالم ارواح کښې وه. کمافی بعض الروایات، یاپه وخت دنبوت ورکولو کښې وه وهوالراجح عندالشیخ ﷫.

﴿ لَمَآ ءَاتَيْتُكُم﴾ لام ابتدائیه تاکیدیه دې تاکیدکوی د قسم چه معلومیږی دلفظ دمیثاق نه، او «ما» موصوله دې «ای للذی» او ﴿ءَاتَيْتُكُم﴾ صله ده، او عائد دموصول محذوف دې «ای اٰتیتکموه» یا «اتیتکم ایاه» او ﴿مِّن كِتَٰبٍ وَحِكْمَةٍ﴾ بیان د «ما» دې دې او دحکمت نه مراد وحی خفی ده.

﴿ثُمَّ جَآءَكُمْ رَسُولٌ﴾ دا عطف دې په «اتیتکم» باندې ا ورسولانوته رسول راتلل معنی داده «چه ستا سو په زمانه کښې راشی» اود «رسول» نه مراد حضرت محمد ﷺ دې یا ترینه مراد هر بعد راتللو والا رسول دې، نو دا شامل دې حضور ﷺ ته. ﴿لَتُؤْمِنُنَّ﴾ دا سره دمعطوف نه جواب دقسم دې د ﴿قَالَ﴾ ضمیر راجع دې لفظ د «الله» ته ﴿ءَأَقْرَرْتُمْ﴾ د دینه د انبیاؤ خپل اقرار اوتسلیم مراد دې او استفهام تقریری دې ﴿وَأَخَذْتُمْ عَلَىٰ ذَٰلِكُمْ إِصْرِى﴾ ددینه مراد دامتیانو نه وعده اخستل دی، «اصری» په معنی د «عَهْدِی» سره دې. ﴿قَالُوٓا۟ أَقْرَرْنَا﴾ د «قالوا» ضمیر انبیاؤ ته راجع دې او دا جواب د « وَ اِذ اَخذالله » دې.

﴿قَالَ فَٱشْهَدُوا۟﴾ خطاب یا انبیاؤ ته دې او دَ «فاشهدوا» نه مراد دادې چه په یوبل گواهان

شئ، یا ورنه مراد بیان دي امت ته یعني خپلو خپلو امتونو ته دا بیان کړئ. یا دا خطاب ملائکو ته دي چه تاسو گواهان شئ په انبیاؤ باندې.

﴿وَأَنَا۠ مَعَكُم مِّنَ ٱلشَّٰهِدِينَ﴾ دا جمله حالیه ده دپاره دتاکید ﴿فَمَن تَوَلَّىٰ﴾ ددینه مراد امتیان دی، ځکه چه وعده خلافی کول گناه کبیره ده، نودا د انبیاؤ نه نه صادریږی ﴿بَعۡدَ ذَٰلِكَ﴾ وروستو د وعدې نه یا وروستو دشهادت او دبیان درسولانونه.

﴿فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡفَٰسِقُونَ﴾ دلته کامل فسق مراد دی.

| أَفَغَيۡرَ دِينِ ٱللَّهِ يَبۡغُونَ وَلَهُۥٓ أَسۡلَمَ مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ |
|---|
| آیاپس سوا ددین دالله نهٔ دوئ بل دین لټوي اوحال دادې چې ددهٔ دحکم تابع دي هرهغه څوک چې پهٔ آسمانونو کښې دی |
| وَٱلۡأَرۡضِ طَوۡعٗا وَكَرۡهٗا وَإِلَيۡهِ يُرۡجَعُونَ ۝ قُلۡ |
| اوکه پهٔ زمکه کښې دي پهٔ رضااوخوشئ سره او پهٔ ناچارئ سره اوخاص الله ته بهٔ اوګرزولې شي تول . تهٔ اووایه |
| ءَامَنَّا بِٱللَّهِ وَمَآ أُنزِلَ عَلَيۡنَا وَمَآ أُنزِلَ |
| چې مونږ ایمان راوړې دي پهٔ الله اوپهٔ هغه کتاب چې نازل کړې شوې دې په مونږ باندې اوپهٔ هغه کتاب |
| عَلَىٰٓ إِبۡرَٰهِيمَ وَإِسۡمَٰعِيلَ وَإِسۡحَٰقَ وَيَعۡقُوبَ |
| چې نازل کړې شوې وو پهٔ ابراهیم باندې او پهٔ اسماعیل باندې اوپهٔ اسحاق باندې اوپهٔ یعقوب باندې |
| وَٱلۡأَسۡبَاطِ وَمَآ أُوتِيَ مُوسَىٰ وَعِيسَىٰ وَٱلنَّبِيُّونَ |
| اوپهٔ اولادد یعقوب باندې اوپهٔ هغه کتابونو چې ورکړې شوي وو موسی تهٔ اوعیسی تهٔ اونوروپیغمبرانوتهٔ |
| مِن رَّبِّهِمۡ لَا نُفَرِّقُ بَيۡنَ أَحَدٖ مِّنۡهُمۡ وَنَحۡنُ لَهُۥ مُسۡلِمُونَ ۝ |
| دطرفه درب ددوئ نهٔ، فرق نهٔ کوؤ مونږ پهٔاهان کښې پهٔ مینځ دهیچا کښې ددوئ نهٔ اومونږ خاص دالله تابعداري کوؤنکي یو |

﴿أَفَغَيۡرَ دِينِ ٱللَّهِ يَبۡغُونَ﴾ دا زجر دې یعنی کوم دین چه دهغې دپاره الله ﷻ دټولو انبیاؤ ونه او دهغوئ دامتیانونه وعده اخستې وه نو آیا دوئ دهغې نه غیر بل دین غواړی.

﴿وَلَهُۥٓ أَسۡلَمَ مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾ په دې کښې متعدد اقوال دی: (۱) د «اسلم» نه انقیاد شرعی مراد دې او«طوعًا» د «من فی السموات» سره متعلق دې او «کرهًا» د «والارض» سره متعلق دې، یعنی دالله دحکم تشریعی اتباع فرشتې هم کوی په غیر دتکلیف نه ځکه ددوئ

دپاره طاعت اوعبادت داسې آسان دې لکه زمونږدپاره نَفَس «ساه اخستل» اسان دی او مؤمنان يې هم کوی په تکليف سره (٢) يا د «اسلم» نه انقياد تکوينی مراد دې او د «طوعًا» نه مراد ذوی العقول دی، او د «کرهًا» نه مراد غير ذوی العقول دی. يعنی چه کوم مخلوق ارادې اواختيار والا دې اوهغه مخلوق چه ارادې اواختيار والا نه دې . دا ټول دالله ﷻ حکم تکوينی ته منقاد دی. ددينه علاوه مختلف اقوال دی.

﴿قُلْ ءَامَنَّا بِاللَّهِ﴾ دا بيان ددين دالله ﷻ دې ﴿لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ﴾ يعنې فرق په ايمان کښې نه کوؤ چه په بعضو باندې ايمان راؤړو اوپه بعضو کفروکړو.

﴿وَنَحْنُ لَهُۥ مُسْلِمُونَ﴾ يعنې ټول پيغمبران منو ليکن عبادت اوسرټيټی صرف الله تعالی ته کؤو او د يونبی منل يا د ولی منل دا نه دی چه هغه معبود وګرځوی يا ورته سجده وکړی. حاجت روا اومشکل کشا يې وګرځوی.

| |
|---|
| وَمَنْ يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْهُ ۚ وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ ﴿٨٥﴾ |
| اوچاچې طلب کړو غيرداسلام نهٔ دين بل نوهيڅرې بهٔ قبول نکړې شی دهغه نه، اودې بهٔ په آخرت کښې دتاوانيانونهٔ وي |
| كَيْفَ يَهْدِي اللَّهُ قَوْمًا كَفَرُوا بَعْدَ إِيمَانِهِمْ |
| څنګهٔ بهٔ دهدايت توفيق ورکړي الله هغه قوم تهٔ چې کفرئې کړېدې روستو دايمان ددوئ نهٔ اوبعدددېنه |
| وَشَهِدُوا أَنَّ الرَّسُولَ حَقٌّ وَجَاءَهُمُ الْبَيِّنَاتُ ۚ |
| چې دوئ شهادت کړېدې چې بېشکه دارسول حق دې، اوبعدددېنه چې راغلي وي دوئ تهٔ ښکاره دليلونهٔ |
| وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ﴿٨٦﴾ أُولَٰئِكَ جَزَاؤُهُمْ أَنَّ عَلَيْهِمْ |
| اوالله توفيق دهدايت نهٔ ورکوي قوم ظالمانو(عناديانو)تهٔ . دغسې کسان بدله ددوئ داده چې بېشکه پدوئ باندې دي |
| لَعْنَةَ اللَّهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ ﴿٨٧﴾ خَالِدِينَ فِيهَا ۚ لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ |
| لعنت دالله اودملائکو اودخلقو ټولو . همېشه بهٔ وي دوئ پهٔ هغې کښې نهٔ بهٔ شی سپکولې ددوئ نهٔ |
| الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنْظَرُونَ ﴿٨٨﴾ |
| عذاب اونهٔ بهٔ دوئ تهٔ مهلت ورکولې شي |

﴿وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ ٱلْإِسْلَـٰمِ﴾ دا زجر اوتخويف اخروی دې منکرينو ته. ﴿فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ﴾ د توحيد او سنت خلاف هيڅ عمل مقبول ندې.

﴿وَهُوَ فِى ٱلْـَٔاخِرَةِ مِنَ ٱلْخَـٰسِرِينَ﴾ په آخرت کښې خساره، محرومه کيدل دی دثواب نه اوپه دنيا کښې دهدايت نه محرومه کيدل دی چه بيان ئی دادې

﴿كَيْفَ يَهْدِى ٱللَّهُ﴾ ددېنه مراد توفيق دهدايت دې اود ﴿قَوْمًا﴾ نه مراد يهود اونصاری دی چه دوئ ته د رسول الله ﷺ درسالت علم ؤو، خو دضداوحسد دوجه نه ئی انکارکولو اودغه شان ضدّی اومتعصب ته دهدايت توفيق نه ملاويږی الا ان يشاء الله، او د ﴿ٱلْقَوْمَ ٱلظَّـٰلِمِينَ﴾ نه ضديان اومتعصبان مراد دی.

﴿أُو۟لَـٰٓئِكَ﴾ دا تخويف دې او مبتدأ ده او ﴿جَزَآؤُهُمْ﴾ ترينه بدل اشتمال دې يا مبتدأ ثانی ده او ﴿أَنَّ عَلَيْهِمْ﴾ ئی خبر دې او د ﴿خَـٰلِدِينَ فِيهَا﴾ ضمير يا لعنت ته راجع دې او يا نار ته راجع دې چه لعنت ورله سبب دې.

| إِلَّا ٱلَّذِينَ تَابُوا۟ مِنۢ بَعْدِ ذَٰلِكَ وَأَصْلَحُوا۟ فَإِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ |
|---|
| مګر هغه کسان چې توبۀ اوباسي روستو ددېنه اواصلاح اوکړي دخپلوعملونو، نوپس بېشکه الله بخښنه کوونکې |
| رَّحِيمٌ ﴿٨٩﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ بَعْدَ إِيمَـٰنِهِمْ ثُمَّ ٱزْدَادُوا۟ |
| رحم کوونکې دې، بېشکه هغه کسان چې کفرئې کړې دې روستو دايمان ددوئ نۀ بيا زيات شوي دي |
| كُفْرًا لَّن تُقْبَلَ تَوْبَتُهُمْ وَأُو۟لَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلضَّآلُّونَ ﴿٩٠﴾ |
| پۀ کفر کښې(ترخنکدن پورې)هيچرې بۀ قبول نۀ کړېشی توبۀ ددوئ، اودغه کسان دوئ لوئې ګمراهان دي |
| إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ وَمَاتُوا۟ وَهُمْ كُفَّارٌ فَلَن يُقْبَلَ |
| بېشکه هغه کسان چې کفر ئې کړې دې اومړۀ شي پداسې حال کښې چې کافران وي نو هيچرې بۀ قبول نکړې شي |
| مِنْ أَحَدِهِم مِّلْءُ ٱلْأَرْضِ ذَهَبًا وَلَوِ ٱفْتَدَىٰ بِهِۦٓ أُو۟لَـٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ |
| دهيچا ددوئ نۀ ډکه زمکه سره زر اګر که بدله ورکړې پۀ هغې سره دغه کسان، ددوئ دپاره عذاب دردناک دي |
| وَمَا لَهُم مِّن نَّـٰصِرِينَ ﴿٩١﴾ |
| او نشته ددوئ دپاره هيڅوک مددګاران |

﴿إِلَّا ٱلَّذِينَ تَابُواْ﴾ دا د ماقبل نه استثناء ده ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ بَعْدَ إِيمَـٰنِهِمْ﴾ په مخکښې آیت کښې د توبې ذکرؤو اوپدې آیت کښې بیان دوخت دتوبې دې چه وخت دقبولیت د توبې دموت او دغرغرې نه مخکښې دې ﴿ثُمَّ ٱزْدَادُواْ كُفْرًا﴾ ددینه مراد دادې چه په کفرباندې قائم وی دوخت دموت اوغرغرې پورې، نودوام په کفرزیادت دې په کفرکښې، ﴿لَّن تُقْبَلَ تَوْبَتُهُمْ﴾ ددینه مراد یا دادې چه ددوئ توبه په وخت دغرغرې کښې نه قبلیږی لکه په حدیث کښې دی چه «ان الله یقبل توبة العبد ما لم یغرغر» یامراد دادې چه ددوئ توبه نه قبلیږی کله چه دوئ مړه شی په کفر باندې لکه په وروستنی آیت کښې دی نو هغه تفسیر دې ددې آیت دپاره ، یا مراد دادې چه دوئ توبه نکوی نوځرنګه به قبوله شی، یامراد دادې چه په حالت دکفرکښې څوك دنوروګناهونونه توبه وباسی نو هغه نه قبلیږی (**کمافی الروح**)

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ وَمَاتُواْ وَهُمْ كُفَّارٌ﴾ په ماقبل آیت کښې دعدم قبولیت دتوبې ذکرؤو دلته دعدم قبولیت دفدیې ذکردې ﴿مِّلْءُ ٱلْأَرْضِ﴾ دملء معنی ده مقدار د ډکوالی یعنی دومره مقدارچه زمکه ډکه کړی ﴿وَلَوِ ٱفْتَدَىٰ بِهِۦ﴾ مفسرین وائی چه داسې واؤ چه د(لو) وصلیه سره مصاحب وی نو دا تقاضاکوی دبل شرط چه مقدروی اوحکم په هغه باندې په طریقه اولی سره وی لکه (اکرم زیداً ولواساء) نو دلته دې واؤ عطف دَ مذکور کړیدې په محذوف باندې، تقدیر دَ عبارت داسې دې : «اکرم زیدًا لو احسن ولَو اساءَ» نو اکرام د زید په تقدیر داحسان په طریق اولی سره دې، نودلته **سوال** واردیږی چه پدې آیت کښې خو داسې نه ده ځکه چه فدیه ورکول په ډکه زمکه دسروزرو سره ددینه خوبل اعلی حال نشته دې چه په هغې کښې عدم قبولیت دفدیې په طریق اولی سره معلوم شی، نو ددې مختلف **جوابات** دی.(۱) اسهل جواب دعلامه زمحشری دې چه دلته تقدیر دې چه «فلن یقبل من احدهم فدیة ولوافتدیٰ بملء الارض ذهبًا» نوچه فدیه بملء لارض نه قبلیږی نوهسې فدیه په طریق اولی سره نه قبلیږی.(۲) اوبعضې وائی چه واؤ زائد دې «ای فلن یقبل من احدهم ملء الارض ذهباً لوافتدی به»، (۳) بعضې وائی چه په عبارت کښې تقدیر دې «ای فلن یقبل من احدهم ملء الارض ذهباً تبرعاً وتصدقاً ولوفتدی به» یعنی په طور دفدیې سره نه قبلیږی نوپه طوردصدقې اودهبې سره خوپه طریق اولی سره نه قبلیږی (**قرطبی**)

﴿وَمَا لَهُم مِّن نَّـٰصِرِينَ﴾ من د استغراق دپاره دې یعنی هیڅ څوك مددګاربه ددوئ دپاره نه وی دعذاب لرې کولو یا آسانولودپاره .

**تلك الرسل پاره ختمه شوه**

| لَنْ تَنَالُوا | الْبِرَّ | حَتّٰى | تُنْفِقُوْا | مِمَّا | تُحِبُّوْنَ ۗ | وَمَا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| هرګزبهٔ [1] حاصل نهٔ کړئ تاسونيکي ترڅوچې خرچ نهٔ کړئ دهغه څيزنهٔ چې تاسونې خوښوئ، اوهغه څهٔ | | | | | | |
| تُنْفِقُوْا مِنْ شَيْءٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ ۝ | | | | | | |
| چې تاسو خرچ کوئ هرڅيز چې وي نوبېشکه الله پهٔ هغې باندې عليم دې | | | | | | |

﴿لَن تَنَالُوا۟ ٱلْبِرَّ﴾ ((**تنالوا**)) د نيل نه مأخوذ دې او نيل په معنى دموندلو اوحاصلولو سره دې او د (بر) نه مراد دايمان اودتقوىٰ هغه درجه ده چه په هغې سره انسان د ابرارو په زمره کښې شامل شى چه د هغې ذکرالله ﷻ کړيدې ﴿كَلَّآ إِنَّ كِتَٰبَ ٱلْأَبْرَارِ لَفِى عِلِّيِّينَ ۝١٨﴾ ، ﴿إِنَّ ٱلْأَبْرَارَ لَفِى نَعِيمٍ ۝٢٢﴾ مقصود دادې چه انسان دابرارو په زمره کښې هله شامليږى چه خپل محبوب شئ دالله تعالى درضا دپاره خرچ کړى.

مخکښې آياتونوکښې داهل کتابوسره مخاطبه اوګفتګو وه اوهغوئ ته دنيوى رياست اوجاه ډيرمحبوب ؤو اوحب جاه دهغوئ دپاره رکاوټ ؤو د ايمان نه، نوپدې آيت کښې هغوئ ته د اسلام راوړلوترغيب ورکړې شو چه دنيوى فانى جاه خرچ کړئ نو(برّ) به حاصل کړئ اود ابرارو په زمره کښې به داخل شئ : **شعر** :

*مٹادے اپنے ہستی کو اگر کچھ مرتبہ چاہو ۔ کہ دانہ خاک میں مل کر گل گلزار ہوتا ہے*

﴿مَا تُحِبُّونَ﴾ عام دې جاه اورياست ته هم شامل دې او د انسان عمراوصلاحيتونوته هم شامل دې، دا هم دالله تعالى د رضا او دين د سربلندئ دپاره خرچ کول پکاردى (قاله الاستاذ ﷫) ، اومال ته هم شامل دې، حضرت مولانا عثمانى ﷫ وائى چه ماقبل آيت کښې دکافر مال خرچ کولوته يى بې فائدې فرمايلې ؤو، دلته فرمائى چه د مؤمن مال خرچ کولوسره کمال نيکى حاصليږى، البته محبوب مال خرچ کول پکاردى لکه صحابه کرامو ﷺ چه ددې آيت په نزول سره خپل محبوب مال خرچ کړو : (١) په بخارى کښې دانس ﷺ نه روايت دې چه حضرت ابوطلحه ﷺ دمدينې په انصاروکښې زيات مالدارؤو اوده ته زيات محبوب مال (بيرُحاء) باغ ؤو چه مسجدنبوى ته مخامخ ؤو اونبى ﷺ به ورته کله کله تشريف وړلو او د هغې عمده اوخوږې اوبه به ئى سکلې نوچه دا آيت نازل شو نوحضرت ابوطلحه ﷺ

1 - اهل کتابو تهٔ داسلام ترغيب.

دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضرشو اوعرض ئی وکړو چه یا رسول الله ﷺ ! الله ﷻ فرمائی
﴿ لَن تَنَالُواْ ٱلۡبِرَّ حَتَّىٰ تُنفِقُواْ مِمَّا تُحِبُّونَۚ ﴾ اوزما محبوب مال (بیرُحاء) دې زه دا دالله ﷻ درضا دپاره خرچ کوم او امیدلرم ددې دثواب اواجر، اوتاسو چه کوم مصرف مناسب ګڼئ نوهلته ئی صرف کړئ، نونبی ﷺ ډیرخوشحاله شو او وې فرمایل چه دا ډیر د نفع مال دې اوحکم ئی ورته وکړو چه دا په خپلو اقرباؤ او رشته دارانو کښې خرچ کړه. (۲) په روایت د بخاری اومسلم کښې دی چه یو وارې حضرت عمرؓ دحضورﷺ په خدمت کښې حاضرشو اوعرض یی وکړو چه زماپه مال کښې بهترین او اعز مال هغه حصه دزمکې ده چه په خیبرکښې ده، نوزه هغه صدقه کوم نونبی ﷺ ورته اوفرمایل چه اصل زمکه (حبس کړه) او په خپله قبضه کښې وساته او دهغې پیداوار اومنافع دالله ﷻ په لاره کښې وقف کړه ، (۳) حضرت عبدالله بن عمرؓ فرمائی چه دتلاوت په دوران کښې زه دې آیت ته ورسیدم نوما په خپل ټول جائیداد کښې تصور وکړو چه کوم څیزما ته ډیرمحبوب دې نوپه ټولوکښې ماته ډیرمحبوب زما(جاریه فارسیه وه) فارسیه وینزه وه چه مرجانه نوم یی ؤو نوهغه مې آزاده کړه اوپه زړه کښې مې ورسره دومره ډیره مینه وه چه که چرې دالله ﷻ په لاره ورکړې شوې شې واپس کیدې شوې نوما به ضرور واپس کړې وه اونکاح به مې ورسره کړې وه، اودغه وینزه ئی خپل شاګرد نافع ته په نکاح ورکړه (روح؛ ابن کثیر) اوپه بعضو روایاتوکښې دی چه دومره محبت ئی ورسره ؤو چه ددغه وینزې د اولادنه به ئی ددې خوشبو محسوسه کوله.

(۴) حضرت زیدبن حارثهؓ.ته په خپل ټول مال کښې زیات محبوب مال فرس ((آس)) ؤو نوهغه ئې راؤړو اوعرض ئی وکړوچه یا رسول الله ﷺ چه زه دا صدقه کوم نونبی ﷺ قبول کړو اودده زوی أسامهؓ ته ئی ورکړو نوده ته شك راغې، نونبی ﷺ ورته افرمائیل : ((ان الله قدقبلها منك)) چه ستا صدقه الله ﷻ قبوله کړې ده (روح).

﴿وَمَا تُنفِقُواْ مِن شَيۡءٖ﴾ یعنې دمحبوب شی دخرچ کولوحکم، مقصود دا نه دې چه د ادنی . یافالتو . بی ضرورته شئ په صدقه کولو به ثواب نه ملاویږی بلکه ثواب په هره صدقه ملاویږی اګرکه دخپل ضرورت نه زائدوی لکه زړې کپړې ، بچ شوې روټئ وغیره. البته اخلاص پکښې ضرور دې اوپه اخلاص باندې الله ﷻ عالم دې.

| كُلُّ الطَّعَامِ كَانَ حِلًّا لِّبَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ إِلَّا مَا حَرَّمَ إِسْرَآءِيلُ |
|---|
| ټول[۱] دخوراک څیزونه (چې یهودیانو حرام کړي وو) حلال وو بنی اسرائیلو لره مګر هغه چې حرام (منع) کړی وو یعقوب |
| عَلَىٰ نَفْسِهِۦ مِن قَبْلِ أَن تُنَزَّلَ ٱلتَّوْرَىٰةُ ۗ قُلْ فَأْتُوا۟ بِٱلتَّوْرَىٰةِ فَٱتْلُوهَآ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ۝ |
| پخپل ځان باندې مخکښې دنازلیدو دتورات نه. ته ووایه نوراوړئ تورات نو اولولئ هغه کچرې یئ تاسو رښتني |
| فَمَنِ ٱفْتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ ٱلْكَذِبَ مِنۢ بَعْدِ ذَٰلِكَ فَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ۝ قُلْ |
| پس څوک چې جوړکړي په الله باندې دروغ روستو ددېنه نو دغه کسان هم دوئ ظالمان دي ته اووایه |
| صَدَقَ ٱللَّهُ ۗ فَٱتَّبِعُوا۟ مِلَّةَ إِبْرَٰهِيمَ حَنِيفًا ۖ وَمَا كَانَ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ ۝ |
| چې رښتیاوئیلی دي الله، پس تابعداري اوکړئ ددین دابراهیم چې کلک وو په توحید باندې، اونه وو د مشرکانو نه |

﴿كُلُّ ٱلطَّعَامِ كَانَ حِلًّا﴾ داجواب داولې شبهې دې په رسالت باندې، دیهودو احبارو او رهبانو به خلق متنفر کول دایمان نه په حضور ﷺ باندې او د مسلمانانو په زړونو کښې به ئې دشکوکو او شبهاتو اچولو کوشش کولو، پدې آیت کښې د **اولې شبهې جواب دې**، شبهه داوه چه دا نبی په ښکاره خو دملت ابراهیمی داتباع دعوی کوی خو په حقیقت کښې ترینه مخالف دې ځکه چه د اوښ غوښې ، اوپئ ، په ملت ابراهیمی کښې حرام وو او دا نبی ورته حلال وائی، **دجواب حاصل دادې** چه دیهودیانو او د احبارو، رهبانو، دا قول اودعویٰ بالکل غلطه ده بلکه دغه اشیاء حلال وو که چرې حرام وې نو په تورات کښې به ئې دحرمت ذکر شوې وې ځکه چه کوم اشیاء د بنی اسرائیلو دپاره حرام وو، نو د هغې حرمت په تورات کښې موجود وو، حالانکه ددغه اشیاؤ دحرمت ذکر په تورات کښې نشته، په «الطعام» کښې لام د استغراق دپاره نه دې بلکه دعهد دپاره دې اومعهود هغه طعام دې چه یهودیانوئې دحرمت دعویٰ کوله چه د اوښانو غوښې اوپئ دی.

﴿إِلَّا مَا حَرَّمَ إِسْرَٰٓءِيلُ﴾ اسرائیل په معنی د عبد الله سره دې اودا لقب دیعقوب ﷺ دې او پدې استثناء کښې دوه قوله دی: ۱- اول قول دا چه دا استثناء منقطع ده یعنی یعقوب ﷺ دا اشیاء صرف په خپل ځان حرام کړی وو اوپه بنی اسرائیلو باندې حرام نه وو، اومراد دحرمت نه

---

۱ - په رسالت باندې داولې شبهې جواب.

یا لغوی حرمت دي یعنی منع کول اوپرهیزکول، ځکه چه حضرت یعقوب ﷺ ته عرق النساء بیماری لګیدلې وه نو طبیبانو ورته مشوره ورکړه چه د اوښ دغوښې اوپیُونه پرهیزکوه (کشاف) یا دحرمت نه مراد شرعی حرمت دي، حضرت یعقوب ﷺ ته عرق النساء بیماری ولګیده نو دوئ نذر وکړو چه کله الله ﷻ ماته صحت راکړو نوزه به خپل مرغوب طعام د اوښانو غوښې اوپئ ترك کړم، نو د نذرپه وجه تحریم راغې، لیکن دا دَ نذر په وجه یو څیز حرامیدل د هغوئ په دین کښې وؤ، زمونږ په دین کښې دَ نذر په وجه حرمت نه راځی بلکه نذربه ختموی اوکفاره به اداکوی.

لقوله تعالی ﴿لِمَ تُحَرِّمُ مَآ أَحَلَّ ٱللَّهُ لَكَ﴾ الی قوله تعالی ﴿قَدْ فَرَضَ ٱللَّهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ أَيْمَـٰنِكُمْ﴾

اودویم **قول دادې** چه دا استثناء متصله ده، یعنی دیعقوب ﷺ دتحریم دوجې نه دا اشیاء په بنی اسرائیلو باندې هم حرام شول، لیکن دا قول مرجوح دي ځکه چه په بنی اسرائیلو باندې حرمت د اوښانو دغوښې اودشحوم وغیره دیعقوب ﷺ دتحریم په وجې نه ؤو بلکه دتورات دنزول نه بعد ددوئ دظلم اوبغې په وجې سره وو، لکه په سورة انعام آیت ۱۴۲ کښې دی

﴿قُلْ صَدَقَ ٱللَّهُ﴾ یعنی الله ﷻ چه د دفع دشبهاتوپه باره کښې څه اوفرمایل نو دا حقائق او امور واقعیه دی نو ددې اتباع کوئ اواحبار اورهبان چه څه وایی نو دغه واهیات او(من ګهړت) خبرې دی په هغې پسې مه ځئ.

﴿وَمَا كَانَ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ﴾ یعنې حضرت ابراهیم مشرك نه ؤو اویهودیان او دارنګه مشرکین عرب مشرکین دی نودوئ چه ځان ته ابراهیمیان وائی نو دا نسبت غلط دې

| مُبَٰرَكًا | بِبَكَّةَ | لَلَّذِى | لِلنَّاسِ | وُضِعَ | بَيْتٍ | أَوَّلَ | إِنَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| دبرکت نه ډک | دې چې په مکه معظمه کښې دې، | | دخلقوخامخاهغه | دعبادت | وؤدپاره | اول کورچې مقررکړې شوې | بیشکه [1]، |

| إِبْرَٰهِيمَ | مَّقَامُ | بَيِّنَـٰتٌ | ءَايَـٰتٌۢ | فِيهِ | لِّلْعَـٰلَمِينَ ۝ | وَهُدًى |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دابراهیم دې | داودریدلو | (یودهغې نه) ځائې | دی دقدرت دالله | نخښې ښکاره | پدې کښې | دپاره دخلقو، | اوهدایت دې |

1 - د دویمې شبهې جواب.

| وَمَنْ دَخَلَهٗ كَانَ اٰمِنًا ؕ وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ |
|---|
| اوځوک چې داخل شي دېته وی به امن والا ، اوخاص الله دپاره په خلقوباندې فرض دې حج دبيت الله په هغه چا |
| اسْتَطَاعَ اِلَيْهِ سَبِيْلًا ؕ وَمَنْ كَفَرَ فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعٰلَمِيْنَ۝ |
| چې طاقت لرې هغې ته دتللودلارې، اوچاچې کفر اوکړو په انکاردحج سره پس بېشکه الله غني دې دټولوخلقونه |

﴿إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ﴾ داد دویمې شبهې جواب دې شبهه داوه چه احبارو اورُهبانو به ویل چه دا . نبی ﷺ دتمام انبیاؤنه مخالف دې ځکه چه ده بیت المقدس پریښودلو اوبیت الله ئی خپل ځان له قبله وګرزوله حالانکه بیت المقدس دتمام انبیاؤ قبله ده او د خانه کعبې نه مخکښې اوافضله قبله ده، **حاصل دجواب** دادې چه دا قول ستاسو غلط دې بلکه بیت الله دټولو خلقو(چه په هغې کښې انبیاء هم دی) دپاره عبادت ګاه ده اوپه دنیاکښې اول عبادت ګاه ده او افضله ده او د افضلیت وجوه ئی دادی : ۱- مبٰرکاً . ۲- هدی ۳- مقام ابراهیم ۴- ومن دخله کان آمنا ۵- ولله علی الناس حج البیت .

اول، دویم اوځلورم اوپنځم د آیاتِ تشریعیه ؤ نه دی، او دریم د آیات تکوینیؤنه دې نوځکه په وسط کښې ذکرشو او دبیت الله اوّل بیت . کیدلو کښې دوه احتماله دی : ۱- **یو** دادې چه دا اولیت دعبادت ګاه په اعتبارسره دې یعنی اول عبادت ګاه بیت الله دې نوکیدې شی چه دبیت الله نه قبل دِ نور کورونه آباد ؤو خو ددینه مخکښې بل معبد(عبادت ګاه) نه ؤو، داقول مروی دی دحضرت علی رضی الله عنه نه (رجحه ابن کثیر) (۲) **دویم** احتمال دادې : چه دا اولیت مطلقاً دې یعنی د پیدایش دآسمانونو اوزمکې سره معاً یوځائ دا بیت ملائکو جوړ کړیدې لکه مفسرینو(**روح، ابوحیان وغیره**) لیکلی دی چه **بناء دبیت الله لس** ( ۱۰ ) **واري شویده** : ۱- اول ملائکوجوړ کړیدې د آدم علیه السلام نه دوه زره کاله (۲۰۰۰) مخکښې دسروياقوتونه، ۲- بیا آدم علیه السلام ۳- بیاشیث علیه السلام ، ۴- بیا ابراهیم علیه السلام ۵- بیاعمالقو ، ۶- بیاجُرهم ، ۷- بیا قُصَیٰ ، ۸- بیا قریشو چه دحجراسود په ایښودلو کښې ئی اختلاف راغلې ؤو اونبی ﷺ ورته فیصله کړې وَه کما هواالمشهور، ۹- بیا عبدالله بن زبیر رضی الله تعالی عنه، ۱۰- بیا حجاج بن یوسف. او ددې قول تائید دحدیث دبخاری اومسلم نه کیږی چه حضرت ابوذر رضی الله عنه وائی چه ما د نبی ﷺ نه تپوس وکړو چه کوم مسجداول جوړکړې شوې دې، نوهغوئ اوفرمایل مسجد حرام او بیا مسجداقصیٰ او ددوئ په مینځ کښې څلوېښت کاله فاصله وه (آه) ، نوظاهره داده

چه دلته جوړول په ذريعه دملائيكوسره مراد دی ځكه چه جوړول د ابراهيم بيت الله لره اوجوړول دسليمان ﷺ بيت المقدس لره د دواړو په درميان كښې څلويښت كاله نه ؤو بلكه زروكلونونه هم زياته فاصله وه .

﴿لَلَّذِي بِبَكَّةَ﴾ دا خبر د ﴿إِنَّ﴾ دې د «بكه» په باره كښې دوه قوله دی : **اول قول** د اكثرو علماؤ دې چه دا لغت دې په مكه كښې نو دواړه يوشې دې او باء اوميم ديوبل نه بدل راځی لكه نميط، نبيط ، لازم ، لاذب، راتب ، راتم ، **دويم قول** دادې چه ددې دواړو په مينځ كښې فرق دې ځكه چه مكه ټول ښار ته وائی اوبكه ځائ د بيت الله ته وائی، يامكه ټول حرم ته وائی اوبكه صرف مسجدحرام ته ويلې شی، او **وجه دتسميه** په بكه سره داده چه بك ازدحام «رش» ته وائی اوپه كعبه باندې هم په پهوخت دطواف كښې ازدحام وی، يادا وجه ده چه بك ، دق ته وائی اوداهم «تدق اعناق الجبابرة» يعنی بك څټ ماتولوته وائی اوكعبه هم دجبابرؤ څټونه ماتوی لكه واقعه د اصحاب الفيل پدې ګواه ده.

او **وجه د تسميه په مكه** سره داده چه «مك» كم والی د اوبوته ويلې شی اوپه مكې كښې د اوبوقلت دې يا مك استقصا بالهلاك ته وائی اومكه هم ظالمانولره هلاكوی.

﴿مُبَارَكًا﴾ دبيت الله دفضيلت يوه وجه داده چه دې مبارك دې يعنی كثيرالخير دې او دبيت الله بركتونه يوظاهری اوبل معنوی دی چه دا اصل بركات دی، ظاهری بركات خوبيې دا دی چه ﴿يُجْبَىٰٓ إِلَيْهِ ثَمَرَٰتُ كُلِّ شَيْءٍ﴾ چه په دغه ريګستان بې آب اوګياه مقام كښې هرقسم ميوې ، تركاری په دومره فراخی سره دی چه نه دمكې دباشندګانو دپاره څه كم وی اونه د باهر نه په لاكهونو راغلو خلقودپاره دڅه شی كمې وی، او معنوی بركات ئې هم ډيردی لكه ثواب ديو مونځ په حرم كښې ديولاكهـ مونځونو سره برابردې (كمافی حديث ابن ماجه) اوګناهونه په حج اوعمره اوطواف سره معاف كيږی اوهيڅ وقت كښې داوقاتونه دعبادت نه، نه خالی كيږی

﴿وَهُدًى لِّلْعَٰلَمِينَ﴾ «هدی» په معنی د «هادٍ الی الجنة» سره دې يعنی بيت الله رسوونكې دې جنت ته په سبب دطواف اوعباداتو سره پدې كښې، اوپه سبب دتوجه كولو دې ته په هرمونځ كښې. يا دا حمل مبالغة دې يعنی بيت الله عين هدايت اومركزاوسرچشمه دهدايت دې په مخ دځمكې كښې چه چرته بركت اوهدايت وی نوهغه به دبيت الله پرتو اوعكس وی او ټول عالم ته بركتونه او دهدايت انوارات دبيت الله نه رسيږی، شپږ شلې ۱۲۰ رحمتونه روزانه په بيت الله نازليږی، شپيته ۶۰ په طواف كوونكو راځی اوڅلويښت ۴۰ په ذكر

اوعبادت کونکو اوشل ۲۰ صرف په نظرکونکو باندې نازلیږي، اوپه ﴿لِّلْعٰلَمِينَ﴾ کښې دیته اشاره ده چه کعبه د ابتداء نه دټولو انبیاؤ اودهغوئ دامتونودپاره قبله اومقام دحج ؤو.

﴿فِيهِ ءَايَٰتٌۢ بَيِّنَٰتٌ﴾ دا په منزله دتفسیردې د ماقبل دپاره نو ددې وجې نه عطف ونه شو. د «فيه» ضمیر بیت ته راجع دې اومراد ترینه ټول حرم دې اود «ايت بينٰت» په مصداق کښې مفسرینو ډیر امورذکرکړی دی : حجراسود،حطیم ، ملتزم ، زمزم، نزول د انواراتوالهیؤ، اطمینان قلبی په دیدار د بیت الله سره، تعظیم په زړونو دخلقوکښې، واقعه دفیل ، د درندګانوتعرض نه کول ښکارته، بچ ساتل دسیلابونونه په هره زمانه کښې، اودبیت الله دکوم رکن (ګوټ) په طرف چه باران وشی نو دَ دغه طرف په ټوله علاقه کښې فراخ کالی وی، مثلاً که باران په طرف درکن یمانی وشی نو دیمن په ټوله علاقه کښې فراخ کالی وی اوچه باران دټولو ارکانوپه طرف وشی نو په ټولوچاپیرهٔ ملکونوکښې فراخ کالی وی، اوبعضو پکښې داهم شمارکړی دی چه مارغان اوکونترې دبیت الله دپاسه نه الوځی نوبعضو داخبره کړیده چه داخلاف ده ذمشاهدې نه ځکه چه په بعضواحیانوکښې الوتل دبعضې طیورو دبیت الله نه دپاسه مشاهده شویده، اونورو بعضوجواب کړیدی چه بیماره مرغی د استشفا دپاره دبیت الله دپاسه الوځی عامې مرغئ دغه شان نه دی.

«ايت بينٰت» : دوه قسمه دی : یو تشریعیه دی چه په ماقبل کښې ددوو ذکر وشو او ددوو ذکرورستوکیږی، بل قسم آیات تکوینیه دی نودهغې ذکرپه درمیان کښې کیږی هغه دادې چه :

﴿مَّقَامُ إِبْرَٰهِيمَ﴾ دا مبتداء ده اوخبر ورله مقدر دې مخکښې «ای منها مقام ابراهم» یا دا خبر دې او مبتداء ورله مقدره ده «ای احدها مقام ابراهیم» اوپدې کښې دوه قوله دی **اول** داچه مراد ددینه هغه ګټه ده چه حضرت ابراهیم ﷺ دخانه کعبې جوړولودپاره په هغې ولاړوو اوچه دیوالونه دبیت الله به اوچتیدل نو دا ګټه به هم دالله ﷻ په قدرت سره اوچتیدله اوپدې کښې دحضرت ابراهیم ﷺ دقدمونونشانات موجود دی، اودا د لویو نشاناتونه دې، ځکه چه په سختنه ګټه کښې قدمونه دپرکو(ګیټو) پورې ننوتل، اومحفوظ ساتل ددشمنانونه لویه نشانه ده اوپه کافرانوحجت دې اوپدې سره ملت ابراهیمی خلقوته یادیږی **دویم** قول دادې چه دمقام ابراهم نه مراد ځایونه د اودریدلو دابراهم ﷺ دی دمونځ اودعاګانو دپاره، نو پدې کښې کل مسجد حرام اوصفا،مروه ،منی، مزدلفه ، ټول داخل دی.

﴿وَمَن دَخَلَهُۥ كَانَ ءَامِنًا﴾ لفظ د «من» د ذوی العقولو دپاره راځی خو دلته ترینه مراد

عام دي وحشي حیوانات ، شين بوټي ،ونه دحرم، دا ټول پکښي داخل دی «آمن» اسم فاعل «ذی کذا» دي يعنی امن والا اوپدي کښي دري اقوال دی : **يو** دا چه امن د دنيا مراد دي، **دويم** دا چه امن د آخرت مراد دي يعنی څوك چه داخل شوحرم ته په اراده دحج اوعمري سره دصحيح عقيدي نه نودي به په امن وی دعذاب دجهنم نه، **اودريم** داچه دواړه مراد دی، د دنيوی امن نه مراد دادي چه څوك دحرم نه باهر قتل وکړی یا بل څه جرم وکړی اوپه حرم کښي پناه ونيسي نودي به په حرم کښي نشی قصاص کولي او دارنگه نورحدود به پري نشی جاري کولي، البته بيع اوشراء، خوراك، سكاك به پري بند کړي شی چه مجبورشی دحرم نه په راوتلو نو باهربه قصاص کولي شی اوحدبه پري جاري کولي شی او دا مذهب د امام ابوحنيفة رحمه الله دي اود امام شافعی رحمه الله په نزدپه حرم کښي قصاص اخستل جائزدي، البته كه څوك په داخل دحرم کښي قتل وکړی نوهغه به په حرم کښي قصاص کولي شی بالاتفاق.

﴿وَلِلَّهِ عَلَى ٱلنَّاسِ﴾ دا د آياتو تشريعيونه دي ﴿حِجُّ ٱلْبَيْتِ﴾ داپه كسري اوفتحي دواړو لغاتو سره دي ﴿مَنِ ٱسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلاً﴾ دا بدل بعض دي د «**الناس**» نه اواستطاعة په اصل کښي طلب دطواعيت ته وائی اودا تقاضاکوی دقدرت، نودلته ترينه مراد قدرت دي دحج كولو، اوقدرت : ١- يودبدن دي ٢- اوبل دمال دي ٣- او بل د دواړو دي نود امام مالك رحمه الله په نزد قدرت دبدن مراد دي نو دده په نزد حج فرض دي په هرهغه چا چه قدرت دتللو اودكسب كولو په لاره کښي لری، اگر كه غنی نه وی او د امام شافعی رحمه الله په نزد قدرت دمال مراد دي نوڅوك چه په بدن معذوروی اومالداروی نوپه هغه باندي دده په نزد حج فرض دي نوبل څوك به نائب كړی چه دده دپاره حج وكړی . او د امام ابوحنيفة رحمه الله په نزد قدرت دبدن او دمال دواړه مراد دی نوكه څوك مالدارنه وی یاپه بدن معذور وی نو اگر كه مالداروی نوپه هغه باندي فرضيت دحج نشته دي

﴿وَمَن كَفَرَ﴾ څوك چه انكاروكړی دفرضيت دحج نه نو دا خوحقيقی كفردي اوڅوك چه سره دقدرت نه حج پريږدی نو دا عملی كفراومشابهت دكافرانوسره دي .

**فايده** : پدي آيت کښي دفرضيت دحج ډيرتاکيدات دی : **اول لفظ** د «لله» دي، قرطبی وائی چه لام دپاره د ايجاب او د الزام دي او پدي کښي اشاره ده چه دا حق دالله ﷻ دي نو د رياء دپاره به نه وی اودارنگه د احترام دبتانودپاره به نه وی لكه په جاهلية کښي چه ؤو

**دويم لفظ** د «على» دي چه په استعلاء اوتاكيد دلالت كوی، **دريم لفظ** د «الناس» دي چه

په عموم دلالت کوی اګرکه مراد ترینه خصوص دي، **اوخلورم** لفظ د «من الستطاع» دې چه دا بدل دي او بدل په حکم د تکرار دعامل کښې وی، نو دلالت کوی په تاکید باندې، **اوپنځم** «ومن کفر» دې چه حج پرېښېنو دل مشابهت دکافرانو سره دې، **اوشپږم** په «غنیٌ» کښې اشاره ده چه تارك دحج محروم دې دالله ﷻ دخاص رحمت نه.

| |
|---|
| قُلْ يَٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ لِمَ تَكْفُرُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ وَٱللَّهُ شَهِيدٌ عَلَىٰ مَا تَعْمَلُونَ ﴿٩٨﴾ |
| اووایه [1] اې اهل کتابو ! ولې کفرکوئ تاسو په آیاتونو دالله باندې، اوالله خبردې په هغه عملونوچې تاسوئې کوئ |
| قُلْ يَٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ لِمَ تَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ مَنْ ءَامَنَ تَبْغُونَهَا |
| ته اووایه [2] اې اهل کتابو ولې منع کوئ تاسو د لارې دالله نه هغه څوك چې ایمان راوړي چې لټوئ تاسو په هغې کښې |
| عِوَجًا وَأَنتُمْ شُهَدَآءُ وَمَا ٱللَّهُ بِغَٰفِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴿٩٩﴾ |
| کږلیچ، اوحال دادې چې تاسوخبریږئ په حقانیت دې ددین، اوندې الله بې خبره دهغه عملونونه چې تاسوئې کوئ |
| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِن تُطِيعُوا۟ فَرِيقًا مِّنَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ |
| اې ایمان والو [3] کچرې تاسوتابعدارې اوکړئ دیوډلې دهغه کسانونه چې ورکړې شوېدې هغوئ ته کتاب |
| يَرُدُّوكُم بَعْدَ إِيمَٰنِكُمْ كَٰفِرِينَ ﴿١٠٠﴾ وَكَيْفَ تَكْفُرُونَ وَأَنتُمْ تُتْلَىٰ |
| واپس به اوګرځوي تاسو پس د ایمان ستاسونه کافران. اوڅه رنګه کفرکوئ تاسواوحال دادې چې لوستلې کیدېشي |
| عَلَيْكُمْ ءَايَٰتُ ٱللَّهِ وَفِيكُمْ رَسُولُهُۥ وَمَن يَعْتَصِم بِٱللَّهِ |
| په تاسوباندې آیاتونه دالله اوپه تاسو کښې رسول دهغه شته دې، اوچاچې منګولې اولګولې په دین دالله پورې |
| فَقَدْ هُدِىَ إِلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿١٠١﴾ |
| نو په تحقیق سره او رسولې شو هغه لارې نیغې ته |

﴿قُلْ يَٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ﴾ د اهل کتابو دشبهاتو د ازالې نه بعد هغوئ ته زجرونه ذکرکیږی او دا اول زجردې اومراد د «آیات الله» نه قرآن دې، یا دلائیل دنبوة دحضور ﷺ دی، او یا آیات

---

۱ - د شبهاتو دجوابونو نه بعد اول زجر اهل کتابو ته.

۲ - دویم زجر.

۳ - مومنانوته تنبیه.

بینات دکعبې دی.

﴿قُلْ يَـٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَـٰبِ لِمَ تَصُدُّونَ﴾ دا دویم زجر دې ﴿تَبْغُونَهَا عِوَجًا﴾ «ای تبغون لها عوجا» او عوج هغه کږلیچ ته وائی چه په نظرنه راځی بلکه معنوی وی اومراد ددینه شکوك او شبهات اچول دی دخلقوپه زړونوکښې.

﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ﴾ دا تنبیه ورکول دی مؤمنانوته چه داهل کتابو د اطاعت نه ځان بچ ساتئ او دهغوئ دشبهاتو او پروپیگنډونه متأثر کیږئ مه.

﴿وَكَيْفَ تَكْفُرُونَ﴾ دا زجردې مؤمنانوته ﴿وَفِيكُمْ رَسُولُهُ﴾ د دینه اهل بدعت ثابتوی چه حضور ﷺ حاضر اوناظر دې اوپه خپلو بیاناتوکښې دا لفظ په ډیر اوچت او زور دار آواز سره وائی: ﴿وَفِيكُمْ رَسُولُهُ﴾ په تاسوکښې موجو د دې اوحاضر اوناظر دې رسول دالله ، **جواب** دادې چه د آیت سیاق اوسباق پدې دال دې چه دا خطاب دصحابه کرامو سره دې اوکه بالفرض خطاب تمام امت ته شی نود «فیکم رسوله» معنی داده چه په تاسوکښې سنت درسول موجود دې نودهغې خلاف مکوئ اوبدعات مه اختیاروئ بلکه سنت اختیارکړئ.

﴿وَمَن يَعْتَصِم بِٱللَّهِ﴾ پدې کښې دوه توجیه دی: (۱) مضاف مقدر دې «ای ومن یعتصم بکتاب الله ، دین الله» یعنی عمل په کتاب الله اوسنت ترینه مراد دې، (۲) مراد ترینه پناهی حاصلول دی په الله ﷻ سره په وخت دَ شرونو د اهل کتابو اونور اشرارو کښې.

﴿فَقَدْ هُدِىَ﴾ یعنی اعتصام په کتاب الله باندې یقینی سبب دهدایت دې اوپناهی حاصلول دالله ﷻ په ذات سره عین هدایت دې.

| يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا ٱتَّقُوا ٱللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِۦ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا |
|---|
| اې [1] ایمان والو ! یره کوئ دالله نه حقه یره، دهغه نه اومه مړه کیږئ تاسومگر په داسې حال کښې |
| وَأَنتُم مُّسْلِمُونَ ۝ وَٱعْتَصِمُوا بِحَبْلِ ٱللَّهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا ۚ وَٱذْكُرُوا نِعْمَتَ ٱللَّهِ |
| چې تاسو مسلمانان يئ ، اومنگولې [2] اولگوئ په رسئ دالله باندې ټول اومه دلې دلې کیږئ، اویادکړئ نعمت دالله |

1 - د دسورة دویمه حصه ، تمهید ترغیب الی الجهاد .

2 - دتمسک بالقران اود اختلاف نه دبچ کیدلوتلقین.

| عَلَيْكُمْ | إِذْ | كُنْتُمْ | أَعْدَآءً | فَأَلَّفَ | بَيْنَ | قُلُوبِكُمْ | فَأَصْبَحْتُمْ | بِنِعْمَتِهِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

په تاسوكله چې وئ تاسو دښمنان نوجوړ يې راوستلو الله په مينځ دزړونو ستاسو كښې نوشوئ تاسو په سبب دنعمت دهغه سره

إِخْوَانًا ۚ وَكُنْتُمْ عَلَىٰ شَفَا حُفْرَةٍ مِّنَ النَّارِ فَأَنْقَذَكُمْ مِّنْهَا ۗ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ

رونړه ، اوتاسو وئ په غاړه دكندې داور نوبچ ئ كړئ تاسودهغې نه، دغسې بيانوي الله تاسودپاره

آيَاتِهِ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ۝

خپل آياتونه دپاره ددې چې هدايت اومومئ تاسو

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾ دا د سورة دويمه حصه ده پدې كښې درې امور ذكركيږى ۱- جهاد.
۲- انفاق فی سبيل الله، ۳- دجهاد او د رسالت متعلق دشبهې جواب

شبهه داوه چه كافرانو ويل چه رسول الله ﷺ أوصحابؤته په جنګ احد كښې ډيرنقصان او شكست ورسيدلو نوكه چرې دې واقعي اوريشتنې رسول وې نو دا نقصان اوشكست به ورته نه رسيدلو، نوددې شبهې جواب ورستوپه تفصيل سره ذكركيږى چه دهغې خلاصه داده چه الله تعالى فرمائى چه مونږ حسب وعده فتح وركړې وه ليكن دبعضو مسلمانانو نه څه اجتهادى غلطى وشوه او د رسول الله ﷺ دحكم تعميل ئى ونه كړو نو ددې وجه نه فتح په وقتى شكست سره بدله شوه، په ابتداء كښې تمهيد دې اوتر غيب دې جهاد ته دآيت ۱۲۰ پورې. ﴿ ٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ ﴾ تقوى بنياد دټولوامورو ددين دې چه تقوى او دالله ﷻ نه خوف دچاپه زړه كښې نه وى نو هغه ددين هيڅ كارپه حقيقت كښې نشى كولې.

﴿حَقَّ تُقَاتِهِۦ﴾ دا اضافت دموصوف دې صفت ته، په اصل كښې «الاتقاء الحق» دې، يعنې حقه اولائقه يره ، ددې تفسير په مختلف الفاظوسره شويدې .۱- كلك والې په توحيد ۲- ان يطاع فلا يعصى ويشكرولايكفر ۳- اخلاص في التوحيد ۴- دحق په باره كښې دالله تعالى نه ماسوىٰ دهيڅ چا نه يره نه كول (وغيرذالك)، اوبل آيت ﴿ فَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ مَا ٱسْتَطَعْتُمْ ﴾ ددې تفسير دې اوناسخ ئى ندې لكه دا مشهوره ده ((قاله الشاه ولى الله رحمه الله كذاف القرطبي والروح)) .

﴿إِلَّا وَأَنتُم مُّسْلِمُونَ﴾ ددې نه مراد دادې چه ترمرګه پورې په اسلام باندې كلك اوسئ نو

موت به په حالت داسلام راشی اوچه موت په حالت داسلام راشی نوحشربه هم په حالت داسلام راځی «كماتحيون تموتون وكماتموتون تحشرون» نو دا سوال وارد نشو چه موت خوځه اختیاري امر ندي چه الله ﷻ داحکم کوی چه تاسوته دي موت نه راځی مګرپه اسلام باندې او دموت على الاسلام دپاره ذریعه اعتصام بحبل الله دې نوځکه دهغې حکم کیږی او د اعتصام بحبل الله او د تفریق نه بچ کیدلو ذریعه دعوت الی الله دې، په مابعد کښې دهغې ذکرکیږی.

﴿وَٱعۡتَصِمُواْ بِحَبۡلِ ٱللَّهِ﴾ دحبل الله ډیرتفسیرونه دسلفونه منقول دی، د ابن مسعود ﷺ اوعلی ﷺ اوابوسعیدخدری ﷺ نه منقول دی چه مراد د دینه قرآن دې ((القرآن هوحبل الله المتين)) ، اودغه شان د ابن مسعود ﷺ نه منقول دی چه حبل الله جماعت دې یعنی اهل سنت والجماعة، عهدالله ، دین الله، اسلام، طاعت، اخلاص توبه ، اخلاص توحید، دا ټول تفسیرونه منقول دی اوپدې کلام کښې استعاره تمثیلیه ده یعنی مشابه کړې شو حال دمؤمنانو په تمسك بالقرآن (وغیره) سره دحال دهغه چاسره چه یومضبوطه رسۍ ئی کلکه نیولی وی ددې دپاره چه دلاندې ځائ نه اوچت ځائ ته وخیژی اومقصدته ورسی او ﴿جَمِيعًا﴾ حال دې دفاعل د ﴿وَٱعۡتَصِمُواْ﴾ نه او ﴿وَلَا تَفَرَّقُواْ﴾ ددې تاکیددې اومراد نهی ده دتفرقې نه په اصولوکښې، اوتفرقه په فرعوکښې ترینه نده مراد ځکه دا تفرقه په صحابو کښې هم موجوده وه، اودارنګه هغه تفرقه په فرعوکښې هم مرادکیدې شی چه بناء وی په ضد او تعصب باندې اوسبب وی د اختلاف اوډله بازی اوتحاسد دپاره.

﴿وَٱذۡكُرُواْ نِعۡمَتَ ٱللَّهِ﴾ دا ترغیب دې اعتصام بحبل الله ته او دنعمت نه مراد اسلام یا قرآن دې . ﴿إِذۡ كُنتُمۡ أَعۡدَآءٗ فَأَلَّفَ﴾ یعنې په اعتصام بحبل الله کښې ستاسو دپاره دوه فایدې دی یوه دنیوی فائده ده چه هغه دشمنی ختمیدل او اُلفت اومحبت پیدا کیدل دی لکه د اوس، اوخزرج . چه دوه قبیلې دانصارو وې ددوئ په مینځ کښې دیومعمولی خبرې په وجه دشمنی جوړه شوې وه اودشپږ شلی کاله ۱۲۰ پورې وه او ډیرخلق دطرفینونه پکښې قتل شوی ؤ او ډیر مالی اوجانی نقصان شوی ؤو او دا دشمنی په اسلام سره ختمه شوه اوبې مثاله محبت او اُلفت ئی په خپل مینځ کښې پیدا شو، او دویمه اخروی فائده ده چه هغه بچ کیدل دی د اور

دجهنم نه چه دهغې ذکرپه دې قول کښې دې : ﴿وَكُنتُمْ عَلَىٰ شَفَا حُفْرَةٍ مِّنَ ٱلنَّارِ فَأَنقَذَكُم مِّنْهَا ﴾ شفا طرف اوغاړې ته وائی او اضافت ئی کله اعلی ته کیږی لکه ﴿عَلَىٰ شَفَا جُرُفٍ هَارٍ﴾ (په طرف د ډډ کمر نړیدونکی)اوکله ئی اضافت اسفل ته کیږی لکه پدې ځائ کښې، اوحفره کندې ته وائی اوضمیر د ((منها)) راجع دې ((حفرة)) ته یا ((نار)) ته، او انقاذ ویلې کیږی دچا دقبضې نه خلاصولوته، نو پدې لفظ کښې مبالغه ده په بچ کولوکښې، اوپدې آیت کښې تشبیه مراد ده یعنی تاسوپه سبب دکفرسره دجهنم دکندې په غاړه ولاړ وئ اوستاسو او دجهنم په مابین کښې صرف مرګ حائل وو نو تاسو قریب وئ چه جهنم ته ارتاؤشئ، لیکن الله تعالی تاسو داسلام اودحضرت محمد ﷺ په وجه دجهنم نه بچ کړئ لکه څوك چه داوردکندې په غاړه ولاړوی اوقریب وی چه په اورکښې پریوځی لیکن څوك دوست اوغمخوارئی راشی او دلاس نه ئی ونیسی او داور دغاړې نه ئی لرې کړی.

**فایده** : الله ﷻ دلته صحابه کراموته خطاب وکړو اوپدوئ باندې یی ددوه نعمتونو ذکروکړو یو دنیوی نعمت یعنی په دنیاکښې باهمی محبت اوالفت، اوبل اخروی نعمت یعنی په آخرت کښې دجهنم نه نجات، نویو ددې آیت نه دصحابه کرامو ډیر لوئ فضیلت ثابت شو اودصحابه کرامو ﷺ دشمنانو چه داخبره مشهوره کړې وه چه ددوئ په مینځ کښې عداوت اودشمنی ده نو ددې رد ددې آیت نه معلوم شو ځکه چه پدې آیت کښې الله ﷻ یوه دا فیصله وفرمایله چه دنعمت داسلام نه بعد دصحابه ؤ ﷺ په مینځ کښې دشمنی اوعداوت نه ؤو پاتې شوې بلکه ددوئ په مینځ کښې محبت اوالفت ؤو اوپه خپل مینځ کښې رونړه ؤو، اودویمه فیصله ئی پدې آیت کښې دا اوفرمایله چه الله ﷻ دوئ دجهنم د اورنه بچ کړیدی اودجنت مستحق ئی ګرځولی دی دصحابه ﷺ شان او ددوئ مقام دقرآن نه معلومیږی نه دتاریخی روایاتو نه ، وذالك فضل الله يؤتيه من يشاء .

﴿وَلْتَكُن مِّنكُمْ أُمَّةٌ يَدْعُونَ إِلَى ٱلْخَيْرِ وَيَأْمُرُونَ بِٱلْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ ٱلْمُنكَرِ﴾

اوپکار(١) ده چې وي دې ستاسونه یوډله چې بلنه کوي خیرطرفته اوحکم کوي په نېکئ سره اومنع کوي دبدئ نه

١ - دامر بالمعروف نهی عن المنکر رسم جاري ساتلو حکم.

| وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ۞ وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ تَفَرَّقُوا وَاخْتَلَفُوا |
|---|
| اودغه کسان خاص دوئ کامیاب دي . اومه کیږئ[1] پشان دهغه کسانو چې دلې دلې شوي دي اواختلاف ئې کړېدي |
| مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْبَيِّنَاتُ ۚ وَأُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ۞ |
| روستو دهغې نه چې راغلل دوئ ته ښکاره دليلونه، اودغه کسان ددوئ دپاره عذاب لوئې دې |

﴿وَلْتَكُن مِّنكُمْ أُمَّةٌ﴾ د اعتصام بحبل الله او د باهمی محبت او الفت پیداکیدلودپاره ذریعه او دتفریق مذموم نه دبچ کیدلو ذریعه دعوت الی الله دې نوددې وجه نه ئې ذکر دلته کیږی او په «ولتکن» کښې «کان» تامه ده او«اُمَّةٌ» ئې فاعل دې اوجمله د «یدعون» صفت د «امة» دې او «منکم» متعلق دې په «تکن» پورې یا «کان» ناقصه ده او «اُمَّةٌ» ئې اسم دې او«یدعون» ورته خبردې، اومقصود ترینه دوام دې پدې عمل باندې اُوصرف وجود ترینه مرادندې او«امة» هغه جماعت ته وائی چه قصدکړې ئې وی څه امر، اواطلاق ئې کیږی په اتباعُ د انبیاؤ باندې او اطلاق ئې کیږی په قدوه اوپیشوا باندې لکه : «ان ابراهم کان اُمَّةً»، او دارنګه اطلاق ئې کیږی په دین او ملة باندې، او اطلاق ئې کیږی په زمانه باندې، په لفظ ده «مِنْ» کښې دوه قوله دی یوقول دادې چه «مِنْ» دتبعیض دپاره دې نوبناء پدې باندې دعوت فرض کفائی دې ځکه چه په دعوت الی الخیر باندې هرسړې قدرت نه لری بلکه هغه څوک لری چه په خیر او معروف اومنکرباندې علم لری اوموقعه شناس وی نومصداق ئې اهل علم دی په هره زمانه کښې، او بل قول دادې چه دا «من» بیانیه دې یا زائد دې نو بناء پدې باندې دعوت فرض دې په هرمکلف باندې خو ساقطیږی دا فریضه په فعل دبعضو سره اوددې قول رجع هم فرض کفائی ته ده اوقول فیصل دادې چه **دعوت په هرمسلمان باندې فرض دې** نوچاته چه دیوې مسئلې یا د یو آیت علم حاصل وی نوپه هغه باندې دهغې دعوت فرض دې، اوصاحب دمرقات دحدیث د«من راء ی منکم منکراً فلیغره بیده ــ الحدیث» په تشریح کښې لیکلی دی چه امربالمعروف اونهی عن المنکرفرض دې په هر چا باندې خواه که نارینه وی یازنانه ،حر وی یا عبد، یاصبی ممیزوی ، الی آخرماقاله.

﴿يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ﴾ دخیرتفسیرپه اتباع دقرآن اوسنت سره اوپه اسلام سره اوپه عمل

---

1 - زجر اوتخویف.

بطاعة الله سره کړې شويدې.

﴿وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ﴾ علامه زمخشری اوبعضې نورحضرات وائی دا عطف الخاص علی العام دې د اهتمام شان دپاره ، ليکن دا قول مرجوح دې، ځکه چه «خَيْر» په غير د امربالمعروف اونهی عن المنکرنه بل فرد نه لری نوخاص اوعام نشته نو راجحه داده چه دا عطف تفسيرې اوتفصيل بعدالاجمال دې دتاکيد دپاره او دَ دينه معلومه شوه چه دعوت الی الخير مکمل کيږی په امر بالمعروف او نهی عن المنکر دواړو سره، يو پريخودل او بل کول مکمل دعوت ندې، اود «معروف» تفسيرپه توحيد اوسنت سره کړې شويدې اوڈ «منکر» تفسيرپه شرك اوبدعت سره کړې شويدې خو راجحه داده چه معروف ټولوماءموراتو ته شامل دې فرائض، واجبات اومندوبات، او دارنګه منکر هرخلاف شرع ته شامل دې کفر، محرمات، مکروهات ، اګرکه دمعروف دپاره فرد اعلی توحيددې او دمنکر دپاره فرد اعلی شرك اوکفردې، صاحب دمرقات ليکلی دی : ((قالوا : ولايختص ذالك باصحاب الولايات)) يعنې امربالمعروف اونهی عن المنکرمختص نه دی په اصحاب الولايات يعنی اقتدار والو پورې ((بل هوثابت علی احادالمسلمين فان السلف الصالح کانوا ياء مرون الولات بالمعروف وينهوهم عن المنکر مع تقريرالمسلمين اياهم، وترك توبيخهم علی التشاغل به)) اودلالت کوی پدې باندې دا قول دالله ﷻ ((والعصران الانسان ـــ الآيه)) ځکه چه پدې کښې ئی شرط ولايت ندې لګولې او دارنګه حديث د «افضل الجهادکلمة حق عندسلطان جائر» «ابوداؤد بيهقی ابن ماجه» او دارنګه شهادت دانبياؤ په وجه ددعوت الی الخير.

ددينه ورستوليکی : ((وينبغی للآمروالناهی ان يرفق ليکون اقرب الی تحصيل المطلوب ، فقدقال الامام الشافعی من وعظ اخاه سرًّ فقدنصحه وزانه، ومن وعظه علانيةً فقدفضحه وشانه قال القاضی عياض رحمه الله اِنَّ هذاالبلب بابٌ عظيم فی الدين : به قوام الامروملاكهِ فاذاکثرالخبث عم العقابُ للصالح والظالم قال تعالی : ((واتقوا فتنة لاتصيبن الذين ظلموا منکم خاصة)) ، آه .

**فايده** : نهی عن المنکر دانده چه هغه وچيرلې شی اوفتوی ولګولې شی بلکه اصل نهی عن المنکر دمنکراتو ختمول دی لکه په حديث کښې «فليغيره» راغلې دې او دمنکراتو ختمولو يوطريقه داهم ده چه دمنکراتو کوونکې د ماموراتو په کولوسره اماده کړې شی نومنکرات به ترينه پاتې شی.

﴿وَأُوْلَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُفۡلِحُونَ﴾ دلته مراد حصردفلاح کامله ده، یعنی پوره پوره کامیاب صرف دغه خلق دی چه دعوت الی الخیرکوی.

﴿وَلَا تَكُونُواْ كَٱلَّذِينَ﴾ دا زجر اوتخویف دې په تفریق اواختلاف کولو باندې اواشاره ده دیته چه په ترك ددعوت الی الله سره تفریق اواختلاف پیدا کیږی، او دارنگه اشاره ده دیته چه په ترك ددعوت الی الله کښې تشبّه ده دیهودو اونصاری ؤسره اودا عطف دې په «ولتکن منکم» باندې یعنې دعوت الی الخیر ورکوئ اومه کیږئ تاسوپه شان دهغه خلقو ﴿تَفَرَّقُواْ وَٱخۡتَلَفُواْ﴾ چه تفریق اواختلاف ئی کړیدې. او ﴿تَفَرَّقُواْ وَٱخۡتَلَفُواْ﴾ په نزد دبعضې مفسرینوپه یوه معنی سره دی اوتکرارمحمول دې په تاکید باندې، اوپه نزد دبعضو باندې د «تفرقوا» نه مراد عداوت اودشمنی ده اود «واختلفوا» نه مراد مذهبی، اعتقادی اختلاف مراد دې او د ﴿ٱلَّذِينَ تَفَرَّقُواْ وَٱخۡتَلَفُواْ﴾ په مصداق کښې دسلفو نه دوه قوله مروی دی : جمهور وائی چه مراد ترینه دیهودو او نصاریٰ ؤ طائفې دی چه هغوئ دوه اویا ۷۲ ډلې جوړې شوې وې اودا امت به درې او یاډلی جوړیږی، اودویم قول دادې چه مراد ددینه اهل بدعت د دې امت دی لکه خوارج، روافض، معتزله وغیرها او دوئ اگرکه په وخت دنزول دقرآن کښې موجودنه ؤو خو دا په طوردپیشینگوئی اواخبارعن الغیب سره ویلی شویدی، نو ددینه معلومه شوه چه دتفرق اواختلاف نه مراد اختلاف دې په اصولو اواعتقادیاتو کښې اوهرچه دې اختلاف په فروعوکښې نو دا مراد نه دې اومذموم هم ندې بلکه واقع دې په مابین دصحابؤ کښې اوثابت دې په احادیثوسره «والتفصیل فی الروح». نو څوك چه د﴿تَفَرَّقُواْ وَٱخۡتَلَفُواْ﴾ مثال دا بیانوی چه «کابی حنیفة وصاحبیه» نو دا عظیم تحریف دې.

﴿مِنۢ بَعۡدِ مَا جَآءَهُمُ ٱلۡبَيِّنَـٰتُ﴾ د بینات نه مراد دتورات اوانجیل هغه صریح او واضحه آیاتونه دی چه په هغې کښې حقیقت د اسلام اوصداقت دحضرت محمد ﷺ واضح طورسره موجودؤو او دارنگه آیاتونه دقرآن ترینه هم مراددی. ﴿وَأُوْلَـٰٓئِكَ لَهُمۡ عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾ ددینه معلومه شوه چه داسې اختلاف گناه کبیره اوموجب دکفردې.

| يَوۡمَ تَبۡيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسۡوَدُّ وُجُوهٌ ۚ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ ٱسۡوَدَّتۡ وُجُوهُهُمۡ |
|---|
| په هغه ورځ چې سپین به وي بعضې مخونه اوتوربه وي بعضې مخونه، پس هغه کسان چې تور شي مخونه دهغوئ |

| |
|---|
| أَكَفَرْتُمْ بَعْدَ إِيمَانِكُمْ فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُونَ |
| «نوهغوي ته به اوونيلې شي)آياكفر كړېدې تاسو پس دايمان ستاسونه پس اوڅكئ عذاب په سبب دهغې چې تاسو كفركولو |
| وَأَمَّا الَّذِينَ ابْيَضَّتْ وُجُوهُهُمْ فَفِي رَحْمَةِ اللَّهِ هُمْ فِيهَا |
| اوهغه كسان[1] چې سپين شي مخونه دهغوئ پس دوئ به په رحمت دالله كښې وي، دوئ به په هغې كښې |
| خَالِدُونَ تِلْكَ آيَاتُ اللَّهِ نَتْلُوهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ وَمَا اللَّهُ يُرِيدُ ظُلْمًا لِلْعَالَمِينَ |
| همېشه وي . دا آياتونه دالله دى لولومونږدې لره په تاباندې په حقه سره، اوالله ظلم كول نه غواړي په خلقو باندې |
| وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ |
| اوخاص دالله په اختيار كښې دي هرهغه څۀ چې په آسمانونو كښې دى اوهغه څۀ چې په زمكه كښې دى |
| وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ |
| اوخاص الله[2] طرفته گرځولې شي ټول كارونه |

﴿يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ﴾ «يوم» منصوب بنا بر ظرفية دې اوعامل ورته ظرف يعنى «لهم» دې او مراد د «يوم» نه يوم القيمة دې اومراد د بَيَاض اوسوَاد نه حقيقى معنى ده په نزد دجمهوروا ومجازى معنى هم مراد كيدې شى، يعنى سرور،خوشحالى اوغم پريشانى ، اومراد دوجوه نه په «تبيض وجوه» كښې وجوه المؤمنين دى اوپه «تسود وجوة» كښې وجوه الكافرين دى او د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چه سپين به شى مخونه داهل سنّت په ورځ دقيامت اوتوربه شى مخونه داهل بدعت لكه شيعه ،معتزله ،خوارج وغيره په ورځ دقيامت، اودمفسرينو په تعين ددې مقام كښې مختلف اقوال دى : ((وفى الروح واختلف فى ذالك الوقت : ١- فقيل وقت البعث من القبور٢- وقيل وقت قراءة الصحف ٣- وقيل وقت رجحان الحسنات والسيئات فى الميزان ٤- وقيل عندقوله جل جلاله وامتازواليوم ايهاالمجرمون ٥- وقيل وقت ان يؤمركل فريق بان يتبع معبوده)).

﴿فَأَمَّا الَّذِينَ اسْوَدَّتْ﴾ پدې كښې تخويف اخروى دې او دا تفصيل ددواړو فريقينودې په

---

١ - بشارت.

٢ - دليل عقلى په توحيد او تشجيع عى الجهاد.

طريقه دلف نشرغيرمرتب سره او د ﴿أَكَفَرْتُم﴾ نه مخکښې ((فيقال لهم)) مقدر دي ﴿بَعْدَ إِيمَانِكُمْ﴾ يعنى بعد دموجب د ايمان نه چه آيات بينات دى، يا بعد له فطرى ايمان نه. دا تاويل په دي تقدير سره دي چه خطاب عامو كفارو ته شى، يا بعد دَ زُبانى ايمان نه. چه خطاب منافقانو ته شى اوكه خطاب بنوقريظه اوبنونضير يهوديانو ته شى نو دوئ قبل دبعثت دحضور ﷺ نه په حضور ﷺ ايمان لرلو او دبعثت دحضور ﷺ نه بعد يى كفركړى دي.

﴿وَأَمَّا الَّذِينَ ابْيَضَّتْ﴾ دا بشارت دي، ﴿فَفِي رَحْمَةِ اللَّهِ﴾ او د رحمت نه مراد ياخود رحمت دي اوثواب دي، اوپه ذكرد (فى) كښې اشاره ده چه رحمت به پدوئ احاطه كړې وى دهرطرف نه، اوپه اضافت د رحمت كښې الله ﷻ ته، اشاره ده عظمت د رحمت ته، او دابن عباس ﷛ نه روايت دي چه مراد د رحمت نه جنت دي ذكر دحال اومراد ترينه محل دي اوتعبيرپه رحمت سره ځكه وشو چه دخول جنت ته صرف دالله ﷻ په رحمت سره كيدي شى .((كمالى الحديث لن يدخل احدكم الجنة عمله فقيل له حتى انت يارسول الله فقال حتى انا الاان يتغمدنى الله برحمته)) .

﴿تِلْكَ آيَاتُ اللَّهِ﴾ په (تلك) كښې تيرشوى مضمون طرف تهٔ اشاره ده اوپدي كښې بيان دصدق در سول ﷺ دي يعنى دا مذكور بيان، چه توريدل دمخونو دكافرانوا دى اوسپين كيدل دمخونو دمؤمنانو دى په ورځ دقيامت وغيره دا دالله ﷻ فرمان دي.

﴿وَمَا اللَّهُ يُرِيدُ ظُلْمًا لِّلْعَالَمِينَ﴾ «ظلمًا» مصدر دي يعنى ظلم كول او «للعلمين» په ظلماً پورې متعلق دي اونكره په سياق دنفى كښې دعموم دپاره ده نو پدې كښې نفى دظلم په طريقې دمبالغې سره ده، يعنى الله ﷻ اراده نه كوى دهيڅ قسم ظلم كولوپه خلقوباندې يعنى ظلم خودركنار بلكه دهيڅ ظلم اراده هم نه كوى، دَ آيت دا مطلب په نزد داهل سنت والجماعت دي. اومعتزله وائى چه ددې مطلب دادې چه بندگان چه په يوبل ظلم كوى نو دا په اراده د الله تعالى سره ندي، او دا قول غلط دي بلكه پدې تقدير داسې ويل پكارؤو : «من العالمين».

﴿وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ﴾ دا دليل عقلى دي په توحيد باندې او دجارمجرور تقديم د افادې دحصر دپاره دي او دارنګه دا علت دي دماقبل دپاره يعنى الله ﷻ اراده دظلم ځكه نه لرى چه دهغه په هرڅه قدرت دي اوهرڅه دده په ملك اوتصرف كښې دى اوظلم دهغه چانه متصور كيدې شى چه په هرڅه قدرت نه لرى اوهرڅه دهغه په ملكيت اوتصرف كښې نه وى

| كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ |
|---|
| يئ تاسو غوره دټولوامتونونه چې پيداکړئ شوي يئ دپاره دنفع دخلقو، حکم به کوئ خلقوته دنيکوکارونو |
| وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ ۗ وَلَوْ آمَنَ أَهْلُ الْكِتَابِ |
| اومنع به کوئ دبدوکارونونه اوايمان به راوړئ په الله باندې، اوکچرې ايمان راوړې وې اهل کتابو |
| لَكَانَ خَيْرًا لَهُمْ ۚ مِنْهُمُ الْمُؤْمِنُونَ وَأَكْثَرُهُمُ الْفَاسِقُونَ ﴿١١٠﴾ |
| نوخامخا به دا غوره وه ددوئ دپاره ، بعضې ددوئ نه مومنان دي او زيات ددوئ نه نافرمان دي |

﴿كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ﴾ د اترغيب دې اشاعت دتوحيدته يعنې عمل ددعوت ته اومتعلق دې د ﴿وَلْتَكُنْ مِنْكُمْ أُمَّةٌ يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ﴾ سره اوخطاب پدې کښې صحابه کراموته دې اولاً او بياشامل دې أتباعو ددوئ ته دقيامت پورې لکه حضرت عمر رضي الله عنه فرمايلی دی : ((يا ايهاالناس من سره ان يکون من تلکم الامة فليؤدشرطه الله تعالی منها)) ، او دشرط نه مراد دادې چه ((تاءمرون بالمعروف وتنهون عن المنکر)) يا دا خطاب ابتداءً تمام امت ته دې اودا ددې امت دپاره لوئ اعزازاواکرام دې چه الله ﷻ ورسره مخاطبه کوی او دخيرامة لقب ورته ورکوی اوپه لفظ د ((کنتم)) کښې دمفسرينو درې اقوال دی : (١) (کان) ناقصه دې او ((خيرامة)) ئی خبر دې او (کان) ددوام دنسبت دپاره دې لکه ((وکان الله غفوراً رحيماً)). (٢) ((کان)) ناقصه دې اوپه خپله معنی د ماضی سره دې ((ای کنتم فی علم الله اوفی الکتب السابقة)) (٣) (کان) زائده دې ((ای انتم خيرامة)) دا قول دفراء دې، ابوالبقاء وائی چه دا قول باطل دې.

مولانا عثمانی رحمه الله ليکلی دی : (اس کی علم ازلی میں پہلے سے یہ ہی مقدر ہو چکا تھا)

او ((خير)) اسم تفضيل دې مضاف دې نکرې ته اوهغه په معنی دجمع سره دې يعنی ډير غوره دټولو امتونونه ((اُخرجت)) د اخراج نه مراد ظهوراو وجود دې ((ای اُظهِرَتْ اُوجِدَتْ)) او فاعل ئی لفظ د ((الله)) دې هغه ترك شويدې د وجهِ دعلم نه په هغه باندې. اوپه لفظ د ((اخرجت)) کښې اشاره ده ديته چه ددعوت دپاره خروج پکار دې، او ((للناس)) متعلق دې يا د (خير) سره نو معنی ئی داده چه ((انفع الناس للناس)) يا د ((اُخرجت)) سره متعلق دې. اولام د انتفاع دپاره دې يعنې ستاسو پيداکول دنفعې دخلقو دپاره دی. اوپه ((للناس)) کښې اشاره

ده ديته چه دا امت دټول عالم دپاره دي نودا امت عالمي دي لکه قرآن «هدیً للناس» دي اوعالمي كتاب دي او دارنګه رسول «كافة للناس» دي عالمي رسول دي ،عالمي رسول ،عالمي كتاب عالمي امت.

مولانا شبير احمد رحمه الله ليکي چه : اے مسلمانو! خدا تعالیٰ نے تم کوتمام امتوں میں بهترین امت قرار دیاہے اس کے علم ازلی میں پہلے سے یہ ہی مقدر ہوچکاتھاجس کی خبربعض انبیاء سابقین کو بھی دے دی گئی تھی کہ جس طرح نبی آخرالزمان محمدرسول اللہ ﷺ تمام نبیوں سے افضل ہوں گے آپ کی امت بھی جملہ امم واقوام پرگوئے سبقت لی جائے گی کیونکہ اس کوسب سے اشرف واکرم پیغمبرنصیب ہوگا، اودم واکمل شریعت ملے گی علوم ومعارف کے دروازے اسپرکھول دئے جائیں گے ایمان وعمل وتقویٰ کی تمام شاخیں اس کی محنت اورقربانیون سے سرسبز وشاداب ہونگے وہ کسے خاص قوم ونسب یامخصوص ملک واقلیم میں محصورنہ ہوگی بلکہ اسکا دائرہ عمل ساری عالم کو اور انسانی زندگی کی تمام شعبوں کو محیط ہوگا گویا اس کا وجودہی اسلیے ہوگاکہ دوسروں کی خیرخواہی کرے اورجھاں تک ممکن ہوا انہیں جنت کی دروازوں پرلاکر کھڑاکردے (اخرجت للناس) مین اسے طرف اشارہ ہے ،آہ ــ

﴿تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ﴾ دا جمله مستأنفه ده او تعليل دي دماقبل دپاره ياصفت دي دامة دپاره خوپه معنى دشرط اوعلت سره دي، ابن كثير دحضرت قتادة نه نقل كريدى چه قتاده وائي چه حضرت عمر رضي الله عنه دحج په دوران كنبي دخلقو نه «دعة» يعني استراحت اوسستي وليدله نو دا آية ئي ولوستلو «كنتم خيرامة اخرجت للناس» بيائي وفرمايل ((من سرّه ان يكون من هذه الامة فليؤدشرط الله فيها)) يعني څوك چه دا غواړي چه ددې امت نه شي اوددې فضيلت مستحق شي نوهغه دې هغه شرط پوره كړي چه الله ﷻ شرط كړې دې چه تاءمرون بالمعروف وتنهون عن المنكر دي.

قرطبي وائي : ((مَدْحٌ لهذه الامة ماأقاموا ذالك ــ الخ)) يعني دا مدح ددې امت ده ترڅوچه دوئ قائم وي پدې عمل ((فاذاتركوالتغييروتواطئواعلى المنكر زال عنهم اسم المدح وَلحقهم اسم الذم وكان ذالك سبباً لهلاكهم)) يعني كله چه دا امت دا عمل پريږدي نو دمدح په ځائ به مستحق د ذم شي او دا به سبب دهلاكت ددوئ شي.

﴿وَتُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ﴾ مراد ايمان شرعي او ايمان كامل دي، دلته **سوال** وارديږي چه ايمان خو دهرڅه نه مخکښې دې نو دلته ئې ولې ورستوذکرکړو؟ : **جواب** دادې چه دلته ددې امت امتيازي شان ، تمغهٔ امتياز، بيانول مقصود دي چه هغه عمل دعوت الى الله دې لکه په بل آية کښې ئې ديته دحضورﷺ او د مؤمنانولار ويلې ده : «قل هذه سبيلي ادعوا الى الله على بصيرة انا ومن اتبعني» او ايمان خومشترك ؤو په مابين ددې امت اونوروامتونوکښې نو ددې وجه نه د دعوت الى الله ذکرمخکښې ؤشو ليکن هرکله چه هيڅ عمل به غير دايمان نه قبول نه ؤو نو ددې وجه نه ئې ورسره ذکر د ايمان ورستو وکړو، اوبل دا چه په تقديم ذکرى کښې په ايمان باندې اهتمام شان ددعوت الى الله ته اشاره ده، اوبله وجه داده چه دعوت الى الله ذريعه ده دپاره دايمان راؤړلواو دپاره دترقي په ايمان اوکيفياتو د ايمان کښې او دپاره دثبات اومحکم والي په ايمان باندې نو ددې وجې نه مقدم شو.

﴿وَلَوْ ءَامَنَ أَهْلُ ٱلْكِتَـٰبِ﴾ دا ترغيب دې اهل کتابوته دايمان، اومراد دايمان نه ايمان شرعي دې پشان ددې امت چه مقارن وي د امربالمعروف اونهي عن المنکرسره، يعنې که چرې دوئ داسې ايمان راوړې نودوئ به هم په خيرامة کښې داخل شي.

﴿لَكَانَ خَيْرًا لَّهُم﴾ دخيرنه خيرفي نفسه مراد دې اومعنى تفضيلي نده مراد ځکه چه مفضل عليه کفردې نوپه هغې کښې هيڅ خيرنشته دې نو دا معنى ئې نده چه دا به زيات غوره ؤو د کفرنه بلکه معنى ئې داده چه دا به ډيرغوره في نفسه ؤو دوئ دپاره اوکه معنى تفضيلي مراد شي نو بيا په مفضل عليه کښې چه کفردې خيرية په اعتبار د زعم ددوئ سره دې او دا تهکمًا ويلې شويدى، يا په اعتبار دمنافعؤ دنيويؤ سره دې لکه مشرى،دولت ،جاه اومال شو سره دهلاکت نه په آخرت کښې.

﴿مِّنْهُمُ ٱلْمُؤْمِنُونَ﴾ داجمله مستأنفه ده دپاره دبيان دحال د اهل کتابوچه پدوئ کښې بعضې هغه دي چه ايمان ئې راوړې دې لکه عبدالله بن سلام ﷺ اودهغه ورور په يهودوکښې اونجاشي اوعدي بن حاتم په عيسائيانوکښې، ليکن اکثريت ددوئ په کفرباندې کلك دي.

| لَن | يَضُرُّوكُمْ | إِلَّآ أَذًى ۖ | وَإِن | يُقَـٰتِلُوكُمْ | يُوَلُّوكُمُ |
|---|---|---|---|---|---|

هچرې دوئ تاسو تهٔ ضررنشي رسولې مګربده وينا دخولې، اوکچرې دوئ جنګ کوي تاسوسره نواوبهٔ ګرزوي

| الْاَدْبَارَ ثُمَّ لَا يُنْصَرُوْنَ ﴿۱۱۱﴾ |
| --- |
| تاسوته شاګاني، بيا دوئ څه مدد نشي کيدي |

﴿لَن يَضُرُّوكُمْ إِلَّا أَذًى﴾ دا ترغيب الى الجهاد دې او د «اذئ» نه مراد لسانى بد او رد ويل دى.

﴿وَإِن يُقَٰتِلُوكُمْ﴾ يعنې اول خو دوئ ستاسو مقابلې ته د راتلو جرأت کولې نشى اوکه چرې راشى ((يُوَلُّوكُمُ الْاَدْبَارَ)) نو بيا به شکست خورلى پشى شا روان وى.

﴿ثُمَّ لَا يُنصَرُونَ﴾ «ثم» دتعقيب ذکرى دپاره دې او دا مشروط ندې په «وان يقاتلوکم» سره يعنې دوئ ته به چرته غلبه اونصرت نصيب نه شى نه په قتال کښې اونه په بل وقت کښې.

| ضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ اَيْنَ مَا ثُقِفُوْٓا اِلَّا بِحَبْلٍ |
| --- |
| وهلې شوېدې پدوئ باندې مهر دذلت هرځائې چې دوئ اوموندلې شي، مګر داچې دوئ منګولې اولګوي په رسئ |
| مِّنَ اللّٰهِ وَحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ وَبَآءُوْ بِغَضَبٍ مِّنَ اللّٰهِ وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الْمَسْكَنَةُ ؕ |
| دالله اوپه رسئ دخلقو اواخته شوي دي دوئ په غضب دطرفه دالله نه، اومهرلګولې شوې دې پدوئ باندې دخوارئ |
| ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَيَقْتُلُوْنَ الْاَنْۢبِيَآءَ بِغَيْرِ حَقٍّ ؕ ذٰلِكَ |
| داپه سبب ددې سره چې بېشکه وو دوئ کفرنې کولو په آياتونو دالله اوقتلول ئې پيغمبران په ناحقه، دا په سبب ددې |
| بِمَا عَصَوْا وَّ كَانُوْا يَعْتَدُوْنَ ﴿۱۱۲﴾ |
| چې دوئ نافرمانئ کوله او وو دوئ دحدنه ئې تجاوز کولو |

﴿ضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ﴾ يعنې په يهوديانو خوارى ،ذلت مسلط کړې شويدې اوپه هرځائ کښې ددوئ جان اومال بې قدره اوغيرمحفوظ دې سوئ ددوو صورتونونه : **اول** داچه ﴿إِلَّا بِحَبْلٍ مِّنَ اللَّهِ﴾ چه داسلامى حکومت ماتحت وى اوجزيه ورکوى ، **اودويم** داچه ﴿وَحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ﴾ د يو بل قوم معاهدشى او دهغوئ نصرت حاصل کړى او ددې دؤو صورتونونه علاوه دوئ ته هيڅ چين اوسکون نه نصيب کيږى، په موجوده دورکښې داسرائيلو حکومت د ﴿وَحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ﴾ مصداق دې چه دامريکې په تعاون اونصرت اومعاهدې سره قائم دې بلکه حقيقت دادې چه د اسرائيلو دحکومت وجود دمغرب دسياست دانانو ذاتى مفاد نتيجه ده بل هيڅ ندى. او د ﴿الْمَسْكَنَةُ﴾ نه طبعى مسکنت اوفقر مراد دې نو دوئ اګرکه مالدار وى

خو خپله مالداری نه ښکاره کوی دوجهِ دبخل اوحرص ددنیانه، دغه شان آیت په سورت بقره کښې هم تیرشوې دې.

| |
|---|
| لَيۡسُوا۟ سَوَآءً ۗ مِّنۡ أَهۡلِ ٱلۡكِتَٰبِ أُمَّةٌ قَآئِمَةٌ يَتۡلُونَ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ ءَانَآءَ ٱلَّيۡلِ |
| ندي دوئ ټول يو شان[1] بعضي داهل کتابو نه يوډله ده کلکه په دين باندې، لولي دوئ آياتونه د الله په اوقاتودشپه کښي |
| وَهُمۡ يَسۡجُدُونَ ۝ يُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِ وَيَأۡمُرُونَ بِٱلۡمَعۡرُوفِ وَيَنۡهَوۡنَ عَنِ ٱلۡمُنكَرِ |
| اودوئ سجدې کوي . او ايمان راوړي دوئ په الله اوپه ورځ دآخرت اوامر کوي په نېکئ سره او منع کوي دبدئ نه |
| وَيُسَٰرِعُونَ فِى ٱلۡخَيۡرَٰتِ ۖ وَأُو۟لَٰٓئِكَ مِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ۝ وَمَا يَفۡعَلُوا۟ مِنۡ خَيۡرٍ |
| اوجلتی کوي په نېک کارونو کښې ، اودغه کسان دنېکانو نه دي اوهغه څه چې کوي دوئ څه نېکي |
| فَلَن يُكۡفَرُوهُ ۗ وَٱللَّهُ عَلِيمٌۢ بِٱلۡمُتَّقِينَ ۝ |
| نوهرګزبه محروم نشي دثواب دهغې نه، اوالله ښه علم لري په متقيانوباندې |

﴿لَيۡسُوا۟ سَوَآءً﴾ یعنی اهل کتاب ټول په قبائحو کښې برابرندی بلکه ښه صفاتو والاپه دوئ کښې هم شته دې چه دهغې بیان دادې:

﴿مِّنۡ أَهۡلِ ٱلۡكِتَٰبِ أُمَّةٌ قَآئِمَةٌ﴾ دقائمة معنی مستقیمة ده یعنی په دین باندې کلك ولاړ، او یا یې معنی داده چه په ولاړ وی مونځ کوونکی.

﴿ءَانَآءَ ٱلَّيۡلِ﴾ د دې نه د تهجد مونځ مراد دې.

﴿وَهُمۡ يَسۡجُدُونَ﴾ دا حال دې دضمیر د «یتلون» نه او «یسجدون» په معنی د «یصلون» سره دې اوسجده په خپلې معنی سره مرادنه ده ځکه چه دسجدې په حالت کښې تلاوت مشروع ندې، اومراد د «صلوة اناء الیل» نه دتهجدو مونځ دې یا دعشاء مونځ دې او تخصیص د «اناء اللیل» وشو اګرکه دوئ د ورځې هم مونځ کوی ځکه مونځ دشپې یعنی تهجد ډیر فضیلت لری او دا علامه دصلحاؤ ده.

﴿يُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ﴾ دا دمؤمنینو اهل کتابومزید مدح اوتعریف دې چه دوئ په الله ﷻ اوپه ورځ دآخرت باندې ټهیك ټهیك دشریعت مصطفویه مطابق ایمان راوړی او دخپلوغلطو

[1] - بشارت دپاره دمومنانو داهل کتابو.

عقائيدو لکه ابنيت دعيسى ﷺ اوعزير ﷺ نه تائب دى او دارنګه دآخرت دغلط تصوراوعقيدې نه دستبردار دى چه دوئ دشفاعت قهرى قائل ؤو، ((وَيَأْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوفِ)) او بيا دا هم نه ده چه دوئ صرف پخپله ايمان راوړې دې اوعمل صالح کوى بلکه نوروخلقوته هم دايمان اودعمل صالح دعوت ورکوى او((وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ)) دکفر اومنکراتو نه ئى منع کوى.

﴿وَيُسَارِعُونَ﴾ ديوبل نه په نيکى اواطاعت کښى مخکښې کيږى، دمسارعت اوعجلت په مينځ کښې فرق دادې چه مسارعت ديته وائى چه اهم شې مقدم کړې شى په غيراهم باندې اوعجلت ددې په عکس دې نوددې وجه نه مسارعت صفت محمود دې اوعجلت مذموم دې.

﴿وَأُولَٰئِكَ مِنَ الصَّالِحِينَ﴾ يعنې موصوفين پدغه صفاتوسره د اعلى صالحينونه دى او پدې کښې رد دې دقول ديهودو چه ((ما آمن به الا شرارنا)) دې.

﴿وَمَا يَفْعَلُوا مِنْ خَيْرٍ فَلَن يُكْفَرُوهُ﴾ دخيرنه تمام نيك اعمال مراددى اوخصوصاً مال خرچ کول دالله ﷻ د رضا دپاره او ((يکفروه)) دکفران نه مأخوذ دې، دثواب نه محروم کيدلو په معنى سره دې، مخکښې آيت کښې د اهل کتابو مدح بيان شوه په ايمان صحيح او اعمالو صالحؤ سره اودلته ددې خبرې ذکردې چه د ايمان نه بعد به دوئ داعمال صالحه د اجر نه محروم کولې نشى او د سابقه کفر اوبد اعمال به په دوئ اثراندازنه وى.

﴿وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالْمُتَّقِينَ﴾ دمتقينو نه مراد ياعام دى اومذکور اهل کتاب پکښې داخل دى، يا ترينه مراد دغه مذکوراهل کتاب دى نو دا وضع داسم ظاهرده په ځائ دضمير،نوپدې کښې دعلت بيان دې چه دغه مذکورمقام دتقرب دوئ ته په تقوىٰ سره حاصل شويدې.

| إِنَّ الَّذِينَ | كَفَرُوا | لَنْ تُغْنِيَ | عَنْهُمْ | أَمْوَالُهُمْ | وَ لَآ أَوْلَادُهُمْ |
|---|---|---|---|---|---|
| بېشکه هغه کسان[1] | چې کفرئې کړېدې | هرګزبهٔ دفع نه کړي | ددوئ نهٔ | مالونه ددوئ | اونه اولاد ددوئ |

| مِّنَ اللَّهِ شَيْئًا ۖ وَ أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ۝ مَثَلُ مَا يُنْفِقُونَ |
|---|
| دعذاب دالله نهٔ هيڅ څيز. اودغه کسان اور والا دي، دوئ بهٔ پهٔ هغې کښې همېشه وي. مثال دهغه څيزچې خرچ کوي دوئ |

---
١ - تخويف اخروي دپاره د مشرکينو اهل کتابو.

| فِيْ هٰذِهِ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا كَمَثَلِ رِيْحٍ فِيْهَا صِرٌّ اَصَابَتْ حَرْثَ قَوْمٍ |
|---|
| پدې ژوندددنیا کښې پشان دحال دسیلۍ دې چې په هغې کښې یخه ګلۍ وې چې اورسیږي فصل دیوداسې قوم ته |
| ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَاَهْلَكَتْهُ ۭ وَمَا ظَلَمَهُمُ اللّٰهُ وَلٰكِنْ |
| چې ظلم ئې کړې وې په خانونوخپلو نوهلاک کړې هغې فصل لره، اوظلم نه دې کړې په دوئ باندې الله لیکن دوئ |
| اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ۝ |
| پخپلو خانونو باندې ظلم کولو |

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟﴾ دا تخویف اخروی دې کفارو داهل کتابوته خواه که عوام وی پدوئ کښې یاخواص «احبار او رهبان» وی.

﴿لَن تُغۡنِيَ﴾ اغناء دفع دضررته وائی اواستعمال ئی په هغه شئ کښې کیږی که چرې ‌نه وی نو ضرر واقع کیږی. او دارنګه اغناء په معنی د«اجزاء» اونفع رسولوسره راځی، کفاروفخرکولوپه مالونواولادونوسره لکه ویل به یی چه : ((نحن اکثراموالاً واولاداً ومانحن بمعذبین)) نو دلته ددې نفی وشوه، یا د اموالونه هغه اموال مراد دی چه دوئ خرچ کول. اتباعو او مریدانو به خپلوپیرانوته مالونه نذرانې ددې دپاره ورکولې چه دوئ به مونږ دقیامت په ورځ دعذاب نه بچ کوی، او دارنګه پیران اوسجاده نشین د اولیاؤ دمزاراتو دجوړولو دپاره اومزاراتو ته راتلونکو دپاره لنګرخانې وغیره جوړولودپاره خرچونه کوی، اوتوقع لری چه پدې سره به مونږ دعذاب الهی نه بچ شو او درجات عالیه به راته حاصل شی، نو پدې آیت کښې ددې رد دې، یعنې مال خرچ کول اونوراعمال صالحه په آخرت کښې مفیداونافع کیدل په ایمان خالص اوتوحیدباندې موقوف دی، او دوئ په کفراوشرک کښې ډوب دی نو دوئ ته انفاق یعنې مال خرچ کول، خیراتونه، صدقې کول نفع نه ورکوی، بلکه دوئ اصحاب النار یعنی ملازم د نار سره دی، او په نارکښې به همیشه وی.

﴿مَثَلُ مَا يُنفِقُونَ﴾ ددنیوی مفاداتو دپاره خرچ کول مراد دی، یا هغه صدقات چه سره دشرك اوکفرنه وی. پدې آیت کښې جواب دسوال مقدردې اوهغه دا چه په انفاق سره خو عذاب الهی دفع کیږی، نو دوئ ته ولې نفع نه رسوی اوعذاب ترینه ولی نه دفع کوی. **جواب** دادې چه ددوئ انفاق او دارنګه نور اعمال صالحه دشرك او د کفر په وجه سره بربادشوی دی او ددې مثال دادې چه دکافرانو، ظالمانو سرسبز اوشاداب فصل اوباغ وی. دیته سخته

يخني، ګلئ ،واوره، ورسی اوهلاك اوبربادشي اوغلې ميوې ترينه پيدا نه شي نو دغه شان ددوئ په نفقاتو اونوړواعمالو باندې دكفراو دشرك مهلك باد الوتې دې نو برباد شويدی او ((صِرٌّ)) په معنی د «بردٌ شديدٌ» سره منقول دې دحضرت ابن عباس ﷺ نه .

﴿حَرْثَ قَوْمٍ ظَلَمُوٓا﴾ «ظلموا» نه مراد كفرو دې او تشبيه ئې دكفارو دفصل سره څكه وركړه چه دمؤمن فصل چه هلاك شي يا بل څه نقصان ئې په دنياكښې وشي اودې په هغې صبر وكړي نوپه آخرت كښې ورته اجر وركولې شي اوپه دنياكښې ورته هم كله بدله وركولې شي، نودا دمؤمن دپاره ابتلاء وی او دكفارو دپاره عذاب وی، نو هغو ته هيڅ اجر او بدله نه ملاويږی، نوضائع اوبرباد شي اومؤمن ته اجر او بدله ملاويږی نو دهغه فصل اومال وغيره نه بربادېږي.

﴿وَمَا ظَلَمَهُمُ اللّٰهُ﴾ يعني ددوئ صدقات اونفقات مردودكيدل ددوئ دخپل ظلم كفراو شرك نتيجه ده اوالله ﷻ پدوئ ظلم ندې كړې چه په غير دجرم نه ئې ورله عملونه مردود كړيدی .

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| يٰٓاَيُّهَا | الَّذِيْنَ | اٰمَنُوْا | لَا تَتَّخِذُوْا | بِطَانَةً | مِّنْ | دُوْنِكُمْ لَا يَأْلُوْنَكُمْ |
| اې ايمان والو ! مه نيسئ دوست رازدار هيڅوك ماسوادستاسوايمان والونه، هغوئ كمې نۀ كوي ستاسو | | | | | | |
| خَبَالًا ۭ | وَدُّوْا | مَا | عَنِتُّمْ ۚ | قَدْ بَدَتِ | الْبَغْضَاۗءُ | مِنْ اَفْوَاهِهِمْ ښ |
| پۀ نقصان كښې، خوښوي هغه څۀ چې تاسوله تكليف دركوي، پۀ تحقيق سره ښكاره شوېده كينه دخلودهغوئ نۀ | | | | | | |
| وَ مَا | تُخْفِيْ | صُدُوْرُھُمْ | اَكْبَرُ ۭ | قَدْ | بَيَّنَّا | لَكُمُ الْاٰيٰتِ |
| اوهغه چې پټ ساتې سينې دهغوئ ډېرزيات دي، پۀ تحقيق سره بيان كړېدي مونږ تاسوتۀ نښې «ددښمنئ دهغوئ» | | | | | | |
| اِنْ كُنْتُمْ | تَعْقِلُوْنَ ۝ | ھٰٓاَنْتُمْ | اُولَاۗءِ | تُحِبُّوْنَھُمْ | وَلَا يُحِبُّوْنَكُمْ | |
| كه يئ تاسوعقل لرئ . خبردار تاسواې مومنانو مينه(خيرخواهي) كوئ ددوئ سره اودوئ مينه نكوي تاسوسره | | | | | | |
| وَتُؤْمِنُوْنَ | بِالْكِتٰبِ | كُلِّهٖ ۚ | وَاِذَا | لَقُوْكُمْ | قَالُوْٓا | اٰمَنَّا ڗ |
| اوايمان لرئ تاسوپۀ كتابونوټولوباندې، اوهركله چې دوئ تاسوسره مخامخ شي دوئ وائ مونږ ايمان راوړې دې | | | | | | |
| وَاِذَا | خَلَوْا | عَضُّوْا | عَلَيْكُمُ | الْاَنَامِلَ | | |
| اوهركله چې دوئ يوازې شي چكونۀ لګوي ستاسود ترقئ پۀ وجه پۀ سرونودګوتوخپلوباندې | | | | | | |

| مِنَ | الْغَيْظِ ط | قُلْ | مُوْتُوْا | بِغَيْظِكُمْ ط | اِنَّ اللّٰهَ | عَلِيْمٌۢ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| دوجې د ډېرې غصې نه تاسوته، ته اووايه چې مړه شئ په غصه خپلې سره، بېشکه الله خبردې په هغه خبرو | | | | | | |
| بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ۞ | اِنْ تَمْسَسْكُمْ | حَسَنَةٌ | تَسُؤْهُمْ | وَ اِنْ تُصِبْكُمْ | سَيِّئَةٌ | |
| چې په سینو کښې دې . کچرې اورسیږی تاسوته ښه حالت خفه کوي دوئ لره، اوکچرې اورسیږي تاسوته بدحالت | | | | | | |
| يَّفْرَحُوْا | بِهَا ط وَاِنْ تَصْبِرُوْا | وَتَتَّقُوْا | لَا يَضُرُّكُمْ | كَيْدُهُمْ | | |
| خوشحالی کوي په هغې سره، اوکچرې صبراوکړو تاسو[۱] اوتقوی مواوکړه ضرربه درنکړي تاسو مکرونه ددوئ | | | | | | |
| شَيْـًٔا ط | اِنَّ اللّٰهَ | بِمَا | يَعْمَلُوْنَ | مُحِيْطٌ ۞ | | |
| هیڅ ضرر، بېشکه الله په هغه عملونو چې دوئ ئې کوي احاطه کوونکې دې | | | | | | |

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا﴾ دا زجر دې مؤمنانوته او دا د ماقبل نه ترقی ده چه امربالمعروف اونهی عن المنکر کوئ او دغیرمسلمینوسره پوشیده اوپخه دوستی مه ساتئ او هغوئ په خپلو خاصو امورو کښې مه شریکوئ ((بِطَانَةً)) رازدار دوست ته وائی یعنې داسې دوست چه دهغه په مخکښې سرې هرقسم ذاتی راز بیانولې شی، داسلام نه مخکښې د انصارو دبعضې قبیلو سره دیهودیانو دوستی اوتعلقات ؤو اوهرکله چه نبی ﷺ مدینی ته هجرت وکړو او مدینه داسلام مرکز شو او د مسلمانانو ترقی شروع شوه نویهودیانو حسد شروع کړو او د دوستی اوتعلقاتو نه ئی غلطې فائدې اخستل شروع کړل، نو په ظاهرکښې ئی دمسلمانانو سره لویه دوستی ساتله اوپټ په زړه کښې یی ورسره سخته دشمنی اوعداوت ساتلو ، او دمسلمانانو پټ پټ رازونه به ئی معلومول اوکفاروته به ئی رسول اوپه هره طریقه سره به ئی دنقصان درسولو کوشش کولو، پدې باره کښې دا **آیاتونه نازل شول**.

﴿لَا يَأْلُوْنَكُمْ خَبَالًا﴾ دا وجوه ذکرکیږی دماقبل حکم دپاره «لایاء لون» د «اُلو» نه مأخوذ دې «اُلو» تقصیر اوکوتاهی ته وائی او «خبال» فساد او شرارت ته وائی اوکله فساد العقل اوجنون ته هم ویلې شی «لایألون» فعل لازمی دې او «کم» او «خبالاً» منصوب دی په نزع دخافض سره «ای لکم فی الخبال» یعنې دوئ تقصیراوکمی نکوی ستاسې په فساد او شرارت کښې، اوکله دا فعل متضمن شی معنی دمنع لره نو متعدی کیږی مفعولینو ته لکه

---

۱ - په جهاد کښې دکامیابۍ د دوو شرطونو بیان.

مَنَعَ چه کله کله دوه مفعولو ته متعدی کیږی لکه ((منعه حقه)) ((ای لایمنعونکم فساداً)) دوئ نه منع کوی ستاسې نه خپل فساد او شرارت .

﴿وَدُّوا مَا عَنِتُّمْ﴾ دا دویمه وجه ده اوما مصدر یه ده یا موصوله ده یعنی خوښوی اوغواړی ستاسې تکلیف یاهغه شې چه تاسو ته تکلیف رسوی.

﴿قَدْ بَدَتِ الْبَغْضَاءُ﴾ یعنې دوئ خو دخپل بغض اوعداوت پټ ساتلو کوشش کوی خو کله بې اختیاره ددوئ دخولو نه د بُغض خبرې راوځی ﴿وَمَا تُخْفِي صُدُورُهُمْ أَكْبَرُ﴾ او په زړونوکښې چه کوم بغض اوحسد ساتی نوهغه ډیر زیات دې﴿لَكُمُ الْآيَاتِ ﴾ مراد ددینه دلیلونه اوعلامات ددشمنی دهغوئ دی

﴿هَا أَنتُمْ أُولَاءِ تُحِبُّونَهُمْ﴾ دا بله وجه ده دپاره دحکم سابق یعنې تاسو خو ددوئ سره محبت کوئ اود دوئ خیر خواهی کوئ لیکن دوئ ستاسو سره قلبی محبت نه کوی اوستاسو خیر خواهی نه کوی، اوپه دې جمله کښې دترکیب په لحاظ سره ډیر احتمالات دي : (١) ((هٰا)) دتنبیه دپاره ده ((انتم)) مبتداده او ((تحبونهم)) یې خبردې او ((اولاء)) منادیٰ ده په حذف دحرف نداء سره ((ای یاهٰؤلاء))، (٢) ((ها انتم)) مبتداء ((اولاء)) خبردې ، یعنې خبردار تاسو دغه ئی اوددینه مقصود تعریف د حال د مخاطب، مخاطب ته ندې ځکه چه په دې کښې څه فائده نشته دې، بلکه مقصود ددې نه استغراب دمضمون د وقوع دفعل دې دمخاطب نه اوددې وجه نه داسې جملې نه ورستو بله داسې جمله راتلل ضروری دی چه هغه بیان دحال مستغربه وکړی لکه پدې مقام کښې د ﴿هَا أَنتُمْ أُولَاءِ﴾ جملې بیان دادې : ﴿تُحِبُّونَهُمْ وَلَا يُحِبُّونَكُمْ ﴾ نو دا جمله مبیّنه ده دماقبل دپاره . (٣) ((هٰانتم)) مبتداء اوّله ده ((اولاء)) مبتداء ثانی ده ((تحبونهم)) خبر دمبتداء ثانی دې او داجمله خبر دمبتداء اولې دې، ددې نه علاوه نور تراکیب هم دی.

﴿وَتُؤْمِنُونَ بِالْكِتَابِ كُلِّهِ﴾ دا عطف دې په تحبونهم باندې اومقابل ئی چه ((وهم لایؤمنون)) دې هغه مقدردې په قرینه دمعطوف علیه سره، اومراد دکتاب نه جنس دې چه شامل دې ټولو کتابونو لره، یعنې تاسو ددوئ سره محبت ساتئ اوپه ټولو کتابونو چه تورات . انجیل. زبور. قرآن دی ایمان لرئ او دوئ ستاسوسره محبت نه ساتی اوستاسو په کتاب باندې دضد دوجه نه ایمان نه راوړی یامراد دادې چه دوئ په هیڅ کتاب ایمان نه لری ځکه چه ددوئ ایمان په خپل کتاب باندې په منزله د نه ایمان دې.

﴿وَإِذَا لَقُوكُمْ﴾ دا بله وجه ده دپاره دحکم سابق يعنې هرکله چه دوئ ستاسو سره ملاؤشي نو ﴿ءَامَنَّا﴾ وائی نفاقاً اوچه کله ديوبل سره يوځائ شي نو بيا دا کارکوی چه ﴿عَضُّوا﴾ يعنې چکونه لګوی په سرونودګوتوخپلو ﴿عَلَيْكُم﴾ «ای لاجلکم» دوجه ستاسې نه يعنې ستاسې دترقئ اوخوشحالئ په وجه ﴿مِنَ ٱلْغَيْظِ﴾ دوجه دغصې نه. «عضُ الانامل» ديته وائی چه چاته ئی دحسد دوجه نه ډيره غصه وی اودغصې په نافذکولوقادرنه وی نو دغصې دوجه نه اول په خوله کښې ګوتې کيدی بياچه ئی غصه ډيره شي په هغې باندې غاښونه کلك کړی نو په ځان باندې چك لګوی، دا عادت دهغه حاسد دې چه عاجزوی دضرر رسولونه، نودلته مقصود اشاره کول دی حال ددوئ ته اودا مقصود نه دی چه بالفعل عض الانامل دې، ځکه دا ضروری نده ﴿قُلْ﴾ ووايه په ژبه سره يا په زړه کښې : ﴿ مُوتُوا۟ بِغَيْظِكُمْ ﴾ دا بد دعاء ده، يعنې ستاسو غيظ اوغصه دې هميشه وی په سبب دترقی اودقوة داسلام سره، يا اخباردې ددينه چه دوئ نشی موندلې مراد خپل بلکه اسلام به په قوة اوترقی کښې وی اودوئ به مړه شي.

﴿إِن تَمْسَسْكُمْ حَسَنَةٌ﴾ دا بله وجه ده يعنې ددوئ دضداوحسد دا حال دې چه کله تاسوته خوشحالی فتح ،غنيمت ، حاصل شي نودوئ پرې خفه شي اوکه چرې تاسوته څه مصيبت اوتکليف ورسيږی نو دوئ خوشحاله شي.

﴿وَإِن تَصْبِرُوا۟ وَتَتَّقُوا۟﴾ په جهادکښې دکاميابئ او ددُشمنانو دمکراوضررنه په امن کيدلو دپاره ددؤو شرطونو بيان دې چه يوصبر دې اوبل تقوىٰ ده.

حضرت الشيخ ﷺ فرمائی چه داد نهايت اختصارسره ددؤو زرينواصولوبيان دې يو صبر واستقلال، او دويم تقوی اوخوف خدا اودا دوه صفتونه چه په مؤمنانوکښې راشی نو دالله تعالی معيت اونصرت ورسره شي .

| وَ إِذْ غَدَوْتَ مِنْ اَهْلِكَ تُبَوِّئُ الْمُؤْمِنِيْنَ مَقَاعِدَ لِلْقِتَالِ ۗ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ |
|---|
| اوکوم وخت چې سحر وخت اووتلې ته دکورخپل نه کينول دې [1] مومنان دجنګ په ځايونو(مورچوباندې، اوالله هرڅه آوري |
| عَلِيْمٌ ۝ اِذْ هَمَّتْ طَّآئِفَتٰنِ مِنْكُمْ اَنْ تَفْشَلَا ۙ وَاللّٰهُ وَلِيُّهُمَا ۗ |
| عليم دې په هرڅه . کله چې قصداوکړو دوؤ ډلو ستاسونه چې کمزوري بزدلي ښکاره کړي، اوالله مددګار ددوئ دوؤ |

۱ - دويمه ترجمه : تيارول تا مؤمنانو لره، يا خودل تا مؤمنانو ته .

وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿١٢٢﴾

اوخاص په الله باندې دې توکوي مومنان

﴿وَإِذْ غَدَوْتَ مِنْ أَهْلِكَ﴾ پدې آیت کښې دجنګ اُحد واقعې ته اشاره ده او دمخکنو دوو شرطونو او اصولونمونه ده چه په جنګ احد کښې ستاسو دبعضې ملګرونه په صبرکښې کوتاهي وشوه. او دحضورﷺ دحکم خلاف ورزی د اجتهادی غلطی په وجه سره وشوه نوددې وجه نه فتح په شکست سره بدله شوه، او دارنګه پدې کښې جواب وشو اجمالاً دَ دریم سوال نه په رسالت باندې لکه مخکښې تیرشو او تفصیلي جواب ورستورازی. د ﴿غَدَوْتَ﴾ معنی ده په وخت دسحر کښې وتل. ﴿مِنْ أَهْلِكَ﴾ دلته ذکر د «اهلك» وشوپه دې سره اشاره ده دیته چه داهل اوعیال محبت او تعلق، مانع دجهاد نه او دتعمیل حکم دپاره نه ؤو. ﴿تُبَوِّئُ الْمُؤْمِنِينَ مَقَاعِدَ لِلْقِتَالِ﴾ یعني مؤمنان دې په مناسبو مقاماتو دقتال دپاره (مورچو) باندې کینول، اوتعینات دې کول.

## دجنګ احدمختصره قصه

رمضان مبارك . سنه ۲ هـ جنګ بد رؤشوچه په هغې کښې مشرکینو دمکې ته انتهائی ذلت اورسوا کن شکست ملاؤشو اویا۷۰ سرداران ئی قتل شو، اویا۷۰ قید شو چه داپه کفارو باندې دعذاب اول ضرب ؤو چه پدې سره دکفر ملا ماته شوه ددې وجه نه دټولو کفارِ قریشو د انتقام ډیره جذبه وه اوخصوصاً دهغه کسانو چه اقارب ئی په بدرکښې قتل شوی ؤو نو دوئ مشوره وکړه چه هغه مال چه تجارتی قافلې دشام نه د ابوسفیان په سرکردګئ کښې راوړې ؤو 'وپه مکه کښې په دارالندوه کښې محفوظ ؤو دهغې اصل رأس المال دې مالکانوته ورکړې شی اوددې منافع چه مقدارئی پنځوس زره «۵۰۰۰۰» دینارد‌ی نوپه هغې باندې دې جنګی سامان واخستې شی او دمسلمانانوسره دې قتال وکړې شی او دمقتولینو دبدر بدله دې واخستې شی، نو پدې خبره باندې ټول متفق شو اوپه سنه ۳ هـ کښې ئی لښکر تیارکړو چه تعداد ئی درې زره «۳۰۰۰» کسان وو، او اوه سوه «۷۰۰» زغرې وې او دوه سوه «۲۰۰» جنګی آسونه وو. اوټولوسره اسلحه وه او زنانه هم ورسره وې چه هغوئ دمقتولینو مرثیې ویلې او نارینؤ ته ئی دجوش راوستلو دپاره اشعارویل:

إن تَقبلُوا نُعانق          ونَفرِش النمارق

او تَدبَرُوا نُفارق          فراق وَامِـق

يعني که تاسو مقابلې ته کلك شئ اوفتح حاصله کړئ نوموږ به ستاسو سره معانقې وکړو «غاړه به درکړو» او که تاسو پشی شاه روان شوئ او مقابله مو ونکړه نو موږ به تاسو نه جدا شوپه بالکل جدا کیدو سره.

نو دامسلح فوج اُحدته راؤرسید نو نبی ﷺ دصحابؤ نه مشوره واخسته اودحضور ﷺ خپله رأیه داوه چه دمدینی نه باهرنه ځو او په مدینه کښې اوسیږو او ددشمن مقابله کؤو اودا آسانه ده اوپدې موقعه باندې درئیس المنافقین عبدالله بن اُبی بن سلول نه ئی هم دا مشوره واخسته چه دې پخوانې تجربه کارؤو اوپه ظاهرکښې دمسلمانانو سره شامل ؤو نو دده هم دا مشوره وه چه دمدینی نه باهرنه ځو. ځکه چه زموږ دا تجربه شوې ده چه کله موږ دمدینی نه باهر شوی نه یو نو موږ فتح موندلې ده اوچه دمدینی نه وتلی یو نوموږ شکست موندلې دې لیکن د اکثرو صحابؤ اوخصوصاً دهغه حضراتوچه په جنگ بدر کښې نه ؤو شریك شوی، نو ددوئ رأیه داوه چه ددشمن دمقابلې دپاره باهروتل مناسب دی دپاره ددې چه دشمن په موږ باندې دکمزورئ اوبزدلئ گمان ونه کړی اوپدې باندې یی اصرار کولو نونبی ﷺ هم ددې عزم وکړو.

دا دجمعې ورځ وه دجمعې دمونځ نه چه فارغ شو نووعظ ئی وکړو او دجهاد او دقتال ترغیب ئی ورکړو او دتیارئ حکم ئی وکړو اوپخپله ئی کورته تشریف یوړه بعد دنماز دعصرنه، اوتیارې ئی وکړو اومسلح شو. نوسعیدبن معاذ رضی الله عنه او اسیدبن حضیر رضی الله عنه خلقوته وویل چه تاسونبی ﷺ دمدینې نه باهرته په وتلومجبورکړو خو دا مناسب نه دی. نواصحاب پدې خپله مشوره باندې نادِم شو نوچه نبی ﷺ دکورنه باهرتشریف راوړلو نوصحابؤ عرض وکړو یارسول الله ! زموږ نه غلطی وشوه اوتاسوپه خپله رأیه باندې عمل وکړئ.

نونبی ﷺ اوفرمایل چه داسې نشی کیدې چه نبی دالله په لارکښې دجهاد دپاره هتیار او اسلحه واخلی «مسلح» شی او بیادې دشمن سره دفیصلې اوجنگ کولونه په غیر اسلحه کیدی، غرض دا چه نبی ﷺ په ورځ دجمعې ۱۱ شوال سنه ۳ هـ کښې د یو زر «۱۰۰۰» لښکر سره روان شواوکله چه اُحد ته قریب مقام «شوط» ته ورسیده نو رئیس المنافقین عبدالله بن اُبیٔ د درې سوه «۳۰۰» کسانو سره واپس شو، لکه چه ددې ذکر پدې ورسته آیت کښې دې.

﴿إِذْ هَمَّت طَّآئِفَتَانِ﴾ اوبیا چه نبی ﷺ مقام شیخین ته ورسیدونوکم عمربچی ئی واپس

کړل او بیائی د شپې په آخری حصه کښې سفر وکړو چه اُحد ته ورسید نو د سحر مونځ ئې وکړو او بیائی د قتال تیارې وکړو او صف بندی ئې وکړه او تعینات ئې وکړل، او پنځوس «۵۰» کسان ئې د عبدالله بن جبیر ﷺ په امارت کښې د جبل اُحد نه ورستو د یوې غونډئ په سر هغه ځائې کښې په مورچه کښې کینول چه د هغې طرف نه د مشرکینو د راتلو خطره وه او دا حکم ئې ورته وکړو چه تاسو ددې ځائې نه مه لرې کیږئ، مونږ غالب شو او که مغلوب شو خو تاسو په خپل ځائې باندې قائم او سیږئ، او نبی ﷺ صف بندی وکړه او جنډه ئې مصعب بن عمیر ﷺ ته ورکړه او خپله توره ئې حضرت ابو دجانه ﷺ ته ورکړه، او چه جنګ شروع شونو په اول کښې فتح وشوه او د کفارونه «۲۲» کسان مړه شول او باقی په تیښته روان شو، د حضرت براء ﷺ نه په روایت کښې دی چه ((فلمالقیناهم هربواحق رءیتُ النسآء یشدُدْن فی الجبل رفعن عن سوقهنّ قدبدت خلا خلهن)) یعنی کفار په مندو روان شو حتی چه هغه ښځې چه ددې د پاره راغلې وې چه سندرې وه وائی او که څوك د جنګ نه تښتی چه هغه ته پیغوروركړی نودوئ نه هرڅه هیرشو او په غرکښې ئې په بره منډې وهلې او پینڅې ئې اوچتې کړې وې او پانزیبونه ئې ښکاریدل، نو بیا هغه کسان چه د عبدالله بن جبیر ﷺ په امارت کښې په مورچه کښې ناست ؤو نو هغوئ چه دا حالت ولیده نووې ویل چه مونږهم میدان جنګ ته ځوچه د کفارونه مال غنیمت واخلو نو امیر منع کړل، لیکن هغوئ وویل چه جنګ ختم شویدې او دلته کیناستل بی فائدې دی.

او نبی ﷺ چه مونږ منع کړی ؤو نو د جنګ پورې ئې منع کړې وؤ، نو امیر د لس کسانو سره په مورچه کښې پاتې شو او باقی کسان راکوز شول، نو د شا د طرفه خالد بن ولید چه په دغه وخت کښې مشرف په ایمان سره نه ؤو او د کفارو جرنیل ؤو، راغې د خپل «۲۵۰» فوجی دستې سره او دا لس کسان ئې شهیدان کړل او د مشرکانو د حملې په وجه د مسلمانانو صفونه درهم برهم شول، او بد حواس شول حتی چه په یو بل ئې تورې چلول شروع کړل. او د حذیفه ﷺ پلار حضرت یمان ﷺ د مسلمانانو دلاسه شهید شو او کفار او مشرکین نبی ﷺ ته نزدې شول او مصعب بن عمیر ﷺ ډیره سخته مقابله وکړه آخر شهید شو چونکه دده صورت د نبی ﷺ د صورت مبارك سره مشابه ؤو نو عبدالله بن قیمه بدبخت ، چه دې ئې شهید کړې ؤو اعلان ئې وکړو چه ما محمد «صلی الله علیه وسلم» شهید کړو او، دې خبر په مسلمانانو کښې نوره پریشانی پیدا کړه او خپل پردې ئې نه پیژندل، او یمان ﷺ ئې پخپله شهید کړو. او پدې وقت کښې د نبی ﷺ سره صرف لس «۱۰» یا دولس «۱۲» کسان پاتې ؤو

چه په هغوئ کښې حضرت ابوبکرؓ، حضرت عمرؓ، حضرت علیؓ حضرت طلحهؓ وغيره حضرات ؤو، او باقي حضرات يو طرف ته اوبل طرف ته منتشرشوی ؤو، او پدې حالت کښې کعب بن مالكؓ وائي چه زما نظر په رسول اللهﷺ ولګيده نو ما وپيژنده چه دا رسول اللهﷺ دې نو په زوره مې آواز وکړو چه اې مسلمانانو ! تاسوته دې بشارت وی چه رسول الله ژوندې موجود دې، نوصحابؤ چه دا آواز واؤريده نو د هرطرف نه را جمع شول او رسول الله يوموټې شګی کفاروته وه ويشتلې او په دوئ رعب راغې اوميدان ئې پريښودلو، اووتښتيدل

**فايده** : حضرت ابو دجانهؓ خپل جسم دحضورﷺ دپاره ډال ګرځولې ؤو او دکفارو دطرفه به چه کوم غشې راته نو د نبيﷺ د جسداطهر حفاظت به ئې په خپل جسم اوسينې سره کولو، نوغشې به دده په جسم اوسينه کښې لګيده، اوحضرت طلحهؓ خپل لاس دحضورﷺ دپاره ډال ګرځولې ؤو نو دکفارو دتُوروګذاربه دده په لاس لګيده ،لاس ئې شل شوې ؤو ليکن کټ شوې اوپرې شوې نه ؤو څکه چه دا ډال ؤو دحضورﷺ دپاره ، دغه شان نورو صحابؤ دجان نثاری، اوقربانيدلو داسې نمونه ښکاره کړيده چه کائناتوکښې دهغې نظيرنشته «فرضي الله عنهم وارضاهم وجزاهم الله خيرالجزاء»

﴿إِذْ هَمَّت طَّآئِفَتَانِ﴾ دا بدل دې د «واذعدوت» نه او د «طائفتان» نه مراد بنوسلمه او بنوحارثه دی او «هَم» کلکې اوپخې ارادې ته هم ويلې شی، او وسوسې اوخيال ته هم ويلې شی دلته ترينه وسوسه اوکمزورې اراده يعنی خيال مراد دې او دا ګناه نه دې او دارنګه دا خيال دضعف ايمان په وجه سره نه ؤو، بلکه دقلت تعداد او دقلت دسامان اومادی کمزورئ په وجه سره ؤو.

﴿أَن تَفْشَلَا﴾ فشل بُزدلی ته وائي، حضرت جابرؓ فرمائي چه دا آيت زمونږ په باره کښې نازل شوې دې، اومونږ دا نه غواړو چه دا آيت دې نه وې نازل شوې، اګرکه پدې کښې زمونږ کمزوری اوپه مونږ باندې عتاب بيان شويدې څکه چه الله تعالی فرمائي ﴿وَٱللَّهُ وَلِيُّهُمَا﴾ او پدې کښې زمونږ عظمت اوشرا فت بيان شويدې . ﴿وَعَلَى ٱللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ ٱلْمُؤْمِنُونَ﴾ يعنې توکل او اعتماد صرف دالله تعالی په ذات پکار دې په اسبابونه دې پکار ، د توکل معنی علامه ابن قيّم داسې کوی چه : نزع د اسبابو دقلب نه، نه دقالب نه.

| |
|---|
| وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللّٰهُ بِبَدْرٍ وَّ اَنْتُمْ اَذِلَّةٌ ۚ |
| اوخامخا په تحقیق[1] سره مدد کړېدي تاسوسره الله په بدر کښې اوحال داچې تاسو لږ اوکمزوري وئ |
| فَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ۝ |
| نو وېره کوئ دالله نه ددې دپاره چې تاسوشکر اوکړئ |

﴿وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللّٰهُ بِبَدْرٍ﴾ دا دویمه نمونه ده دهغه دوو شرطونو اود اصولو دپاره.

﴿وَأَنتُم أَذِلَّةٌ﴾ دا جمع د ذلیل ده په معنی د کمزوری سره یعنی تاسو دَ تعداد او سامان په اعتبار سره کمزوری وئ ځکه چه تعداد ئ ((۳۱۳)) ؤو او سامان ورسره صرف دوه آسونه ((۷۰)) اویا اوښان او اته ((۸)) توري وې، لیکن ددې با وجو ددوئ د صبر اوتقوی کمال مظاهره وکړه او په صبر اوتقوی باندې کلك ؤو، نو الله ﷻ ورسره غیبی امداد وکړو.

﴿فَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ﴾ یعنې تقوی کوئ نوفتح به حاصلیږی اوپه فتح باندې تاسو شکر کوئ . یا دا معنی ده چه په تقوی سره عادت د شکر گذاری جوړیږی.

| |
|---|
| اِذْ تَقُوْلُ لِلْمُؤْمِنِيْنَ اَلَنْ يَّكْفِيَكُمْ اَنْ يُّمِدَّكُمْ رَبُّكُمْ بِثَلٰثَةِ اٰلٰفٍ مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ |
| کله چې اووئیل تامومنانوته آیا کافي نه ده تاسولره، داچې امداد اوکړي تاسوسره رب ستاسو په درې زره ملائکو سره |
| مُنْزَلِيْنَ ۝ بَلٰٓى ۙ اِنْ تَصْبِرُوْا وَتَتَّقُوْا وَ يَاْتُوْكُمْ مِّنْ فَوْرِهِمْ |
| چې راکوزې کړې شوې به وي . بلکه کچرې صبراوکړو تاسو اوتقوي مواوکړه اوراشي دوئ تاسوته په دې جوش خپل سره [2] |
| هٰذَا يُمْدِدْكُمْ رَبُّكُمْ بِخَمْسَةِ اٰلٰفٍ مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ مُسَوِّمِيْنَ ۝ |
| نوامداد به وکړی ستاسوسره رب ستاسو په پنځه زره فرښتوسره چې نښې به ئې لګولې وې دجنګ (وردي) |
| وَمَا جَعَلَهُ اللّٰهُ اِلَّا بُشْرٰى لَكُمْ وَ لِتَطْمَئِنَّ قُلُوْبُكُمْ بِهٖ ۗ وَمَا |
| اونه دې ګرځولې الله دا (نزول د ملائکو) مګر زېرې تاسولره اودپاره ددې چې کلك شي زړونه ستاسو پدې سره، اونه دې |
| النَّصْرُ اِلَّا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ۝ ۙ |
| مدد مګر خاص د طرفه دالله نه دې چې زورآور حکمتونو والا دې |

---

۱ - د دوارو شرطونو دویمه نمونه.

۲ - دویمه ترجمه: په دې دم کښې.

﴿إِذْ تَقُولُ لِلْمُؤْمِنِينَ﴾ «اذ» ظرف د «نصرکم» سره متعلق دې او د درې زره «۳۰۰۰» او پنځه زره «۵۰۰۰» فرشتو نازليدل دبدر سره متعلق دی، په جنګ بدر کښې بالفعل دمشرکينو تعداد يوزر «۱۰۰۰» ؤو نو صرف يوزر فرشتې نازلې شوې چه په ميدان جنګ کښې دمؤمنانو سره اوږه په اوږه جنګيدلې لکه په سورة انفال کښې دی ﴿أَنِّي مُمِدُّكُم بِأَلْفٍ مِّنَ الْمَلَائِكَةِ﴾ ليکن بياکافرانو دا افواه خوره کړه چه کرزبن جابرمحاربی مونږته ددوو زروفوج امداد راليږی نو پدغه وخت کښې الله ﷻ د درې زره فرشتو د راليږلو وعده وکړه چه مسلمانان مطمئن اوثابت قدم شی، ددينه ورستو بيادا اطلاع راغله چه کرزبن جابرمشرکينو ته نور امداد راليږی، نوالله ﷻ دمزيد پنځه زره «۵۰۰۰» فرشتونازلولو وعده وکړه ليکن کرزته چه کله دمشرکينو دشکست خبرملاؤشو نو هغه د امداد ليږلواراده ترک کړه، نوالله ﷻ هم پنځه زره ملائك راؤنه ليږلی «بلی» دا اثبات دهغه نفی دې چه په ﴿أَلَن يَكْفِيَكُمْ﴾ کښې وه

﴿إِن تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا﴾ پدې کښې اشاره ده ديته چه دصبر اوتقوی په دوام سره په امداد الهی کښې ترقی کيږی ﴿وَيَأْتُوكُم مِّن فَوْرِهِمْ﴾ «فور» په اصل کښې دديګ وغيره سخت جوش ته وائی لکه «فارتِ القدر» او مستعمليږی په معنی دسرعت (تادی کول) سره اوپه معنی دغضب اوغصې سره او مراد ترينه دلته قوت ښکاره کول دی.

﴿مُسَوِّمِينَ﴾ د تسويم نه مشتق دې اظهار دعلامې ته تسويم وائی يعنی ددغه فرشتو خاص نشان (فوجی وردی) ؤو، په بعضې رواياتوکښې دی چه زيړې پګړئ يی وې اوشملې ئی شا طرف ته وې اوپه بعضې رواياتوکښې دی چه سپينې پګړئ يی وې، اوپه يوضعيف روايت کښې دی چه تورې پګړئ يی وې، او د **ملائکوپه نزول کښې درې قوله دی** : **يو** دا چه زر فرشتې راغلې وې او درې زره اوپنځه زره نه وې راغلې ځکه چه څه ضرورت ورته نه ؤو، **دويم** دا چه درې زره راغلې وې اوپنځه زره نوې راغلې، **دريم** قول دادې چه اول زرفرشتې راغلې وې بيا درې زره او بيا پنځه زره راغلې وې.

﴿وَمَا جَعَلَهُ اللَّهُ﴾ ضمير دغائب راجع دې نزول دملائکوته ﴿إِلَّا بُشْرَىٰ﴾ بشریٰ هغه خوشحالی ته وائی چه په ظاهر بدن باندې دهغې اثر ښکاره شی، او اطمينان صرف د زړه خوشحالی ته وائی، مقصود دادې چه نزول دفرشتو صرف ستاسو د تسلی او دخوشحالولو دپاره دې، اونصرت اوفتح صرف دالله ﷻ دطرفه ده او دهغه په حکم سره ده اوپه اسبابو سره نه ده بلکه دا اسباب صرف د انسان دتسلی دپاره وی، انسان داُنس نه مشتق دې نوپه اسبابو

سره ئې تسلی راخی اوالله ﷻ په فتح ورکولو کښې د اسبابو ، فرشتو وغیره محتاج ندې
یا دا مطلب دې چه دومره ډیرې فرشتې رالیږل ستاسو داعزاز اوتسلی دپاره دی اود نصرت دپاره خو یوه فرشته هم کافي وه، ځکه چه دحضرت جبرئیل ﷺ شپږ سوه «۶۰۰» وزرې دی او دیو وزر په څوکه ئې پوره صوبه د قوم لوط ﷺ تباه کړې وه اویوفرشتې ته هم ضرورت نشته بلکه چه الله ﷻ زمکې ته حکم کړې وې نو پناه کړی به ئې وُو.

| لِيَقْطَعَ طَرَفًا مِّنَ الَّذِينَ كَفَرُوٓا أَوْ يَكْبِتَهُمْ فَيَنقَلِبُوا خَآئِبِينَ ۝ لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ |
|---|
| دپاره ددې چې هلاک کړي يوډله دکافرانو ، يابۀ ذليل کړي دوئ نو واپس بۀ شي نامراد . نشته دې تالره دکار ددوئ نۀ |
| شَيْءٌ أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ أَوْ يُعَذِّبَهُمْ فَإِنَّهُمْ ظَٰلِمُونَ ۝ |
| هيڅ اختيار يا بۀ مهرباني اوکړي الله پدوئ باندې يابۀ عذاب ورکړي دوئ ته ځکه چې بېشکه دوئ ظالمان دي |
| وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۚ يَغْفِرُ |
| اوخاص پۀ اختيار دالله کښې دی هغه څۀ چې پۀ آسمانونو کښې دی اوهغه څۀ چې په زمکه کښې دي، بخښنه کوي |
| لِمَن يَشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَن يَشَآءُ ۚ وَٱللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ۝ |
| چاته چې اوغواړي اوعذاب ورکوي چاته چې اوغواړي، اوالله بخښونکې رحم کوونکې دې |

﴿لِيَقْطَعَ طَرَفًا﴾ دامتعلق دې د ﴿وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ بِبَدْرٍ﴾ سره اوقطع په معنی دهلاك سره ده، اوطرفاً په معنی دطائفه اوجماعت سره دې ﴿أَوْ يَكْبِتَهُمْ﴾ کلمه د او دتقسیم دپاره ده یعنی څه کسان ئې هلاك کړل اوځه ئې ذلیل کړل په قید کولو سره اوباقی ئې نامراده شرمیدلی کورنو ته واپس کړل.

﴿لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ﴾ دا د جنګ احد سره متعلق دې، **ددې آیت دشان نزول** په باره کښې متعدد روایات دی، مشهورقول دادې چه جنګ احد کښې نبی ﷺ ته زخمونه رسیدلی وُو نو وینه ئې دمخ نه مسح کوله اوویل ئې چه څرنګه به هغه قوم فلاح بیامومی چه دخپل نبی سره ئې داسې کارکړیدې، نوالله پاك ورته اوفرمایل چه ددوئ دهدایت یادهلاکت اختیار او علم کلی تاسره نشته دې نو استبعاد مه کوه چه دوئ ته به فلاح څرنګه حاصله شی، اوبل روایت دادې چه نبی ﷺ په جنګ احد کښې دبعضې هغه کسانو چه پدغه وقت کښې کافرؤو

مشرف په ایمان نه ؤو دهغوئ نومونه ئی واخستل اوبد دعائی ورته وکړه ((اللهم العن اباسفیان العن الحارث بن هشام الهم العن سهیل بن عمرو،اللهم العن صفوان بن امیه))، نودا آیت نازل شو ، ((لیس لك من الامرشئ)) اودوئ ټولوته د توبې توفیق ملاوشو اومسلمانان شول، بل روایت دادې چه نبی ﷺ اجازت طلب کړو په ورځ داحدچه بد دعا وکړی کفاروته ځکه چه هغوئ ورته ډیرتکلیف رسولې ؤو نودا آیت نازل شو.

﴿أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ﴾ پدې کښې دوه قوله دی : یو دادې چه ((او)) دعطف دپاره دې او دا معطوف دې په ((لیقطع)) باندې ((قرطبی)) ، نومعنی دا شوه چه په بدرکښې الله ﷻ ستاسوسره نصرت اومددوکړو. ((۱- لیقطع ــ الخ. ۲- اویکبتهم ۳- اویتوب ۴- اویعذب)) بعضې هلاك کړی، اوبعضې ذلیل کړی ، اوبعضو ته دتوبې توفیق ورکړی، اوچه څوك په کفر قائم پاتې شی نوهغوئ له عذاب ورکړی، دویم قول دادې چه ((او)) په معنی د ((الا ان)) سره دې یا د ((الی ان)) سره دې نو دا د ((لیس لك من الامرشئ)) سره متعلق دې ((ای لیس لك من الامرشئ الا ان یتوب علیهم فتفرح اویعذبهم فتشفی)) دا قول د فراء دې اوچه د ((الی ان)) په معنی سره شی نومخکښې ترینه((فاصبر))مقدردې،یعنی صبرکوه تردې پورې چه یا ورته الله ﷻ هدایت وکړی او د توبې توفیق ورله ورکړی، نومقصودبه دحاصل شی، یا ورله عذاب ورکړی.

﴿ وَلِلَّهِ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلْأَرْضِ ﴾ دا دلیل عقلی دې په توحید او د ماقبل سره متعلق دې یعنې تاله ددوئ اختیارنشته اوبلکه دتمام مافی السماوات والارض اختیارالله ﷻ لره دې.

| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَأْكُلُوا۟ ٱلرِّبَوٰٓا۟ أَضْعَٰفًا مُّضَٰعَفَةً ۖ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ۝ وَٱتَّقُوا۟ |
|---|
| اې ایمان والو ! مهٔ خورئ سود دوچند پهٔ دوچند، اوویریږئ دالله نهٔ دپاره ددې چه تاسوکامیاب شئ، او خان بچ کړئ[۱] |
| ٱلنَّارَ ٱلَّتِيٓ أُعِدَّتْ لِلْكَٰفِرِينَ ۝ وَأَطِيعُوا۟ ٱللَّهَ وَٱلرَّسُولَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ۝ |
| دهغه اور نهٔ چې تیار کړې شوېدې دپاره دکافرانو . اوتابعداري کوئ دالله اودرسول دپاره ددې چې پهٔ تاسورحم اوکړېشي |

۱ - تخویف اخروي.

| وَ سَارِعُوْٓا اِلٰی مَغْفِرَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَ جَنَّةٍ عَرْضُهَا السَّمٰوٰتُ |
|---|
| اوجلتي (١) کوئ اسبابودبخښنې ته دطرفه درب ستاسونه اواسبابودجنت ته چې فراخي دهغې آسمانونه |
| وَالْاَرْضُ اُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِيْنَ ۙ |
| اوزمکه ده، تيار کړې شوې دې دپاره د متقيانو |

﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَاْكُلُوا الرِّبٰوٓا﴾ پدې کښې مسئله د انفاق فی سبيل الله ته اشاره ده چه سود مه اخلئ بلکه انفاق فی سبيل الله کوئ او دارنګه پدې کښې دجهاد ترغيب دې، سود اخستل دجهاد سره منافی دې، ځکه چه سود اخستلوسره بُزدلی پيدا کيږی اوبُزدل سړې جهاد نه شی کولې، اوهمدارنګه خوك چه دومره کنجوس وی چه نه انفاق کوی اونه قرض حسن ورکوی بلکه په قرض باندې سود اخلی نودغه شان کنجوس به دمحبوب اوقيمتی جان قربانی څنګه ورکړی.

﴿اَضْعَافًا مُّضٰعَفَةً﴾ دا قيد دمزيد قباحت د اظهار دپاره دې، يا د بيان د واقع دپاره دې او د امطلب نه دې چه سود درسود «سودمرکب» ناجائز دې اوسود مفرد جائز دې.

﴿وَاتَّقُوا النَّارَ﴾ يعنی ځان بچ کړئ د اسبابو د نار نه، او دا تخويف اُخروی دې.

﴿الَّتِیْٓ اُعِدَّتْ لِلْكٰفِرِيْنَ﴾ نار،په اصل کښې دکافرانو دپاره تيارکړې شويدې ، امام ابوحنيفة رحمه الله فرمائی چه دا ډير د يرې آيت دې، ځکه چه الله ﷻ پدې کښې دجهنم دهغه طبقې دعذاب ورکولو دهمکی ورکړيده چه هغه دکافرانو دپاره تيارشويدې «اعدت» صيغه د ماضی په باره دجهنم اوجنت دواړوکښې ذکرده، نو ددينه اهل سنت والجماعت دا ثابته کړې ده چه جنت اوجهنم دواړه موجوددی.

﴿وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ﴾ يعنې اطاعت په ټولو احکاموکښې کوئ نه چه صرف په ربوا کښې اودا سبب درحمت اودبچ کيدلو دې دهزيمت نه﴿وَسَارِعُوْٓا﴾ دا بشارت دې ﴿وَجَنَّةٍ﴾ دا عطف دې په مغفرة باندې اومضاف مقدر دې «ای اسباب مغفرة واسباب جنة» اومغفرت اوجنت په ايمان او انفاق فی سبيل الله اوجهاد فی سبيل الله سره حاصليږی.

١ - بشارت.

﴿عَرۡضُهَا ٱلسَّمَٰوَٰتُ وَٱلۡأَرۡضُ﴾ عرض کله په معنی دپلن والی سره راځی اوکله په معنی دنفس وسعت سره راځی، اودایا په ظاهر باندې محمول دې یعنی دجنت پلن والې دومره دې لکه چه دا ټول آسمانونه او زمکې دیوبل سره متصل کړې شی.

لکه د ابن عباس رضی الله عنه نه مروی دی: ((کمایبسط الثیاب ویوصل بعضها ببعض فذالك عرض الجنة ولایعلم طولها الاالله)) طول دعرض نه زیات وی نو چه دټولو آسمانونواوزمکو برابر یئ پلن والې دې نوطول ئی دالله جل جلاله په علم کښې راتلې شی او دمخلوق دعلم نه خارج دې، قرطبی وائی: ((وهذاقول الجمهور)) اوبعضې مفسرین وائی چه دا تمثیل دې دوسعت دجنة دپاره ځکه چه د انسانانو په نظرکښې د آسمانونو او زمکې نه نور زیات وسعت نشته دې.

﴿أُعِدَّتۡ لِلۡمُتَّقِينَ﴾ اومتقیان په دوه قسمه دی: یواعلی فریق دی چه دهغوئ ذکرد ﴿وَٱللَّهُ يُحِبُّ ٱلۡمُحۡسِنِينَ﴾ پورې شوې دې اوبل ادنی فریق دی چه دهغوئ ذکرد ((یعلمون)) پورې شویدې

| ٱلَّذِينَ | يُنفِقُونَ | فِي ٱلسَّرَّآءِ | وَٱلضَّرَّآءِ | وَٱلۡكَٰظِمِينَ | ٱلۡغَيۡظَ |
|---|---|---|---|---|---|
| هغه[1] کسان چې خرچ کوي مالونهٔ | | پهٔ خوشحالئ کښې اوپهٔ تکلیف کښې | اوتیرونکي(دفع کونکی) دغصې دي | | |
| وَٱلۡعَافِينَ | عَنِ | ٱلنَّاسِۗ | وَٱللَّهُ | يُحِبُّ | ٱلۡمُحۡسِنِينَ ۝ وَٱلَّذِينَ |
| اومعافي کوؤنکي دی دتقصیراتودخلقونهٔ، اوالله محبت کوي احسان کوؤنکوسره . اودوئ هغه ([2]) کسان دي | | | | | |
| إِذَا | فَعَلُواْ | فَٰحِشَةً | أَوۡ ظَلَمُوٓاْ | أَنفُسَهُمۡ | ذَكَرُواْ ٱللَّهَ فَٱسۡتَغۡفَرُواْ |
| چې کله اوکړي بـنکاره گناه یاظلم اوکړي پهٔ خانونوخپلو نو یادکړی الله لره نومعافي اوبخښنه ا وغواړی | | | | | |
| لِذُنُوبِهِمۡ | وَمَن | يَغۡفِرُ | ٱلذُّنُوبَ | إِلَّا ٱللَّهُ | وَلَمۡ يُصِرُّواْ عَلَىٰ مَا |
| دخپلوگناهونو، اوڅوک دي چې اوبخښی ټول گناهونه سوا دالله نهٔ، اونهٔ کلکیږی دوئ پهٔ هغې گناه سره | | | | | |
| فَعَلُواْ وَهُمۡ يَعۡلَمُونَ ۝ | | | | | |
| چې ئې اوکړي او دوئ پوهیږي | | | | | |

١ - دفریق اعلی ذکر.

٢ - دفریق ادنی ذکر.

﴿ ٱلَّذِينَ يُنفِقُونَ فِي ٱلسَّرَّآءِ وَٱلضَّرَّآءِ ﴾ داد فريق اعلى ذكر دې او دايې اول صفت دې، د «سَرَّاء» نه مراد حالت د وسعت درزق دې يعنى غنى، او «ضراء» نه مراد حالت دفقيرئ دې اوپه دواړوحالاتو كښې د استطاعت مناسب خرچ كول مراد دى،يا د «سراء» نه مرادحالت دسروردې او«ضراء» نه مراد حالت دفقيرئ دې، اوپه دواړوحالاتوكښې د استطاعت مناسب خرچ كول مراد دى، يا د «سراء» نه مراد حالت دسروردې اوضراء نه مراد حالت دغمونو دې اوخرچ په طريقه شرعى سره مراد دې اوپه حالت دسروركښې اسراف كول ياپه حالت دغمونوكښې بدعات كول خروج دې ددائرې دشريعت نه .

﴿وَٱلْكَـٰظِمِينَ ٱلْغَيْظَ﴾ دايى دويم صفت دې «كظم» په اصل كښې ديته وائى چه مشك «مشكيزه» داُوبونه ډكه شى نوخوله ورته بنده كړى اووې تړى، او «غيظ» غصې ته وائى او «كظم الغيظ» غصې خوړلوته اوضبط كولوته وائى، يعنى دغصې په حالت كښې مغلوب الغضب نه وى بلكه په خپله غصه باندې قابو لرى، دلته الله ﷻ مدح په «الكاظمين الغيظ» سره كړيده اوپه «الفاقدين الغيظ» سره ئى نده كړې ځكه غصه يوطبعى امر دې ددې پيداكول عيب ندې اونشتوالې ئى كمال ندې بلكه عيب دې اوكمال دادې چه غصه پيداشى خوپه قابو كښې ئى راولى اوعمل پرې ونه كړى، په حديث كښې دى :

((من كظم غيظاوهويقدرعلى انفاذه ملاءالله قلبه امناً وايماناً)) «عبدالرزاق ابن كثيرابن جريرعن البيهقى» يعنى څوك چه غصه وخورى اوحال دا چه دې قادروى دهغې په نافذكولو نو الله ﷻ به ډك كړى زړه دده دامن اوايمان دنورنه .

((عن انس ﷺ من كظم غيظاوهوقادر على ان ينفذه دعاه الله تعالى على رؤس الخلائق حتى يخيّره الله تعالى من اىّ الحور شاء)) ، يعنى څوك چه غصه وخورى سره دقدرت نه په نافذ كولو باندې دقيامت په ورځ به ئى الله تعالى دټولوخلقوپه حضوركښې راوبلى اواختياربه ورله وركړى چه څومره حورې دې خوښى وى نو واخله «رواه احمد» .

﴿وَٱلْعَافِينَ عَنِ ٱلنَّاسِ﴾ دا دريم صفت دې اودمخكنى صفت نه اعلى او ارفع دې يعنې څوك چه قصوروار اومستحق دسزاوى نوهغه ته معافى كوى.

﴿وَٱللَّهُ يُحِبُّ ٱلْمُحْسِنِينَ﴾ دا دماقبل تتمه ده اومراد داحسان نه استحضار او اخلاص دې په عبادت كښې، يا مراد ترينه انعام كول په بل چاباندې دى ، مفسرينوحضراتوپه حواله

دبیهقی سره **یوه عجیبه واقعه نقل کړې ده** چه : دعلی بن حسین ﷺ بن علی ﷺ یوه جاریه (وینزه) وه دوئ ته ئی اوبه اچولې د اودس کولوپه موقعه باندې نودلاس نه ئی هغه لوښې د اوبو ارتاؤ شو چه دهغې په وجه دده کپړې خرابې شوې اوپه سرکښې ئی لږشان زخم وشو نو سخت غصه شو، وینزه ګبراؤشوه نودا آیت ئی ولوسته : ﴿وَٱلۡكَـٰظِمِينَ ٱلۡغَيۡظَ﴾ نو دآیت ددې جملې په آوریدلو سره دده غصه یخه شوه، نو هغې بیا ورپسې حصه د آیت تلاوت کړه ﴿وَٱلۡعَافِينَ عَنِ ٱلنَّاسِ﴾ نو دوئ اوفرمایل چه مامعاف کړې یې، نوهغې بیابله جمله تلاوت کړه چه ﴿وَٱللَّهُ يُحِبُّ ٱلۡمُحۡسِنِينَ﴾ نوعلی بن حسین ﷺ چه دا واوریده نووې فرمایل چه ماته دالله ﷻ درضا دپاره آزاده کړې، رضی الله تعالی عنهم اجمعین.

دیوحدیث مفهوم دې چه دقیامت په ورځ به دالله ﷻ دطرف نه یواعلان کوونکې اعلان وکړی ، ((من کان له ید عندالله فلیتقدم)) ، چه د چاپه الله ﷻ باندې حق وی نوهغه دې را مخکښې شی، نوهغه خلق به ودریږی چه نوروخلقوته ئی معافی کړی وی نو دوئ به جنت ته بغیر دحساب نه داخل شی (**قرطبی**).

په بل حدیث کښې دی : ((مَنْ اَحَبَّ اَنْ يُشْرَفَ له البنيانُ وتُرْفَعَ لَهُ الدَّرجات فَلْيعفُ عَمَن ظَلَمَهُ ويُعطِ من حَرَمَهُ ويصلْ مَنْ قَطَعَهُ)) (**روح**).

**ترجمه** : څوك چه دا غواړی چه دده محلات په جنت کښې اوچت وی اودرجات ئی بلندوی نو پکارده چه دې دې معافی کوی هغه چاته چه په ده ئی ظلم کړې وی اوهدیه «بخشش» دې ورکوی هغه چاته چه دې ئی محروم کړی وی (هیڅ څه ئی ورله نوی ورکړی) اوصله رحمی دې کوی دهغه چاسره چه دده سره صله رحمی نه ساتی ،«اللهم وفقنالماتحب وترضی» ، امام ابوحنیفة ﷫ ته یوکس په بازارکښې بدې ردې اوګستاخه خبرې وکړې نوامام ابوحنیفة ﷫ برداشت وکړو اوخپل کورنه ئی یوپلیټ د روپو ، اشرفونه ډك دهغه کورته یوړو او ورته ئی وویل چه تا په ما باندې دا احسان وکړو چه خپلې نیکئ دې ماته راکړې (یعنی دګستاخو خبروپه وجه) نو دا دهغې بدله ده نوهغه ډیرمتأثرشواوتائب شو او د امام ابوحنیفة﷫ نه ئی علم حاصلول شروع کړل حتی چه لوئ عالم شو.

﴿وَٱلَّذِينَ إِذَا فَعَلُواْ فَـٰحِشَةً﴾ دا دمتقیانو دویم قسم دې چه ادنیٰ دې، د﴿فَـٰحِشَةً﴾ او د ﴿ظَلَمُوٓاْ أَنفُسَهُمۡ﴾ مختلف تفسیرونه کړې شویدی د «فاحشة» نه کبیره ګناه او «ظلمو انفسهم»

نه صغیره گناه مراد دي، یا د اول نه مطلق گناه مراد دي خواه که حقوق العباد وي او که حقوق الله وي اود دویم نه مراد حقوق الله دي. ﴿ذَكَرُوا اللَّهَ﴾ یعنی دوئ یادکړي وعد او وعیدلره، اوپدې کښې اشاره ده چه دا گناه ددوئ نه دبغاوت اونافرمانئ دجذبې په وجه نده شوې بلکه د وعیدنه د ذهول اودغفلت په وجه صادره شوې ده. ﴿وَمَن يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا اللَّهُ﴾ پدې کښې رد دې په عقیده دنصاري ؤباندې چه دوئ وائي چه مغفرت اوبخشش په لاس دعیسی ﷺ کښې دې. ﴿وَلَمْ يُصِرُّوا عَلَىٰ مَا فَعَلُوا﴾ «اصرار» قائم پاتې کیدلوته وائي په قبیح باندې، نو توبه دیته وائي چه په تیره شوې گناه باندې ندامت وي اومعافي غوښتل وي، اوبل داچه مصر نه وي، یعنی دگناه دنه کولو عزم یې وي.

| أُولَٰئِكَ جَزَاؤُهُم مَّغْفِرَةٌ مِّن رَّبِّهِمْ وَجَنَّاتٌ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ |
| --- |
| دغه کسان[1] بدله ددوئ بخښنه ده دطرفه درب ددوئ نه اوباغونه دي چې بهیږي لاندې دهغې نه ولې همیشه به وي |
| فِيهَا ۚ وَنِعْمَ أَجْرُ الْعَامِلِينَ ۝ قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِكُمْ سُنَنٌ |
| دوي په هغې کښې، اوښه دې ثواب د داسې عمل کوونکو. په تحقیق سره تیرشوي دي ستاسونه مخکښې واقعات |
| فَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَانظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ ۝ هَٰذَا بَيَانٌ لِّلنَّاسِ |
| پس اوگرځئ په زمکه کښې نواوگورئ په عبرت سره څنګه وو انجام دتکذیب کوونکو. دابیان دې دپاره دخلقو |
| وَهُدًى وَمَوْعِظَةٌ لِّلْمُتَّقِينَ ۝ |
| اوهدایت اونصیحت دې دالله نه ویریدونکودپاره |

﴿أُولَٰئِكَ جَزَاؤُهُم﴾ دا بشارت أخروي دې دواړوقسمونو دمتقیانوته ﴿وَنِعْمَ أَجْرُ الْعَامِلِينَ﴾ ددې مخصوص بالمدح محذوف دې چه «الجنةُ» دې او د «عاملینو» نه مراد متقیانووالاعمل کوونکي دي ﴿قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِكُمْ﴾ دا تخویف دنیوي دې اوبیان دحال دمکذبینو دې ورستو دبیان دمتقینو نه. او«سنن» دسنة جمع ده طریقې ته وائي، ښه وي اوکه بده . اوشرائع ادیانو ته هم وائي «اُمم» ته هم وائي واقعاتوته هم وائي، دلته دا اخیري معنی اراده کول مناسب دي «فَسِيرُوا» مراد دعبرت دپاره سیرکول دي «فَانظُرُوا» نظر دعقل مراد دې یعنی فکر، سوچ. «عاقبة» معنی ئ ده آخرانجام.

---

۱ - د دواړو خلقو دپاره بشارت.

﴿هَٰذَا بَيَانٌ لِّلنَّاسِ﴾ يعنى كه په زمكه كښې سير دعبرت دپاره نښئ كولئ نو دقرآن نه نصيحت واخلئ او د قرآن درې صفات ذكرشوى دى : **اول** داچه ﴿بَيَانٌ لِّلنَّاسِ﴾ يعنى ټولو خلقوته ئې احكامات، اوامر، نواهى، اعتقاديات هرڅه بيان كړى دى، او**دويم** داچه ﴿وَهُدًى﴾ دلائل دتوحيد وغيره ئې بيان كړى دى، **دريم** ﴿وَمَوْعِظَةٌ﴾ چه پدې كښې تخويفات، بشارات دى ﴿لِّلْمُتَّقِينَ﴾ يعنى قرآن خو بيان دټولوخلقودپاره دې ليكن هدايت اونصيحت ترينه صرف متقيان اخلى.

| وَلَا تَهِنُوا وَلَا تَحْزَنُوا وَأَنتُمُ الْأَعْلَوْنَ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ۝ |
|---|
| اوسستي مكوئ (دجهادنه) اومه بې حوصلې كيږئ (په تكليفونو) اوتاسوبه اوچت اوغالب يئ كه يئ تاسوپوراايمان والا |
| إِن يَمْسَسْكُمْ قَرْحٌ فَقَدْ مَسَّ الْقَوْمَ قَرْحٌ مِّثْلُهُ ۚ وَتِلْكَ الْأَيَّامُ |
| كه رسيدلي دې تاسوته زخم (نوصبر كوئ) نويقينًار سيدلې دې قوم د كافرانوته هم زخم ددې پشان او دا ورځې |
| نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النَّاسِ وَلِيَعْلَمَ اللَّهُ الَّذِينَ |
| مونږ اوړوراوړو داپه مينځ دخلقو كښې (دپاره دپروفاندو) اوددې دپاره چې ښكاره كړي الله هغه كسان |
| آمَنُوا وَيَتَّخِذَ مِنكُمْ شُهَدَاءَ ۗ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الظَّالِمِينَ ۝ |
| چې ايمان ئې راوړې دې اواوګرځوي بعضې ستاسونه شهيدان، اوالله محبت نه ساتي دظالمانوسره |
| وَلِيُمَحِّصَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَيَمْحَقَ الْكَافِرِينَ ۝ |
| اوددې دپاره چې پاک اوصاف كړي الله مومنانولره اوختم كړي كافران. |

﴿وَلَا تَهِنُوا وَلَا تَحْزَنُوا﴾ دا دجهاد دمضمون اعاده ده او دا مضمون د ع ١٨ آية ١٧٥ پورې بيانيږي، او پدې آيت كښې تشجيع على القتال اوترغيب الى القتال دې، اوپه جنګ احد كښې په تكليفونو او زخمونو رسيدلو باندې تسلى وركول دى، په جنګ احدكښې دمسلمانانونه چه كومه اجتهادى غلطى وشوه نو دهغې په نتيجه كښې وقتى شكست ملاؤ شو او اويا ٧٠ كسان شهيدان شول او اكثر زخميان شو، حتى چه دنبى ﷺ په سرمبارك باندې زخم راغې او دغاښ مبارك يوه ټكړه يې شهيده شوه اوپه شونډه مباركه كښې ئې زخم راغې نوصحابۇ ته پدې باندې ډيرغم او پريشانى راغله، او دا خطره هم وه چه هسې نه صحابه كرام ﷺ د آينده دپاره كمزورى اوبې همته نه شي.

نو الله ﷻ دا آيت نازل کړو. اودوئ ته ئې تسلي اوبشارت وکړو چه تاسو د يروسختونه مه يريږئ او ددشمن په مقابله کښې نامردي اوسستي او بې زړه توب مه کوئ اوپه درپيښوشوو مصيبتونو مه غمجن کيږئ، اوفتح اوغلبه به ستاسو وی خو پدې شرط سره چه تاسو دشريعت او دايمان په لار اومقتضياتو باندې مستقيم يئ او د نبی کريم ﷺ په اطاعت باندې محکم يئ نو پدې بشارت سره ګوياکښې ددوئ په جسمونو کښې نوې او تازه روح ننوت او دمجاهدينو د زخمي جسمونو اوماتو زړونو دپاره مرهم پټئ شو ، او ددې نتيجه دا شوه چه هغه کفارو چه لږ ساعت مخکښې غالب ښکاريدل هغه ددې زخمي او ستړی ستومانو مجاهدينو په مقابله کښې ونه دريدل اوپه منډو وتښتيدل ،ميدان جنګ ئې پريښود.

﴿وَلَا تَهِنُوا﴾ «وهن» سستي کولو ته وائې په سبب د يرې دمرګ ياپه سبب دمحبت د دنيا سره ،اوحزن غم افسوس ته وائې په سبب دفوت کيدلو دمقصود يارسيدلودتکليف سره

دلته يو **سوال** واردېږی چه حزن خوغير اختياری څيزدې اونهی اومنع خو دَ اختياری شې کيدې شی ، **جواب** دادې چه د «لاتحزنوا» نه مقصود نهی اومنع کول نه دی بلکه تسلي ورکول مقصود دی لکه عامه محاوره ده چه غمزده کس ته ويلې شی : خير دې غم مه کوه الله تعالی به ددې غم په بدله کښې خوشحالي درکړی، يا دا **جواب** دې چه مقصود نهی اومنع ده داظهار د حزن نه په داسې طريقې سره چه مقصود ترينه فوت شی او اظهار دحزن اختياری شې دې.

﴿إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ﴾ دا شرط دې اوجزاء ورله محذوفه ده په قرينه د ما قبل سره « ای ان کنتم مؤمنين فأنتم الأعلون» ، او مراد دايمان نه ايمان کامله دې چه موجب دغلبې دې په دشمن باندې يا مراد ترينه دايمان په تقاضوچليدل دی، تفسير مظهری وغيره ليکلی دی چه ((واما غلبة کفار زماننا فلضعف ايماننا وكثرة عطياننا، ومن اصدق من الله حديثا)).

﴿إِن يَمْسَسْكُمْ قَرْحٌ﴾ دا دجواب دشبهې سره متعلق دې اوتسلي ده مؤمنانوته او پدې کښې حکمتونه ذکرکيږی دهزيمت په احدکښې، «قَرْحٌ» په فتحې دقاف سره زخم ته وائی اوپه ضمې سره درد د زخم ته وائی اوجزاء د شرط دپاره محذوفه ده چه ((فلاتحزنوا)) يا ((فلاتضعفوا)) دې او﴿فَقَدْ مَسَّ ٱلْقَوْمَ﴾ د محذوفې جزاء قائم مقام دې او د قوم نه مراد مشرکين دی.

﴿قَرْحٌ مِّثْلُهُۥ﴾ ورستو په آیت (۱۶۵) کښې ﴿أَصَبْتُم مِّثْلَيْهَا﴾ دې نوهغه په اعتبار دعدد سره دې. اودلته بیان دمثلیت مقصود دې په نفس قتل اوزخمی کیدلوکښې. یعنی کوم قسم صدمه چه تاسوتهٔ رسیدلې ده نو دغه قسم صدمه هغوئ ته هم رسیدلې وه او د مقدار اوعدد په اعتبارسره دهغوئ صدمه دوچنده وه نوچه تاسو دې قسم تقابل ته نظروکړئ نونه دخفګان اوغمجن کیدلو څه وجه نشته اونه دمنافقانو او مشرکانو ددې سوال څه وجه شته چه دوئ وائی که چرې محمد ﷺ په رښتیا دالله رسول وې نو دومره نقصانونه به ولې ورته رسیدل ؟ او نه ددې د تکبراوغرورڅه وجه شته . ﴿وَتِلْكَ ٱلْأَيَّامُ نُدَاوِلُهَا﴾ یعنی دا زمونږ قدیمی عادت دې چه کله سختی اوتکلیفونه راولو. اوکله راحت اوخوشحالی راولو لکه چه کله ګرمی کله یخنی وی اوکله شپه کله ورځ وی دغه شان حالات اړوو راړوو نو بیا هرکله چه کفار سره دومره تکلیفونونه دباطل حمایت نه پریږدی نوتاسو دحق په حمایت کښې ولې بی زړه کیږئ ﴿وَلِيَعْلَمَ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾ یعنې پدې انقلاباتو راوستلوکښې ډیرحکمتونه مضمر (پټ) دی یو دا چه کره اوکوټه یعنې مؤمن اوغیرمؤمن جدا شی. دعلم نه دلته تمیز اواظهار مراد دې او واؤ په ((ولیعلم)) کښې : ۱- بعضې وائی چه زائد دې او دا علت دې دماقبل دپاره ۲- اوبعضې وائی چه معطوف علیه مقدر دې ((ای لیکون کیت وکیت ولیعلم)) ، یا ((فعل الله ذالك لمصالح جُمَّةٍ ولیعلم)) ۳- اوبعضې وائی چه دا عطف دې په مضمون دکلام سابق باندې او معطوف علیه ورله په لفظ کښې نشته دې. ﴿وَيَتَّخِذَ مِنكُمْ شُهَدَآءَ﴾ یعنې بل مصلحت اوحکمت پدې وقتی اوعارضی شکست کښې دادې چه مقام شهادت لوئ اعزازاواکرام دې په نزد دالله ﷻ نوچه دا تاسوته حاصل شی.

﴿وَٱللَّهُ لَا يُحِبُّ ٱلظَّٰلِمِينَ﴾ دظالمینونه مراد یا هغه منافقین دی چه په عین موقعه باندې دمسلمانانو نه جدا شول نو دوئ عندالله مبغوض دی نوځکه ئی د ایمان اودشهادت نه محروم کړه . اویا دظالمانو نه مراد هغه کفار دی چه دمؤمنانوپه مقابله کښې په جنګ کښې ولاړوو نو مطلب دادې چه ددوئ ددې عارضی غلبې سبب دانه دې چه دوئ دالله ﷻ خوښ دی بلکه دغه عارضی غلبه بنا په نورو اسبابوده.

﴿وَلِيُمَحِّصَ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾ (تمحیص) پاك اوصاف کولوته وائی دګناهونونه او (محق)

هلاکت ته وائی، حضرت ابن عباس ﷺ فرمائی که چرې غلبه دکافرانوشی نوپدې سره د مؤمن اوکافر امتیاز راشی اومسلمانانومقتولینو ته دشهادت اعزازحاصل شی اودګناهونونه پاك شی ، اوکه فتح او غلبه مؤمنانوته حاصله شی نود کفارو هلاکت او استیصال ؤشی.

| |
|---|
| اَمْ حَسِبْتُمْ اَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَعْلَمِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ جٰهَدُوْا مِنْكُمْ |
| آیاتاسوګمان کوئ چې داخل به شئ جنت ته اولاتراوسه پورې ندي ښکاره کړي الله مجاهدین ستاسونه |
| وَ يَعْلَمَ الصّٰبِرِيْنَ ۝ وَلَقَدْ كُنْتُمْ تَمَنَّوْنَ الْمَوْتَ مِنْ قَبْلِ |
| اونه يې دي ښکاره کړي صبر کوونکو لره . اوپه تحقیق سره وئ تاسو چې ارمان موکولو تاسو دشهادت مخکښې |
| اَنْ تَلْقَوْهُ ۖ فَقَدْ رَاَيْتُمُوْهُ وَاَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ ۝ |
| دمخامخ کیدونه دهغې سره، نوپس په تحقیق سره اولیده تاسو هغه (متمنی) اوتاسو کتل |

﴿ اَمْ حَسِبْتُمْ اَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ ﴾ دا زجر دې مؤمنانوته او د بل حکمت ذکردې، او د (تدخل) نه مراد دخولِ اولی دې یعنی ستاسوګمان ؤو چه بغیر دجهاد او صبرنه هم دخولِ اولی جنت ته کیدې شی نو دا ګمان غلط دې، او دعلم نه مراد اظهاراوتمیز(جدا کول) دی ﴿وَلَمَّا﴾ دلالت کوی په توقع دفعل منفی باندې نوپدې کښې اشاره ده توقع دجهاد او صبرته دمؤمنانونه، او ((لَمَّا)) جزم ورکوی نو ((یعلم)) مجزوم دې خو کسره ورته دالتقاء دساکنین دوجه نه ورکړې شوې ده او فتحه په ﴿وَيَعْلَمَ الصَّابِرِيْنَ﴾ کښ یا دَ نصب دَ وجه نه ده په تقدیر دَ (اَنْ) سره ((ای وان یعلم الصابرین)) یا مجزوم دې او فتحه ورته دَ التقاء دَ ساکنینو دَ وجهِ نه ورکړې شوې ده اواختیار دفتحه د اخفیت دوجهِ نه دې .

﴿وَلَقَدْ كُنْتُمْ تَمَنَّوْنَ الْمَوْتَ﴾ دموت نه مراد شهادت دې دتمنی دموت نه په حدیث کښې منع راغلیده ((لایتمنّینّ احدکم الموة — الحدیث)) . اوپه تمنی دشهادت کښې اوپه غوښتلو دشهادت کښې اجر دې، پدې آیت کښې یودبلِ حکمت ذکردې یعنی تاسو دبدر دغزا نه ورستو تمنیٰ دشهادت کوله نوځکه الله ﷻ وقتی شکست درکړو، او بل پدې کښې زجردې مؤمنانوته چه دوئ اول دشهادت تمنی کوله او بیائی په میدان جنګ کښې تیښته وکړه، کوم صحابه کرام ﷺ چه په جنګ بدرکښې نه ؤوشریك نو هغوئ ویل کاشکې الله ﷻ بیادغه شان موقعه راولی اومونږخپل ځان شهیدکړو دالله ﷻ په لاره کښې، اوپه جنګ احدکښې دوئ

مشوره ورکړه دمدینی نه دباهر وتلو نوالله ﷻ دوئ ته فرمائی چه هغه شې چه تاسوئی تمناکوله نوهغه ستاسومخې له راغې او تاسو ولیده نوولې تاسو په میدان جنگ کښې تیښته وکړه؟ په حدیث کښې دی چه تاسو ددشمن دملاقات (لیدلو) تمنیٰ مکوئ مګرکه ورسره مخامخ شوئ نوثابت قدم اوسئ.

| |
|---|
| وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ ۚ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ؕ اَفَاِنْ مَّاتَ اَوْ قُتِلَ |
| اوندي محمد ﷺ مګررسول دي، یقیناً تیرشوي دي مخکښې ددهٔ نهٔ رسولان، آیاپس که دي مړشویا قتل کړې شو |
| انْقَلَبْتُمْ عَلٰٓى اَعْقَابِكُمْ ؕ وَ مَنْ يَّنْقَلِبْ عَلٰى عَقِبَيْهِ فَلَنْ يَّضُرَّ اللّٰهَ |
| نوتاسوبهٔ واپس آوړئ پهٔ پوندوخپلو ، اوڅوک چې واپس واوړيدوبهٔ پوندوخپلو نوهرګزضرر نشي رسولې الله تهٔ |
| شَيْـًٔا ؕ وَسَيَجْزِى اللّٰهُ الشّٰكِرِيْنَ ۝ وَ مَا كَانَ لِنَفْسٍ اَنْ تَمُوْتَ |
| هیڅ ضرر ، اوزرده چې بدله به ورکړي الله شکرکوؤنکوتهٔ . اونده ممکن هیڅ یو نفس لره چې مړ شي |
| اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ كِتٰبًا مُّؤَجَّلًا ؕ وَ مَنْ يُّرِدْ ثَوَابَ الدُّنْيَا |
| بغیردحکم دالله نهٔ لیکلې شوېدې(مرګ)لیکل پهٔ مقرره نیټه، اوڅوک چې غواړي پهٔ عمل خپل سره بدله ددنیا |
| نُؤْتِهٖ مِنْهَا ۚ وَ مَنْ يُّرِدْ ثَوَابَ الْاٰخِرَةِ نُؤْتِهٖ مِنْهَا ؕ |
| مونږ ورکوؤدهٔ تهٔ دهغې نهٔ ،اوڅوک چې غواړي پهٔ خپل عمل سره بدله دآخرت نوورکوؤ مونږ دهغې نهٔ |
| وَ سَنَجْزِى الشّٰكِرِيْنَ ۝ |
| اور زردهٔ چې مونږ نېکه بدله ورکړو شکرکوؤنکوتهٔ |

﴿وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ﴾ پدې آیت کښې زجر دې مؤمنانوته او دارنګه تنبیه ده چه د امیر اعتماد باندې کارمکوئ بلکه توکل په الله ﷻ باندې کوئ ځکه امیر اګر که نبی وی په هغه باندې هم مرګ راځی اوپه الله ﷻ هیڅ فنا اومرګ نه راځی، او «ما» نافیه دې عمل لفظاً نه کوی د وجهِ د انتقاض دنفی نه په «الا» سره او «محمد» مرفوع بنا بر ابتدائیت دې او مابعد ورله خبر دې اوقصر یا قصرقلب دې ادعاءً، ځکه هرکله چه دوئ مستبعد وګڼړلو قتل دمحمد ﷺ نو ګویا دا ادعاء وکړې شوه چه تاسو محمد ﷺ ته اِله وائی نه رسول، نوقصر وشو چه محمد ﷺ ندې بلکه رسول دې، صاحب دمفتاح وائی چه دا قصرافرادی دې چه صحابؤ، حضرت محمد ﷺ لره دوه صفونه ثابت کړل : یو وصف درسالت او بل بقاء دده او

استبعاد دموت. نو الله ﷻ ورله یو وصف ثابت کړو او بل ئې ترینه نفی کړو.

**او دا آیت نازل شویدې** په باره دغزوه احد کښې . هرکله چه په احد کښې نبی ﷺ دجنګ نقشه پخپله جوړه کړه اوصفونه ئې برابرکړل نو پنځوس ۵۰ کسان چه امیرئې عبدالله بن جبیرؤو او دوئ تیرانداز(سخت غشی ویشتونکی ؤو) مقررکړل دیوې غونډئ په سر باندې چه د ورستونه کفارپه مونږ باندې حمله ونه کړی او تاکید ئې ورته وکړو چه مونږپه هرحالت چه یو. یو به، لیکن تاسو دخپل ځائ (مورچې) نه مه لرې کیږئ او مونږ به ترهغه وخت پورې غالب یو چه تاسو ثابت ئئ په خپل ځائ باندې او هر کله چه جنګ شروع شوو نوغازیانو په میدان جنګ کښې دخپل شجاعت جوهرښکاره کړو دحضرت ابودجانه ﷺ حضرت علی ﷺ اونورومجاهدینو په مقابله کښې دکفاروملاماتې شوې ۲۲ کسان ترینه مردار شو او باقی په تیښته روان شو اومجاهدینو ترینه دغنیمت په مالونو قبضه کول شروع کړل. نو دا ننداره چه کله هغه پنځوس ۵۰ کسانو ولیده نوګمان ئې وکړو چه فتح کامله وشوه نودلته کیناستل بیکاره دی اوښه داسې ده چه ددشمن نه مال غنیمت واخلو. نو امیر ورته د رسول الله ﷺ حکم یادکړوخودوئ دا ګمان وکړو چه د رسول الله صلی الله علیه وسلم چه کوم مقصدؤو هغه مونږپوره کړیدې اودلته کیناستل بې فائدې دی نو یوولس ۱۱ کسان دغه ځائ کښې پاتې شول اوباقی میدان جنګ ته راکوزشو. نو خالدبن ولیدچه پدغه وقت کښې لامشرف په اسلام نه ؤو او دکفاروجرنیل ؤو ددوه نیم سوه ۲۵۰ کسانوسره راغې نوعبدالله بن جبیرﷺ دخپلو ملګروسره ښه په بهادرئ تر یوحده پورې ددوئ مقابله وکړه خو بالاخر دوئ شهیدان شو اومجاهدین چه دشا دطرفه بې فکره اومطمئن ؤو نو ددغه جانبه پرې مشرکانو حمله وکړه او دمخې طرف دمشرکینو فوجونه هم بیرته را وګرځیدل نومسلمانان په مینځ کښې محضور شول. نوځکه ډیرشهیدان اوزخمیان شول اوابن قمیه بدبخت یوه ګټه درسول ﷺ په لورې وروه ویشته چه دهغې په وجه درسول الله ﷺ یوغاښ شهیدشو یعنی ټکړه ترینه ماته شوه او په سرمبارك باندې یې زخم راغې. ابن قمیه غوښتل چه حضورﷺ شهیدکړی مګراسلامی علمبردار حضرت مصعب بن عمیرﷺ درسول الله دطرفه مدافعه وکړه اوخپل ځان ئې شهیدکړو اونبی ﷺ د زخم دشدت لوجه نه په زمکه پریوت اوچونکه مصعب بن عمیرﷺ دنبی ﷺ سره په شکل کښې مشابه ؤو نو ابن قمیه دا ګمان وکړو چه ما نبی ﷺ قتل کړو نوآواز نی وکړو چه مانبی ﷺ قتل کړو او ابلیس په بلند آواز سره اعلان وکړو چه

محمد ﷺ قتل شو، ددې خبرپه اوریدلو سره چه «انّ محمداًقدقُتِل» مسلمانان وارخطاشو. خپې اولاسونه ئی سست شو، ځینې مبهوت اوحیران کیناستل اوځینې ضعیف الایمان خلقو ته خیال پیدا شوچه دمشرکانو درئیس ابوسفیان نه پناه وغواړی اوبعضې منافقانو وویل چه کله محمد ﷺقتل شو نو اسلام پرېږدئ اوپخوانی دین ته واپس شئ. انس بن نضر ﷺچه د انس بن مالك ﷺ تره وؤ هغه وه ویل که محمد ﷺ شهید شوې وی نو دمحمد صلی الله علیه وسلم رب خو ژوندې دې او بعد د شهادت دمحمد صلی الله علیه وسلم نه زمونږ ژوندځه پکاردې پدې مبارکه لاره کښې چه رسول ﷺخپل ځان قربا ن کړو نوپکارده چې مونږ هم خپل ځانونه قربان کړو دائی وویل او د زمری پشان میدان جنګ ته وړاندې شو او ترهغې پورې جنګیدلو چه په شهادت ورسید اوپدې وخت کښې رسول الله ﷺ آوازوکړو چه «الیّ عبادَالله ! انارسول الله» زما لوری ته راشئ اې دخدائ بندګانو زه دالله رسول یم دا آواز چه صحابؤ واورید نو فوراً راجمع شول اوسخته مدافعه ئی شروع کړه اوکفار منتشرشو. میدان جنګ مسلمانانو فتح کړو **نودا آیت نازل شو** چه : ﴿وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُولٌ﴾ یعنی محمد ﷺ خو یو بنده دې. خدائ خوندې، چه مرګ به ورته نه راځی .

﴿قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهِ ٱلرُّسُلُ﴾ دده نه مخکښې ډیر رسولان تیرشوی دی چه ورستو دهغوئ نه دهغوئ تابعدارانو دهغوئ دین ساتلې دې اوخپل ځان اومال ئی پرې قربان کړیدې نو درسول الله ﷺانتقال ددې دنیانه څه دتعجب خبره نده که دا وخت نه مری نوپه بل وخت کښې به وفات کیږی لیکن که چرې وفات شی نو آیا تاسو به دین پرېږدئ ؟ یا به دجهاد فی سبیل الله نه مخ اړوئ؟ لکه اوس دقتل دخبر اوریولو په وجه ډیرکسان بې حوصلې شو . اوکه څوك داسې وکړی نوخپل ځان ته به نقصان ورسوی . الله تعالی ته هیڅ نقصان نشی رسولی

**فایده** : قادیانیان ددې آیت نه استدلال کوی چه عیسی ﷺ وفات دې ، **جواب** دادې چه دا استدلال موقوف په درې ؤخبرودې : **اول** داچه «خلت» په معنی دموت سره دې، او **دویم** دا چه «من قبله» ظرف د«خلتْ»سره متعلق دې، **دریم** داچه الف اولام په «الرسل» کښې داستغراق دپاره دې. نومعنی به داشی چه مړه دی مخکښې دده نه تمام پیغمبران نو په هغوئ کښې عیسی ﷺ هم داخل دې لیکن مونږ وایو چه دا درې واړه خبرې ممنوع دی . «خلت» تیریدلو دوخت اود دور ته وائی په موت سره وی لکه اکثرپیغمبران. یا زمانه او دور یې تیرشوې وی

خومره نه وی لکه عیسی ﷺ ، اوپه قرآن پاك کښې ﴿وَإِذَا خَلَوْا إِلَىٰ شَيَاطِينِهِمْ﴾ ﴿وَإِذَا خَلَوْا عَضُّوا عَلَيْكُمُ الْأَنَامِلَ﴾ راغلیدی اومعنی ئی موت نه ده، اودویمه خبره هم مسلّمه نده بلکه کیدې شی چه ظرف دمابعد سره متعلق شی، یعنی وفات شویدی هغه رسولان چه قبل ؤو. اوحضرت عیسی ﷺ زمکې ته دوباره قیامت ته قریب به راځی، اودریمه خبره هم مسلّمه نده بلکه الف اولام په «الرسل» کښې دجنس دپاره دې ځکه مقصود ددې آیت نه دفع د استبعاد د قتل اودموت دنبی ﷺ ده او دا حاصلیږی په لام الجنس سره نوحاجت نشته دې استغراق ته، اوکه دا درې واړه خبرې ؤمنواو دآیت معنی داشی چه نبی ﷺ نه مخکښې تمام رسولان مړه دی نوپه زعم دقادیانانو خو قادیانی دجال هم رسول دې نو دې هم مخکښې تباه اوبرباد شویدې.

﴿أَفَإِن مَّاتَ﴾ همزه داستفهام انکاری دپاره ده اواستفهام انکاری په معنی د «لاینبغی» سره دې اودا همزه په حقیقت کښې داخله ده په «انقلبتم» باندې او فا په «فَإِنْ» کښې د عطف دپاره ده اومعطوف علیه ئی مقدردې ((ای تؤمنون حال حیوٰته فان مات اوقُتل اَانقلبتم)).

یعنې داسې هرګزمناسب نده، انقلاب علی الاعقاب (واپس کیدل په پندو) کنایه ده د ارتداد عن الاسلام یا عن الجهاد نه اومقصود د دینه انکار او زجر دې نه اِخبار دَ وقوع دَ ارتداد نه، او دَ «الشاکرین» نه مراد «الثابتین علی دین الاسلام» دی.

﴿وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ أَن تَمُوتَ﴾ دا ترغیب الی الجهاد دې یعنی مرګ په خپله نیټه باندې راځی بې نیټې څوك نه مړه کیږی اګرکه دمرګ اسباب ورته ډیرهم جمع شی نو دمرګ د یرې د وجه نه دجهادنه پاتې کیدل ندی پکار، ﴿كِتَابًا﴾ «ای کُتِبَ کتاباً مؤجلاً» ، ﴿وَمَن يُرِدْ ثَوَابَ الدُّنْيَا﴾ یعنی جهاد او هرعملِ خیر د آخرت په نیت سره پکار دې اوکه چا اراده وکړه په عملِ خیرسره بدله ددنیا نوهغه به ورته ملاؤشی که چرې الله ﷻ یې وه غواړی لیکن په آخرت کښې به ورته اجرنه ملاویږی اوڅوك چه اراده وکړی په عمل دخیر سره ثواب د آخرت نوهغه به مومی، ﴿وَسَنَجْزِي الشَّاكِرِينَ﴾ اوپه دنیا کښې به ورته هم بدله ملاویږی، د «شاکرین» نه مراد هغه څوك دی چه په دین باندې ثابت قدم وی اوعمل خیر په نیت د آخرت سره کوی اوپدې آیت کښې په هغه صحابؤ تعریض دې چه هغوئ دخپلې اجتهادی غلطی په وجه خپل ځائ پریښودلو او د مال غنیمت حاصلولو دپاره راغلل او دهغه صحابؤ مدح ده چه

په خپل ځای باندې قائم پاتې شوی ؤو .

| وَ كَاَيِّنْ مِّنْ نَّبِيٍّ قٰتَلَ ۙ مَعَهٗ رِبِّيُّوْنَ كَثِيْرٌ ۚ فَمَا وَهَنُوْا |
|---|
| او ډېر پیغمبران، جنګونه کړي دي ددوئ په ملګرتیا کښې، ډېرو خدای‌الله پرستو خلقو، پس نه ؤو سست شوي دوئ |
| لِمَآ اَصَابَهُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَمَا ضَعُفُوْا وَمَا اسْتَكَانُوْا ؕ |
| په سبب دهغه تکلیفونو سره چې دوئ ته رسیدلي ؤ په لاردالله کښې اونه ؤ کمزوري شوي اونه ؤ تیټ شوي دښمن ته |
| وَاللّٰهُ يُحِبُّ الصّٰبِرِيْنَ ۝ وَ مَا كَانَ قَوْلَهُمْ اِلَّآ اَنْ قَالُوْا رَبَّنَا |
| اوالله محبت کوي صبرکوونکوسره . اونده وینا[1] (دعا) ددوئ مګرداچې وئیل به دوئ اې زمونږ ربه |
| اغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَ اِسْرَافَنَا فِيْٓ اَمْرِنَا وَ ثَبِّتْ اَقْدَامَنَا وَانْصُرْنَا |
| اوبخښې مونږته ګناهونه زمونږاوزیاتې زمونږ په کار ددین کښې اوکلک کړې قدمونه زمونږ اوغلبه راکړې مونږ ته |
| عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ۝ فَاٰتٰىهُمُ اللّٰهُ ثَوَابَ الدُّنْيَا وَحُسْنَ ثَوَابِ الْاٰخِرَةِ ؕ وَاللّٰهُ يُحِبُّ |
| په قوم کافرانو پس ورکړه دوئ ته الله بدله ددنیا اوښائسته بدله دآخرت ، اوالله محبت کوي |
| الْمُحْسِنِيْنَ ۝ |
| دنېک کارکوونکو خلقوسره |

﴿وَكَاَيِّن مِّن نَّبِيٍّ قٰتَلَ مَعَهٗ رِبِّيُّونَ﴾ په دې آیت کښې ترغیب علی الجهاد دې اوتسلی ده مؤمنانو ته چه ستاسونه مخکښې ډېرنیکان بندګان دالله ﷻ د انبیاؤ سره ملګرې شوی ؤو دکفارو سره ئې جنګونه کړي ؤو اوپه هغوئ باندې ډېر زیات تکلیفونه اومصیبتونه راغلي ؤو خو دهغوئ په همتونو او ارادو کښې هیڅ قسم سستی نه وه راغلې اونه ئې کمزوری ښکاره کړې وه اونه دشمن ته تیټ شوی ؤو، نوتاسو خو خیرالامم یئ نو تاسوله زیات صبر او استقامت پکار دې، او دارنګه پدې آیت کښې تنبیه ده پدې خبره چه قتال د ډېرو انبیاؤ او دهغوئ دصالحانو ملګرو سنت دې، اوپدوئ کښې دا درې صفات سلبیه ؤو چه داحقیقت دصبر دې : نشتوالې دوهن اوضعف، او استکانت، «وهن» عجز او«جُبن» (بزدلی) ته وایی چه دتکالیفو او دمرګ دیرې د وجې نه وی او (ضعف) کمزوری دهمت اوسستی کول په وجه د

---

۱ - یعني کمزوری مهٔ کوئ بلکه دا دعا کوئ.

زخمي كيدلو د ملګرو سره او «استكانت» دشمن ته سرښكته كول او د دشمن تابع كيدلو ته وايي د آسانتيا او آرام او راحت دپاره. ﴿ٱسْتَكَانُواْ﴾ يا د سكون نه مشتق دي، نو «استكانوا» په وزن د «افتعلو» دي يا د «كون» نه مشتق دي نو بيا په وزن د «استفعلوا» دي يعنى سين زائد دي اوپه لفظ د ﴿وَكَأَيِّن﴾ كښې دوه قوله دى: يو دا چه دا اسم برائسه دي اونون پكښې اصلى دي. نو دا موافق دي د رسم الخط سره، دويم قول چه مشهوردي هغه دادي چه دا مركب دي دكاف تشبيه اود «اي» نه اومعنى ئى كثرت دي پشان دكم خبريه. نحويانو ويلى دى چه «كأين» دكم خبريه سره موافق دي په پنځه امورو كښې: ١- ابهام ٢- حاجت تميزته ٣- بناء ٤- لزوم دصدارت. يعنى په اول دكلام كښې راتلل ٥- افاده دتكثير ، اوكم استفهاميه اوخبريه دواړه راځي او «كأين» صرف خبرى راځي اوتميز ئى هميشه مجرور وى په مِنْ سره. په خلاف دَ «كَمْ» استفهاميه نه چه تميز دَ هغه منصوب هم راځي اوبناء پدې دويم قول باندې چه مشهوردي نون د «كأين» په حالت دوقف كښې حذف كول پكاردي دتلفظ اودكتابت دواړونه ځكه چه دا تنوين دي ليكن اثبات دنون په حالت د وقف كښې خلاف القياس دي اودصحابو په دوركښې په مصحف عثمانى كښې دغه شان دي. او ﴿مِّن نَّبِيٍّ﴾ تميز د «كأين» دي ﴿قَٰتَلَ مَعَهُۥ رِبِّيُّونَ﴾ ١- قاتل فعل دي اوفاعل ورله ضمير دي چه راجع دي نبى ﷺ يا «كأين» ته او «معه ربيون كثير» جمله حاليه ده او دا مجموعه خبر دي دكأين دپاره معنى ئى داده چه ډير انبياؤو چه قتال ئى كړې ؤو په داسې حال كښې چه دده سره ډير خدائى خلق موجودؤو ٢- يا «معه» ظرف حال دي او «ربيون» ئى فاعل دي. ٣- «قاتل» صفت د نبى دي اوخبر د «كأين» دپاره «معه ربيون» دي ٤- فاعل د قاتل «ربيون» دي او «معه» ظرف دي او دا مجموع خبرد «كأين» دپاره دي يعني ډير انبياء داسې وو چه د دوئ په معية او ملګرتيا كښې ډيرو نيكانو قتال كړې وو «ربيون»١- جمع د «رِبِّيٌّ» ده منسوب دي رب ته اوكسره پكښې خلاف القياس ده ٢- او بعضې وائى چه دا جمع د «ربة» ده بكسرالراء په معنى دجماعت سره. ضحاك وائى چه دَا هغه جماعت ته وائى چه زر ١٠٠٠ تنان وى. دغه شان دعبدالله بن مسعود ﷺ نه روايت دي چه د ﴿رِبِّيُّونَ﴾ معنى ده په زرګونو خلق، اودحسن اوابن عباس ﷺ نه روايت دي چه «داعلماء فقها دى»

﴿وَٱللَّهُ يُحِبُّ ٱلصَّٰبِرِينَ﴾ صابرين هغه دى چه دغه درې صفتونه پكښې موجود وى.

﴿وَمَا كَانَ قَوْلَهُمْ﴾ «قولهم» خبر د كان دي او ﴿إِلَّآ أَن قَالُواْ﴾ په تاويل دمفرد سره اسم د كان

دي او مراد دقول نه دعاء ده اوحصر اضافی دي، یعنی دمصائبو اوشدائدو په وخت کښې نه دوئ دمقابلې نه واپس شو. اونه ئی ددشمن اطاعت وکړو. اونه ئی څه مضطرب اقوال وویل لکه چه په جنګ احد کښې بعضو ویلی وو چه د ابوسفیان نه امن وغواړو او بعضو منافقینو وویل چه خپل زوړ دین ته واپس شئ او بعضې وویل چه مونږ په جبرسره جنګ له راوستلې شوی یو نوهغوئ «مخکینی پیغمبرانو» داسې خبرې نوې کړې بلکه هغوئ صرف داسې ویل چه ((رَبَّنَا اغْفِرْلَنَا)) اې الله زمونږ ګناهونه معاف کړه ؛ ((وَثَبِّتْ اَقْدَامَنَا)) اوزمونږ زړونه اوقدمونه مضبوط کړه اوزمونږ مدد وکړه، د ((ذُنُوْبَنَا)) نه صغایر اود ((وَاِسْرَافَنَا)) نه کبایر مراد دی، یا د ذنوب نه مراد عام ګناهونه دی اود اسراف نه دنبی د اطاعت نه تجاوزکول مراد دی، اوهرکله چه ګناهونه سبب دبندیدلو دنصرت الهی ؤو نو ددې وجې نه دعاء دمغفرت مقدمه شوه په دعاء دتثبیت اوپه دعاء دنصرت باندې

**فایده**: حصر په ﴿وَمَا كَانَ قَوْلَهُمْ إِلَّآ أَن قَالُوا۟﴾ کښې حصر اضافی دې په اضافت سره اضطراب اوترك دمقابلې اوترك د اطاعت ددشمن ته دې، نوپدې کښې اشاره ده دیته چه لکه څرنګه چه مخکنونیکانو په وخت دمصائبو اودمقابلې مع الكفار کښې التجاء الی الله کړې وه او دعاګانې ئی غوښتلې وې او اضطراب اوددشمن اطاعت ئی نه ؤو کړې. نو تاسو هم دغه شان وکړئ او دا مطلب ئی نه دې چه. دې مأثورې دعا نه علاوه نورې دعاګانې ئی نوې کړې. اونه په غیر ماثور «غیر منقول» الفاظو سره دعا بدعت دې اونه ورته په حصر مذکور کښې اشاره ده. بلکه دعا په هر لغت کښې او په هر لفظ سره چه وی بدعت ندې، البته دَ ماثورو الفاظو برکات او انوارات بل څرته نشی ملاویدې.

﴿فَـَٔاتَىٰهُمُ ٱللَّهُ ثَوَابَ ٱلدُّنْيَا﴾ «فا» په علتیة دلالت کوی یعنی دمجاهدینو صبراو دعاګانې سبب دې دپاره دفتح، د «ثواب الدنیا» نه مراد فتح اوغنیمت دې او د ثواب الاخرة نه مرادجنت اورضاء الهی ده.((وَحُسْنَ ثَوَابِ الْاٰخِرَةِ)) سره ئی حسن ذکرکړو «ای ثواب الاخرة الحسن» پدې کښې اشاره ده زیادت اوافضلیة ته.((وَاللهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ)) اومحسنین متبعین دسنت دی

| يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِن تُطِيعُوا۟ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ يَرُدُّوكُمْ عَلَىٰٓ أَعْقَٰبِكُمْ |
|---|
| اې ايمان والو! (١) كچېرې تاسو خبره اومنئ دكافرانو نوهغوئ به تاسو واپس اوګرځوي په پوندو ستاسو |
| فَتَنقَلِبُوا۟ خَٰسِرِينَ ۝ بَلِ ٱللَّهُ مَوْلَىٰكُمْ ۖ وَهُوَ خَيْرُ ٱلنَّٰصِرِينَ ۝ |
| نو واپس به شئ تاسو زيان مند . بلکه الله ستاسو مددګار دې، او هغه ډېر غوره دې د ټولو امداد کوونکو نه |

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِن تُطِيعُوا۟ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟﴾ په دې کښې حکم دې د ځان ساتلو د اطاعت د کافرانو نه ځکه چه دا سبب د مرتد کېدلو او د خسارې دې ليکن د دې نه مستثنیٰ دې اطاعت د هغه کافر چه لاربنودونکې وی، او اطاعت د هغه کافر چه د هغه په رائې کښې مصلحت ظاهر وی ځکه دا په حقيقت کښې اطاعت د کافر نه دې او دا رنګه منکوحه کتابيه چه مشوره د خير ورکوی . ﴿ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟﴾ هر کافر او منافق ته شامل دې خصوصاً هغه چه په جنګ احد کښې ئې مؤمنانو ته دعوت ورکؤو چه خپل مخکنی دين ته واپس شئ او هغه چه شکوک او شبهات ئې پيدا کول چه که دا نبی په حقه وې نو شکست به ورته نه ملاويده وغيره .

﴿بَلِ ٱللَّهُ مَوْلَىٰكُمْ﴾ يعنی د کافرانو اطاعت مکوئ بلکه د الله تعالیٰ اطاعت کوئ نو هغه به ستاسو نصرت او مدد کوی په سبب د اطاعت سره .

| سَنُلْقِى فِى قُلُوبِ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ٱلرُّعْبَ بِمَآ أَشْرَكُوا۟ بِٱللَّهِ مَا |
|---|
| خامخا اچوؤ مونږ به زړونو د کافرانو کښې هيبت په سبب د دې چې دوئ شريک جوړ کړېدې د الله سره هغه څوک |
| لَمْ يُنَزِّلْ بِهِۦ سُلْطَٰنًا ۖ وَمَأْوَىٰهُمُ ٱلنَّارُ ۚ وَبِئْسَ |
| چې نه دې رالېږلې الله د هغه د معبود والی او شرکت باندې هيڅ دليل، او ځائې د ورتللو د دوئ اور دې، او ډېر ناکاره ځائې |
| مَثْوَى ٱلظَّٰلِمِينَ ۝ وَلَقَدْ صَدَقَكُمُ ٱللَّهُ وَعْدَهُۥٓ إِذْ تَحُسُّونَهُم |
| د اوسېدلو د ظالمانو دې (جهنم) او په تحقيق (٢) سره پوره کړېده ستاسو سره الله خپله وعده کوم وخت چې تاسو قتل کول کافرانو لره |
| بِإِذْنِهِۦ ۖ حَتَّىٰٓ إِذَا فَشِلْتُمْ وَتَنَٰزَعْتُمْ فِى ٱلْأَمْرِ |
| په حکم د الله سره، تر هغې پورې چې کله کمزورې شوئ تاسو او جګړه او کړه تاسو په حکم د پيغمبر کښې |

١ - د کافرانو اطاعت مه کوئ بلکه د الله ﷻ اطاعت کوئ هغه په تاسو مهربان دې .

٢ - زجر ، او د جهاد متعلق د شبهې د ريم جواب چې دا اصل جواب دې .

| وَعَصَيْتُمْ | مِّنْ بَعْدِ | مَآ | اَرٰىكُمْ | مَّا | تُحِبُّوْنَ ؕ |
|---|---|---|---|---|---|
| اوخلاف مواوكړو دحكم دنبی نه روستودهغې نه چې اوخودلو الله تاسوته هغه څيزچې ستاسوخوښ وو | | | | | |
| مِنْكُمْ | مَّنْ | يُّرِيْدُ | الدُّنْيَا | وَ مِنْكُمْ | مَّنْ يُّرِيْدُ الْاٰخِرَةَ ۚ ثُمَّ |
| بعضې ستاسونه هغه وو چې طلب ئې كوؤددنيااوبعضې ستاسونه هغه وو چې طلب ئې كوؤدآخرت، بيا | | | | | |
| صَرَفَكُمْ | عَنْهُمْ | لِيَبْتَلِيَكُمْ ۚ | وَلَقَدْ | | |
| اوګرزول الله تاسولره دَ هغوئ نه ددې دپاره چې آزمېښت اوكړي ستاسو، اوقسم چې په تحقيق سره | | | | | |
| عَفَا عَنْكُمْ ؕ | وَاللّٰهُ ذُوْ فَضْلٍ | عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ ۝ | | | |
| معافي ئې كړېده تاسوته ، اوالله خاوند د فضل دې په مومنانوباندې | | | | | |

﴿سَنُلْقِي فِي قُلُوبِ الَّذِينَ﴾ نو د الله ﷻ دنصرت اومدد اثر به داوی چه كفاراګركه په ډير قوت اوطاقت كښې وی خوالله ﷻ به ئی په زړونو كښې سخته يره پيدا كړی اوستاسو دمقابلې همت به ئی نه وی لكه دجنګ احد دختميدلونه ورستو دكافرانو د دوباره حملې اراده وه ليكن درعب د وجه نه يې حمله ونكړه بلكه ستړی ستومانه زخمی مسلمانانو ددوئ تعاقب دحمراء الاسد پورې وكړو او دوئ وتښتيدل او دارنګه د اُحد نه ورستوكفار په هرجنګ كښې مغلوب شوی دی . ﴿بِمَا أَشْرَكُوا﴾ «باء» سببيه او «ما» مصدريه دې نوشرك سبب درعب دې «ما لم ينزل به» په «به» كښې مضاف مقدر دې «اى بمعبوديته واشراكه». او ﴿سُلْطَانًا﴾ حجت ته وائی، او دلته نفی دنزول دحجت وشوه اګركه مراد ترينه نفی دوجود ده نوپدې كښې اشاره ده ديته چه د اِثبات دحكم دپاره دليل منزله پكار دې نه خپل آراء او خواهشات. كماقال صاحب الروح.

**فايده** : غيرمقلدين وائی چه ددې آيت نه معلوميږی ابطال دتقليد ځكه چه پدې آيت كښې او دارنګه قرآن كريم هرځائ دشرك اودمشركانو په رد كښې عدم انزال ددليل ذكركړې دې نولكه څرنګه چه په شرك باندې دليل منزله نشته دې نوځكه باطل دې نودارنګه په تقليد باندې دليل نشته دې نو دا هم باطل دې، مونږ وايو چه د تقليد د اثبات دپاره صحيح دلائل موجود دی خوفائده ترينه هغه څوك اخستې شی چه پوهيږی اوضدتعصب نه كوی اودارنګه دليل منزله په حرمت اوابطال دتقليدهم نشته اوكه چرې موجووی نو، «هاتوابرهانكم ان كنتم

الصدقين»، نوحرمت دتقليدهم ثابت نشو. اوعدم دليل په تقليد «بناء على زعمكم» مشترك دي په مابين د اثبات دتقليد او د ابطال دتقليدكښې نو بيا تاسو قول په ابطال دتقليد ولې كوئ. او دارنګه عوام او اُميان دغيرمقلدينو بلكه اكثر نام نهاد ملايان ددوئ قدرت نه لرى دفهم دقرآن او حديث اونه داستنباط د حكم دنص نه. نو دغه شان خلق هم دخپلو مشرانو غير مقلدينو تقليدكوى اوخه دليل منزله ورسره نشته نوپكارده چه دا دې هم حرام شى.

﴿وَمَأْوَىٰهُمُ ٱلنَّارُ﴾ فرق په مابين د «ماوى» او «مثوى» كښې دادې چه «ماوٰى» ځائ د ورتللوته وايى او «مثوٰى» ځائ د اقامت ته وائى، ورتلل اول وى او ديره كيدل ورستو وى نو ددې وجه نه ماوٰى مقدم ذكرشو.

﴿وَلَقَدْ صَدَقَكُمُ ٱللَّهُ وَعْدَهُۥٓ﴾ پدې آيت كښې تفصيلى اوتحقيقى جواب ذكركيږى د هغې شبهې نه چه په رسالت باندې منافقانوكړې وه هغه داچه كه حضرت محمد ﷺ رسول بر حق وې نوپه اُحد كښې ئې ولى شكست خوړلو؟.

حضرت الشيخ رحمه الله فرمائى چه هركله دا شبه دمسلمانانوپه مخكښې وشوه نو دبعضې مسلمانانو په زړه كښې هم دا وسوسه پيداشوه چه واقعى الله جل جلاله خو زمونږسره دنصرت اومدد وعده كړې وه نومونږته ولې شكست ملاوشو، ((قال الناس من اصحابه من اين اصابناهذاوقدوعدناالله تعالى النصر)) «روح»، نو پدې آيت كښې ددې شبهې تفصيلى جواب وشو اومخكنى آياتونو كښې اجمالى جواب ؤو. ﴿صَدَقَكُمُ ٱللَّهُ﴾ صدقاً «راست گفتن» ته هم وائى او«راست كردن» ته هم وائى يعنى وعده پوره كول. دلته دا دويمه معنى مراد ده يعنې الله جل جلاله چه ستاسو سره كومه وعده دنصرت او دفتحې كړې وه نوهغه وعده ئى په احدكښې دجنګ په ابتداء كښې پوره كړه اومسلمانانو لره ئى په كفارو باندې غلبه وركړه او دكفارونه «۲۲» كسان قتل شو اوباقى وتښتيدل ليكن هركله چه درسول الله دقول خلاف وشوچه هغه غشى ويشتونكى جماعت په خپل ځائ قائم پاتې نه شو نوفتح په شكست سره بدله شوه. نو ددې شكست دپاره سبب مخالفت دحكم درسول الله ﷺ ؤو. نوپدې سره قدح په رسالت باندې نشى كيدې بلكه پدې سره تائيد د رسالت كيږى. نو دا جواب شو دشبهې نه هم اومسلمانانوته هم داخبره واضحه كړې شوه چه سبب ددې وقتى شكست دپاره ستاسوخپله

اجتهادی غلطی وه.

﴿إِذْ تَحُسُّونَهُم﴾ ظرف متعلق دې د ﴿صَدَقَكُمُ ٱللَّهُ﴾ سره یاد ﴿وَعْدَهُۥ﴾ سره او ((تحسونهم)) په معنی د ((تقتلونهم)) سره دې او ((حُس)) په اصل کښې دیته وائی چه حاسه ته آفت ورسی اوختمه ئی کړی، اوډیرکرته په معنی دقتل علی سبیل الاستیصال (بیخ کندی) سره راځی ﴿بِإِذْنِهِۦ﴾ ای بارادته ،وقضائه، اوتوفیقه. ﴿حَتَّىٰٓ إِذَا فَشِلْتُمْ﴾ ((حتی)) یاپه معنی د ((الی)) سره دې او دا متعلق دې په ((تحسونهم)) یا ((صدقکم)) پورې، یا ((حتی)) ابتدائیه دې او داخل دې په شرط باندې چه جزاء ئی محذوفه ده ((ای حتی اذافشلتم وتنازعتم وعصیتم منعکم نصره)) او ((ثم صرفکم)) پدغه محذوفه جزاء باندې عطف دې او ((فشل)) بزدلی او نامردی ته وائی خو دا معنی اراده کول په حق دصحابۆ کښې بې ادبی ده، نوددې وجه نه ددې ترجمه بعضې حضرات په ضعف درائی سره کوی، ((ای ضعفتم عقلاً بحیث مُلتم الی الغنیمة)) اوبعضې حضرات ئی ترجمه په ضعف دَ همت سره کوی.

﴿وَتَنَٰزَعْتُمْ فِى ٱلْأَمْرِ﴾ مراد ترینه اختلاف کول دی په امر د رسول الله ﷺ کښې چه بعضو ویل چه پدې مورچه باندې قائم پاتې کیږو او بعضو ویل چه د مال غنیمت اخستلو دپاره ځو ﴿وَعَصَيْتُم﴾ دنبی ﷺ د امرنه خلاف او نافرمانی مراد ده گویا کښې عصیان، تنازع اواختلاف پیداشو او دتنازع اواختلاف نه فشل یعنی بی همتی پیداشوه.

﴿مَّا تُحِبُّونَ﴾ ددینه مراد فتح اونصرت دې لکه په سورة صف کښې دی ﴿وَأُخْرَىٰ تُحِبُّونَهَا ۖ نَصْرٌ مِّنَ ٱللَّهِ وَفَتْحٌ قَرِيبٌ ۗ﴾ چه ددینه واضح طورباندې معلومیږی چه دصحابۆ محبت دنصرت الهی اوفتح سره ؤو چه پدې سره غلبه دحق راځی، اوددینه دنیا مراد نده ځکه د دنیا سره ئی لفظ دمحبت ندې ذکرکړې بلکه ددنیا سره ئی صرف اراده ذکرکړې ده او ﴿مِنكُم مَّن يُرِيدُ ٱلدُّنْيَا﴾ ئی فرمایلی دی ((یحب الدنیا)) ئی ندی فرمایلی. ددینه هغه کسان مراد دی چه دمال غنیمت دجمع کولو دپاره تلی ؤو ﴿وَمِنكُم مَّن يُرِيدُ ٱلْءَاخِرَةَ﴾ ((ای ثواب الاخرة)) دینه هغه کسان مراد دی چه په خپل ځائ قائم پاتې شوی ؤو.

﴿ثُمَّ صَرَفَكُمْ﴾ داعطف دې په مقدره جزاء باندې ﴿لِيَبْتَلِيَكُمْ﴾ یعنې دا وقتی اوعرضی

شکست ستاسو د ذلیل کولو او رسوا کولودپاره نه ؤو، تاسو عند الله قدرمند ،عزتمندئی ، بلکه پدې وقتی شکست سره ستاسو ابتلاء اواصلاح مقصود وه او هغه دا چه تاسو به په مصائبو باندې صبرکوئ اوپه میدان جهاد کښې به کلك پاتی کیږئ او دملګرو دقتلیدلو او زخمی کیدلوسره به حوصله نه خرابوئ . ﴿ وَلَقَدْ عَفَا عَنكُمْ ﴾ دصحابه کرامو‌ رضی الله عنهم نه اجتهادی غلطی وشوه نو الله ﷻ دوئ ته په تیرشوی آیاتونوکښې لږشان زورنه وکړه اوپدې آیت کښې ورته دمعافی اعلان کوی خوپه ډیر تاکید سره، «قد» دتحقیق دپاره دې، اولام د تاکید دپاره دې، دیته لام موطه للقسم ویلې شی ځکه دې تاکید دقسم مقدره کوی «ای والله لقد عفا» نو الله ﷻ په خپل ذات قسم خوری چه ځما دې په خپل ذات قسم وی چه خامخا په تحقیق سره ما تاسوته معافی کړې ده نو دصحابؤ دغلطیانو معافی په نص قطعی سره ثابته ده ، اوپه حدیث کښې په طاعنینو دصحابؤ باندې لعنت وارد دې .

| |
|---|
| اِذْ تُصْعِدُوْنَ وَ لَا تَلْوٗنَ عَلٰۤی اَحَدٍ وَّالرَّسُوْلُ يَدْعُوْكُمْ فِيْۤ اُخْرٰىكُمْ |
| کوم وخت چې تاسولرې تللئ په تښتیدو کښې اوشاته نه کتل هیچاته، اورسول ﷺ بللئ تاسوروستو ستاسونه |
| فَاَثَابَكُمْ غَمًّۢا بِغَمٍّ لِّكَيْلَا تَحْزَنُوْا عَلٰى مَا |
| پس بدل ئې درکړوتاسوته غم دپاسه غم، دانصیحت درکول ددې دپاره دي چې تاسوغمژن نشئ په هغه څیزپسې |
| فَاتَكُمْ وَ لَا مَاۤ اَصَابَكُمْ ؕ وَاللّٰهُ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ۝ ثُمَّ اَنْزَلَ |
| چې فوت شوستاسونه، اونه په هغه څه چه اورسیدو تاسوته، اوالله خبردار دې په هغه څه چې تاسوئې کوئ . بیا نازل کړو الله |
| عَلَيْكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ الْغَمِّ اَمَنَةً نُّعَاسًا يَّغْشٰى طَآىِٕفَةً مِّنْكُمْ ۙ وَطَآىِٕفَةٌ |
| په تاسوباندې روستودخفګان نه امن چې پرکالې وه، پټوؤهغې یوډله ستاسونه، اویوډله بله داسې وه([1]) |
| قَدْ اَهَمَّتْهُمْ اَنْفُسُهُمْ يَظُنُّوْنَ بِاللّٰهِ غَيْرَ الْحَقِّ ظَنَّ الْجَاهِلِيَّةِ ؕ يَقُوْلُوْنَ |
| چې فکرمندکړې وؤهغوئ لره خپلونفسونو، ګمان ئې کوؤ په الله باندې ګمان ناحق دجاهلیت والوپشان، اووئیل دوئ([2]) |

١ - زجر منافقینوته.

٢ - شکوه.

| |
|---|
| هَلْ لَّنَا مِنَ الْاَمْرِ مِنْ شَیْءٍ ؕ قُلْ اِنَّ الْاَمْرَ كُلَّهٗ لِلّٰهِ ؕ یُخْفُوْنَ |
| چې آیاشته مونږ لره دامدادنه څۀ حصه ، اووایه[۱] چې کارتول(امدادکول)دالله پۀ اختیار کښې دې، پټ ساتي دوئ |
| فِیْۤ اَنْفُسِهِمْ مَّا لَا یُبْدُوْنَ لَكَ ؕ یَقُوْلُوْنَ لَوْ كَانَ لَنَا مِنَ الْاَمْرِ شَیْءٌ |
| پخپلونفسونوکښې هغه چې نۀ ئې ښکاره کوي تاتۀ،دوئ وائ[۲] کچرې وې مونږ لره دَ کارنۀ (اختیارنۀ) څۀ څیز، |
| مَّا قُتِلْنَا هٰهُنَا ؕ قُلْ لَّوْ كُنْتُمْ فِیْ بُیُوْتِكُمْ لَبَرَزَ |
| نومونږ بۀ نۀ وې قتل شوې(یعني زمونږخپلوان)دلته، تۀ اووایه[۳]کچرې وې تاسوپۀ کورونوخپلو کښې نوضروربۀ بهرراوتلې وې |
| الَّذِیْنَ كُتِبَ عَلَیْهِمُ الْقَتْلُ اِلٰى مَضَاجِعِهِمْ ۚ وَ لِیَبْتَلِیَ اللّٰهُ |
| هغه کسان چې مقرر شوې ؤ پۀ هغوئ باندې قتل، خائې دغورزیدلواوقتلیدوخپلوتۀ، اودپاره ددې چې آزمښت اوکړي الله |
| مَا فِیْ صُدُوْرِكُمْ وَ لِیُمَحِّصَ مَا فِیْ قُلُوْبِكُمْ ؕ |
| دهغه څۀ (نفاق اخلاص) چې پۀ سینوستاسوکښې دې، اوصفا اوپاک کړي[۴] هغه څۀ (ایمان) چې پۀ زړونو ستاسوکښې دي |
| وَاللّٰهُ عَلِیْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ۝ اِنَّ الَّذِیْنَ تَوَلَّوْا مِنْكُمْ |
| اوالله عالم دې پۀ هغه خبروچې پۀ سینو کښې دي . بېشکه هغه کسان چې واپس گرځېدلي وؤ ستاسونۀ |
| یَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعٰنِ ۙ اِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ الشَّیْطٰنُ بِبَعْضِ مَا |
| دمیدان نۀ پۀ هغه ورځ چې مخامخ شوې دوۀ ډلې، نوبېشکه خویولي دي دوئ لره شېطان پۀ سبب دهغې |
| كَسَبُوْا ۚ وَلَقَدْ عَفَا اللّٰهُ عَنْهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ حَلِیْمٌ ۝ |
| عملونو چې دوئ کړي دي، اوقسم چې پۀ تحقیق سره معافي کړېده الله دوئ تۀ بېشکه الله بخښونکې صبرناک دې |

﴿إِذْ تُصْعِدُونَ﴾ دا ظرف متعلق دې د (صرفکم) سره یعنی الله ﷻ ستاسونه خپل مدد منع کړو او تاسوئی ددشمن نه واړولئ کله چه تاسو تښتیدلئ اوپه غرونو ،میرو باندې ختلئ او د وارخطائی دوجهِ نه مو شا ته نه کتل او رسول الله ﷺ تاسو د وروستونه بللئ او ویل ئی

۱ - جواب شکوه.

۲ - شکوه.

۳ - جواب شکوه.

۴ - دویمه ترجمه : او چه ښکاره کړی خلقوته.

چه ((الیّ عبادالله ، الیّ عبادالله من یکرّ فله الجنة)) ،خو تاسو دا آواز نه آوریده. بیا چه کله دکعب بن مالک ﷺ نظر په رسول الله ﷺ ولګیده اوپه زوره ئی آوازوکړو نو دهغې نه ورستو بیا صحابه کرام ﷺ دنبی ﷺ خنګ ته راجمع شو اوکفار مرعوب شو او وتښتیدل

**فایده** ﴿إِذْ تُصْعِدُونَ﴾ په ضمه د تاء اوکسرې دعین سره دباب افعال نه مزید دې د اصعاد نه مشتق دې اوپه فتحه سره مجرد دې دصعود نه مشتق دې نو بعضې اهل لغت وائی چه د مجرد اومزید په معنی کښې څه فرق نشته دې، او اکثر وایئ چه فرق پکښې شته دې اوهغه دادې چه (اصعاد) ((ابعاد)) لرې تلل په همواره زمکه یاکندو اودرو کښې)) ته وائی. او (صعود) ذهاب الی الفوق ،په بره تللوته وائی، دلته دواړه معانی مرادکیدې شی. ((تلوون)) د ((لیّ )) نه مشتق دې ورستوطرف ته کتلوته وائی دا کنایه ده د التفات نه .

﴿فَأَثَابَكُمْ غَمًّا بِغَمٍّ﴾ دا عطف دې په (صرفکم) باندې اوفاعل د ﴿فَأَثَابَكُم﴾ دپاره ضمیر دې چه راجع دې لفظ د ((الله)) ته، اوغم ته ئی ثواب مجازاً ویلی دی، مراد ترینه بدله ده ، یایی تهکمًا ویلی دی، یا دپاره داشارې دیته چه که فرارنه وې نو دا به ثواب وې او ((باء)) په بغم کښې یا دمصاحبت دپاره ده چه په معنی دمع سره ده اومراد ددینه کثرت دغمونو دې چه هغه غلبه دلښکر دکفارو او دشکست دمؤمنانو اوقتلیدل اوزخمی کیدل د دوئ او اوریدل د خبر دقتل دنبی ﷺ دی ، نو د ((فاثابکم غمًا)) نه مراد غم عظیم دې چه اوریدل دقتل دنبی ﷺ دی ،اود ((بغم)) نه دغه نورغمونه مراد دی، یا بالعکس ،یا ((باء)) په ((بغم)) کښې دسببیت دپاره ده، یعنی الله ﷻ تاسوته غم درکړوپه سبب دخفه کولوستاسو رسول ﷺ لره په مخالفت کولوسره دحکم دهغه نه. ﴿لِكَيْلَا تَحْزَنُوا﴾ په ظاهره کښې دا متعلق دې د ((اثابکم)) سره، لیکن داپه ظاهره کښې غیر مربوط معلومیږی ځکه ((اثابة)) دغم (یعنی غم په بدله کښې ورکول) سبب دحزن دپاره دې نه دلا تحزنوا دپاره، نوددې دپاره ډیرتوجیهات دی

١- حضرت الشیخ ﷫فرمائی چه دا متعلق دې دمحذوف سره ((ای اخبرکم بذالك المذکور لکیلاتحزنوا)) اوحضرت شاه ولی الله ﷫ وائی (این پند دادن برائ آن است که تا اندوهناک نشوید) یعنی داغم رسیدل تاسوته یونصیحت دې چه یاد لرئ چه ددینه ورستو بیا چرته دنبی ﷺ دحکم نه خلاف ونکړئ اګرکه ستاسونه منفعت، غنیمت وغیره فوت کیږی یا درته څه تکلیف اومصیبت ،بلاء په مخ درزی ۲- بعضې وائی چه ((لا)) زائد دې ۳- بعضې

وائی چه دغم نه، غم عظیم مراد دی چه خبر داوریدلو دقتل دنبی ﷺ دي اوځوك چه لوئ غم وه وینی نو په وړو غمونو باندې راضی شی، اوغمژن پرې نوی، نودنبی ﷺ دشهادت خبرداسې غم ؤو چه ددې دشدت نه مخکښنی او وروستنی غمونه ټول ختم شو.

﴿وَٱللَّهُ خَبِيرٌۢ بِمَا تَعۡمَلُونَ﴾ الله ﷻ ستاسو دعملونو نه خبردار دې نو د هغې مطابق ستاسو سره معامله کوی ﴿ثُمَّ أَنزَلَ عَلَيۡكُم﴾ داعطف دې په ﴿فَأَثَٰبَكُمۡ غَمَّۢا﴾ باندې اوپدې کښې بیان د ازالې دغم دې ﴿أَمَنَةً﴾ مفعول د انزل دې او ﴿نُّعَاسًا﴾ ترینه بدل دې (نعاس) معمولی خوب ته وائی چه اثرئی په سترګو راشی یعنی (پرنا) اود ((امنةً)) بالتاء او ((امن)) بدون التاء په مابین کښې فرق نشته دې اوبعضې ئی فرق کوی چه ((امنةً)) هغه دې چه خوف زائل شی اوسبب ئی موجود وی لکه په میدان اُحد کښې او دا مقام دلوئ اعزازدې، او((امن)) دیته وائی چه خوف زائل شی سره دزوال دسبب نه (قرطبی) ، په جنګ اُحد کښې په میدان جهادکښې په مؤمنانو باندې الله ﷻ داسې خوب اوپرکالی راوسته چه عین په ولاړې پرکاله ؤو.

حضرت ابوطلحه ﷺ وائی چه په میدان جنګ کی په ما باندې داسې خوب غالب شوچه زما دلاسه توره ارتاو شوه اوبیا مې را واخسته او بیا به ارتاوشوه نو بیا به مې راواخسته داسې کارځو وارې وشو، او دا یو حسی اثر دهغه باطنی اطمینان اودسکون ؤو چه دداسې هنګامې اوشورماشور په حالت کښې دمؤمنانوپه زړونوباندې محض دالله ﷻ دفضل اورحمت سره واردشو ((وهذاعادة الله مع المؤمنين جعل النعاس فى الحرب علامة للظفروقدوقع كذالك لعلى ﷺ فى صفين وهومن الواردات الرحمانية والسكينة الالهية)) (روح)، او ورستو ددې (پرنا) نه دمؤمنانو دزړونونه ددشمن خوف اویره بالکل ختمه شوه اوتشویش او اضطراب ئی ختم شو نوګویاکښې دا پرکالی یو بشارت ؤو چه دیرې، پریشانی اودتشویق وخت تیرشواوس مطمئن اوسئ اوخپله فریضه اداء کړئ نو صحابه کرام ﷺ فوراً دنبی ﷺ خواته راجمع شو او د دویم جنګ محاذئی جوړکړو او دشمن په تښتیدلو مجبوره شو.

﴿يَغۡشَىٰ طَآئِفَةً﴾ ضمیر د ((یغشی)) نعاس ته راجع دې او د ((طائفة)) نه مراد تمام مخلصین مؤمنان دی یعنی پټولونعاس، اوغالب ؤو نعاس په مؤمنانوباندې اودا امن او نعاس صرف په مؤمنانو باندې ؤو اوهرچه منافقان ؤو نوهغوئ په غم اوپریشانی کښې ؤو ﴿وَطَآئِفَةٌ﴾ ددینه مراد منافقان دی ﴿قَدۡ أَهَمَّتۡهُمۡ﴾ یعنې په غم کښې اچولې ؤو دوئ لره خپلو نفسونو یعنې دوئ صرف دخپلوځانونوپه غم کښې وو چه کفار موقتل نه کړی اوددوئ سره نه داسلام

فکرؤو اونه دنبی ﷺ اونه دمسلمانانوځکه چه دوئ میدان جهادته دمال غنیمت په طمع راغلی ؤو نه داسلام په خاطر، او ددې وجې نه الله ﷻ دوئ محروم کړل دنعمت د امن نه نو دوئ پریشان ؤو اونعاس (پرکالی) پرې نه وه راغلې.

﴿يَظُنُّونَ بِٱللَّهِ﴾ دا بیان د اوصافو دمنافقینو دې چه دوئ ګمان کولو په الله ﷻ باندې ګمان ناحق ﴿غَيْرَ ٱلْحَقِّ﴾ په دې کښې مضاف مقدر دې (ای غیرظن الحق). حق ګمان په الله باندې امید اوګمان دنصرت دې اوناحق ګمان، ګمان د وعدې نه پوره کولو اودنبی ﷺ اودمؤمنانوسره دمدد او دنصرت نه کولو دې یا ګمان ددین دختمیدلودې.

﴿ظَنَّ ٱلْجَٰهِلِيَّةِ﴾ دا بدل دې دغیرالحق یا مفعول مطلق دې ((ای یظنون ظناً کظن الملة الجاهلیة)) یا ((الفرقة الجاهلیة)). ﴿يَقُولُونَ هَل لَّنَا مِنَ ٱلْأَمْرِ مِن شَيْءٍ﴾ دا جمله تفسیر د «یظنون» دې چه دیظنون معنی داده چه دوئ ویل علی سبیل الانکار یو بل ته چه آیا شته دې مونږلره د امر دنصرت اوغلبې نه څه شې، یعنی نشته. اوغرض ددینه طعن کول ؤو په نبوت د رسول الله باندې، یا استفهام په خپله معنی حقیقی سره دې، یعنی دوئ تپوس کوی چه آیا الله ﷻ به زمونږسره مدد وکړی اوکه نه. نو بناء په اوله توجیه باندې ددوئ دظن رد وشو پدې سره چه ﴿قُلْ إِنَّ ٱلْأَمْرَ كُلَّهُۥ لِلَّهِ﴾ یعنې اختیاردنصرت صرف الله سره دې اوهغه ئی حقدارته ورکوی په مناسب وقت کښې اوکه تاخیر پکښې وشی نوپه هغې کښې به حکمت وی اوپه دویمه توجیه باندې دا جواب دتپوس ددوئ دې، یعنې معامله دنصرت اودفتح دالله ﷻ په اختیارکښې ده نوهرکله چه ئی دخپل رسول ﷺ اودمؤمنانو سره وعده کړې ده نوضرور به ئی پوره کوی.

﴿يُخْفُونَ فِىٓ أَنفُسِهِم﴾ یعنې په ظاهرکښې دوئ نیازمندانه، مؤدبانه اندازکښې تپوس کوی خو در حقیقت دا محض منافقانه سوالات دی چه دوئ ئی په خپل زړه کښې پټ ساتی تا ته ئی نه ښکاره کوی چه دهغې بیان دادې: ﴿ يَقُولُونَ لَوْ كَانَ لَنَا مِنَ الأَمْرِ﴾ یعنې منافقان یوبل ته وائی چه که چرې دالله ﷻ دطرف نه زمونږسره دنصرت و عده وې اوحضرت محمد ﷺ په ربښتیانبی وې نو زمونږ عزیزان، اقارب به دلته نه وې قتل شوی، نو دا فی الحقیقت تکذیب دحضور ﷺ دې او بعضې مفسرینود «الامر» نه تدبیر اومشوره مراد کړیده یعنې که چرې زمونږ مشوره ئی منلې وې نو دا قتل به نوې شوې.

﴿قُل لَّوْ كُنتُمْ فِي بُيُوتِكُمْ﴾ دا دمنافقينو دقول رد دې يعني دمرګ دپاره چه كوم وخت دالله ﷻ په علم ازلي كښې مقرر دې نوهغه په تدبير او احتياط سره نه بدليږي نوكه تاسوجهاد له نه راتلئ نو بيا به هم هغه خلق چه دهغوئ قتل مقرروؤ هغوئ به دخپل قتليدلو ځائ ته راوتلي وائ اوقتل شوي به وې ځكه چه دالله تعالى حكم تكويني نشي بدليدلې.

﴿وَلِيَبْتَلِيَ اللَّهُ﴾ «واو» عاطفه دې اومعطوف عليه ئې محذوف دې «اى فعل ذالك لمصالح جمة للابتلاء والتمحيص» يعنې په احد كښې وقتي شكست كښې ډيرمصلحتونه ؤو. يو دا چه ﴿وَلِيَبْتَلِيَ اللَّهُ مَا فِي صُدُورِكُمْ﴾ يعنې چه ستاسې دصبر او استقلال او د اخلاص اودنفاق امتحان وشي اوبل دا چه ﴿وَلِيُمَحِّصَ﴾ تمحيص صفاكولوته وائي دخيرى نه يعنى مؤمنان دګناه دخيرى نه پاك شي ﴿وَاللَّهُ عَلِيمٌ﴾ يعنې دغه مخكښې كارونه تاسوته دښكاره كولودپاره ؤشو او الله ﷻ خو بغير ددې نه عالم دې.

**فايده**: پدې آيت كښې ټول حروف هجاء د«الف» نه تر «يا» پورې مكمل راغلى دى، والله اعلم باسرار كلامه، او ويلى شويدى چه ددې تلاوت ددفع دشر داعداؤ دپاره مفيد دې.

﴿إِنَّ الَّذِينَ تَوَلَّوْا مِنكُمْ﴾ پدې آيت كښې سبب دهزيمت بيانيږي چه هغه دادې ﴿بِبَعْضِ مَا كَسَبُوا﴾ مراد ترينه پرېښودل د مورچې دى يا بعضې نورې غلطئ دى ځكه يوه ګناه دبل ګناه دپاره سبب ګرځي اويوه نيكي دبلې نيكي دپاره ذريعه ګرځي.

يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوا لَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ كَفَرُوا وَقَالُوا لِإِخْوَانِهِمْ إِذَا

اې ايمان والو ! مه كېږئ پشان دهغه خلقو چې كفرئې كړېدې او وائ پۀ حق دخپلو نسبى رونړو كښې، كله

ضَرَبُوا فِي الْأَرْضِ أَوْ كَانُوا غُزًّى لَّوْ كَانُوا عِندَنَا مَا مَاتُوا

چې هغوئ سفراوكړي پۀ زمكه كښې. ياوې هغوئ غزاكوونكي. كچرې وې دوئ زمونږ پۀ خوا كښې نونۀ بۀ مړكېدل

وَمَا قُتِلُوا ۚ لِيَجْعَلَ اللَّهُ ذَٰلِكَ حَسْرَةً فِي قُلُوبِهِمْ ۗ وَاللَّهُ يُحْيِي

اونه به وژل كيدل، دپاره ددې چې اوګرځوي الله داخبره افسوس پۀ زړونو ددوئ كښې، اوالله ژوندي كول كوي

وَيُمِيتُ ۗ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿١٥٦﴾ وَلَئِن قُتِلْتُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوْ مُتُّمْ

اومړۀ كول كوي. اوالله ستاسوعملونۀويني اوكچرې قتل كړې شوئ تاسوپۀ لار دالله كښې يامړۀ شوئ

| لَمَغْفِرَةٌ | مِّنَ | اللهِ | وَ رَحْمَةٌ | خَيْرٌ | مِّمَّا | يَجْمَعُوْنَ۝ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| نو خامخا بخښنه د طرفه دالله نه اوثوابونه ډېرغوره دی دهغه مالونو دولتونونه چې دوئ ئې جمع کوي | | | | | | |
| وَلَئِنْ مُّتُّمْ اَوْ قُتِلْتُمْ لَاِ اِلَى اللهِ تُحْشَرُوْنَ۝ | | | | | | |
| اوکه مړۀ شوئ تاسو یا قتل کړې شوئ نو ضرور به الله ته جمع کړې شئ. | | | | | | |

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَكُونُواْ كَٱلَّذِينَ كَفَرُواْ﴾ د «کالذین کفروا» نه مراد منافقین دی، پدې آیت کښې الله ﷻ مؤمنانو ته حکم کوی چه تاسو دمنافقانو په شان مه کیږئ چه ددوئ خصلت اوعادت دادې چه کله څوک دالله ﷻ په لاره کښې دیونیك کار دپاره لاړشي اومړشي یا جهاد ته لاړشي اوشهید شی نو دوئ دهغه په حق کښې وائی چه که دې سفرله نه وې تلې اوپه جهادکښې نوې شریك شوې نو نه به وې قتل شوې نو دوئ په تقدیر باندې ایمان نه لری نو الله ﷻ مؤمنانو ته فرمائی چه تاسو دمنافقانو پشان مه کیږئ که څوك دالله ﷻ لاره کښې شهید شی نو تاسو داسې مه وائی چه «لو کانوا عندنا ماماتوا» په حدیث کښې راغلیدی «ایاك واللو» په بل روایت کښې دی چه «لومن الشیطن» په بل روایت کښې دی «فانّ لوتفتح ابواب الشر».

مراد ددینه منع د استعمال د(لو) ده په مقابله دتقدیر کښې، دمطلق استعمال د(لو) نه منع مراد نده. ﴿وَقَالُواْ لِإِخْوَٰنِهِمْ﴾ «ای فی حق اخوانهم» دلته نسبی اخوت مراد دې یا اعتقادی اخوت مراد دې یعنی نفاق، ﴿إِذَا ضَرَبُواْ فِي ٱلْأَرْضِ﴾ «ضرب فی لارض» نه مراد سفر دې او دا ظرف دې د «قالوا» دپاره، **سوال** وارديږی چه (اذ) د استقبال دپاره راځی او (قالوا) خوصیغه دماضی ده نو (ضربوا) د «قالوا» دپاره ظرف څرنګه صحیح کیدې شی؟ **جواب** دادې چه اذا دلته دمجرد وقت دپاره دې د استقبال معنی په کښې ملحوظه نده، یا د استمرار دپاره دې لکه پدې قول دالله ﷻ کښې ﴿وَإِذَا لَقُواْ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ﴾ کښې اذا د استمرار دپاره دې نو ماضی ته هم شامل دې نو ظرفیه ئی صحیح دې او ﴿أَوْ كَانُواْ غُزًّى﴾ په اصل کښې «غزّیً» وو او دا جمع تکسیره د غازیٌ ده لکه رکعٌ جمع تکسیره د راکع ده اوسُجدٌ جمع تکسیره دساجد او صُوَّمَ جمع تکسیر د صائم ده، دغه شان نُوّم اونائم اوغیب اوغائب دی.

﴿لِيَجْعَلَ ٱللَّهُ ذَٰلِكَ حَسْرَةً﴾ دا (لام) دعلت دې اود(قالوا) سره متعلق دې یعنی دا قول ددې دپاره کوی چه دمسلمانانو په زړونو کښې حسرت او افسوس پیداشی چه کاشکې جنګ ته نوې تللی نوقتل شوی به نه وې. اودا به ذریعه جوړه شی په آینده کښې دجهاد نه دپاتې

کيدلو دپاره، يا متعلق دې دمقدرسره «اى القى الله ذالك الاعتقادفى قلوبهم ليجعل» يعنې الله ﷻ دمنافقانو زړه کښې دغه اعتقاد واچوؤ ددې دپاره چه دوئ دحسرت اوافسوس په اور وسوزوى يا دا «لام» دعاقبت دې متعلق دې د «قالوا» سره او «ذلك» اشاره ده قول ددوئ ته يعنې ددوئ ددغه قول انجام صرف دادې چه دوئ ته حسرت اوندامت ملاؤشو اودجهاد نه پرې خوك نه منع کيږى چه ددوئ مقصدؤو. ﴿وَاللَّهُ يُحْيِي وَيُمِيتُ﴾ يعنې دمرګ دسفر دوجهِ نه يا جهادته دتللو دوجهِ نه ندې بلکه موت د الله تعالىﷻ په تقديرسره دې، ډيرکرته مقيم کس مرشى اومسافريامجاهدجوندې پاتې شى.

﴿وَلَئِن قُتِلْتُمْ﴾ جزاء دشرط دپاره مقدره ده چه «فلاتحزنوا» يا «ليغفرن لكم» دې، منافقانو دغه قول ددې دپاره کولو چه خلق دجهاد نه منع شى نو ددغه قول د رد کولونه بعد دا ترغيب دې چه که تاسوجهاد ته لاړئ اوقتل شوئ يا په مرض وغيره سره مړه شوئ نومه خفه کيږئ ځکه چه پدوې سره به ستاسومغفرت وشى او دالله ﷻ دلوئ رحمت مستحق به شئ اودا ډير غوره دې ددينه چه تاسو دجهاد نه پاتې شئ او ددنيا مادى سامان جمع کړئ.

﴿وَلَئِن مُّتُّمْ﴾ يعنې که بالفرض تاسوسفر يا جهاد ته لاړنه شئ اوفى الحال د مرګ نه بچ شئ نو دا خو ضرورى ده چه هرکله چه وى خوتاسوبه مړه کيږئ يا به قتليږئ او دالله ﷻ په مخ کښې به حاضريږئ نو بيابهٔ پوهه شئ چه بختورهغه ؤو چه دالله ﷻ په لاره کښې ورته مرګ راغلې ؤو.

| |
|---|
| فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ اللَّهِ لِنتَ لَهُمْ ۖ وَلَوْ كُنتَ فَظًّا غَلِيظَ الْقَلْبِ لَانفَضُّوا |
| پس پهٔ سبب درحمت دالله سره نرم ئې ته دوئ ته، اوکه وې ته بدژبې، سخت زړې نوخامخا به دوئ خواره شوى وؤ |
| مِنْ حَوْلِكَ ۖ فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاسْتَغْفِرْ لَهُمْ وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ ۖ فَإِذَا |
| ستادچاپېره نهٔ، پس ته دوئ معاف کړه اوبخښنه غواړه ددوئ دپاره اومشورې اخله ددوئ نهٔ په کار کښې، پس کله |
| عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَوَكِّلِينَ ﴿۱۵۹﴾ |
| چې تهٔ قصداوکړې دکولو دکار نو بيا توکل کوه په الله باندې، بېشکه الله محبت کوى دتوکل کوؤنکو سره |

﴿فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ اللَّهِ لِنتَ لَهُمْ﴾ دصحابوؤ رضي الله عنهم نه په جنګ احدکښې غلطى وشوه چه هغه سبب وګرزيده دوقتى شکست دپاره نوالله ﷻ ددوئ ددغه غلطى د اظهارنه بعد دوه ځله په

قسمیه اندازکښې هغوئ ته دمعافی اعلان په خپل کتاب کښې وکړو اونبی ﷺ هم ددوئ سره ډیر مشفقانه سلوك وکړو اوهغوئ ته ئی زجر ، تعنیف ونه کړو نوپه دوې باندې الله ﷻ دنبی ﷺ مدح اوتعریف وکړو نومعلومه شوه چه الله ﷻ دهغه چانه راضی کیږی چه دصحابؤ سره محبت لری اودهغوئ قدراوعظمت ئی په زړه کښې وی، په «فبما» کښې «با» د سببیة ده او «ما» زائده دې دتاکید دپاره یعنی ستا دا ښکلې سلوك او نرمی دصحابؤسره دالله ﷻ دمهربانی اودهغه دتوفیق اثر دې اوکه چرې ته سخت زبان، سخت زړې شوې وې نودوئ به ستانه تښتیدلی ؤو. اوستا د صحبت نه به ئی نفرت کړې وې ستا د ډیرخاسته اخلاقو یو اثر اوفائده داده چه دوئ ستانه په هیڅ موقعه کښې نه جداکیږی اگرکه ډیره سخته موقعه وی، نومعلومه شوه چه ښه اخلاق الله ﷻ ته ډیرمحبوب دی اود ښو اخلاقو دپاره نرمی د ژبې اونرمی دزړه پکار ده : ﴿رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ﴾ . ﴿فَاعْفُ عَنْهُمْ﴾ یعنی په آینده کښې هم ددوئ سره داسې سلوك ساته چه معافی کوه دوئ ته، ددې تعلق دهغه حقوقو سره دې چه دنبی ﷺ سره تعلق لری ﴿وَاسْتَغْفِرْ لَهُمْ﴾ ددې تعلق دحقوق الله سره دې ﴿وَشَاوِرْهُمْ﴾ یعنی ددوئ دتالیف قلب دپاره ددوئ نه مشوره اخله په امورو دجنگ کښې او یا دهغه امورپه باره کښې چه په هغې وحی نه وی راغلې.

﴿فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ﴾ دمشورې نه بعدچه ستا زړه په یوخبره کلك شی نوپدغه کارکښې دکامیابی دپاره اعتماد صرف په الله ﷻ باندې کوه نه په اسبابو او ذرائعواومشورې باندې ځکه چه په اسبابو کښې تاثیر پیداکول صرف دالله ﷻ کاردې اوپه مشوره اوتدبیرونوکښې کامیابی ورکول صرف دالله ﷻ په اختیارکښې دی اوکوم خلق چه داسبابو مهیا کولونه بعد په اسبابو اعتماد نه کوی اوصرف په الله ﷻ اعتمادکوی نوداسې خلق الله ﷻ ته محبوب دی

| إِنْ يَنْصُرْكُمُ اللَّهُ فَلَا غَالِبَ لَكُمْ ۚ وَإِنْ يَخْذُلْكُمْ فَمَنْ |
|---|
| کچرې مدداوکړي تاسوسره الله، نوڅوک غالب کیدې نشي په تاسو، اوکه مدداونکړي ستاسو، پس څوک دې |
| ذَا الَّذِي يَنْصُرُكُمْ مِنْ بَعْدِهِ ۗ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ ۝ |
| هغه څوک چې مددبه اوکړي ستاسوسره روستو دهغه دامدادکولونه، اوخاص په الله دې توکل کوي مومنان |

﴿إِن يَنصُرْكُمُ ٱللَّهُ فَلَا غَالِبَ لَكُمْ﴾ فتح اوشکست دالله ﷻ په اختیارکښې دې نوکه په غیر دظاهری اسبابونه تاسوله فتح درکړی نو بیاڅوك په تاسو باندې غالب نشی راتلې لکه په جنګ بدرکښې، اوکه هغه ستاسو امداد ونه کړی نو بیا بل څوك ستاسو امداد نشی کولې نو لهذا صرف په الله ﷻ باندې توکل پکاردې. مقصود دآیت نه دادې چه اسباب دنصرت الهی حاصل کړئ نو الله ﷻ به درسره مدد وکړی اود اسبابودخذلان نه خپل ځان بچ وساتئ.

| وَ مَا | كَانَ | لِنَبِيٍّ | أَنْ | يَّغُلَّ ۚ | وَ مَنْ | يَّغْلُلْ | يَأْتِ | بِمَا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اونه دي | لائق | دشان دنبی سره | چې | خیانت اوکړي، | اوڅوك چې | خیانت او کړي | نوراوړي به | هغه |
| غَلَّ | يَوْمَ | الْقِيٰمَةِ ۚ | ثُمَّ | تُوَفّٰى | كُلُّ | نَفْسٍ | مَّا كَسَبَتْ | |
| چې څۀ خیانت ئی کړیدي | پۀ ورځ د | قیامت، | بیابۀ | پوره ورکړې شی | هرچاتۀ | بدله | دهغه عمل چې دۀ کړې وی | |
| وَ هُمْ | لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿۱۶۱﴾ | أَفَمَنِ | اتَّبَعَ | رِضْوَانَ | اللّٰهِ | كَمَنْ | بَآءَ | |
| او پۀ دوئ بۀ | ظلم نه کېږي. | آیا پس هغه څوك چې | تابع وي | دکاملې رضا | دَ الله | پشان دهغه | چاکېدیشي چې اخته شوې وي | |
| بِسَخَطٍ | مِّنَ | اللّٰهِ | وَمَأْوٰىهُ | جَهَنَّمُ ۚ | وَبِئْسَ | الْمَصِيْرُ ﴿۱۶۲﴾ | | |
| پۀ غضب | | دالله | اوځاني دده | جهنم وی | او ډېر بد | ځاني دۀ | ورتللو دې داجهنم | |
| هُمْ | دَرَجٰتٌ | عِنْدَ | اللّٰهِ ۚ | وَاللّٰهُ | بَصِيْرٌ | بِمَا | يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۶۳﴾ | |
| دخلقو | دپاره مختلف درجې دي | پۀ | نیزدالله ، | او الله | لیدونکې دي | دهغه عملونو | چې دوئ ئې کوي | |

﴿وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَن يَغُلَّ﴾ غلول په اصل کښې خیانت کولوته وائی په مال غنیمت کښې او دمطلق خیانت په معنی سره هم راځی اوکله ئی اطلاق په مطلق پټولو د یو شی باندې هم کیږی لکه په قول د ابن مسعودؓ کښې دی چه «غلّوا مصاحفکم» . مفسرین حضرات فرمائی چه **ددې آیت نه مقصود** دصحابهٔ کرامو ؓ وسوسه دفع کول دی چه دوئ دا ګمان ونکړی چه رسول الله ﷺ په ظاهرکښې دوئ معاف کړل خوپه زړه کښې به ترینه خفه وی اوپه بله موقعه به ددې اظهارکوی اوزورنه به ورکوی، نو الله ﷻ فرمائی چه دا کار د انبیاؤ علیهم السلام نه دې چه په زړه ئی یوخبره وی اوپه خوله ئی بله خبره وی، او دارنګه مسلمانان پوهه کوی چه دنبیﷺ دعظمت، عصمت او امانتداری نه ځان خبرکړئ اوپه زړه کښې داسې

خيالات مه راولئ چه نبیﷺ به دغنیمت نه څه مال پټ ساتلې وی، اوشاید دایی څکه اوفرمایل چه هغه حضراتوچه دمال غنیمت دحاصلولودپاره خپله مورچه پرېښودله نوګویاکښې ددوئ په زړه کښې به داسې خیال راغلې وی چه رسول الله ﷺ به مونږته دغنیمت نه برخه نه راکوی یابه بعضې څیزونه پټ ساتی، په بعضې روایاتوکښې راغلیدی (ترمذی وغیره) چه دبدرپه غزاکښې ((قطیفة حمراء)) سور څادر دمال غنیمت نه ورك شوې ؤو، اوپه بعضې روایاتوکښې دی چه توره ورکه شوې وه نوبعضو خلقو وویل چه کیدې شی چه نبیﷺ اخستلې وی ((نوکه منافقینو دا ویلی وی نومقصودئی طعن کول ؤو په نبی ﷺ باندې اوکه مؤمنانو ویلی وی نوهغوئ پدې وجه دا ویلی دی چه نبی ﷺ ته داسې اختیار حاصل ؤو)) نو **دا آیت نازل شو**، دا واقعه دبدرسره تعلق لری نود اُحد دواقعې دبیان په مینځ کښې ذکرشو، په دې کښې اشاره ده دیته : لکه څرنګه چه په غزوه احدکښې نبی ﷺ د ډیر شفقت اوښه اخلاقو دوجه نه صحابوﷺ ته معافی وکړه نو دغه شان ئی دجنګ بدرپه موقعه ددوئ یوبل تقصیرهم بالکل هیرکړیدې خوتاسوته د رسول اکرم ﷺ دشان عظمت ،عصمت ، پاکی لحاظ ساتل پکاردی اوهیڅ قسمه کمزوری، نامناسب خیالاتو پسې تلل ندی پکار اونبی ﷺ ته چه لکه څرنګه نسبت دغلول اودخیانت په مال غنیمت وغیره کښې ناجائز دې نو دغه شان نسبت دغلول په وحی اوعلم کښې هم ناجائز اوکفردې لکه بعضې شیعه ګان چه داسې کوی.

﴿يَأْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيَـٰمَةِ﴾ (باء) دپاره دتعدیت ده او (ما) موصله ده او عائد دموصول مقدر دې ای (بماغله) یعنی راوړی به هغه شی چه پټ کړې ؤو(لائے گا اپنی چھپائی ہوئی)) شیخ الهند رحمه الله

یا (باء) دپاره دمصاحبت ده یعنی دقیامت په ورځ به میدان حساب ته راځی نوهغه څیزونه بهٔ ورسره وی چه په خیانت سره ئی حاصل کړی دی، اوپه حدیث کښې دی (اخرجه الشیخان وغیرهما) ((قام رسول الله ﷺ یومافذکرالغلول فعظمه وعظم امره ثم قال لاالفین احدکم یجیئ یوم القیمة وعلی رقبتهٖ بعیر، له رغاء فیقول یارسول الله اغثنی فاقول لااملك لك من الله تعالی شیئاً قدابلغتك)) یعنی نبی ﷺ خیانت ته ډیره لویه ګناه وویله اوودې امر (یعنی ددې دعذاب نه خلاصیدلوته نی ، ډیرمشکل وویل اوویې فرمایل چه زه په تاسوکښې یوکس په داسې حالت کښې ؤنه مومندم چه دقیامت په ورځ راشی اوده په څټ باندې اوښ وی چه خپل

آوازونه کوی، نوپس داکس به ماته ووائی چه څما امداد وکړه یارسول الله ﷺ ! نوزه ورته ووایم چه زه اختیارنه لرم چه تا دالله ﷻ ددې عذاب نه خلاص کړم، ما تاته رسولې وو حکم ..... الحدیث. اودغه شان په دې حدیث کښې فرس،بقر،غنم،صامت یعنی زر،مذکوردی، او دا حدیث په نزد داهل سنت والجماعت په ظاهرمحمول دې اوالله ﷻ قادر دې چه دغه اشیاء دقیامت په ورځ بیا پیداکړی او دخائن په څټ ئی واچوی چه پدې سره ئی مزید تذلیل، تقبیح راشی اوپه عذاب کښې ئی زیادت راشی په سبب دثقل ددې اشیاؤ سره.

داحدیث دحضرت ابوهریرهؓ نه مروی دې اوپه بعضې روایاتوکښې راغلیدی چه چا دَده نه سوال وکړو چه که یوسړی سل اوښان غلاکړی وی یعنی سل اوښان به ئی څرنګ په څټ ځاېږی .نودوئ جواب ورکړو چه دچاپوغاښ دجبل احدسره برابروی (یعنی جهنمی) او ورون ئی د ورقان سره اوپنډې ئی دبیضاء سره او دکیناستلوځائ ربذه نه د مدینه پورې وی نوآیاپه څټ به ئی سل اوښان نشی راتلې ؟.

﴿أَفَمَنِ ٱتَّبَعَ رِضْوَٰنَ ٱللَّهِ﴾ ددینه مراد ترک دخیانت دې یعنی دخیانت نه بچ کیدونکی په رضاء الهی پسې روان دی اوخیانت کوونکی دالله ﷻ په غضب اخته دی نو دواړو یوشان کیدې نشی.

﴿هُمْ دَرَجَٰتٌ﴾ دا د دواړو ډلوسره متعلق دې اود «درجات» نه مراد متفاوتون دی او بعضې وائی چه په کلام کښې حذف دې «ای هم ذو درجات» یا «هم درجتٌ» او د درجات نه مراد مطلق مراتب دی عام ددینه چه داهلِ جنتُ وی اوکه داهل نارُ وی یا ترینه مراد مراتب د اهل جنت دی او د اهل نارو مراتب یعنې درکات مقایسةً ترک شوی دی.

| لَقَدْ | مَنَّ | اللَّهُ | عَلَى | الْمُؤْمِنِينَ | إِذْ بَعَثَ | فِيهِمْ | رَسُولًا | مِّنْ | أَنفُسِهِمْ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

خامخابه تحقیق سره احسان کړیدې الله په مومنانوباندې کله چې رالیږلې ئې دې په دوئ کښې رسول دجنس ددوئ نه

| يَتْلُوا | عَلَيْهِمْ | آيَاتِهِ | وَ | يُزَكِّيهِمْ | وَ | يُعَلِّمُهُمُ | الْكِتَابَ | وَالْحِكْمَةَ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

چې لولي په دوئ باندې آیاتونه دالله اوپاکوي دوئ لره اوښائي دوئ ته کتاب(قران) اوپوهه ددین(سنت)

| وَ إِن | كَانُوا | مِن | قَبْلُ | لَفِي | ضَلَالٍ | مُّبِينٍ ۝ | أَوَلَمَّا | أَصَابَتْكُم |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

اوبه تحقیق سره وو دوئ مخکښې ددېنه په ګمراهئ ښکاره کښې . آیا اوهرکله چې اورسیدو تاسوته

| مُّصِيبَةٌ قَدْ أَصَبْتُمْ مِّثْلَيْهَا ۙ قُلْتُمْ أَنَّىٰ هَٰذَا ۖ قُلْ هُوَ مِنْ عِندِ أَنفُسِكُمْ ۗ |
|---|
| يو داسې مصيبت چې تاسو رسولې دې دوچند دهغې، نو تاسو وايئ: د كوم خائې نه دا دې، او وايه دا د طرفه د نفسونو ستاسو نه دې |
| إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ۝ |
| بېشكه الله په هر څيز باندې قدرت لري. |

﴿لَقَدْ مَنَّ اللَّهُ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ﴾ دا متعلق دې د «وماكان لنبي ان يغلّ» سره، يعني دغه قسمه كمزوري خيالات په زړه كښې مه راولئ بلكه دالله ﷻ ددې عظيم احسان شكريه اداكړئ څكه چه دالله ﷻ په انعاماتو او احساناتو كښې عظيم انعام او احسان بعثت د ذات د رسول الله دې او دارنګه دا آيت په منزله ددليل دې دماقبل دپاره يعني نبي خيانت ګرنشي كيدې څكه چه نبي دالله ﷻ دطرفه لوئ نعمت او احسان وي او په خيانت ګرسره احسان نه راځي، اومراد دمؤمنيونو نه ياعرب مؤمنان دي يا ټول مؤمنان دي. ﴿إِذْ بَعَثَ فِيهِمْ رَسُولًا﴾ تنوين دتعظيم دپاره دې ﴿مِّنْ أَنفُسِهِمْ﴾ پدې جمله كښې د درې خبرو ذكر دې: رسالت «رسولاً» عربيت «فيهم» بشريت «من انفسهم».

نو صاحب دروح المعاني دشيخ ولي الدين عراقي نه نقل كړي دي چه دده نه تپوس وشو چه علم په بشريت اوعربيت درسول الله ﷺ فرض عين دې اوكه فرض كفايه؟ نو ده جواب وكړو چه دا شرط دې د صحت د ايمان لپاره، يعني فرض عين دې، نوكه څوك وايي چه زه ايمان لرم په رسالت درسول الله ﷺ باندې ليكن نه پوهيږم چه هغه دجنس دبشرنه ؤو يا د ملك يا د جناتو نه يا دعرب نه يا دعجم نه، نوشك نشته دې په كفر ددغه سړي كښې څكه دې دقرآن تكذيب كوي او انكاركوي دهغه حكم نه چه قبول كړيدې اهل اسلام خلفاً، سلفاً اوضروري دې په نزد دخاصُ اوعامُ اوپدې كښې څه خلاف نشته نوكه داسې سړې غبي اوناپوهه وي نو واجب دي پوهه كول دده اوكه بيا هم انكاركوي نومونږ به حكم كؤو په كفردده، اوضمير د «فيهم» راجع دې مؤمنانوته نوكه مراد ددوئ نه مؤمنان عرب شي نو وجه د امتنان داده چه عرب د حضور ﷺ درسالت په وجه اشرف اوافضل شو په ټول عالم كښې اوعرب يو ډيرپاټې قوم ؤو چه نبي ﷺ په وجه دعلم اوعمل په اعلى مراتبو باندې فائزشو، اونبي ﷺ دټولوعربو د انفس نه «من انفسهم» پدې وجه دې چه د ټولو خاندانونو دعربو سره ئې نسبي شركت ؤو ماسوا د بني تغلب نه چه هغوئ نصارىٰ ؤو نو الله ﷻ زمونږ نبي ﷺ دهغوئ دشركت دنسب نه

محفوظ ساتلې دي، او که مراد دمؤمنانو نه ټول مؤمنان شي نو بيا وجه دامتنان داده چه په وجه دبشريت هم جنس والی سره دهغه فيض او علم حاصلول آسان دی ځکه چه د هم جنسو په مابين کښې طبعي وحشت او نفرت نه وی، بله دا چه نبی صلی الله عليه وسلم بشر دې ليکن معجزات ئی مافوق البشريت ښکاره کړل .

نو يقينامعلومه شوه چه دا حق رسول دی ﴿يَتْلُوا عَلَيْهِمْ﴾ پدې کښې درسول فرض منصبی بيانيږی او دويمه وجه دامتنان ده ﴿وَيُزَكِّيهِمْ﴾ دا هم بيان دفرض منصبی د رسول الله ﷺ دې اودريمه وجه دامتنان ده ﴿وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ﴾ دا دبل فرض منصبی بيان دې او وجه د امتنان ده، او دتعليم دکتاب نه مراد دلته تعليم اوتشريح دمعانيؤ ده ځکه چه د الفاظو تعليم په يتلو کښې راغلې دې ﴿وَالْحِكْمَةَ﴾ ددينه مراد تعليم دسنت او احاديثو دې «کماقال الشافعی رحمه الله» تعليم دحکمت دقرآن ژورې خبرې ښودل او د قرآن په اسرارِ غامضؤ او په لطائف دقيقؤ او عللو عميقؤ باندې مطلع کول دی ﴿وَإِن كَانُوا﴾ «ان» مخففه عن المثقله دې، اسم ورله «هم» مقدر دې او لام په ﴿لَفِي ضَلَالٍ﴾ کښې لام فاصل دې يعنی عرب دسلگونو کالونو او پيړو نه را ديخوا په انتهائ جهل او ښکاره گمراهئ او ضلالت کښې ډوب ؤو اود رسول الله ﷺ دخو ورځو دتعليم او صحبت په برکت اصحاب د ټولې دنيا دپاره رهبران او معلمان وگرځيدل نو پکار ده چه ددې عظيم نعمت قدر وپيژنئ او چرته هم داسې اقدام ونه کړئ چه نبی ﷺ په هغې ناراض شی

﴿أَوَلَمَّا أَصَابَتْكُم مُّصِيبَةٌ﴾ دا زجر دې مؤمنانو ته چه دوئ په تعجب سره ويلی ؤو چه اُحد کښې دا تکليف او نقصان مونږ ته د کومه نه راغې، مونږ خو د الله په لاره کښې د کفارو سره جنگيدلو او الله تعالی خو زمونږ سره د امداد وعده کړې وه نو دا مصيبت په مونږ باندې ولې نازل شو ، نو الله جل جلاله دوئ ته زورنه ورکوی اوددوئ ددې خبرې جواب کوی چه اولاً داسې خبره کول پکار نه وه ځکه چه تاسو ته چه کوم تکليف رسيدلې دې دکفارو دطرفه نو تاسو هغوئ ته ددې دوچند تکليف رسولې ؤو ځکه ستاسو نه په اُحد کښې اويا ۷۰ کسان شهيدان شويدی او په بدر کښې تاسو دکفارو نه اويا ۷۰ کسان قتل کړی ؤو او اويا ۷۰ کسان موترينه قيد کړی ؤو چه دهغوئ قتلول ستاسو په اختيار کښې ؤو، او ثانياً دا چه ﴿ قُلْ هُوَ مِنْ عِندِ أَنفُسِكُمْ﴾

يعنى د دې هزيمت او مصيبت سبب تاسو پخپله يئ چه تاسو هغه مورچه پريښودله چه نبى ﷺ هلته د كيناستلو حكم تاسو ته كړې ؤو.

﴿فَبِإِذْنِ ٱللَّهِ﴾ دا دبل سبب ذكر دې يعنى دا تكليف او مصيبت ستاسو دپاره دالله ﷻ په اذن او تقدير سره دې او تقدير انسان ته رسى، د اذن نه مراد قضاء او تقدير الهى دې.

| وَ مَآ اَصَابَكُمْ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعٰنِ فَبِاِذْنِ اللهِ |
|---|
| اوهغه مصيبت چې رسيدلې دې تاسوته پۀ هغه ورځ چې مخامخ شوې دواړه لښكرې پس داپۀ حكم دالله سره دې |
| وَ لِيَعْلَمَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۶۶﴾ وَ لِيَعْلَمَ الَّذِيْنَ |
| اوددې دپاره چې معلوم كړي(ښكاره كړي) مومنان . او ددې دپاره چې معلوم(ښكاره)كړي هغه كسان |
| نَافَقُوْا ۚۖ وَ قِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا قَاتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللهِ اَوِادْفَعُوْا ؕ |
| چې منافقت ئې كړېدې، اواووئيلې شودوئ ته چې راشئ جنګ اوكړئ پۀ لار دالله كښې يادفع كړئ دښمن(دخپل ښارنه) |
| قَالُوْا لَوْ نَعْلَمُ قِتَالًا لَّااتَّبَعْنٰكُمْ ؕ هُمْ لِلْكُفْرِ يَوْمَئِذٍ |
| اووئيل دوئ كۀچرې مونږپوهيدلې پۀ جنګ خامخابه مونږتابعداري كړې وې ستاسو، دوئ كفرتۀ پدې ورځ |
| اَقْرَبُ مِنْهُمْ لِلْاِيْمَانِ ۚ يَقُوْلُوْنَ بِاَفْوَاهِهِمْ مَّا لَيْسَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ ؕ |
| زيات نژدې دي پۀ نسبت د ددوئ ايمان تۀ، وائ دوئ پۀ خولوخپلو باندې هغه چې نښته دې پۀ زړونو ددوئ كښې |
| وَاللهُ اَعْلَمُ بِمَا يَكْتُمُوْنَ ﴿۱۶۷﴾ ۚ |
| اوالله خوپوهه دې پۀ هغه څۀ چې دوئ ئې پټوي |

﴿فَبِإِذْنِ ٱللَّهِ﴾ دا دبل سبب ذكر دې يعنى دا تكليف او مصيبت ستاسو دپاره دالله ﷻ په اذن او تقدير سره دې او تقدير انسان ته رسى، د اذن نه مراد قضاء او تقدير الهى دې.

﴿ وَلِيَعْلَمَ ٱلْمُؤْمِنِينَ - وَلِيَعْلَمَ ٱلَّذِينَ نَافَقُوا ﴾ دا دبل سبب ذكردې يعنى دا تكليف او مصيبت ددې دپاره راغې چه امتياز راشى دمخلص او منافق، دلته دويم (وليعلم) عطف دې په اول (وليعلم) باندې او هغه عطف دې په (فباذن الله) باندې دقبيلې د عطف د سبب نه په مسبب باندې. ﴿وَقِيلَ لَهُمْ﴾ دا په (نافقوا) باندې عطف دې، يا استيناف دې او ضمير د (هم)

منافقینوته راجع دي اوددینه مرادهغه درې سوه منافقین دی چه په جنګ احدکښې دلارې نه واپس شوی ؤو چه مشر ئی عبدالله بن اُبی بن سلول ؤو. نوهرکله چه دوئ واپس روان شو نوحضرت عبدالله بن عمروبن حزام اونورومسلمانانو ددوئ دواپس کولوکوشش وکړو او ورته ئی وویل ﴿تَعَالَوْاْ قَـٰتِلُواْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ﴾ یعنې راشئ دالله ﷻ ددین داعلاء دپاره د مشرکینو سره قتال وکړئ ﴿أَوِ ٱدْفَعُواْ﴾ یعنې که قتال نه کوئ نوتکثیر دلښکر دمؤمنانو وکړئ نو دا هم جهاد دې، یامراد دادې چه که دآخرت دثواب دپاره جهاد نه کوئ نودخپل وطن او کلی دفاع خو وکړئ ﴿قَالُواْ لَوْ نَعْلَمُ قِتَالاً﴾ یعنې که مونږ پوهیدلې چه دا جهاد فی سبیل الله دې نومونږ به ستاسو اتباع کړې وه اوپه جنګ کښې به موشرکت کړې ؤوخو دا ظلم دې یا خپل ځان هلاکت ته اچول دی، یا دا مطلب دې چه که چرې مونږ پوهیدلې دجنګ په طریقه نومونږ به ستاسو ملګرتیا کړې وې لیکن مونږ نه پوهیږو دجنګ په طریقه ځکه چه تاسو زمونږ په مشوره عمل ندې کړې که مونږ پوهیدلې نوتاسوبهٔ زمونږپه مشوره باندې عمل کړې ؤو. نوچه زمونږپه مشوره باندې عمل نه کوئ نوبیا ولې مونږته دعوت راکوئ چه جهادته لاړشئ ، نو دا طنزیه کلام دې. ﴿هُمْ لِلْكُفْرِ يَوْمَئِذٍ أَقْرَبُ﴾ منافقان په ظاهرکښې دکفرنه لرې ؤو لیکن هرکله چه دوئ په احدکښې دمیدان جنګ نه واپس شو او دائی وویل ﴿لَوْ نَعْلَمُ قِتَالاً﴾. نوپټ نفاق ئی ښکاره شونو دوئ کفرته زیات نزدې شو په نسبت د ایمان، «للکفر» او «للایمان» دواړه په اقرب پورې متعلق دی خو اول په اعتبارد «مفضل» والی سره او دویم په اعتباردمفضل علیه والی سره اولام په دواړوکښې په معنی د «إلی» سره دې

**فایده** : دوه حرف جره په یوعامل پورې متعلق کیدل په غیر دعاطف نه جائز ندی مګرپه درې صورتونوکښې جائز دی : **اول** دا چه یو ورپورې مطلقاً متعلق شی اودویم ورپورې بعد دتقید بالاول نه متعلق شی، او**دویم** داچه دویم د اول دپاره تابع وی په بدلیة وغیره سره، **دریم** داچه متعلق اسم تفضیل وی لکه پدې مقام کښې.

﴿يَقُولُونَ بِأَفْوَٰهِهِم مَّا لَيْسَ فِى قُلُوبِهِمْ﴾ دا جواب دسوال دې چه دوئ خو کلمه دتوحید وائی نوځنګه کفرته زیات نزدې دی؟ جواب دا چه دا صرف په ژبه وائی اوپه زړه کښې ئی کفر دې اوالله ﷻ ددوئ په زړونوخبردې.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| اَلَّذِيْنَ | قَالُوْا | لِاِخْوَانِهِمْ | وَقَعَدُوْا | لَوْ | اَطَاعُوْنَا |
| داهغه کسان دي چې وائ په باره د خپلوروڼرو کښې، اوناست دي (دجهادنه) کچرې دوئ زموږ خبره منلې | | | | | |
| مَا قُتِلُوْا ؕ قُلْ فَادْرَءُوْا عَنْ اَنْفُسِكُمُ الْمَوْتَ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝ وَلَا تَحْسَبَنَّ | | | | | |
| نونه به وژ قتل کړې شوي، اووایه پس دفع کړئ دخپل خانونونه مرګ که يئ تاسو رښتني او هرګز ګمان مه کوه | | | | | |
| الَّذِيْنَ قُتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتًا ؕ بَلْ اَحْيَآءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُوْنَ ۝ۙ | | | | | |
| په هغه کسانو چې وژلې شوي دي په لار دالله کښې مړهٔ . بلکه دوئ ژوندي دي په نيز درب ددوئ. دوئ ته رزق ورکولې شي | | | | | |
| فَرِحِيْنَ بِمَآ اٰتٰىهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ ۙ وَيَسْتَبْشِرُوْنَ بِالَّذِيْنَ | | | | | |
| خوشحاله دي په هغه څه چې ورکړې دي الله دوئ ته دخپل فضل نه، اوخوشحاليږي دهغه خلقو په حال باندې | | | | | |
| لَمْ يَلْحَقُوْا بِهِمْ مِّنْ خَلْفِهِمْ ۙ اَلَّا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ | | | | | |
| چې لا تراوسه پورې ندې رسيدلي دوئ ته، روستو په دنيا کښې پاتې دي، چې نهٔ به وی ويره په دوئ باندې | | | | | |
| وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ۝ يَسْتَبْشِرُوْنَ بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَفَضْلٍ ۙ وَّاَنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيْعُ | | | | | |
| اونهٔ به دوئ خفه کيږي. خوشحاليږي دوئ په نعمت دطرفه دالله نه اوفضل نه، اوپه دې چې بېشکه الله نهٔ ضائع کوي | | | | | |
| اَجْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ ۝ۚ | | | | | |
| اجر دمومنانو | | | | | |

﴿ اَلَّذِيْنَ قَالُوا﴾ دا منصوب محلاً دې نعت دې د ((الذين نافقوا)) دپاره يا ترينه بدل دې يا مرفوع دې خبر دمبتداء محذوف دې . ((اى هم الذين قالوالاخوانهم)) (لام) په معنى د (فى) سره دې اومضاف پکښې مقدر دې ((اى فى حق اخوانهم)) اومراد داخوت نه نسبى اخوت دې او ددينه مراد هغه مؤمنان دى چه په جنګ احد کښې شهيدان شوى وُو. ﴿وَقَعَدُوا﴾ دا حال دې دضميرد ((قالوا)) نه په تقديرد قد سره ((اى وقدقعدوا)) اومراد دقعود نه پاتې کيدل دى په کورکښې اوپه قتال کښې شرکت نه کول دى، ﴿لَوْ أَطَاعُوْنَا﴾ اطاعت په ترک دجهاد کښې مراد دې، اوداجمله مقوله دقالوا ده يعنې هغه خلق چه جنګ اُحد کښې شهيدان شوى وُو او دمنافقينو اقارب او رشته دارؤو نومنافقينو دهغوئ په حق کښې ويل چه که چرې دوئ زمونږخبره منلې وې اوجنګ له نوې تللى نو دوئ به نوې قتل شوى، نوالله ﷻ ددوئ ددې

قول ردكوي ﴿قُلْ فَادْرَءُوا﴾ يعني كه چرې ستاسو په اطاعت سره اوجهاد ته په نه تلوسره څوك دمرګ نه بچ كيدلي نوپكاردا وه چه تاسو دځپل ځان نه مرګ دفع كړئ ځكه چه تاسوخوميدان جهادته نه يئ تللي. ﴿إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ﴾ كه تاسو ريشتني يئ پدې خبره كښې چه قعود سبب دنجات دې دموت نه، مفسرينو(مدارك قرطبي) ليكلي دي چه په كومه ورځ منافقينو دا خبره وكړه نو پدغه ورځ ددوئ نه اويا ۷۰ كسان مړه شو نوځكه ئې ورته داسې اوفرمايل چه ﴿فَادْرَءُوا﴾ نودا امر دتعجيز او استهزاء دپاره دې.

﴿وَلَا تَحْسَبَنَّ ٱلَّذِينَ﴾ هركله چه په مخكنى آيت كښې دمنافقينو زعم اوعقيده بيان شوه چه قتل كيدل د الله ﷻ په لاره كښې معمولي شې بلكه نقصان اوذلت دې نو پدې آيت كښې ددوئ ددې زعم اواعتقاد ردكيږي چه شهادت ډيرلوئ سعادت دې او دشهيد شان دادې چه ۱- چه تاسوګمان مكوئ چه مړه دي ۲- بلكه ژوندي دي، ۳- دالله ﷻ دقرب شرافت ورته حاصل دې، ۴- دجنت رزق ورته وركولې شي، ۵- په هغه انعاماتوخوشحاليږي چه دوئ ته وركولې شي ۶- اوپه هغه انعاماتو اودرجاتوخوشحاليږي چه نورومجاهدينواومؤمنانوته دمرګ نه ورستو بهٔ وركولې شي ﴿لَا تَحْسَبَنَّ﴾ د حسبان نه مأخوذ دې او دنفى دحسبان نه ديقين اواعتقاد نفى په طريقه اولى سره معلوميږي اوخطاب نبى ﷺ ته دې اومراد ترينه هر مخاطب دې اوتعريض دې په منافقينو او ﴿ٱلَّذِينَ﴾ موصول سره دصله نه مفعول اول دې او ﴿أَمْوَٰتًا﴾ ئې مفعول ثانى دې، اودلته نفى د اعتقاد شوې ده اوپه سورت بقره كښې نفى دقول شوې ده يعني شهيدته په ژبه ميت مه وائئ اوپه زړه كښې ئې دميت عقيده مه لرئ يعنى «كسائرالاموات» يعنى دوئ داسې مړه ندي چه دلذتونو اومزو نه محرومه دي بلكه دوئ ته پس دمرګ نه په برزخ كښې ډير اعلى اومزيدار جوند ملاؤ شويدې. ﴿بَلْ أَحْيَآءٌ عِندَ رَبِّهِمْ﴾ لفظ د«عند» دلته كښې دقرب مكانى دپاره ندې ځكه چه الله ﷻ منزه دې دمكان نه اونه په معنى دحكم اورائى سره دې كمايقال عندابى حنيفة رحمه الله بلكه دقرب رتبى يعنى تقرب الى الله او شرافت دپاره دې يعنى دوئ په اعلى حيات سره ژوندي دي چه تقرب الى الله اولوئ شرافت ورته حاصل دې، او مراد ددې حيات نه دنيوى حياة ندې ځكه چه ددنيوى حياة زوال اوپه قبركښې دفن كول مشاهد دي او ددوئ ميراث تقسيمول اوزوجاتو نكاح دبل چاسره جائزكيدل ددې خبرې واضحه دليل دې چه دنيوى حياة ختم شوې دې اوددې وجهې نه دوئ

کلام اوحرکت وغیره نشی کولې بلکه مراد دحیات نه حیات برزخی دې اوحیاة برزخی اګرکه هرچاته حاصل دې کافر اوفاسق ته دتعذیب دپاره اومؤمنانوته دتنعیم دپاره خو دشهیدحیاة ممتاز دې اوقوی دې دحیاة د نورومؤمنانونه چه اثرئی په بدن عنصری داسې ظاهرېږی چه بدن ئی نه خاوری کیږی، د انبیاؤ حیاة زیات اقوی دې دحیات دشهداؤنه چه دهغوئ بدنونه هم نه خاورې کیږی اومیراث ئی نشی تقسیم کیدلې او د ازواجو سره ئی نکاح نشی کیدې. مزیدتفصیل په سورة بقرة کښې تیرشوې دې. ﴿يُرْزَقُونَ﴾ ددینه په عالم برزخ کښې دجنت رزق مراد دې، **ددې آیت تفسیر**په حدیث کښې راغلې دې چه نقل کړیدې احمد او ابوداؤد وغیره دابن عباس ﷺ نه چه نبی ﷺ فرمائی چه هرکله شهیدان شو ستاسو ورونړه په اُحد کښې نوالله ﷻ د دوئ ارواح دشنو مرغانوپه ججورو کښې واچول چه دجنت نهرونو ته تلل اودجنت میوې ئی خوړلې اوبیا آرام ئی کولو دسروزروپه هغه قندیلونوکښې چه د عرش د لاندې اویزان دی، نوهرکله چه دوئ وموندلې مزې دخوراك، سکاك ښه اوخائسته ځائ د آرام خیل نو دوئ وویل هائی ارمان چه روڼه زمونږ عالمان وې په هغې چه الله ﷻ زمونږسره کوم (سلوك) وکړو، اوپه بل روایت کښې داسې دی چه څوك به ورسوی دا خبر رونړو زمونږته چه مونږ ژوندی یوپه جنت کښې او مونږ ته رزق راکولې شی ددې دپاره چه دوئ دجهاد نه بې رغبته نشی او دجنګ نه ورستو نشی نوالله ﷻ ورته اوفرمایل چه زه به ستاسو پیغام ورسوم نو **دا آیاتونه نازل شو** اوپه روایت دترمذی اوحاکم کښې دی. چه حضرت جابرﷺ وائی چه ملاؤشو ما سره نبی ﷺ نو وې فرمایل (یاجابرمالی اراك منكسراً) یعنې ولې دې طبیعت خراب دې؟ نو ما عرض وکړو چه زما پلار په احدکښې شهید شویدې اوعیال اوقرض ئی راته پریښودلې دې، نو وې فرمایل چه آیا تاته بشارت درنه کړم په هغې سره چه ملاقات کړیدې الله ﷻ ستا د پلارسره. نو ما عرض وکړو چه ضرور! نووې فرمایل چه الله ﷻ دهیڅ چاسره کلام ندې کړې مګر من وراءالحجاب ئی کړیدې (لیکن) ژوندې کړو الله ﷻ ستا پلار او بالمشافهه ئی ورسره خبرې وکړې او ورته یې اوفرمایل چه ((یاعبدی تمن علی اعطك)) یعنې اې زمابنده ' وغواړه چه درکړم تاته ! نوهغه عرض وکړو چه یاربه ما بیاژوندې کړه چه زه بیا شهیدکړې شم ستاپه لاره کښې. نوالله ﷻ اوفرمایل چه ما دا فیصله کړې ده چه ((انهم لایرجعون)) چه څوك بیا دنیاته واپس نشی راتلې نو دوئ عرض وکړو چه اې ربه زما پیغام

ورستو پاتی شوی خلقو ته ورسوه، نو الله ﷻ دا آیت نازل کړو.

﴿فَرِحِينَ بِمَآ﴾ دا حال دي یعنی دوئ خوشحالی کوونکی دی په هغه نعمتونو چه الله ﷻ دوئ ته ورکړی دی په عالم برزخ کښې په خپل فضل سره ﴿وَيَسْتَبْشِرُونَ﴾ داعطف دې په فرحین باندې اوفعل په تاویل د اسم سره دې اواستبشار په اصل کښې طلب د بشارت ته وائی اوبشارت خبر دخوشحالی ته وائی لیکن دلته مراد ترینه خوشحالیدل دی، حاصل دادې چه دوئ ته دوه قسمه خوشحالی ملاویږی یوه خوشحالی په خپل حال باندې چه دوئ ته انعامات ورکولې شی او دویمه خوشحالی د نوروخپلوانو او دوستانو اوعامومؤمنانوپه حال چه هغوئ ته به دمرګ نه ورستو انعامات ورکولې شی. ﴿بِالَّذِينَ لَمْ يَلْحَقُواْ بِهِم﴾ یعنی دوئ خوشحالیږی په حال «هغه کسانو چه ددوئ سره یوځائ شوی ندی بلکه ژوندی دی ﴿مِّنْ خَلْفِهِمْ﴾ «ای قدبقوا من خلفهم» ، ورستو پاتې دی په دنیاکښې، اوپدې کښې دمفسرینو دوه قوله دی : یو دا چه ددینه هغه مجاهدین مراد دی چه دشهیدانو دشهادت په وقت کښې هغوئ مصروف ؤو په جهادکښې او ددوئ ملګری ؤو نو شهیدان دهغوئ په حال خوشحالیږی چه زمونږ دې ملګروته به هم شهادت والا سعادت ملاؤشی نو دوئ ته به هم داسې انعامات اومزې ملاویږی چه کومې مونږته ملاویږی، دویم قول دادې چه ددینه تمام ایمان والا مراد دی اګرچه که جهاد یی نوی کړې یعنی شهداؤته یقین ؤشو چه دا نعمتونه په اصل کښې په سبب د ایمان سره حاصلیږی نو دټولو مؤمنانوپه حال خوشحالیږی نودلته خوشحالی دمؤمنانو یا دمجاهدینو په حال مراد ده او ددوئ په ذواتو مراد نه ده.

﴿أَلَّا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ﴾ دا بدل اشتمال دې د «بالذین لم یلحقوابهم» نه دپاره دتفصیل د مبشربه چه مبشربه ذوات نه دی، بلکه دا خبره ده چه «الاخوف» یا «مبشر به» مقدر دې چه «بقدومهم» دې، یعنی دَ جوندو په راتلو سره خوشحالیږی او «الاّ خوف» مفعول له اوعلت دې په تقدیر د لام سره یا د «باء»سره «لاجل ان لاخوف» یا«بان لاخوف» یعنې دهغوئ په راتلو ځکه خوشحالیږی چه په دوئ به هیڅ قسم خوف ،حزن نه وی او ددې تائید دهغه روایت نه کیږی چه دسُدی ﷫ نه مروی دې چه دشهید څوك دوست یاقریب مړکیږی نو شهید ته دهغې اطلاع ورکولې شی پداسې طریقې سره چه ده ته یو کتاب «خط» ورکړې شی چه په هغې کښې ئی لیکلی وی چه ستا فلانې قریب یا دوست تاته راروان دې.

﴿يَسْتَبْشِرُونَ بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللَّهِ﴾ دنعمت نه مراد ثواب د اعمالو دي ﴿وَفَضْلٍ﴾ اودفضل نه مراد زيادت دي په ثواب كښې او دا جمله تاكيد اوتكرار د اول دي نو دا معنى د ﴿فَرِحِينَ بِمَآ ءَاتَىٰهُمُ اللَّهُ﴾ ده. ﴿وَأَنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ﴾ الايه، معنى د ﴿وَيَسْتَبْشِرُونَ بِالَّذِينَ﴾ ده.

| |
|---|
| اَلَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ مِنْۢ بَعْدِ مَآ اَصَابَهُمُ الْقَرْحُ ۛؕ لِلَّذِيْنَ |
| هغه كسان چې منلې نى دې حكم دالله اورسول روستودهغې نه چې رسيدلې دې دوئ ته زخم. دپاره دهغه چا |
| اَحْسَنُوْا مِنْهُمْ وَاتَّقَوْا اَجْرٌ عَظِيْمٌ ۚ اَلَّذِيْنَ قَالَ لَهُمُ النَّاسُ |
| چې ښائسته عمل نى كړېدې ددوئ نه اوويره نې كړېده . اجرلوئې دې، داهغه كسان دي چې اوئيل دوئ ته خلقو(جاسوس) |
| اِنَّ النَّاسَ قَدْ جَمَعُوْا لَكُمْ |
| چې بېشكه خلقويعنى كافرانو په تحقيق سره جمع كړېدې ډېرلښكر اوسامان ، ستاسودمقابلې دپاره |
| فَاخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ اِيْمَانًا ۖ وَّ قَالُوْا حَسْبُنَا اللّٰهُ |
| پس اوويرېږئ تاسو ددوئ نه، پس زيات كړو دې خبرې ددوئ ايمان، او اووئيل دوئ كافي دې مونږ لره الله |
| وَ نِعْمَ الْوَكِيْلُ ۝ فَانْقَلَبُوْا بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَفَضْلٍ لَّمْ يَمْسَسْهُمْ سُوْٓءٌ ۙ |
| اوهغه ښه كارساز دې نو واپس شو دوئ په نعمت دالله اوفضل سره، نه وورسيدلې دوئ ته هيڅ تكليف |
| وَّاتَّبَعُوْا رِضْوَانَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ ذُوْفَضْلٍ عَظِيْمٍ ۝ اِنَّمَا ذٰلِكُمُ الشَّيْطٰنُ يُخَوِّفُ |
| اوتابعداري نى اوكړه درضادالله، اوالله خاوندلوئې فضل دې . يقينًا داخبروركوونكې جاسوس شيطان دې ويروي |
| اَوْلِيَآءَهٗ ۖ فَلَا تَخَافُوْهُمْ وَخَافُوْنِ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۝ |
| تاسو ددوستانوخپلونه ، نوتاسو مه ويرېږئ دهغوئ نه اوويرېږئ خمانه كچرې يئ تاسو مومنان |

﴿اَلَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا﴾ بعضې مفسرين وائى چه پدې آيت كښې دغزوه حمراء الاسد بيان دې او بعضې وائى چه پدې كښې دغزوه بدرِصغرىٰ بيان دې او امام رازى اونورمحققين وائى چه دواړو ته اشاره ده. اول دغزوه حمراء الاسد او بيا د بدر صغرىٰ ذكر دې.

دغزوه **حمراء الاسد** بيان دادې چه كفارمكه چه كله دميدان اُحد نه واپس شو نوپه لاره كښې ورته دا خيال راغې چه مسلمانان خوبعضې شهيدان شوى ؤو اونور زخميان دى نودوئ ډېركمزورى دى نوبالكل ختمول ئې پكارؤو او په خپل واپس كيدلو باندې نادم شو او اراده

ئی وکړه چه واپس لاړشو اومسلمانان بالکل ختم کړو، مګرالله ﷻ ددوئ په زړونوکښې رعب واچؤلو نو واپس خونه شو البته بعضې کسانوته (نعیم بن مسعود اشجعی چه بیا په یوم الخندق کښې مسلمان شو یا وفد دعبدالقیس دې) ئی وویل چه تاسو لاړشئ او دمسلمانانوپه زړونوکښې زمونږ رعب واچوئ چه مشرکینوستاسو د استیصال اوختمولو لپاره ډیر سامان جمع کړې دې، نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته په ذریعه د وحی سره دا خبره معلومه شوه نو دجنګ احدنه په دویمه ورځ یی دا اعلان وکړو چه دمشرکینو دمقابلې دپاره تلل دی خوصرف هغه کسان به ځی چه هغوئ په میدان احدکښې موجودؤو.

په تفسیرقرطبی کښې دی چه دوه سوه ۲۰۰ کسان تیارشو او په بخاری شریف کښې د اویا ۷۰ کسانوذکردې، دوئ روان شواوکوم چه ډیر زخمیان ؤو اوپخپله نشوتللې نوهغوئ هم دنوروکسانوپه اُوګو یا لاس نیولی بوتلل، حمراء الاسد مقام ته (چه دمدینې نه اته ۸ میله لرې دې) چه ورسیدل توهغه جاسوس (نعیم بن مسعوداشجعی) ملاؤشو هغه وویل چه ابوسفیان ستاسو د ختمولودپاره ډیرلښکراوسامان تیارکړیدې نوصحابه مرعوب نشوبلکه وې ویل: ﴿حَسۡبُنَا ٱللَّهُ وَنِعۡمَ ٱلۡوَكِيلُ﴾ او د بنی خزاعه یوکس چه معبد خزاعی ئی نوم دې اولا تر اوسه پورې مسلمان شوې نه ؤو خو دمسلمانانوسره ئی محبت ؤو دمدینې نه مکې طرف ته روان ؤو په لاره کښې د ابوسفیان سره ملاؤشو او ورته ئی وویل چه دهوکه نه شې! مسلمانان کمزوری ندی بلکه دهغوئ لوئ لښکرستاسو دمقابلې دپاره حمراء الاسد مقام ته را رسیدلې دې نوپدوئ رُعب راغې اوسیده مکې ته واپس وتختیدل اوصحابه کرامو دغه ځائ درې ورځې تیرې کړې او واپس شو، او په بعضې روایاتوکښې دی چه پدغه ځائ کښې به تجارتی میله لګیدله نوصحابؤ ﷺ په هغې کښې تجارت وکړو او ډیره نفع ورته ملاوشوه.

اودغزوه **بدرصغری** بیان دادې چه هرکله جنګ احدختم شو نو ابوسفیان اعلان وکړو چه آینده کال پدې تاریخ به په بدرکښې بیاجنګ کؤو نونبی ﷺ اوصحابؤ ﷺ دا قبوله کړه کله چه بل کال دجنګ نیټه قریبه شوه نو په ابوسفیان باندې رُعب راغې او دخوف دوجهِ نه مقابلې ته نشو راتلې نو دخپل ځان نه دملامتیا اوطعن دفع کولو دپاره ئی دا طریقه اختیارکړه چه یوکس ته ئی رشوت ورکړو او ورته ئی وویل چه لاړشه مدینې ته اومؤمنانوته دخیرخواهئ په لهجه کښې داسې ووایه چه ابوسفیان او دهغه ملګروستاسو دمقابلې دپاره ډیرسامان تیارکړې دې، تاسو دهغوئ دمقابلې طاقت نه لرئ نو ددې وجهِ نه میدان جنګ ته مه راځئ نو

هغه کس چه راغې او دمسلمانانو د يرولو دپاره ئی داخبره وکړه چه ﴿إِنَّ ٱلنَّاسَ قَدْ جَمَعُوا لَكُمْ﴾ نومسلمانان پدې سره زيات په جذبه کښې شو او هيڅ خوف او يره پرې رانغله اوبدر مقام ته لاړل اوکفار د يرې دوجه نه رانغله، نومؤمنانودغه ځائ کښې اته ۸ ورځې يا درې۳ ورځې تيرې کړې اوتجارت ئی وکړو اوپه تجارت کښې ورته ډيره نفع ملاؤشوه «استجابوا» په معنی دَ اجابوا ،اطاعوا ،سره دې او «الذين استجابوا» موصول سره دصله نه مبتداء ده اوخبر ورله دا ورستوجمله ده چه ﴿لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا۟ مِنْهُمْ﴾ او په دې کښې «من» بيانيه دې ځکه مستجيبين ټول محسنين اومتقين دی اودلته ددوئ دوه وصفه ذکرشو احسان ،تقوی، مقصود ترينه مدح ددوئ ده سره دتعليل نه اوتقيد مقصود ندې يعنی دمستجيبينو دپاره اجرعظيم دې ځکه چه دوئ ټول محسنين اومتقين دی .

﴿ٱلَّذِينَ قَالَ لَهُمُ ٱلنَّاسُ﴾ دا بدل دې دماقبل نه ياخَبر د مبتداء محذوف دې «ای هم الذين» او د «الناس» نه مراد يا وفد دعبدالقيس دې يا نُعيم بن مسعوداشجعی دې بناء بر اختلاف روايات او اطلاق داسم جنس چه محلّی باللام وی په فرد واحد باندې کيدې شی لکه چه اطلاق دجمع محلّی باللام په واحدکيدې شی، او د ﴿إِنَّ ٱلنَّاسَ﴾ نه مراد ابوسفيان او دهغه ملګری دی ﴿قَدْ جَمَعُوا۟﴾ مفعول به مقدر دې : «ای جمعوا الجنود والسلاح» ﴿لَكُمْ﴾ «ای لقتالکم واستيصالکم» ، ﴿فَزَادَهُمْ إِيمَـٰنًا﴾ ضميرپه «زاد» کښې يا ر اجع دې قول ته چه په ضمن دقال کښې دې، يا راجع دې مقول ته، يا راجع دې لفظ د «الله» ته، او زيادت دايمان په اعتبار دکيفيت سره دې چه ديته قوة اوايمان قوی ويلې شی اوپه اعتباردکميت سره ندې ځکه چه ايمان تصديق دې اوتصديق بسيط دې ذی اجزاء نه دې چه کم والې زيات والې پکښې راشی، او اعمال اجزاء نه دی دنفس حقيقت د ايمان دپاره، او دا تحقيق دې، او دشريعت داصطلاح نه خلاف اصطلاح جوړول يا دمنطقی اصطلاحاتومراعات ندې.

﴿وَقَالُوا حَسْبُنَا ٱللَّهُ﴾ جاسوس چه دا خبره وکړه چه ﴿إِنَّ ٱلنَّاسَ قَدْ جَمَعُوا لَكُمْ﴾ نومقصد ئی داوو چه صحابه وه ويريږی ليکن پدوئ خوف طاری نشو بلکه ايمانی جوش ئی زيات شواو د ﴿إِنَّ ٱلنَّاسَ قَدْ جَمَعُوا۟ لَكُمْ﴾ په رد کښې ئی وويل ﴿حَسْبُنَا ٱللَّهُ وَنِعْمَ ٱلْوَكِيلُ﴾ «حسبُ» مصدر دې په معنی د اسم فاعل سره «ای مُحسبنا الله» اوبعضې وائی چه دا اسم فعل دی په معنی دکفیٰ سره «حسبنا» خبرمقدم او لفظ د «الله» مبتداء مؤخره ده او«نعم» فعل مدح

دي «الوكيل» ئی فاعل دي اومخصوص بالمدح مقدر دې چه «هو» دي او «وكيل» د فعيل په وزن سره دي په معنی دمفعول سره «ای الموكول اليه» يعني هغه څوك چه هغه ته سپارلې كيدي شی اوحواله كيدي شی اوهغه چاته چه كار وسپارلې شی نوهغه كارونه هم سموی اونصرت اومددهم كوی او دضررر او د ظلم دفع هم كوی نوددې وجې نه به د وكيل معنی كله ناصركيږی اوكله دافع دضرراوكله كارساز، مناسب دهر مقام سره.

دلته **يومشهورسوال دې** چه «ونعم الوكيل» جمله فعليه انشائيه ده ځكه چه نعم د انشاء دمدح دپاره دي او «حسبناالله» جمله اسميه خبريه ده نوعطف د انشاء په اخبار راغې او دا ممنوع دې، **جواب** په ډيروجوه سره دې:

۱- بعضې علماء وائی چه واو په «نعم الوكيل» كښې دحكايت نه دې، اودمحكی نه ندې نو بناء پدې باندې «حسبنا الله» مقوله اومفعول د «قالوا» دې په موضع دنصب كښې دې او عطف دانشاء په اخبارپه «فيماله محلٌ من الاعراب» كښې صحيح دې اودلته هم جمله معطوف عليه لره محل من الاعراب شته دې چه هغه نصب دې بنا بر مفعوليت دقالوا دپاره.

۲- واو په «**ونعم الوكيل**» كښې دمحكی نه دې خودا دقبيلی دعطف القصه علی القصه نه دې، او عطف القصه علی القصه ديته وائی چې حاصل دمضمون د احدی الجملتين عطف شی په حاصل دمضمون دبلې جملې باندې د وجه دتناسب نه په مابين ددواړومضمونينو كښې اوپدې كښې چونكه نظرلفظ ته نوی بلكه صرف لحاظ دمضمون وی نو ددې وجې نه د انشاء عطف په اخبارجائزوی .۳- «ونعم الوكيل» عطف دې په «حسبنا» باندې په تاويل دفعل سره «ای يحسبنا» نو دا عطف د انشاء دې په اخبار باندې فيماله محل من الاعراب دې .۴- «حسبناالله» په ظاهركښې اگركه جمله خبريه ده خومقصود ترينه انشاء دتوكل اودكفايت ده نه اخبار دكفايت نه، نومعطوف عليه هم درحقيقت جمله انشائيه ده . ۵- «ونعم الوكيل» جمله عطف نده په ماقبل بلكه «نعم الوكيل» خبر د مبتداء محذوف دې په تاويل د «مقول فی حقه» سره «ای وهونعم الوكيل» نو دا عطف دجمله اسميه خبريه دې په جمله اسميه خبريه باندې

## فضيلت

په حديث دبخاری كښې دابن عباس ﷺ نه روايت دې چه دا كلمه ابراهيم ﷺ ويلې وه

چه کله اورته وغورزولي شو، اوزمونږنبي ﷺ (اوصحابو﷢) ويلي وه چه کله کافرانو ورته وويل چه «ان الناس قدجمعوالکم»، په روايت د ابونعيم کښې دي چه «حسبناالله ونعم الوکيل» امان دهر خائف نه دې اوحضرت ابوهريرة ﷺ نه روايت دې چه کله تاسوپه يو امرعظيم کښې واقع شئ نو وايئ «حسبناالله ونعم الوکيل» علماء کرامو ددې کلمې ورد دمشکلاتودحل دپاره ډيرمفيد ويلې دې او دارنګه لږ وسائل دډيروضروورياتو دکافي کيدلودپاره ډيرمجرب دې (۳۱۳) ادنى (۵۰۰) اوسط (۱۰۰۰) اعلى ،خله ويلوسره.

﴿فَٱنقَلَبُواْ﴾ دامتفرع دې په مقدرچه «خرجوا» دې اوپه ذکر د (فا) کښې اشاره ده چه دا امور جزاء د استجابت او دتوکل او دخروج ده ﴿بِنِعۡمَةٖ مِّنَ ٱللَّهِ﴾ د «نعمت» نه مراد سلامتيا اونورانعامات دى، اوتنوين پکښې دتنکير دپاره دې او (باء) دمصاحبت دپاره ده ﴿وَفَضۡلٖ﴾ د «فضل» نه مراد ربح ده په تجارت کښې «سوءٌ»، د «سوء» نه مراد قتل اوزخم اوتکليف دطرف ددشمن نه دې.

﴿إِنَّمَا ذَٰلِكُمُ ٱلشَّيۡطَٰنُ﴾ «ذالکم» خطاب مؤمنانو ته دې او په «ذلك» سره اشاره ده جاسوس،پروپيګنډه کوونکى ته. «ذالکم» مبتداء ده او «الشيطن» ورله خبر دې يا «الشيطن» صفت د «ذالکم» دې اوخبر ورله «يُخوّف» دې اوجاسوس ته ئې چه شيطن ويلى دى نو دا ياپه طور دتشبيه بليغ سره دې يا پدې وجه چه ده فعل دشيطان وکړو چه مؤمنان خوف زده کوى اودجهاد نه ئې منع کوى، يا «ذالکم» مذکورفعل ته اشاره ده او«الشيطان» په حذف دمضاف سره دې «اى ذالك المذکورفعل الشيطان» او «يخوّف» متعدى دې دوو مفعولينو ته. مفعول اول محذوف دې «اى يخوّفکم اولياءه» اود «اولياءه» نه مراد ابوسفيان وغيره دى چه پدغه وقت مشرف نه وو په ايمان سره اود ﴿فَلَا تَخَافُوهُمۡ﴾ نه مراد نهى ده د داسې خوف نه چه په هغې سره جهاد ترك شي اوپدې آيت کښې مؤمنانوته نصيحت اوتسلى ده چه په داسې موقعوکښې دشياطينو دپروپيګنډو نه متأثرکيږئ مه او يريږئ مه اوصرف ځمانه يريږئ.

| وَلَا يَحۡزُنكَ ٱلَّذِينَ يُسَٰرِعُونَ فِي ٱلۡكُفۡرِۚ إِنَّهُمۡ لَن يَضُرُّواْ |
|---|
| اوغمژن پريشان دې نه کړي تالره هغه کسان چې منډې وهي په مدددکفر کښې، بېشکه دوئ هيڅرې ضرر نشي رسولې |

| اللّٰهَ شَيْـًٔا ۗ يُرِيْدُ اللّٰهُ اَلَّا يَجْعَلَ لَهُمْ حَظًّا فِي الْاٰخِرَةِ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ۝ |
| --- |
| دالله دين ته هيڅ ضرر، غواړي الله چې ونه ګرځوي دوئ لره برخه په آخرت کښې، او دوئ دپاره عذاب لوئې دي |
| اِنَّ الَّذِيْنَ اشْتَرَوُا الْكُفْرَ بِالْاِيْمَانِ لَنْ يَّضُرُّوا اللّٰهَ شَيْـًٔا ۚ وَلَهُمْ |
| بېشکه هغه کسان چې اخیستې ئې دې کفر په بدله دایمان کښې، هرګزضرر نشي رسولې الله ته هیڅ، دوئ لره |
| عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۝ وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَنَّمَا نُمْلِيْ لَهُمْ خَيْرٌ |
| عذاب دردناک دې اوهرګز دې ګمان نه کوي کافران چې مهلت ورکول زمونږ دوئ ته، غوره دي |
| لِّاَنْفُسِهِمْ ۗ اِنَّمَا نُمْلِيْ لَهُمْ لِيَزْدَادُوْٓا |
| په حق دنفسونو ددوئ کښې، بل څۀ ندي سوا ددېنه چې مهلت ورکوو مونږ دوئ ته دپاره ددې چې زیات شي دوئ |
| اِثْمًا ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ۝ |
| په ګنا هنګارئ کښې، او دوئ دپاره عذاب رسواکوونکې دې |

﴿وَلَا يَحْزُنْكَ الَّذِيْنَ يُسَارِعُوْنَ فِي الْكُفْرِ﴾ (يسارعون) متضمن دې معنى د ((يقعون)) لره ((اى يقعون فى الكفرسريعاًلغاية حرصهم عليه وشدة رغبتهم فيه)) او ددې وجې نه ئې په صله کښې (فى) راغلیده نه (الى) کمافى قوله تعالى ((وسارعوالى مغفرة ـــ الآيه)).

دا تسلی ده نبی ﷺ ته، اومسارعة فى الكفر علت دَ ((لاَ يَحزنك)) لپاره نه دې ځکه چه مسارعت فى الكفر ډیرقبیح امر دې نو ددې په مشاهدې سره حزن اوغم پکاردې، منع دحزن نه نده پکاربلکه علت د ((لايحزنك)) دپاره هغه شې دې چه مرتب دې په مسارعت فى الكفر باندې چه خوف دضرر رسولودې مؤمنانوته، مراد دادې چه ته پدې خبره مه غمژن کيږه چه دوئ یعنی دا منافقان یاکفار به تاسوته ضرر ورسوی وجه داده چه ﴿اِنَّهُمْ لَنْ يَّضُرُّوا اللّٰهَ﴾ ((اى اولياء الله)) . وفى حذفِ المضافِ وتعليق نفى الضرربه تعالى تشريف للؤمنين وايذان بان مضارهم بمنزلة مضارته سبحانه وتعالى (روح) ﴿شَيْـًٔا﴾ مفعول مطلق دې په اعتبار دموصوف مقدره سره ((اى ضرارًا شيئًا)). ﴿يُرِيْدُ اللّٰهُ اَلَّا يَجْعَلَ لَهُمْ﴾ یعنې ددوئ په مسارعه فى الكفرکښې دا حکمت مضمردې چه الله تعالى اراده لرى چه دوئ بداعمال ډیروکړى اوکه څه نیکى ئى وى نوچه دهغې بدله ورته په دنیاکښې ورکړې شى اوپه آخرت کښې ورته دعذاب عظيم نه سوا هیڅ ملاؤنه شى، په نسبت دمسارعه کښې کفاروته رد دې په جبريؤ باندې اوپه ((يريدالله))

كنبې رد دې په قدريۆ باندې او دا دليل دې پدې خبره چه كفر دكافر په ارادې دالله ﷻ سره دې نو كفر دكافر مراد دالله تعالى دې ليكن مرضىٰ ئې نده.

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ ٱشْتَرَوُا۟ ٱلْكُفْرَ﴾ دا تخويف دې كفارو ته، مخكنې آيت په باره دمجاهر كافرانو كنبې ؤو او دا عام دې منافقانولره هم شامل دې، يا دمخكنى آيت نه كافران او د دې آيت نه منافقان مراد دى. ﴿لَن يَضُرُّوا۟ ٱللَّهَ﴾ دمنافقانو مكرونه بدل دى دكافرانو دمكرونو نه نو ددينه دوباره ذكر شوه نفى دضرر. ﴿وَلَا يَحْسَبَنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟﴾ پدې كنبې دكفارو دگمان رد دې يعنى كه دوئ داگمان كوى چه مونږ سره دولت، عزت اوږدعمر وغيره انعامات، ترقيات دى نوكه مونږمعذب اومطرود وې نو دومره فراخى اومهلت ولې راكولې شى؟ نوجواب وشو چه دا امور ددوئ دپاره استدراج دې اوخيرنه دې.

﴿ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓا۟﴾ فاعل دلايحسبن دې او «انّ» سره دمدخول نه قائمقام دمفعولينو دې (أَنَّ) حرف دې دحروف مشبه بالفعل نه او «ما» مصدريه ده او «نملى» په تاويل دمفرد سره اسم د «انّ» دې او «خَيْرٌ» ورله خبردې اودا جمله قائمه ده په مقام دمفعولينو باندې، يا «ما» موصوله ده اومابعد ورله صله ده، موصول سره دصله نه اسم د«انّ» شو او «خيرٌ» ورله خبر شو بناء په دواړو احتمالينو باندې «ما» د «انّ» نه جدا ليكل مقتضىٰ دقياس ده ليكن چونكه په «امام» كنبې يعنى په مصحف عثمانى كنبې دغه شان مكتوب ؤو نودهغې اتباع وكړې شوه «نملى» د املاء نه مشتق دې او املاء اطالة المدة ته وائى او«ملاء» حين طويل ته وائى «مَلَوان» ليل اونهارته وائى ځكه چه ددوئ تعاقب اوديوبل نه ورستو راتلل طويل دى.

او«املاء الكتاب» «لكهوانا» ته ځكه املاء ته وائى چه په هغې كنبې طول د مدې وى په سبب د وقوف سره . په هره كلمه ﴿لِيَزْدَادُوٓا۟ إِثْمًا﴾. يعنى دمهلت اوزيادت دعمرپه وجه به ددوئ په جرم كنبې ترقى وشى نو زيات عذاب به ورته وركړې شى.

| مَا كَانَ اللّٰهُ لِيَذَرَ الْمُؤْمِنِيْنَ عَلٰى مَآ اَنْتُمْ عَلَيْهِ حَتّٰى يَمِيْزَ |
|---|
| داسې نه كوي الله، چې پريږدي مومنانولره په هغه حال(گډوډ)باندې چې تاسو په هغې يئ، (نازلوى امتحانات) ترڅو |
| الْخَبِيْثَ مِنَ الطَّيِّبِ ۗ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَجْتَبِىْ |
| چې جدا كړي پليت(منافق)دپاك(مخلص مومن) نه، اوندي الله چې خبركړي تاسو په غيب باندې، ليكن الله غوره كوي |

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ رُّسُلِهٖ | مَنْ | يَّشَآءُ | فَاٰمِنُوْا | بِاللّٰهِ | وَرُسُلِهٖ | وَ اِنْ | تُؤْمِنُوْا | |

درسولانو خپلونه څوک چې اوغواړي، پس تاسو ايمان راوړئ په الله اوپه رسولانو دهغه، اوكه ايمان راوړئ تاسو

وَتَتَّقُوْا فَلَكُمْ اَجْرٌ عَظِيْمٌ

او تقوي اوكړئ پس تاسولره اجر لوئي دي

﴿مَا كَانَ اللّٰهُ لِيَذَرَ الْمُؤْمِنِيْنَ﴾ مخكې آيت كښې دكفارو متعلق د شبهې جواب ؤو چه كه چرې دوئ مطرود اومبغوص عندالله وې نو ولې ورته مهلت اوعزت، دولت وركولې شى او په دې آيت كښې دمؤمنانو متعلق دشبهې جواب دې چه مؤمنان دالله ﷻ محبوب اومقبول بندګان دى، نوپدوئ ولې تكاليف، مصائب، آزمايشونه راځى ،محبوب ته خو راحتونه، آسانى وركول پكاردى، جواب دادې چه الله ﷻ دمصائبو اوحالاتوپه ذريعه سره تميز دمنافق او دمؤمن راولى، كه حالات اومصائب نه وې نو دمنافق تميز به دمخلص مؤمن نه مشكل ؤو اومنافق ته به منافق ويل مشكل ؤو اوچه مصائب اوحالات راشى نوعملاً تميز راشى دمنافق اومؤمن او دپاك اوناپاك په مينځ كښې، نو دمنافق منافقت واضح شى اودخپل منافقت نه انكار نشى كولې نومنافق ويل ورته مشكل نوى.

﴿عَلٰى مَآ اَنْتُمْ عَلَيْهِ﴾ (انتم) خطاب مؤمنانو اومنافقانو دواړو ته دې اومراد د «ما انتم عليه» نه اختلاط اوالتباس دې يعنى الله ﷻ تاسو په داسې حالت باندې نه پريږدى چه تاسوپه هغې باندې يئ چه د مؤمن اومنافق تميز نوى راغلې . ﴿حَتّٰى يَمِيْزَ الْخَبِيْثَ مِنَ الطَّيِّبِ﴾ دخبيث نه مراد منافق دې او دطيب نه مراد مؤمن دې او «حق» غايه دمحذوف دپاره ده «اى يتزل الشدائد حق يميز» او غايه د مذكور دپاره نده څكه چه كه (حق) د انتهاء دپاره وى نومعنى به دا سې شى چه الله ﷻ نه پريږدى مؤمنانولره په حالت داختلاط اوالتباس كښې تردې پورې چه تميز راولى دپليت دپاك نه نويعنى بيابه ئې پريږدى په حالت داختلاط اوالتباس، اوظاهره ده چه دامعنى فاسده ده

﴿وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ﴾ دا **جواب دسوال مقدردې** اوهغه دادې چه الله ﷻ چه تميز دمؤمن اومنافق دمصائبو او ابتلاګانو په ذريعه راولى نو داسې ولې نه كوى چه مونږته خبر راكړى چه فلانې مؤمن دې اوفلانې منافق دې، **حاصل دجواب** دادې چه دا امور غيبيونه ده اوالله ﷻ په امورغيبيؤ باندې هرڅوك نه مطلع كوى، يعنى هرچاته وحى نه كيږى

بلکه دوحی دپاره د انبیاؤ انتخاب کوی، اوهغه ته په ذریعه دوحی سره دبعضې مغیباتوعلم ورکوی اودې علم ته په اصطلاح دشرع کښې علم غیب نشی ویلې بلکه اطلاع علی الغیب ورته ویلې شی ،علم غیب په اصطلاح دشرع کښې هغې ته وائی چه ذاتی علم وی اوپه غیر دسبب نه وی اوپه ټولو کائناتوباندې وی اوپه دې آیت کښې نفی د اطلاع علی الغیب ده دمؤمنانونه او اثبات د اطلاع علی الغیب دې رسولانولره، دعلم غیب نفی اوثبات نه دې او دارنگه په قرینه دمقام سره دغیب نه کل مغیبات نه دی مراد بلکه بعضې مغیبات مراد دی یعنی اطلاع په دې چه فلانی مؤمن دې اوفلانې منافق دې اومفسرینو ټولو د «ولکن الله یجتبی من رسله» په تفسیرکښې «فیطلعه ببعض المغیبات» لیکلی دی، نو ددې آیت نه علم غیب کلی ثابتول انبیاؤ لره جهالت دې. ﴿وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ يَجۡتَبِي﴾ «لکن» د استدراك دپاره دې یعنی دفع دتوهم چه ناشی وی دکلام سابق نه، هغه توهم دا دې چه هیڅ چاته به الله ﷻ اطلاع علی الغیب نه ورکوی ، جواب وشو چه انبیاؤ ته دوحی په ذریعه سره الله تعالی اطلاع ورکوی خو دا په مشیت د الله تعالی سره دې چه الله تعالی کله وغواړی او څومره چه وغواړی نو دهغې اطلاع ورته ورکړی «یجتبی» د اجتباء نه مأخوذ دې او اجتباء رانښکلوته وائی اوپه عرف کښې ترینه مراد اصطفاء اوانتخاب دی. یعنی الله غوره کوی اومنتخب کوی د وحی اونبوت دپاره هغه څوك چه وغواړی اوپه ذریعه دوحی سره ورته اطلاع ورکوی.

﴿فَـَٔامِنُواْ بِٱللَّهِ﴾ دا تفریع ده په ماقبل چه هرکله معلومه شوه چه مهلت ورکول اونعمت اودولت ورکول کفاروته دلیل دمقبولیت ندې او ابتلاء اومصائب راتلل دلیل دمبغوض کیدلونه دې بلکه داراومدار دمقبولیت ایمان دې نوتاسوایمان راوړئ په الله ﷻ باندې او رسولانوباندې، او د ایمان بالله ورُسله په تفسیرکښې صاحب دروح المعانی داسې ویلی دی : ((وقدیقال ان المرادمن الایمان بالله تعالی ان یعلموه وحده مطلقاً علی الغیب ومن الایمان بُرسله ان یعلموهم عباداً مجتبین لایعلمون الاماعلمهم الله تعالی ولایقولون الامایوحی الیهم فی امرالشرائع)) : نو دا تصریح ده پدې خبره چه صرف الله ﷻ په تمامومغیباتو باندې عالم گڼړل ایمان بالله دې او انبیاء په تمامومغیباتوباندې عالم نه گڼړل ایمان بالرُسل دې. ﴿وَإِن تُؤۡمِنُواْ﴾ ددې نه ایمان حقه اوصحیحه مراد دې ﴿وَتَتَّقُواْ﴾ ددې نه ځان بچ کول مراددی دمخالفت د امر اونهی نه او دارنگه ځان بچ کول دنفاق نه مراددی.

﴿فَلَكُمۡ أَجۡرٌ عَظِيمٌ﴾ یعنی د ایمان او دتقوی بدله اجرعظیم دې .

| وَلَا يَحْسَبَنَّ | الَّذِينَ | يَبْخَلُونَ | بِمَآ | اٰتٰهُمُ | اللّٰهُ | مِنْ | فَضْلِهٖ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوهرگز گمان دې نه کوي هغه کسان چې شومتياکوي په هغه چې ورکړيدې دوئ ته الله دَ خپل فضل نه | | | | | | | |
| هُوَ خَيْرًا | لَّهُمْ ط | بَلْ | هُوَ | شَرٌّ لَّهُمْ ط | سَيُطَوَّقُوْنَ | | |
| چې داغوره دې دوئ لره، بلکه داډېربدې دې ددوئ په حق کښې، زرده چې ددوئ غاړې ته به په شکل دطوق «هار» واچولې شي | | | | | | | |
| مَا | بَخِلُوْا | بِهٖ | يَوْمَ | الْقِيٰمَةِ ط | وَلِلّٰهِ | مِيْرَاثُ | السَّمٰوٰتِ |
| هغه مال چې دوئ په هغې کښې بخل کړې وؤ په ورځ دقيامت، اوخاص الله لره دې ميراث دآسمانونو | | | | | | | |
| وَالْاَرْضِ ط وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴿۱۸۰﴾ | | | | | | | |
| اودزمکې، اوالله په هغه عملونوچې تاسو ئې کوئ خبردار دې. | | | | | | | |

﴿وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ﴾ ددې سورت په دويمه حصه کښې دمضمون جهاد اوانفاق ذکردې نو دمضمون جهاد تفصيلي ذکرنه وروسته دمضمون دانفاق اعاده کيږی اولاً اووديته بعد ئ بيا اعاده هم کيږی، پدې آيت کښې د انفاق ذکرپدې طريقه کيږی چه وعيد ذکرکيږی په ترک دانفاق اوپه کولو د بخل باندې، اواهل علم وائی چه بخل منع د انفاق واجبه ته وائی يعنی کوم ځائ کښې چه خرچ کول واجب وی لکه نفقه د اهل اوعيال، زکوة، دجهاد او اعلاء دکلمة الله دپاره خرچ کول وغيره نوپه داسې ځائ کښې خرچ نه کول بخل دې، حاصل ددې وعيد دادې چه بخيل چه خپل مال نه خرچ کوی نودا گمان کوی چه مال باقی پاتې کيدل خير دې اوکيه ده نو الله ﷻ فرمائی چه دا گمان مکوئ چه دا خيردې بلکه دا شر دې «لايحسبن» دوه مفعوله غواړی «الذين يبخلون» فاعل دې اومفعول اول مقدردې چه «البخل» دې او «هو» ضمير فصل دې او «خيراً» ئې مفعول ثانی دی ﴿بَلْ هُوَ شَرٌّ﴾ د «هو» ضمير بخل ته راجع دې او په ذکر ددې کښې تاکيد دې دنفی دخيرية ﴿سَيُطَوَّقُوْنَ﴾ دا تفصيل د «شرّ» دې او ددې تفصيل په حديث کښې ذکردې مضمون ئې دادې چه: چا ته الله ﷻ مال ورکړې وی اودې دهغې زکوة نه اداء کوی نوپه ورځ دقيامت به دغه مال په شکل دگنجی ښامار جوړکړې شی يعنی ډير زهريلا به وی اودده وخکښې به شلوی اووائی به چه زه ستامال يم اوستاخزانه يم.

﴿ وَلِلّٰهِ مِيْرَاثُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ﴾ په دنياکښې ظاهری ملکيت دخلقو شته دې خوپه مرگ سره دا ظاهری اومجازی ملکيت هم ختم شی او دنيا وما فيها به هرڅه يومالك حقيقی ته پاتې شی، ديته ئې ميراث تشبيهاً ويلی دی، حاصل دادې چه په مرگ سره مال هسې هم

ستاسو نه پاتې کيږي خو په خپل لاس سره ئې د الله ﷻ په لاره کښې خرچ کړئ نو ثواب به درته ملاؤ شي.

**فايده** : خلق چه وايئ اوليکي (( الله، نبي وارث )) دا غلطه عقيده او ددې آيت نه مخالفه ده

| لَقَدْ سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ فَقِيْرٌ وَّنَحْنُ اَغْنِيَآءُ |
|---|
| په تحقيق سره آورېدلې ده الله خبره د هغه خلقو چې دوئ وائې چې بېشکه الله فقير دې او مونږ مالدار يو |
| سَنَكْتُبُ مَا قَالُوْا وَقَتْلَهُمُ الْاَنْۢبِيَآءَ بِغَيْرِ حَقٍّ ۙ وَّنَقُوْلُ ذُوْقُوْا |
| خامخا ليکومونږ هغه چې دوئ ئې وائې او (ليکو مونږ) قتلول ددوئ نبيانو لره په ناحقه سره، او وايو به چې اوڅکئ |
| عَذَابَ الْحَرِيْقِ ﴿۱۸۱﴾ |
| عذاب داور سوزونکي |

﴿ لَقَدْ سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّذِيْنَ ﴾ دا متعلق دې د مضمون انفاق سره او زجر او وعيد دې يهودوته ،مفسرينو په مختلف رواياتو سره نقل کړيدي چه کله نازل شو دا آيت ﴿مَّنْ ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا ﴾ ـ الايه ــ نو يهوديانو استهزاءً وويل چه : ((ان الله فقير)) مقصود ترينه استهزاء وه اوقدح په رسالت وه يعنی که چرې داخبره ((يقرض الله)) فی الواقع دالله ﷻ کلام وی نوبيا خوالله ﷻ فقيردې اومونږ اغنياء يو، حالانکه دکلام الله مراد واضح ؤ چه انفاق فی سبيل الله دې اوتعبير ترينه په قرض سره وشوځکه چه لکه څرنګه قرض واجب الاداء وی نودغه شان الله ﷻ دانفاق فی سبيل الله اجر او بدله ضرور ورکوی اوپدې تعبيرکښې دانتهائی شفقت او رحمت اظهاردې نوپدې آيت کښې دوئ ته وعيدذکرشو ((سمع الله)) دلته کنايه تلويحيه ده يعنی اشاره ده سخت وعيدته لکه مجرم ته ويلې شی چه : ما ستاخبرې واوريدې ما ستا عمل وليدلو، مقصود ترينه د اوريدلو اوليدلوخبرورکول نه وی بلکه سزا ورکولوته اشاره وی ﴿سَنَكْتُبُ مَا قَالُوْا﴾ سين د استقبال دپاره نه دې بلکه د تاکيد دپارهٔ دې اومراد ددينه کتابت دې په ذريعه دملائکوسره ﴿وَقَتْلَهُمُ الْاَنْۢبِيَآءَ﴾ دا عطف دې په ((ماقالوا)) باندې. اوقتل د انبياؤ اګرکه موجوده يهوديانو نه ؤوکړې بلکه ددوئ مشرانوکړې ؤو خو دوئ ته ئی نسبت پدې وجه وشو چه دوئ رضاؤو په فعل دمشرانوخپلو اوڅوك چه په معصيت راضی شی نو دې هم په دغه معصيت کښې شريك وی په دليل دحديث دابوداؤود سره ((اذاعُمِلَتِ الخطيئةُ فى الارضِ كان مَنْ شَهِدَهَا فكرهَهَا كَمَنْ غابَ عَنْهاومنْ غَابَ عنهافرضِيَهاكانَ كَمَنْ

شهدها)) ((قرطبي))

اودارنګه قرطبيؒ ويلي دي چه يو سړي د امام شعبي رحمه الله په مخکښې قتل دعثمان رضي الله عنه ته ښه کار وويل نوشعبي رحمه الله ورته وويل چه ((شركت في دمه)) يعنې چه ته هم دهغه دوينو تويولو په ګناه کښې شريك شوې اوهرکله چه په اقوالوکښې ډير اقبح قول قولِ مذکوره د يهوديانوؤو اوپه افعالو کښې ډيراقبح فعل قتل د انبياؤ ؤو نوقول اوعمل دواړه ددوئ ډير اقبح اوسبب دلوئ عذاب دپاره ؤو ، نوځکه دقول ددوئ سره يې عمل ددوئ هم ذکرکړو

﴿وَنَقُولُ ذُوقُوا﴾ دا تخويف اخروی دې، اوداقول په واسطه دملائکوسره دې دغه کفاروته په وخت دموت کښې ياپه حشرکښې يا په دواړو وختونوکښې، اوذوق په محسوساتوکښې استعماليږي نو پدې کښې اشاره ده ديته چه ددغه عذاب تکليف به دوئ ته پشان دمحسوساتووی يعنی جسمانی به وی،صرف روحانی به نوی اوذکرد ذوق د تقليل دپاره ندې

﴿عَذَابَ الْحَرِيقِ﴾ حريق بمعنی المحرق دې او اضافت بيانی دې يعنی هغه عذاب چه سوزونکې دې .

| ذٰلِكَ | بِمَا | قَدَّمَتْ | اَيْدِيْكُمْ | وَ اَنَّ | اللّٰهَ | لَيْسَ | بِظَلَّامٍ | لِّلْعَبِيْدِ ۚ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| داعذاب په سبب دهغه عمل دې چې مخکښې ليږلي دي لاسونوستاسواوبېشکه الله ندې ظلم کوونکې په بندګانو | | | | | | | | |
| اَلَّذِيْنَ | قَالُوْٓا | اِنَّ | اللّٰهَ | عَهِدَ | اِلَيْنَآ | اَلَّا | نُؤْمِنَ | لِرَسُوْلٍ حَتّٰى يَأْتِيَنَا |
| داهغه کسان دي چې وائې چې بېشکه الله حکم کړې دې مونږ ته چې ايمان به نه راوړونه هيڅ رسول باندې تردې چې راوړي مونږ ته | | | | | | | | |
| بِقُرْبَانٍ | تَأْكُلُهُ | النَّارُ ؕ | قُلْ | قَدْ | جَآءَكُمْ | رُسُلٌ | مِّنْ | قَبْلِيْ بِالْبَيِّنٰتِ |
| قرباني چې اوخوري هغې لره اور، ته اووايه چې يقينًا راوړې وې تاسوته پيغمبرانو مخکښې ځمانه واضحه معجزې | | | | | | | | |
| وَ بِالَّذِيْ | قُلْتُمْ | فَلِمَ | قَتَلْتُمُوْهُمْ | اِنْ | كُنْتُمْ | صٰدِقِيْنَ ۞ | فَاِنْ | |
| اوهغه هم چې تاسوئې وائې، پس ولې تاسووژل هغوئ لره کچرې يئ تاسوريښتني . پس که دوئ تاته | | | | | | | | |
| كَذَّبُوْكَ | فَقَدْ | كُذِّبَ | رُسُلٌ | مِّنْ | قَبْلِكَ | | | |
| دروغژن وائ (نوصبرکوه) پس په تحقيق سره دروغژن ونيلې شوي دي ډيرورسولانوته ستانه مخکښې | | | | | | | | |

| جَآءُوْ | بِالْبَيِّنٰتِ | وَالزُّبُرِ | وَالْكِتٰبِ | الْمُنِيْرِ۝ |
|---|---|---|---|---|

راوړي وو هغوئ ښکاره دليلونه (عقلي) او صحيفي (واړه کتابونه) او (لوئ) کتاب رڼا کوونکي

په ﴿ذَالِكَ﴾ سره اشاره ده عذاب ته، او اسم اشاره بعيد راوړي شوه نو پدې کښې اشاره ده لوئ والی دعذاب ته.

﴿ذَالِكَ﴾ مبتداء ده او خبر ورله دادې ﴿بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيكُمْ﴾ (باء) سببيه ده يعنی دغه ډير لوئ عذاب په سبب دهغه ډيرو بدو عملونو سره دې چه تاسو دخان نه مخکې ليږلی دی لکه قتلول د انبياؤ او نور قبيح اعمال او ذکرد «ايديکم» دې او مراد ترينه نفسونه ددوئ دی تعبير دکل نه په جزء سره وشو ځکه اکثر افعال په لاسونو سره کولې شی، او «مَا قَدَّمَتْ» عام دې شامل دې اعتقاداتو، اقوالو، افعالو د دجوارحو ره.

﴿وَأَنَّ اللَّهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ﴾ دا عطف دې په «ماقدمت» باندې او داخل دې تحت دحکم د (باء) سببيه نه، نو حاصل دادې چه سبب دعذاب ددوئ دپاره مجموعه دامرينو ده: امر اول بد عملونه ددوئ دی، او امر ثانی عدل دالله ﷻ دې، نفی د هر ظلم مستلزم دې عدل لره نو دبدو اعمالو سزا ورکول عدل دې نو ددوئ بدعملونه او عدل دالله ﷻ سبب دې دمعذب کيدلو، **سوال**: ظلّام صيغه د مبالغې ده په کثرت دلالت کوی، نو نفې د کثير ظلم وشوه او د قليل ظلم ونه شوه، **جواب**: ١- فعّال وزن هميشه دمبالغې دپاره نه راځی کله دنفسِ اتصاف دپاره راځی نو د «ليس بظلّام» معنی ليس بذی ظلم دې (جلالين). ٢- دا نفی دمبالغې او د زيادت نه ده بلکه دا مبالغه فی النفی ده. ٣- که بالفرض ظلم کول دالله ﷻ صفت وې نو دا به د نورو صفاتو په شان پوره او کامل وې، نو بيا به الله ﷻ ظالم نه وې بلکه ظلّام به وې نو ځکه نفی په صيغه دمبالغې سره وشوه.

﴿ الَّذِينَ قَالُوا﴾ دا په محل دجر کښې صفت يا بدل دې د «الذين» نه په «قول الذين» کښې يا په محل کښې خبر دمبتداء مقدرې دې «ای هم الذين قالوا» ددينه يهوديان مراد دی لکه کعب بن اشرف وغيره چه دوئ په نبی ﷺ باندې د ايمان نه راوړلو دپاره دا بهانه کوله چه مونږ ته الله ﷻ داسې حکم کړيدې چه په هيڅ مدعی دنبوت باندې ترهغه وخته پورې ايمان مه راوړئ ترڅو چه دا معجزه ئی نوی ظاهره کړی چه ﴿حَتَّىٰ يَأْتِيَنَا بِقُرْبَانٍ﴾ (قربان) مصدر دې

بمعنی المفعول. په اصل کښې هرهغه څیزته ویلې شی چه په هغې سره تقرب الی الله حاصلیږی، حیوان وی اوکه نورنقود وغیره وی، دبعضې رسولانو نه داسې معجزې ظاهرې شوې وې چه قربانی یابل یوشئ به ئی دالله ﷻ په نامه نذرکړو نو د آسمان نه به اور راغې او هغه به ئی وسیزلو او دا به دقبولیت علامه وه، نویهودیانو محض د درغو بهانه وکړه او وې ویل چه دهر نبی دپاره دا معجزه ضروری ده اوچه څوك دا قسم معجزه پیش نه کړی نوهغه به نبی نوی اومونږ په هغه ایمان نه راوړو او دا خبره دیهودیانومحض بهانه وه او دروغ ؤو نو الله ﷻ په دوئ رد کوی چه ﴿قُلْ قَدْ جَآءَكُمْ﴾ یعنی که پدغه خاصه معجزه باندې ستاسوایمان راوړل موقوف وی نوستاسو مشرانو هغه انبیاء ولې قتلول چه هغوئ دخپل صداقت دپاره نورې ښکاره معجزې هم پیش کړې وې او دا معجزه ئی هم پیش کړې وه.

﴿وَبِالَّذِي قُلْتُمْ﴾ دا تخصیص بعدالتعمیم دې، اومراد ددینه دغه معجزه دقربانی ده چه اُور یې وسیزه وی.

**فائده** : بعضې مفسرینو ویلی دی (کما فی القرطبی) چه ویلی شوی دی چه دا حکم په تورات کښې موجودؤو خو پوره کلام داسې ؤو : ((حتی یأتیکم المسیح ومحمدﷺ فاذا اتیاکم فامنوا بهما من غیرقربان)) اوبعضو ویلی دی چه دا حکم دعیسی ﷺ په راتلوسره منسوخ شو لیکن یهودیانو پدې کښې تحریف اوکتمان وکړو، اوبعضې مفسرین وائی چه دا شرط په تورات کښې نه ؤو موجود اونه پکښې تراوسه پورې شته دې، اودغه حکم اګرکه د ډیرو رسولانوپه باره کښې ثابت دې لکه واقعه دقابیل اوهابیل ،یا لکه دیوشع ﷺ په زمانه کښې دمال غنیمت په باره کښې په صحیح حدیث سره ثابت دی او دارنګه دنورو انبیاؤ په باره کښې ثابت دی لیکن داسې نشته چه هر رسول به داسې معجزه راوړی لکه دموسی ﷺ په معجزاتو کښې ثابته نده او دغه شان دنورو ډیرو انبیاؤ په حق کښې دامعجزه نده ثابته نوبناپه هر تقدیر دغه قول دیهودیانوچه ﴿أَلَّا نُؤْمِنَ لِرَسُولٍ﴾ په طریقه دعموم سره محض تعنت اودروغ دی.

﴿فَإِن كَذَّبُوكَ﴾ پدې آیت کښې تسلی ذکرکول دی نبی ﷺ ته، اودا شرط دې اوجزاء ئی مقدره ده چه ((فلاتحزن ) یا ((فاصبر)) او ﴿فَقَدْ كُذِّبَ﴾ دمحذوفې جزاء دپاره قائمقام اوعلت

دي او ((رُسُل)) كښې تنوين دتكثير دپاره دي يعنى كه چرې دا يهوديان په تا ايمان نه راوړى اوستا تكذيب كوى نوته مه غمژن كيږه ځكه چه داسې ضديان كفارد مخكنو انبياؤ په وخت كښې هم موجود ؤو او دهغوئ تكذيب ئې كړې ؤو حالانكه چه انبياؤ ورته واضح معجزات پيش كړى ؤو اوهدايت اونوروالاكتابونه ئې راوړى ؤو ((بَيِّنَات)) واضحه معجزى دى او ((زُبُر)) جمع د زبور ده لكه رُسُلُ جمع درسول ده، زجاج وائى چه ((زُبر)) هغه كتابونوته وائى چه مقصور على الحكم وى يعنى صرف احكامات وى پكښې او چا ويلى دى چه ((زُبُر)) د ((زُبر)) نه مأخوذ دې په معنى د زجرسره ((زَبَرْتُهُ اى زَجَرْتُهُ)) نو زُبرهغه كتابونوته وايى چه پكښې مواعظ او زواجر وى او احكامات پكښې نه وى . اوكتاب دداؤد ﷺ ته زبورځكه وائى چه مواعظ، فضائل پكښې ؤو او احكامات پكښې نه ؤو دلته دزبرنه صحيفې اودارنګه كتاب د داؤد ﷺ مراد دې او ﴿وَٱلْكِتَٰبِ ٱلْمُنِيرِ﴾ نه مراد تورات او انجيل دى .

| |
|---|
| كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ ٱلْمَوْتِ ۗ وَإِنَّمَا تُوَفَّوْنَ أُجُورَكُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ۖ فَمَن |
| هرساه والاځكونكې دمرګ دي ، اويقينًا پوره به دركولې شي تاسوته ثوابونه ستاسويه ورځ دقيامت، پس څوك |
| زُحْزِحَ عَنِ ٱلنَّارِ وَأُدْخِلَ ٱلْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ ۗ وَمَا ٱلْحَيَوٰةُ ٱلدُّنْيَآ إِلَّا مَتَٰعُ ٱلْغُرُورِ ۝ |
| چې لرې كړې شوداور نه اوداخل شوجنت ته نويقينًاهغه كامياب شو، اوندې ژونددنيوي مګر سامان ددهوكې دې |
| لَتُبْلَوُنَّ فِىٓ أَمْوَٰلِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ |
| خامخابه آزمېښت اوكړېشي په مالونوستاسو كښې اونفسونوستاسو كښې، اوخامخا به واورئ تاسو دهغه |
| ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ مِن قَبْلِكُمْ وَمِنَ ٱلَّذِينَ أَشْرَكُوٓا۟ أَذًى كَثِيرًا ۚ |
| كسانونه چې وركړې شوېدې ورته كتاب مخكښې ستاسونه، اودهغه كسانونه چې شرك ئې كړېدې، بده وېنادېره |
| وَإِن تَصْبِرُوا۟ وَتَتَّقُوا۟ فَإِنَّ ذَٰلِكَ مِنْ عَزْمِ ٱلْأُمُورِ ۝ |
| اوكه صبراوكړو تاسواوځان موبچ كړو دګناه نه پس بېشكه داخصلت دَ مقصودى كارونونه دې |

﴿كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ ٱلْمَوْتِ﴾ په دې كښې دمضمون جهاد دوباره اعاده ده اوترغيب دې چه څوك چه جهاد نكوى نووجه دا كيدې شى چه دموت خوف ورسره وى، نوالله ﷻ اوفرمايل چه موت خو خامخا راځى اوپه هرحال كښې راځى اګركه تاسوپه خپلوكورنوكښې دننه كينئ يا جهاد ته لاړشئ نوبهتره داده چه جهادته لاړشئ ځكه چه پدې كښې دنيوى فائدې هم دى چه

حفاظت دملك اوملت او آبرو او عزت دي اوحصول دمال غنيمت دي او اُخروی فائدې هم دی چه حصول د اجر اوثواب دې. ﴿وَإِنَّمَا تُوَفَّوْنَ﴾ يعنې ستاسو د اعمالو(مثلاً جهاد) بدله کومه په دنيا کښې يا عالم برزخ کښې ملاويږی نوهغه پوره بدله نده بلکه پوره بدله په قيامت کښې ملاويږی.

﴿فَمَن زُحْزِحَ﴾ «زحزحه» په اصل کښې تکرار«الزح» ته وائی او(زح) جذب بعجلة په جلدئ سره دڅه شی راښکلوته وائی، اولازم ددې سره تبعيد(لرې کول) دی او(فاء) د تفصيل دپاره ده ځکه چه د اجر ميلاويدلو په وجه سره څوك دجهنم نه لرې کړې شی چه بالکل جهنم ته داخل نه شی بلکه ابتداءً جنت ته لاړشی نودغه شان کس مکمل کامياب اوفائزدې اوڅوك چه دهميشه دپاره جهنم ته لاړنوهغه مکمل نامراد او نقصان مند شو اوڅوك چه جهنم نه ابتداءً بچ نشو اګرکه جنت ته ورستولاړنو دې مکمل فائزنه دې.

﴿وَمَا ٱلْحَيَوٰةُ ٱلدُّنْيَآ﴾ مراد دحيات ددنيانه ددنياسامانونه (عُهدې) لذت وغيره مراددی چه دا ټول متاع الغرور دی، زمخشری وايئ، چه متاع الغرورهغې ته وائی چه مشتری ئی په دهوکې سره واخلی بيا ورستو ورته دهغې فساد او ردی والې معلوم شی نودغه شان ددنيا اشياء دی اوپدې آيت کښې اعاده دمضمون دانفاق ده

﴿لَتُبْلَوُنَّ فِىٓ أَمْوَٰلِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ﴾ پدې کښې دمضمون انفاق اوجهاد ددواړو اعاده ده، ابتلاء دمال په انفاق فی سبيل الله سره ده اوابتلاء دنفوسو په جهاد فی سبيل الله سره ده.

﴿وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ ٱلَّذِينَ﴾ داهم د ابتلاء يوصورت دې چه تاسو ديهودو اونصاری اومشرکينو نه طعن ،تشنيع او دهجوې اشعار واورئ اودوئ به په تاسوپورې مسخرې کوی.

﴿وَإِن تَصْبِرُوا۟ وَتَتَّقُوا۟﴾ يعنې ددې ابتلاء او امتحان کاميابی صبر اوتقویٰ ده نوکه تاسو صبر اوتقویٰ اختيارکړئ نو دا ستاسوکاميابی اوخيردې،جزاء دشرط مقدره ده چه «فهوخير» او دا قول چه ﴿فَإِنَّ ذَٰلِكَ﴾ علت دې د جزاء محذوفې دپاره. ﴿مِنْ عَزْمِ ٱلْأُمُورِ﴾ پاخه کارونه، عزم پوخ قصد ته وائی، مصدرپه معنی دمفعول سره دې او اضافت دصفت دې موصوف ته «ای الامورالمعزومة عليها» يعنی هغه امورچه دهغې پوخ قصدکول پکاردی دعاقل دپاره .

يا هغه امور چه واجب کړې دې الله ﷻ په بندګانو خپل

| وَ اِذْ | اَخَذَ | اللّٰهُ | مِيْثَاقَ | الَّذِيْنَ | اُوْتُوا | الْكِتٰبَ | لَتُبَيِّنُنَّهٗ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اوکوم وخت چې واخیسته الله پوخ لوظ دهغه کسانونه چې ورکړې شوېدې ورته کتاب چې ضرور بهٔ بیانوې داکتاب | | | | | | | |
| لِلنَّاسِ | وَ لَا | تَكْتُمُوْنَهٗ | فَنَبَذُوْهُ | وَرَآءَ | ظُهُوْرِهِمْ | وَاشْتَرَوْا بِهٖ | |
| خلقوته اونهٔ بهٔ ئې پټوې، پس دوئ اوغورزولوداالوظ روستو دشاگانوخپلونهٔ، اوواخیستودوئ پدې سره | | | | | | | |
| ثَمَنًا | قَلِيْلًا | فَبِئْسَ | مَا | يَشْتَرُوْنَ ۝ | لَا تَحْسَبَنَّ | الَّذِيْنَ | يَفْرَحُوْنَ بِمَآ |
| عوض لیږل (دنیا) پس دېربددې هغه څیز چې دوئ ئې اخلي . هرګز ګمان مکوه پهٔ هغه کسانو چې خوشحالیږي پهٔ هغه | | | | | | | |
| اَتَوْا | وَّ يُحِبُّوْنَ | اَنْ | يُّحْمَدُوْا | بِمَا لَمْ | يَفْعَلُوْا | | |
| کار چې ئې کړېدې (کتمان دحق) اوغواړي چې صفت اوکړېشي ددوئ پهٔ هغه کارونوچې دوئ ندې کړې (اظهار دحق) | | | | | | | |
| فَلَا تَحْسَبَنَّهُمْ | بِمَفَازَةٍ | مِّنَ الْعَذَابِ | وَلَهُمْ | عَذَابٌ | اَلِيْمٌ ۝ | وَلِلّٰهِ | |
| پس هرګز ګمان مکوه پدوئ دبچ کېدلوعذاب نه، اودوئ دپاه عذاب دردناک دې. اوخاص الله [1] لره ده | | | | | | | |
| مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝ | | | | | | | |
| بادشاهي د آسمانونو او د زمکې اوالله پهٔ هرڅیز قادر دې | | | | | | | |

﴿وَإِذْ أَخَذَ ٱللَّهُ مِيثَٰقَ ٱلَّذِينَ﴾ دا زجردې احبارو او رهبانو د اهل کتابوته، او اشاره ده دیته چه کوم خلق په تاسوطعن .تشنیع کوی اوپه تاسو پورې مسخرې کوی نو دهغوئ خپل حال خو دادې چه دوئ کتمان دحق کوی. د ﴿لَتُبَيِّنُنَّهُۥ﴾ ضمیر راجع دې کتاب ته او بیان نه مراد د احکاماتو بیانول دی لکه حکم د زنا دمحصن شو، او د اعتقادیاتو بیانول دی چه په هغې کنبې د رسول الله ﷺ رسالت دې ﴿وَلَا تَكْتُمُونَهُۥ﴾ دا تاکید د ماقبل دې او د ﴿فَنَبَذُوهُ﴾ ضمیر راجع دې کتاب ته یامیثاق ته او د ﴿ثَمَنًا قَلِيلًا﴾ نه مراد دنیوی منافع دی، مال وی اوکه جاه وی او یا مرتبه وی. ﴿فَبِئْسَ مَا يَشْتَرُونَ﴾ دبد والی وجه داده چه دا سبب دعذاب ابدی دې. دا آیت اګرکه نازل دې په باره دیهودیانو کنبې خوحکم ئې عام دې شامل دې هرهغه چالره

---

۱ - دا صورت دخلورو مضامینو دمضمون توحید اعاده .

چه دیهودو پشان دحکم شرعی کتمان وکړی ددنیوی مفاداتو په خاطر.

﴿ لَا تَحْسَبَنَّ ٱلَّذِينَ﴾ پدې کښې زجر او تخويف اخروی بيانيږی اهل کتابوته اوخطاب يا حضور ﷺ ته دې ياهر مخاطب ته دې، مقصود دادې چه که اهل کتابو دحق کتمان وکړو او دنيوی مال اوجاه ئې اختيارکړو نودا ددوئ دپاره دحقيقی عزت او راحت ذريعه نه ده بلکه د ذلت او د عذاب ذريعه ده. ﴿بِمَآ أَتَوا۟ وَّيُحِبُّونَ﴾ وعيد اهل کتابوته په دووجرمونوسره بيانيږی. ١- ((بما اتوا)) ددينه مراد کتمان دصفت دنبی ﷺ او د احکاماتو دې، ددنيوی اغراضو او منافعو په خاطرلکه په بخاری شريف کښې دی چه رسول الله ﷺ ديهوديانو نه تپوس وکړو چه آيا دا خبره په تورات کښې شته نودوئ کتمان وکړو اوهغه خبره چه په تورات کښې وه نو دهغې خلاف ئې بيان کړه او په خپله کارنامه باندې خوشحاله شو چه مونږ خو دهوکه ورکړه نوپدې **دا آيت نازل شو**، اوپه بل روايت دابن عباس رضی الله عنه کښې دی چه يهوديانو دنبی ﷺ وصف پټ کړو نودا آيت نازل شو چه ﴿ وَإِذْ أَخَذَ ٱللَّهُ مِيثَٰقَ﴾ ــ الايه.

٢- دويم ﴿وَّيُحِبُّونَ أَن يُحْمَدُوا۟﴾ ـ الايه ـ ددينه مراد دادې چه اطاعت درسول ﷺ ئې ندې کړې او اظهاردحق ئې نه ؤو کړې او دائې غوښته چه زمونږ مدح دې وکړې شی اولوئ عالم متقی. محقق راته وه ويلې شی. ﴿فَلَا تَحْسَبَنَّهُم بِمَفَازَةٍ﴾ دا تاکيد او اعاده.د اول ((لاتحسبن)) ده ((اعاده بعدعهد ــ **شيخ رحمه الله**)) صاحب دروح المعانی د زجاج نه نقل کوی چه (( اذا طالت القصة تعيد حسبت وما اشبهها ــ الخ)). يعنی کله چه قصه اوږده شی اومخکښې کلام نميګړې پاتې وی نوحسبت يا ظننت وغيره اعاده کولې شی دپاره ددې چه معلومه شی چه دا کلام د اول سره متصل دې کماتقول ــ لاتظنن زيداً اذاجاءك وكلمك بكذاوكذا ــ فلاتظنه صادقاً.

﴿بِمَفَازَةٍ مِّنَ ٱلْعَذَابِ﴾ مفعول ثانی دې او (مفازة) يا مصدرميمی دې اوباء دتلبس دپاره ده ((ای متلبسين بفوز ونجاة من العذاب)) ياظرف مکان دې ((ای محل فوزٍ ونجاةٍ)). يا مفازةٍ په معنی دبعيد سره دې المفازة القفر.

**فايده**: په سورة آل عمران کښې خلورمضامين ذکرشو. ١- توحيد، ٢- رسالت ٣- جهاد، ٤- انفاق. ددينه بعد ددې مضامينو اعاده کيږی اوپدې سورت کښې اصلاح دنصاری ؤ زياته مدنظر ده نو دمضمون توحيداعاده پدې آيت سره کيږی.

﴿وَلِلَّهِ مُلْكُ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ﴾ يعني تصرف اوقدرت كلي صرف الله لره دي نه عيسى ﷺ لره اونه حضرت مريم عليها السلام لره. ﴿وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ پدې كښې هم حصرمراد دې په قرينه داول سره يعنې قدرت كلي په هرشي صرف الله تعالى لره دې نه عيسى ﷺ اونه مريم لره.

| اِنَّ | فِيْ | خَلْقِ | السَّمٰوٰتِ | وَالْاَرْضِ | وَاخْتِلَافِ | الَّيْلِ | وَالنَّهَارِ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| بېشكه | په | پيدائش | د آسمانونو | او زمكې | كښې اوپهٔ اختلاف | يعنى تللو راتللو دشپې | ورځ كښې دپهردلائل دي |
| لَاٰيٰتٍ لِّاُولِي الْاَلْبَابِ ۝ | | | | | | | |
| دپاره د خاوندانود صفا عقل | | | | | | | |

﴿إِنَّ فِي خَلْقِ ٱلسَّمَـٰوَٰتِ﴾ دا دليل عقلي دې په توحيد باندې، «**في خلق السموات**» سره دمعطوفاتو نه خبر د ((اِنَّ)) مقدم شويدې او ((لَاٰيٰتٍ)) ئې اسم مؤخردې اولام تاكيدپه اسم داخل شو اگركه محل ئې خبروى ځكه چه دلته اسم مؤخرشويدې، اوتنوين په ((لَاٰيٰتٍ)) كښې دتعظيم اوتفخيم دپاره دې يعنې پدې امورومذكورؤ كښې كثير دلائل اوعظيم دلائل دتوحيد د بارى تعالى دى. او «خلق السموت» نه مراد خود آسمان اونمر،سپوږمۍ او بې شماره ستورى .او ددې حركات دى، او د «خلق الارض» نه مراد خود زمكه او ددينه پيداكيدونكى اشياء .باغات ،سبزى ،ميوې ،خزانې دى، او د ﴿وَٱخْتِلَـٰفِ ٱلَّيْلِ وَٱلنَّهَارِ﴾ نه مراد رتلل، تياره اوپه يوبل پسې راتلل. كميدل، زياتيدل دى، دا ټول امور دالله ﷻ د وحدانيت اودعظيم قدرت لوئ دلائل دى.

په حديث كښې راغليدى ((ويلٌ لمن قراءهاولم يتفكر)) يعنې هلاكت دې هغه چالره چه دا آيت ولولى اوفكر ونه كړى په مخلوقاتو د الله ﷻ كښې، اوپه بل حديث كښې راغلى دى چه نبى ﷺ به چه كله دشپې دتهجدو دپاره بيدارشو نو په دواړو لاسونوسره به ئې خوب دسترګو نه مسح كړو او دا آياتونه به ئې ولوستل اوبيابه ئې اودس وكړو نوتهجد به ئې كول او دغه شان كول مسنون دى. ﴿لِّأُو۟لِى ٱلْأَلْبَـٰبِ﴾ «أولو»جمع د«ذو» ده من غيرلفظه «الباب» جمع دلب ده. اولُب عقل ته وائى. اوبعضې وائى چه لب هغه عقل ته وائى چه وهم نوى غلط كړې اوغلبه ئې پرې نوى كړى

الَّذِيْنَ يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ قِيٰمًا وَّقُعُوْدًا وَّعَلٰى جُنُوْبِهِمْ وَيَتَفَكَّرُوْنَ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ

داهغه خلق دي چه يادوي الله په ولاړه ، اوپه ناسته اوپه ډډوخپلوباندي اوفکر کوی په پيدائش دآسمانونو

وَالْاَرْضِ ۚ رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا ۚ سُبْحٰنَكَ

اوزمکه کښي، وائ دوئ چي اې ربه زمونږ نه دی پيداکړي تادا(مخلوقات)بې فائدې، مونږ پاکي وايوستا

فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ۝ رَبَّنَآ اِنَّكَ مَنْ تُدْخِلِ النَّارَ فَقَدْ اَخْزَيْتَهٗ ۗ وَمَا

بس بچ کړې مونږ دعذاب داور نه . اې ربه زمونږ ته چي څوک داخل کړې اور ته نو يقيناتارسوا کړوهغه، اونيشته

لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ اَنْصَارٍ ۝ رَبَّنَآ اِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا يُّنَادِيْ لِلْاِيْمَانِ

ظالمانودپاره هيڅ مددګار، اې ربه زمونږ بېشکه مونږ واورېدو چي يو آوازکوونکي په اوچت آواز سره بلنه کوي ايمان ته

اَنْ اٰمِنُوْا بِرَبِّكُمْ فَاٰمَنَّا ۖ رَبَّنَا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا

چي ايمان راوړئ پخپل رب باندې پس مونږ ايمان راوړو، اې ربه زمونږ پس اوبخښې مونږ ته ګناهونه زمونږ

وَكَفِّرْ عَنَّا سَيِّاٰتِنَا وَتَوَفَّنَا مَعَ الْاَبْرَارِ ۝

اولرې کړې زمونږ نه بدئي زمونږ اووفات کړې مونږ پداسي طريقه چي شامل کړې مونږ دنيکانوسره

رَبَّنَا وَاٰتِنَا مَا وَعَدْتَّنَا عَلٰى رُسُلِكَ وَلَا تُخْزِنَا

اې ربه زمونږ ! اوراکړې مونږ ته هغه چي تاوعده کړې ده زمونږ سره په واسطه دخپلو رسولانو ، اومه رسوا کوه مونږ

يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۗ اِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيْعَادَ ۝ فَاسْتَجَابَ لَهُمْ رَبُّهُمْ

په ورځ دقيامت بېشکه ته خلاف نه کوې دوعدې خپلې نه . پس قبولې کړې دعاګاني ددوئ رب ددوئ

اَنِّيْ لَآ اُضِيْعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِّنْكُمْ مِّنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى ۚ بَعْضُكُمْ

پداسي شان چي زه نه ضائع کوم نېک عمل دعمل کونکي ستاسونه که نارينه وي اوکه زنانه وي، بعضي ستاسو

مِّنْۢ بَعْضٍ ۚ فَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا وَاُخْرِجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ وَاُوْذُوْا

د جنس دبعضونه دي. پس هغه کسان[1] چي هجرت ئې کړې دې اوويستلي شوي دي دکورونوخپلونه اوکړولي شوي دي

---

١ مضمون جهاد ته اشاره .

| سَيِّاٰتِهِمْ | عَنْهُمْ | لَاُكَفِّرَنَّ | وَقُتِلُوْا | وَقٰتَلُوْا | سَبِيْلِيْ | فِيْ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| بدئ ددوئ | نوخامخا بهٔ لرې کړم ددوئ نه | شوني دي | اووژلې | نې کړې دي، | اوجنګونهٔ | بهٔ لارخما کښې، |
| وَلَاُدْخِلَنَّهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ثَوَابًا مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ ؕ | | | | | | |
| اوخامخا بهٔ داخل کړم دوئ لره جنتونو کښې چې بهيږي لاندې دهغې نهٔ ولې، بدله ده دالله دطرفنه | | | | | | |
| وَاللّٰهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الثَّوَابِ ۝ | | | | | | |
| او الله سره ښائسته بدلې دي | | | | | | |

﴿ اَلَّذِيْنَ يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ ﴾ دا صفت د «اولوالالباب» دپاره دې نوګويا که چه په چاکښې دا مذکوره صفات موجود نه وی يعنی ذکر د الله ﷻ نه کوی نودغه خلق عقلمند نه دی.

﴿قِيٰمًا وَّقُعُوْدًا وَّعَلٰى جُنُوْبِهِمْ﴾ دلته دوه قوله دی، قرطبی وغيره وائی چه ددينه مراد دوام دې په ذکريعنې په هرحال کښې دالله ﷻ ذکرکوی ځکه چه انسان ددې حالاتونه خالی نوی او دغه مطلب دحديث دعائشة ﷺ دې : «کان رسول الله ﷺ يذکرالله علی کل احيانه» ، **دويم** قول چه د ابن مسعود ﷺ اوعلی ﷺ اوابن عباس ﷺ نه مروی دې هغه دادې چه داپه باره دصلوة کښې دې يعنې د «يذکرون الله» نه مراد مونځ دې چه دقيام طاقت لری نوپه ولاړې به ئی کوی که دقيام طاقت نه لری نوقعوداً به ئی کوی اوکه ددې طاقت نه لری نوعلی جنوبهم به ئی په اشاره سره کوی

﴿وَيَتَفَكَّرُوْنَ﴾ داعطف دې په «يذکرون الله» باندې، انسان مرکب دې دبدن نه چه ظاهر دې او د روح نه چه باطن دې نوذکراعتراف دبندګئ اودعبديت دبدن دې اوفکر اعتراف دعبديت دې په روح سره، اول قسم چونکه ظاهردې نوځکه مقدم شو، بل ددې وجه نه چه فکر صحيحه ته رسيدل اوعقل ته نور دهدايت حاصليدل په ذکرسره کيږی اوهم دغه وجه ده چه ماده پرست ،سائنس دانان ، اګرکه په مخلوقاتوکښې ډيرفکرسوچ کوی او دنيا هغوئ ته لوئ محقق اودسائنس لوئ عالم وائی خودهغوئ فکر دخپل خالق، صانع معرفت ته نه رسی بلکه دزياتې ګمراهئ ذريعه ګرځی اودغه قسم فکرمحمود اومقبول عندالله نه دې اودغه قسم خلق

اولوالالباب عندالله ندی، بلکه «کالانعام بل هم اضل» دی، نوفکرچه صحیح نتیجې ته رسیږي نو د ذکر دانواراتو په برکت سره رسیږي نوددې وجه نه اول ﴿يَذۡكُرُونَ ٱللَّهَ﴾ ذکرشو او وروستو ﴿وَيَتَفَكَّرُونَ﴾ ذکر شو، قرطبی وائی : «الفکرة ترددالقلب فی الشئ» یعنی فکر اړول را اړول ،ګرزول راګرزول دزړه دی په یوشی کښې، اوپه ﴿ فِي خَلۡقِ ٱلسَّمَٰوَٰتِ﴾ کښې اشاره ده چه فکر په ذات دالله ﷻ کښې منع دې «کمافی الحدیث».

قرطبی روایت کړې دې چه نبی ﷺ فرمایلی دی چه فکر دیوساعت غوره دې دعبادت دیوکال نه اوحسن بصری رحمه الله نه روایت دې چه فکر دیوساعت غوره دې دقیام دشپې نه . ﴿رَبَّنَا مَا خَلَقۡتَ هَٰذَا بَٰطِلٗا﴾ دلته «یقولون» مقدردې او دا جمله حالیه ده یاجمله مستأنفه ده، پدې کښې دفکرنتیجه مذکوره ده چه دخپل خالق د رُبوبیت اقراردې «ربنا» ددې اقرار چه لوئ حکیم دې، «ماخلقت هذاباطلا» پاك دې دعبث اوعیوبونه او دشریك نه (سُبۡحَٰنَكَ) اوددې نه ئی ذهنونه آخرت طرف ته منتقل اومتوجه شی چه هغه فی الحقیقت ددنیا دژوند آخری نتیجه ده. ﴿فَقِنَا عَذَابَ ٱلنَّارِ ﴾ ، ﴿رَبَّنَآ إِنَّكَ مَن تُدۡخِلِ ٱلنَّارَ﴾ داپه منزله دعلت دې دماقبل دپاره ﴿فَقَدۡ أَخۡزَيۡتَهُۥ﴾ خزی هلاکولواوسخت رسوا کولوته وایی او مراد ددخول نه دخول په طریقه دخلود سره دې په قرینه د ﴿وَمَا لِلظَّٰلِمِينَ﴾ سره.

﴿رَّبَّنَآ إِنَّنَا سَمِعۡنَا مُنَادِيٗا﴾ دا دویمه دعا ده اوتنوین په «منادیا» کښې دتعظیم دپاره دې او مراد ددینه رسول دې نودا اعاده دمسئله درسالت ده او دمنادیٰ اطلاق په قرآن هم کیږی لکه دقتادة وغیره نه دغه تفسیرمروی دې «روح» منادی للایمان رسو ل هم دې اوقرآن هم دې اود دواړو د نداء او ددعوت حاصل یودې چه ایمان دی ((فَـَٔامَنَّا)) دا عطف دې په «سمعنا» باندې یعنی په قبول دحق کښې مونږخه تردد اوشك ندې کړې.

﴿رَبَّنَا فَٱغۡفِرۡ لَنَا﴾ «فاء» دتفریع دپاره ده نو دا متفرع دې په ایمان بالله والرسول باندې نو معلومه شوه چه ایمان وسیله ده دپاره دمغفرت. او د «ذُنوب» نه مراد کبائر دی او د «سیئات» نه مراد صغائر دی، اودغفران اوتکفیرپه مابین کښې فرق نشته په نزد دبعضو.

اوبعضې وائی چه فرق ئی شته دې او هغه دادې چه غفران مستعمليږی په فعل دالله ﷻ کښې اوتکفيرکله مستعمليږی په فعل دعبدکښې (يقال كفرعن يمينه) نومغفرت دکبائروسره مناسب دې او تکفير دصغائرو سره مناسب دې.

﴿وَتَوَفَّنَا مَعَ الْأَبْرَارِ﴾ ابرار جمع دبار،يا د بر ده،دلته مقصودسوال دموت نه دې ځکه چه په حديث کښې ((لايتمنين احدكم الموت لضر نزل به)) راغلې دې، بلکه مقصود معيت دابرارو دې او دمعيت دوه مطلبه کيدې شی : **يو** دا چه خاتمه اوعاقبت ئی دهغوئ پشان شی نو دهغوئ سره به ئی معيت راشی دمرګ نه ورستو په برزخ کښې اوجنت کښې، **دويمه معنی** ئی تابعداری د ابرارو ده يعني مونږدمرګ پورې په تابعدارئ دابراروکښې ولرې چه مرګ نه ورستوپه برزخ کښې زمونږ ارواح ددوئ سره په عليين کښې جمع شی او بيا په جنت کښې مو ورسره معيت نصيب شی.

﴿رَبَّنَا وَآتِنَا مَا وَعَدتَّنَا﴾ داهم ددوئ دعاده چه دخاتمه بالايمان نه بعد دجنت طلب کوی او دجهنم نه امن غواړی اوالله ﷻ خو دخپلې وعدې خلاف هسې هم نه کوی نو بيا ددې سوال کولو مقصد عاجزی اوتضرع پيش کول اواظهار دعبوديت دی، يامراد طلب دتوفيق داسبابو دحصول دوعدې دې يعني مقصود ترينه دادې چه مونږته دهغه اعمالوکولوتوفيق راکړې چه په هغې سره تا وعد ه دمغفرت کړې ده.

﴿عَلَىٰ رُسُلِكَ﴾ دا متعلق دې د ((وعدتنا)) سره نومضاف پکښې مقدردې ((ای علی اتباع رسلك ،ياتصديق رسلك ،يا امتثال رسلك)) يا جار مجرور متعلق دې دمحذوف سره ((ای وعدتنا وعداً كائناً على السنة رسلك)).

﴿وَلَا تُخْزِنَا﴾ (خزی) يعنی رسوائی، يوقسم داده چه دهميشه دپاره جهنم ته لاړشی لکه مخکښې ذکر شو (فقد اخزيته) اوبل قسم داده چه اول جهنم ته لاړشی اګرکه دهميشه دپاره نه وی. دلته داقسم مرادده.

**فايده** دلته لفظ د ((ربنا)) پنځه وارې ذکرشوې دې دپاره دالحاح، نومعلومه شوه چه په

دعاء کښې الحاح سبب دقبولیت ددعاء دې ،امام قرطبی دحسن بصری نه روایت ذکرکړیدې ، «ما زالوا یقولون ربنا،ربنا، حتی استجاب لهم» یعنی هرکله چه دوئ باربار،ربّنا،ربّنا ویل نوځکه الله ﷻ ددوئ دعاقبوله کړه، اوجعفرصادق رحمه الله ویلی دی چه چا ته یومشکل پیښ شی اودې پنځه واره رَبّنا ووائی نو الله ﷻ به ده لره دتکلیف نه نجات ورکړی اوحاجت به ئی پوره کړی نوچا ترینه تپوس وکړو چه «وکیف ذالك» ؟ ، څه دلیل دې؟ نودوئ وویل : ((اقراء وا ان شئتم الذین یذکرون الله الی قوله لاتخلف المیعاد))، یعنی دلته ربناپنځه واره ذکردې ، او ﴿فَٱسْتَجَابَ ﴾ پرې مرتب دې نومعلومه شوه چه پنځه واره ربنا ویلوسره دعاقبلیږی «استجاب» او «اجاب» په یوه معنی سره دی، اجابت قبولول ددعاء ته وایی، اوفراء وائی چه استجابت قبول د دعاته وائی او اجابت مطلق جواب ته وائی رد وی اوکه قبول.

﴿أَنِّى لَآ أُضِيعُ﴾ «باء» سببیه پکښې مقدره ده او دا التفات دې دغیبوبت نه خطاب ته دپاره د اظهار دشرافت ددعاکوونکو یعنی الله ﷻ قبوله کړه دعا ددوئ په سبب ددې چه الله ﷻ نه ضائع کوی عمل دهیڅ چا، اوکوفیان وائی چه «انی لااُضیع» متعلق دې د «استجاب» سره ځکه چه په استجاب کښې معنی دقول ده «ای فاستجاب قائلالهم انی لااُضیع» ،اومراد دعمل نه دعاګانې اونوراعمال صالحه دی. ﴿مِّن ذَكَرٍ أَوْ أُنثَىٰ﴾ دا بیان دعامل دې اوتاکید دتعمیم لپاره دې

﴿بَعْضُكُم مِّنۢ بَعْضٍ﴾ یعنی دیو اصل او د یوجنس نه یئ یا دا معنی ده چه دیوبل نه پیدا یئ او د الله ﷻ نه څوك نه دی پیدا ،نه عیسی ﷺ نه مریم ،نه بل څوك، او دا علت دې د لا «اُضیع» دپاره. یعنی الله تعالی دچاعمل نه ضایع کوی په هرعمل باندې اجر اوثواب ورکوی برابره خبره ده چه عمل کوونکې نارینه وی اوکه زنانه وی، ځکه دا دواړه دیوې نوعې دوه شاخونه دی، او دالله ﷻ سره دچا رشته، نسب نشته دې اود اعمالود قبولیت دارومدار په اخلاص دې نه په ذکورة اوانوثت باندې.

﴿فَٱلَّذِينَ هَاجَرُوا۟﴾ دا تفصیل دبعضې هغه اعمالو دې چه الله ﷻ ئی نه ضایع کوی چه

په هغې کښې اول هجرت دې ﴿وَأُخْرِجُوا﴾ عطف تفسير دهاجروا دې اوپدې کښې اشاره ده دېته چه هجرت ئې دمجبورئ په وجه دې ﴿وَقَٰتَلُوا وَقُتِلُوا﴾ پدې کښې اعاده دمضمون دجهاد صراحةً ده او دمضمون دانفاق ضمناً ده ﴿لَأُكَفِّرَنَّ﴾ دا بشارت اُخروی دې ﴿ثَوَابًا﴾ مفعول مطلق دې «ای لأثيبنّهم ثواباً» . ﴿وَلَأُدْخِلَنَّهُمْ﴾ په معنی د «اُثيبنّ» سره دې يا دا حال دې يا تميزدې د ((جنّتٍ)) نه اوتنکير دثوابًا اوتوصيف ئې په من عندالله سره دپاره دتعظيم دې ﴿وَٱللَّهُ﴾ ، دا مبتداء دې او ﴿عِندَهُۥ﴾ ورله خبر دې او ﴿حُسْنُ ٱلثَّوَابِ﴾ مرفوع دې فاعل دظرف دې يا «حسن الثواب» مبتداء ده او «عنده» ورله خبردې او دا جمله خبر د مبتداء اول دې.

| لَا يَغُرَّنَّكَ تَقَلُّبُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا فِي ٱلْبِلَٰدِ ﴿١٩٦﴾ مَتَٰعٌ قَلِيلٌ |
|---|
| دهوکه[1] دې نه کړي تالره ګرځېدل راګرځېدل دکافرانو(ددنيادپاره)په ښارونو کښې، دافائده لږه[2] ده |
| ثُمَّ مَأْوَىٰهُمْ جَهَنَّمُ ۚ وَبِئْسَ ٱلْمِهَادُ ﴿١٩٧﴾ |
| بيا ځائې ددوئ جهنم دې، اوبدځائې تيارشوي دې داجهنم |

﴿لَا يَغُرَّنَّكَ﴾ دا خطاب نبی ﷺ ته دې اومراد ترينه اُمت دې، غرور(دهوکه) ورکول دضرر دی په صورت دفائدې کښې لکه په شاتوکښې چاته زهرواچولې شی ، **داجواب ديوسوال دې** او هغه دا چه دمخکښې آياتونو نه معلومه شوه چه الله ﷻ مؤمنانو ته ددغه مذکوره صفاتو او دعاګانو په وجه بدله اوثوابونه ورکوی نوکفار به محروم او ناکام وی ليکن مونږخو وينوچه کفار خوپه جهازونو، سياراتوکښې په هوا ګرځی او ددنياپه اطرافو، اکنافوکښې دتجارتونو دپاره شهرپه شهر،ملك درملك په لوئ دُم دام سره ګرځی راګرځی نو دا خو ترقی اوکاميابی په نظرراځی ،**جواب** وشوچه دا دهوکه ده په ظاهرصورت کښې فائده ليدلې شی په حقيقت کښې ضرر دې که څوك چاته يو وخت ښه خوراك ورکړی اوبيا ورله دائمی قيد او سخته سزا ورکړی نو دا خوکاميابی اوعيش ندې.

---

١ - زجر تخويف مشرکينو ته.

٢ - مضمون انفاق ته اشاره.

﴿مَتَٰعٌ قَلِيلٌ﴾ دا علت دماقبل دې اودا خبر د مبتداء محذوفې دى «اى هذامتاع قليل»

﴿ثُمَّ مَأْوَىٰهُمْ جَهَنَّمُ﴾ ځائ داستوګنې ته وايئ ﴿وَبِئْسَ ٱلْمِهَادُ﴾ «مهاد» هغه ځائ ته وائى چه څوك ئې دخپل ځان د آرام دپاره تيارکړى، نوجهنم ته(مهاد) په طريقه د استهزاء سره ويلې شويدې.

| |
|---|
| لَٰكِنِ ٱلَّذِينَ ٱتَّقَوْا۟ رَبَّهُمْ لَهُمْ جَنَّٰتٌ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ |
| ليکن[1] هغه کسان چې ويريږي درب خپل نه ددوئ دپاره جنتونه دي چې بهيږي به لاندې ددېنه ولې همېشه به وي |
| فِيهَا نُزُلًا مِّنْ عِندِ ٱللَّهِ ۗ وَمَا عِندَ ٱللَّهِ خَيْرٌ لِّلْأَبْرَارِ ۝ وَإِنَّ مِنْ |
| په هغې کښې،ميلمستيا ده دطرفه دالله نه. اوهغه څه چې الله سره دي غوره دي دنېکانودپاره . اوبېشکه بعضې[2] |
| أَهْلِ ٱلْكِتَٰبِ لَمَن يُؤْمِنُ بِٱللَّهِ وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْكُمْ وَمَآ |
| د اهل کتابونه خامخاهغه دي چې ايمان لري په الله اوپه هغه کتاب چې نازل کړې شوېدې تاسوته اوپه هغه |
| أُنزِلَ إِلَيْهِمْ خَٰشِعِينَ لِلَّهِ لَا يَشْتَرُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ ثَمَنًا قَلِيلًا ۗ أُو۟لَٰٓئِكَ |
| کتابونو چې نازل کړې شوي دي دوئ ته عاجزي کوونکي الله ته، نه اخلي په آياتونو دالله عوض لږ(دنيا) دغه کسان |
| لَهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ سَرِيعُ ٱلْحِسَابِ ۝ |
| دوئ لره اجروثواب ددوئ دې په نيزد رب ددوئ، بېشکه الله زر حساب کوونکې دې |

﴿لَٰكِنِ ٱلَّذِينَ ٱتَّقَوْا۟ رَبَّهُمْ﴾ دا بشارت اخروى دې ((لَٰكِنِ)) په نزد دعلماؤ دبلاغت دقصرقلب دپاره راغې نوکفارو په خپل زعم کښې کاميابى خپل ځان له ثابتوله نوالله ﷻ ددوئ نه نفى کړه اومتقيانوله ئې ثابته کړه نو دا قصرقلب شو اوپه نزد دنحويانو«لکن» د استدراك دپاره دې يعنى دفع دتوهم چه ناشى وى دکلام سابق نه نودلته دماقبل کلام نه توهم پيداشو چه تقلب په بلادوکښې به دهرڅادپاره نقصان اودهوکه وى نومؤمنان که په بلادوکښې ګرځى راګرځى دتجارت يانورو دينى، دنياوى مقاصدو دپاره نو آيا دا به هم

---

١ - بشارت.

٢ - بشارت مومنانو اهل کتابو ته.

نقصان اودهوكه وى نوجواب وشو چه كله ايمان اوتقوى وى نو انسان په هرحال كښې كامياب اوبا مراد دې. مثلاً تجارت ،زراعت ،معيشت، معاشرت وغيره كښې چه دالله ﷻ رضا او د احكاماتو پابندى مدّ نظروى نو پدې سره په آخرت كښې اجر اوثواب اوشانداره ميلمستيا ملاويږى، په ﴿نُزُلًا﴾ كښې اشاره ده چه نعمتونه دجنت به جنتيانوته هر وخت په ډير اكرام اوعزت سره وركولې شى. ﴿وَمَا عِندَ ٱللَّهِ خَيْرٌ﴾ دمشركينو مال او صلاحيت دفانى دنيا دپاره او د باطل داشاعت دپاره خرچ كيږى اودمؤمنانوهغه د آخرت اودحق داشاعت دپاره خرچ كيږى نو ددې انجام اوفائده ډيره زياته اودائمى ده.

﴿وَإِنَّ مِنْ أَهْلِ ٱلْكِتَٰبِ﴾ مخكښې په ((واذاخذالله ميثاق الذين اوتوالكتب ـــ الآيه ـــ آية ١٨٧)) كښې اهل كتابوته زجر ؤو، دلته دهغې په مقابله كښې هغه اهل كتابوته چه ضديان متعصب ندى بشارت ذكركيږى اوپدې كښې ترغيب الى الايمان هم دې چه حق پرست اهل كتابو ايمان راوړې دې نوتاسو ټول دهغوئ اتباع وكړئ او ايمان راوړئ، د ﴿وَمَا أُنزِلَ إِلَيْكُمْ﴾ نه مراد قرآن دې او د ﴿وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْهِمْ﴾ نه مراد تورات او انجيل وغيرهما دى، او ﴿وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْهِمْ﴾ځكه ورستو ذكرشو چه بعد د نزول دقرآن نه ايمان په هغوئ تابع دې د ايمان بالقرآن دپاره. ﴿خَٰشِعِينَ﴾ دا حال دې ﴿لَا يَشْتَرُونَ﴾ پدې كښې اشاره ده ديته چه په كومو اهل كتابو كښې چه عاجزى وه اوحُب جاه اوحُب مال پكښې نه ؤو نوهغوئ ايمان راوړې ؤو اوكوموچه ايمان نه ؤو راوړې نوپه هغوئ كښې دا دوه بيمارئ وى چه حب جاه اوحب مال دې.

| يَٰٓأَيُّهَا | ٱلَّذِينَ | ءَامَنُوا | ٱصْبِرُوا | وَصَابِرُوا | وَرَابِطُوا |
|---|---|---|---|---|---|
| اې ايمان والو![1] صبركوئ په تكليفونو اودكفاروپه مقابله كښې صبر كوئ مضبوط شئ او جهاددپاره تيار اوسئ | | | | | |
| وَٱتَّقُوا | ٱللَّهَ | لَعَلَّكُمْ | تُفْلِحُونَ | | |
| اودالله نه ويريږئ په هرحال كښې ،ددې دپاره چې كامياب شئ | | | | | |

١ - دټولو مضامنين اعاده اجمالا ، امنو توحيد صراحة ، رسالت ضمنا او په صابروا او رابطوا كښې جماد صراحة انفاق ضمنا ذكر دي.

﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟﴾ دا دسورت په خاتمه کښې دسورت ټول مضامين اشارةً ذکر کيږي، په ﴿ءَامَنُوا۟﴾ کښې ۱- مضمون توحيد ۲- اورسالت ته اشاره ده اوپه ﴿وَصَابِرُوا۟ وَرَابِطُوا۟﴾ کښې، دمضمون ۳- جهاد صراحةً ذکر دي اودمضمون ۴- انفاق ضمناً ذکر دي ﴿اصْبِرُوا۟﴾ صبر(حبس النفس على ماتكره ) ته وائي اوددې دپاره درې قسمه دی : ۱- صبرعلی المصائب ۲- صبرعلی الطاعات ۳- صبرعن المعاصی والشهوات، دا درې واړه مراددی ﴿صَابِرُوا۟﴾ صيغه د باب مفاعله ده يعني دکفارو په مقابله کښې په ميدان قتال کښې صبر.

﴿وَرَابِطُوا۟﴾، دَ رِباط يو څو معنی دی : ۱- دجهاد دپاره آسونه تړل اوساتل اودارنګه ددشمن دمقابلې دپاره اسلحه ساتل اوتيارول، ۲- داسلامی سرحداتوڅوکيداری کول چه ددې ډيرفضيلت په احاديثوکښې ذکرشوې دې ((رباط يوم فی سبيل الله خيرمن الدنياوماعليها)) ۳- يوفرض مونځ نه ورستودبل فرض مونځ انتظارکول : ((کمافی الحديث عن ابی هريرة ﷺ عن النبی ﷺ قال:الااخبركم بمايمحوالله به الخطايا ،ويرفع به الدرجات ؟ اسباغ الوضوء على المكاره وكثرة الخطا الى المساجد وانتظار الصلوة بعدالصلوة فذالكم الرباط فذالكم الرباط .رواه مسلم واحمد)).

بعضې علماؤ د «رابطوا» معنی خپل مينځ کښې د ربط اواتفاق ساتلو سره کړې ده

**فايده** : «اصبروا» په عامو حالاتو کښې حکم دې او «صابروا» په وقت د بالفعل قتال کښې حکم دې «ورابطوا» په وقت د احتمال دقتال کښې دې او ﴿وَاتَّقُوا۟ ٱللَّهَ﴾ «تقوی» مدار دټولوحسناتو دې.

﴿لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ فلاح دمذکوره امورو نتيجه اوحاصل دې.

اللهم ارزقناالفلاح فی الدنياء ولاخرة بفضلك وكرمك ياارحم الراحمين وصلى الله على حبيبه محمدوآله واصحابه اجمعين برحمتك ياارحم الراحمين

تم تفسيرسورة آل عمران .

بتاريخ ۲۱ محرم الحرام سنه : ۱۴۲۷ هـ

مطابق ۱۹ فروری ، سنه : ۲۰۰۶ ع .

# د مضامینو فهرست

**عنوان** **صفحه**

فهرست ختم شو ولله الحمد والمنه